# الورد الشذي

پښتو شرح د

# جامع الترمذي


شيخ الإسلام محدث العصر
محمد حسين جان المدني شهيد


۱ تا ۳۰۵

خصوصيات

- معرب متن
- په متن باندې اعراب
- د باب نمبر
- د حديث نمبر
- ترجمه او تشريح
- حل لغات
- د راوي حالات
- د حديث تخريج
- تحقيق د مذاهب اربعه
- متن مع السند بالاستيعاب


جمع وترتیب
ابو هلال عبدالخالق



مكتبه رحمانيه
0302-6209815
0316-9400041

وَمَا يَنْطِقُ عَنِ الْهَوىٰ إِنْ هُوَ إِلَّا وَحْيٌ يُوحىٰ

# الـــورد الشـــذي

بشرح

# جامع الترمذي

## الجزء الرابع

من _١٣٢٢_ الىٰ _ ١٨٩٢_

جمع وترتيب: خادم العلماء المفتقر الي الله ابوهلال: **عبدالخالق بن خان محمد**
خريج الجامعة امداد العلوم الاسلامية پشاور_ وفاضل وفاق المدارس العالمية (ايم اى اسلاميات)

ازافادات

شيخ الاسلام فقيه العصر محمد حسن جان (المدني) شهيد (رحمه الله)

**ناشــر**: مكتبه رحمانيه پشاور

**اسم الكتاب:** الورد الشذي بشرح الجامع للترمذي

**جلد:** رابع

من _١٣٢٢_ الىٰ _ ٢٤١١_

**تاليف:** ابوهلال "عبدالخالق" خَرِيْجُ الْجَامِعَة إمْدَادُ الْعُلُوْمِ الْإسْلَامِيَّة بِشَاوَر_
وفاضل وفاق المدارس العالمية (ايم اى اسلاميات) رابطه نمبر: ٠٣٣٣٩١٢١١٩٢

سال اشاعت: ٢٠٢١

**تعداد:** ١٠٠٠

**ناشر:** مكتبه رحمانيه محله جنكي نزد قصه خواني (پشاور)
**اهتمام طباعت:** الحاج شاه زاده صاحب

# فهرس العناوين والمحتويات

سُبْحَانَ رَبِّكَ رَبِّ الْعِزَّةِ عَمَّا يَصِفُونَ ، وَسَلَامٌ عَلَى الْمُرْسَلِينَ ، وَالْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ.

(سورة الصافات:١٨٢)

***************

بسم الله الرحمن الرحيم

# كتاب الأحكام عن رسول الله صلى الله عليه وسلم

## د قضا د احكامو بيان

چونکه په بيوع وغيره معاملاتوکي اکثر جګړې پيدا کيږي،په دې وجه ددې نه پس ئې داسې مسائل بيان کړل،کوم چي منازعات ختمونکې دې اوهغه قضاء ده.
د قضاء لغوی معنی لازمول دی اوپه شريعت کي قضاء هغه قول دې،کوم چي په ولايت عامه سره صادر شي يعنی کوم کس ته چي ولايت عامه حاصل وې.د هغه نه صادر شی اوڅوك چي دده د قول مخاطب وی په هغه لازم شی.
د قاضي دپاره مخصوص اداب دي چي دهغي رعايت کول وربانديې لازم دي مثلا:
(۱) په تقوي موصوف کيدل.
(۲) انصاف عام کول.
(۳) ظلم ختمول.
(۴) د شريعت په حدودو او سنتو باندې قائم پاتې کيدل. (احسن الهدايه)
د يو کس قاضی جوړول به هغه وخت جائز وی چي کله په ده کي د شهادت ټول شرطونه موجود شی، مثلاً :
(۱) مسلمان وی.
(۲) بالغ وی.
(۳) عاقل وی.
(۴) آزاد وی اونابينا ( ړوند ) او محدود فی القذف نه وی.
(۵) اوغوره داده هر کله چي عادل وی، عفيف ( پاکدامن) وی، عالم بالسنة وی اود ځان نه د مخکنو قاضيانو په طريقه وی.
دويمه خبره داده چي کوم کس ته د قضاء عهده سپارلې کيږي.هغه به د اجتهاد اهل وی.
په قاضی کي د شهادت شرطونه موجود کيدل ځکه ضروری دی چي حکم د قضاء د حکم شهادت نه مستفاد دې ځکه چي قضاء او شهادت دواړه د باب ولايت نه دی اوولايت وانی " تنفيذ القول علی الغير " تـه نـو لکـه څنګـه چـي شـاهد خپـل قـول پـه غيـر بانـدې نافذکوی.دغه شان قاضی هم خپل قول غير باندې نافذ کوی اوولايت د قضاء د ولايت د شهادت نه عام او اکمل دې.
فاسق چونکه د شهادت اهل دې ځکه به دې د قاضی جوړيدلو هم اهل وی.ترديې که فاسق قاضی جوړ کړې شو نو جائز دی.خو دده قاضی جوړول مناسب نه دی لکه څنګه چي د

قاضي دپاره د فاسق ګواهي قبلول مناسب نه دی،خوکه د فاسق ګواهي قبول کړې شوه نو زمونږ په نزد جائز ده ځکه چي عدالت د شهادت په شرائطوکي نه دې بلکه د شهادت په مناسباتوکي دې اوکه قاضي عادل وی،خود رشوت اخستلو. یا شراب څکلو.یا د زنا وغیره په وجه فاسق شو نو معزول به نه وی.

البته د معزولولو مستحق کیږی اوترکومه پورې چي معزول نکړې شی.تر هغه وخته پورې به دده جاری کړي احکام نافذ وی.البته که د قاضی مقررکولو په وخت بادشاه شرط لګولې وی چي د حرام فعل ارتکاب کولو سره به معزول وی.نود حرام فعل ارتکاب کولو سره به معزول کیږی.هم دا ظاهر مذهب دې اوهم په دې باندې زمونږ د عامو مشائخو اعتماد دې.

امام شافعی رحمه الله فرمائی چي د فاسق سړی قاضی جوړول جائز نه دی لکه څنګه چي ددوی په نزد دده شهادت نشی قبلولې،هم دا د امام مالك اود امام احمد قول دې اوزمونږ درې وارو عالمانو د نوادر یو روایت هم دادې چي فاسق قاضی جوړول جائز نه دی اوبعض مشائخ وائی که فاسق قاضی جوړکړې شو نو درست ده اوکه عادل قاضی جوړکړې شو.خو روسته فاسق شو.نود فسق په وجه به معزول کیږی ځکه چي قاضی جوړونکی د قاضی جوړولو په سلسله کي دده په عدالت باندې اعتماد کړې وو.نود عدالت نه بغیر به دده په قاضی جوړولو باندې به نه راضی کیږی،ګویا قاضی جوړول د عدالت د بقاء سره مشروط دی. اوهرکله چي قاضی جوړول د عدالت بقاء سره مشروط شو.نود عدالت په فوت کیدلو سره به د قضاء عهده هم فوت کیږی.

صاحب د هدایه فرمائی چي فاسق سړې مفتی کیدلې شی لیکن د بعض علماورائې داده هر کله چي فاسق سړې مفتی نشی کیدلې ځکه چي افتاء یو دینی امر دې اوپه دینی امورو کي د فاسق خبر نه قبلیږی. که فاسقانو اووئیل:مونږه د اختر میاشت اولیدله نو ددوی په قول به اعتماد نشی کولې اود بعض علماورائې داده چي د فاسق سړی مفتی کیدل جائز دی ځکه چي په خلقو کي د بدنام کیدلو په وجه به دې ددې کوشش کوی چي صحیح فتوی اولیکی اوغلطئ طرف ته د منسوب کیدلو نه بچ پاتي شي.

## ١ـ باب مَا جَاءَ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْقَاضِي

### دقضاء او قاضي باره کي ارشادات نبویه

١٣٢٢ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الأَعْلَى الصَّنْعَانِيُّ. حَدَّثَنَا الْمُعْتَمِرُ بْنُ سُلَيْمَانَ، قَالَ: سَمِعْتُ عَبْدَ الْمَلِكِ يُحَدِّثُ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَوْهَبٍ، أَنَّ عُثْمَانَ، قَالَ لاِبْنِ عُمَرَ: اذْهَبْ، فَاقْضِ بَيْنَ النَّاسِ، قَالَ: أَوَتُعَافِينِي يَا أَمِيرَ الْمُؤْمِنِينَ، قَالَ: فَمَا تَكْرَهُ مِنْ ذَلِكَ، وَقَدْ كَانَ أَبُوكَ يَقْضِي، قَالَ: إِنِّي سَمِعْتُ

رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. يَقُولُ: "مَنْ كَانَ قَاضِيًا. فَقَضَى بِالْعَدْلِ فَبِالْحَرِيِّ. أَنْ يَنْقَلِبَ مِنْهُ كَفَافًا. فَمَا أَرْجُو بَعْدَ ذَلِكَ". وَفِي الْحَدِيثِ قِصَّةٌ. وَفِي الْبَابِ: عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ عُمَرَ حَدِيثٌ غَرِيبٌ. وَلَيْسَ إِسْنَادُهُ عِنْدِي بِمُتَّصِلٍ. وَعَبْدُ الْمَلِكِ الَّذِي رَوَى عَنْهُ الْمُعْتَمِرُ هَذَا هُوَ عَبْدُ الْمَلِكِ بْنُ أَبِي جَمِيلَةَ. (1)

**ترجمه**: دعبدالله بن موهب بیان دي چي عثمان رضي الله عنه ابن عمر ته اوفرمانیل لاړ شه او دخلقو مینځ کي فیصلي کوه هغه اوونیل اي امیرالمؤمنین ایا معاف به مي نکړي . عثمان رضي الله عنه اوونیل ته دا کار ولي بد ګنړي ستا پلار خو به هم په خلقو کي فیصلي کولي ددي په اوریدو سره يي اوونیل مادرسول الله صلي الله علیه وسلم نه اوریدلي دي څوك چي قاضي جوړ شي او عدل او انصاف سره فیصلي اوکړي نو پکار ده چي سر په سر دده معامله ختمه شي (یعني نه دثواب مستحق شي او نه دعذاب) نو ددینه پس زه دفاندي څه امید اوساتم او په دي حدیث کي یوه قصه هم ده.

امام ترمذي وائي دابن عمر رضي الله عنهما حدیث غریب دي او زما په نزد ددي سند متصل نه دي او کوم عبدالملك چي دا دمعتمر نه نقل کړي دي هغه عبدالملك بن ابي جمیله دي . او په دي باب کي دابوهریره رضي الله عنه نه هم روایت مروي دي

**تشریح:** **دقضا عهده قبلول**

جمهور فقهاء وایي که یوسړی ته پخپل ځان باندې دا اعتماد وی چي دې به د قضاء فریضه سرته اورسوی یعنی د حق مطابق فیصله کولې شی نو دده دپاره د قضاء عهده قبلولوکي هیڅ حرج نشته.

(۱) دلیل دادې چي صحابه کراموﷺ د قضاء عهده قبول کړې ده لکه چي په عهد رسالت کي د معاذﷺ قاضی کیدل معروف او مشهور دی او علیﷺ پخپله فرمائی:

((بعثنی رسول اللهﷺ إلی الیمن قاضیاً . الحدیث))

او په مستدرك حاکم کي د ابن عباس حدیث دې:

((قال بعث النبیﷺ علیاًﷺ إلی الیمن فقال علمهم الشرائع واقض بینهم)).

یعنی ابن عباس رضی الله عنهما فرمائی چي رسول اللهﷺ علیﷺ د یمن قاضی جوړکړو اووې لیګلو.بیا نې اوفرمانیل چي دوی ته د شرعی احکامو تعلیم ورکوه اوددوی په منځ کي فیصلې کوه.

1 _ تفرد بذکره المؤلف (تحفة الأشراف: ٧٢٨٨)

اود بیهقی د روایت مطابق صدیق اکبر رضی الله عنه پخپل عهدخلافت کي فاروق اعظم رضی الله عنه قاضی مقرر کړي وو اوابوعبیده رضی الله عنه ئې دمال ذمه دار جوړ کړي وو او عمر رضی الله عنه پخپل عهد خلافت کي عبدالله بن مسعود رضی الله عنهما قاضی مقرر کړي وو اوزیدبن ثابت رضی الله عنه ئې قاضی مقرر کړي وو او علی رضی الله عنه شریح قاضی مقرر کړي وو.

بهرحال صحابه کرامو رضی الله عنهم د قضاء عهده قبول کړي ده اود صحابو رضی الله عنهم د قضاء عهده قبلول زمونږ د راهنمايئ دپاره کافی ده یعنی د صحابه کرامو رضی الله عنهم د قضاء عهده قبلول زمونږ دپاره هم جواز پیدا کوی.

دویم دلیل دادې چي قاضی چونکه امر بالمعروف نهی عن المنکر کوی.په دې وجه قاضی کیدل فرض علی الکفایه دی که څوك هم دا عهده قبول نکړی نو ټول به ګناهګار وی. (الکفایه علي الهدایه، والعنایه).

**************

حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ إِسْمَاعِيل، حَدَّثَنِي الْحَسَنُ بْنُ بِشْرٍ، حَدَّثَنَا شَرِيكٌ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ سَعْدِ بْنِ عُبَيْدَةَ، عَنِ ابْنِ بُرَيْدَةَ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " الْقُضَاةُ ثَلَاثَةٌ: قَاضِيَانِ فِي النَّارِ، وَقَاضٍ فِي الْجَنَّةِ، رَجُلٌ قَضَى بِغَيْرِ الْحَقِّ، فَعَلِمَ ذَاكَ، فَذَاكَ فِي النَّارِ، وَقَاضٍ لَا يَعْلَمُ فَأَهْلَكَ حُقُوقَ النَّاسِ، فَهُوَ فِي النَّارِ، وَقَاضٍ قَضَى بِالْحَقِّ فَذَلِكَ فِي الْجَنَّةِ ".[1]

**ترجمه** : دبریده رضي الله عنه دخپل پلار نه روایت نقل کوي چي نبي کریم صلي الله علیه وسلم فرمانیلي دي قاضیان په دري قسمه دي دوه قسمه قاضیان به په اور کي وي او یو قسم قاضي به په جنت کي وي. پس کوم قاضي چي دحق نه بغیر فیصله اوکړي او هغه ته معلومه وي چي دا فیصله دحق مطابق نه ده نو داسي قاضي به په اور کي وي. دویم قسم هغه قاضي دي چي دقضاء په طریقه نه پوهیږي او دخلقو حقوق برباد کړي داسي قاضي به هم په اور کي وي. او دریم هغه قاضي دي چي دحق متعلق فیصله اوکړي پس ص ف داسي قاضي به په جنت کي وي

## دبریده رضي الله عنه حالات

نوم بریده کنیه ابو عبدالله او دپلار نوم مصیب بن عبدالله

کله چي رسول الله صلي الله علیه وسلم مدیني ته ورسیدو نو بریده یي په خدمت کي حاضر شو نو رسول الله ورته داسلام دعوت ورکړو نو دی فورا مسلمان شو او دده سره دبني اسلم اتیا

[1] ـ ابي داود ـ الأقضية ٢ (٣٥٧٣) . سنن ابن ماجه ـ الأحكام ٣٣ (٢٣١٥) . (تحفة الأشراف: ٤٤٩٠١٩٠)

کسان په اسلام کښې داخل شول (طبقات ابن سعد)
په صلح حديبيه او بيعة الرضوان کښې يې هم شرکت کړی دی (اسد الغابه)
او په فتح مکه کښې يې هم ملګرتيا کړي وه (مسند احمد)
تقريبا په شپاړسو غزواتو کښې شريك پاتې شوی دی (بخاري کتاب المغازي)
کله چې رسول الله صلي الله عليه وسلم داسامه په مشرۍ کښې اخر لښکر تيار کړو نو په دې کښې هم شريك وو (طبقات ابن سعد)
غرض دا چې دده په رګ رګ کښې دجهاد جذبې تو ېونه وهل او دژوند مزه به يې داسونو په زغلولو کښې ليدله (طبقات ابن سعد)
ديزيد په زمانه کښې دهجرت په ۷۳ کال وفات شو چې دمروياتو شمير يې ۱۲۴ دی يو متفق عليه دی او دوه په بخاري کښې دي يو لس په مسلم کښې دي (تهذيب الکمال)

***************

۱۳۲۳_ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ إِسْرَائِيلَ، عَنْ عَبْدِ الأَعْلَى، عَنْ بِلاَلِ بْنِ أَبِي مُوسَى، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " مَنْ سَأَلَ الْقَضَاءَ وُكِلَ إِلَى نَفْسِهِ، وَمَنْ أُجْبِرَ عَلَيْهِ يُنْزِلُ اللَّهُ عَلَيْهِ مَلَكًا، فَيُسَدِّدُهُ ".[1]

**ترجمه** دانس رضي الله عنه نه روايت دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي څوك چې دقاضي توب خواهش مند وي او ددې مطالبه کوي نو دې به خپل نفس ته اوسپارلې شي (او دالله تعالي مدد به ورسره شامل نه وي او څوك چې جبرا قاضي کړې شي هغه ته دالله تعالي دطرف نه يو فرشته راځي چې ده لره په حق باندې قائم ساتي.

***************

۱۳۲٤_ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، أَخْبَرَنَا يَحْيَى بْنُ حَمَّادٍ، عَنْ أَبِي عَوَانَةَ، عَنْ عَبْدِ الأَعْلَى الثَّعْلَبِيِّ، عَنْ بِلاَلِ بْنِ مِرْدَاسٍ الْفَزَارِيِّ، عَنْ خَيْثَمَةَ وَهُوَ الْبَصْرِيُّ، عَنْ أَنَسٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: " مَنِ ابْتَغَى الْقَضَاءَ، وَسَأَلَ فِيهِ شُفَعَاءَ، وُكِلَ إِلَى نَفْسِهِ، وَمَنْ أُكْرِهَ عَلَيْهِ أَنْزَلَ اللَّهُ

---

[1] _ ابي داود_ الأقضية ۳ (۳۵۷۸). سنن ابن ماجه_ الأحكام ۱ (۲۳۰۹). (تحفة الأشراف: ۲۵۶). و احمد في مسند...

عَلَيْهِ مَلَكًا، يُسَدِّدُهُ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ، وَهُوَ أَصَحُّ مِنْ حَدِيثِ إِسْرَائِيلَ، عَنْ عَبْدِ الأَعْلَى. ([1])

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چا چې د قاضي توب خواهش وکړو اود سفارشيانو پيدا کولو کوشش يي وکړو او دخلقو قاضي مقرر کړي شونو دی به دده نفس ته وسپارلي شي او څوك چې د قضا په قبلولو مجبور کړی شو نو الله تعالي به يوه فرشته راوليږي چې دده نګراني به کوي.

امام ترمذي وائي داحديث په دي سند حسن غريب دي او دا حديث دهغه حديث نه زيات صحيح دي کوم چې اسرائيل دعبدالاعلي نه نقل کړي دي.

*****************

١٣٢٥ـ حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ الْجَهْضَمِيُّ، حَدَّثَنَا الْفُضَيْلُ بْنُ سُلَيْمَانَ، عَنْ عَمْرِو بْنِ أَبِي عَمْرٍو، عَنْ سَعِيدٍ الْمَقْبُرِيِّ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " مَنْ وَلِيَ الْقَضَاءَ، أَوْ جُعِلَ قَاضِيًا بَيْنَ النَّاسِ، فَقَدْ ذُبِحَ بِغَيْرِ سِكِّينٍ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ مِنْ هَذَا الْوَجْهِ، وَقَدْ رُوِيَ أَيْضًا مِنْ غَيْرِ هَذَا الْوَجْهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. ([2])

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چاته چې قاضي توب اوسپارلي شو او دخلقو قاضي مقرر کړي شو نو دي دچړي نه بغير ذبح کړي شو.

امام ترمذي وائي داحديث په دي سند حسبن غريب دي او دا ددي سند نه علاوه په بل سند هم دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي او هغه دنبي کريم صلي الله عليه وسلم نه نقل کړي دي.

*****************

## ٢ـ باب مَا جَاءَ فِي الْقَاضِي يُصِيبُ وَيُخْطِئُ

**قاضي کله کله صحيح فيصله اوکړي او کله کله غلطي هم کولي شي**

[1] ـ تفرد بذكره المؤلف وانظر ما قبله (تحفة الأشراف : ٨٢٥)

[2] ـ ابي داود ـ الأقضية ا (٣٥٧١) . سنن ابن ماجه ـ الأحكام ا (٢٣٠٨) . (تحفة الأشراف : ١٣٠٠٢) . و احمد في المسند ٢ـ (٣٦٥)

١٣٢٦_ حَدَّثَنَا الحُسَيْنُ بْنُ مَهْدِيٍّ البَصْرِيُّ. حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ. أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ. عَنْ سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ. عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ. عَنْ أَبِي بَكْرِ بن مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرِو بْنِ حَزْمٍ. عَنْ أَبِي سَلَمَةَ. عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ. قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا حَكَمَ الحَاكِمُ فَاجْتَهَدَ فَأَصَابَ فَلَهُ أَجْرَانِ. وَإِذَا حَكَمَ فَأَخْطَأَ فَلَهُ أَجْرٌ وَاحِدٌ". قَالَ: وَفِي البَابِ. عَنْ عَمْرِو بْنِ العَاصِ. وَعُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ مِنْ هَذَا الوَجْهِ. لَا نَعْرِفُهُ مِنْ حَدِيثِ سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ. عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ الأَنْصَارِيِّ. إِلَّا مِنْ حَدِيثِ عَبْدِ الرَّزَّاقِ. عَنْ مَعْمَرٍ. عَنْ سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ.(1)

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي كله چي حاكم او قاضي سوچ او غور سره فيصله اوكړي او صحيح خبري ته اورسيږي نو ده دپاره ډبل اجر دي او كله چي فيصله اوكړي او غلط شي نو دده دپاره يو اجر دي.

امام ترمذي وائي په دي باب كي عمرو بن العاص او دعقبه بن عامر رضي الله عنهما نه هم احاديث مروي دي او دابو هريره حديث په دي سند حسن غريب دي مونږ ته دا په سند دسفيان الثوري عن يحى بن سعيد الانصاري الامن حديث عبدالرزاق عن معمرو عن سفيان الثوري سره رارسيدلي دي.

**تشريح** : كوم علماء چي قياس لره شرعي دليل ګنړي هغوئ ددي حديث نه استدلال كړي دي، په اصل او فرع كي چي په كوم داسي صفت كي اشتراك وي كوم چي دسبب دحكم جوړيدو صلاحيت لري ددي مشتركه صفت په وجه حكم داصل نه فرع ته تجاوز كوي

***************

## ٣_ باب مَا جَاءَ فِي القَاضِي كَيْفَ يَقْضِي

### قاضي به څنګه فيصله كوي

١٣٢٧_ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ. حَدَّثَنَا وَكِيعٌ. عَنْ شُعْبَةَ. عَنْ أَبِي عَوْنٍ الثَّقَفِيِّ. عَنِ الحَارِثِ بْنِ عَمْرٍو. عَنْ رِجَالٍ مِنْ أَصْحَابِ مُعَاذٍ. أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعَثَ مُعَاذًا إِلَى اليَمَنِ. فَقَالَ: "

---

1 _ البخاري_ الاعتصام ٢١ (٧٣٥٢). صحيح مسلم_ الأقضية ٦ (١٧١٦). سنن ابي داود_ الأقضية ٢ (٣٥٧٤). سنن النسائي_ القضاة ٣ (٥٣٨٣). سنن ابن ماجه_ الأحكام ٣ (٢٣١٤). (تحفة الأشراف: ١٥٤٢٧). و احمد في المسند (٤/ ١٩٨)

كَيْفَ تَقْضِي ؟ " فَقَالَ: أَقْضِي بِمَا فِي كِتَابِ اللهِ. قَالَ: " فَإِنْ لَمْ يَكُنْ فِي كِتَابِ اللهِ ؟ " قَالَ: فَبِسُنَّةِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. قَالَ: " فَإِنْ لَمْ يَكُنْ فِي سُنَّةِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ؟ " قَالَ: أَجْتَهِدُ رَأْيِي. قَالَ: " الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي وَفَّقَ رَسُولَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ".[1]

**ترجمه** دمعاذ بن جبل رضي الله عنه په شاګردانو کي دبعضو نه روايت دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم معاذ لره دقاضي توب دپاره يمن ته وليږلو او تپوس يي ورنه اوکړو چي ته به فيصلي څنګه کوي معاذ اووئيل دالله په کتاب به فيصلي کوم ، رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل که چري ديوي مسئلي حکم دالله په کتاب کي موجود نه وي (نو بيا به په څه فيصلي کوي) معاذ اووئيل دالله درسول په سنت به فيصله کوم رسول الله اوفرمائيل که درسول په سنت کي هم ديوي مسئلي حکم موجود نه وي معاذ رضي الله عنه اووئيل بيا به په پخپله رائي اجتهاد کوم رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل دالله شکر دي چاچي دالله درسول قاصد ته دحق پيژندلو او پيروئ توفيق ورکړو.

## دمعاذ رضي الله عنه حالات

نوم معاذ کنيه ابو عبدالرحمان لقب امام الفقهاء نذيل العلماء چه دقبيله خزرج سره يي تعلق وو او داتلسو کالو په عمر کنبي دمصعب بن عمير په لاس مسلمان شوے وو درسول الله صلي الله عليه وسلم ورسره ډير محبت وو او په تمامو غزواتو کنبي درسول الله سره شريک شوے وو چه کله يي يمن ته ليږلو نو يمن والاته يي اوليکل "اني بعثت اليکم خيراهلي" يعني ماپخپلو کسانو کنبي تاسو ته بهترين کس ورولیږلو کله چه عمرفاروق رضي الله عنه مجلس شوره جوړه کړه نو دهغي يو رکن معاذ رضي الله عنه هم اميرالمؤمنين دمعاذ په باره کنبي اوفرمائيل "اعلمهم بالحلال والحرام معاذ بن جبل" يعني په صحابه کرامو کنبي دحلال او حرام په علم زيات خبردار معاذ بن جبل دے او په يو بله موقعه کنبي يي هم فرمانيلي وو لولا معاذ لهلك عمر .

وفات دطاعون عمواس په کال وفات شوے وو چه عمريي ۳۲کلونه وو دهجرت په اتلسم کال په هغه خاي کنبي دفن کړے شو دکوم خاي نه چه عيسي عليه السلام اسمان ته پورته کړے شوے وو

***************

---

[1] ـ ابي داود الأقضية ١١(٣٥٩٢). (تحفة الأشراف: ١١٣٧٣)، والدارمي ـ المقدمة ٢٠(١٧٠)

١٣٢٨_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ. حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ. وَعَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ. قَالَا: حَدَّثَنَا شُعْبَةُ. عَنْ أَبِي عَوْنٍ. عَنِ الحَارِثِ بْنِ عَمْرٍو ابن أَخِ الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ. عَنْ أُنَاسٍ مِنْ أَهْلِ حِمْصٍ. عَنْ مُعَاذٍ. عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَهُ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ هَذَا الْوَجْهِ. وَلَيْسَ إِسْنَادُهُ عِنْدِي بِمُتَّصِلٍ. وَأَبُو عَوْنٍ الثَّقَفِيُّ اسْمُهُ مُحَمَّدُ بْنُ عُبَيْدِ اللهِ. ([1])

**ترجمه** : په دي سند هم دمعاذ رضي الله عنه نه دپورتني حديث هم معني روايت مروي دي.
امام ترمذ ي وائي داحديث مونږ ته صرف په همدي سند معلوم دي مګر زما په نزد دا سند متصل نه دي. او دابوعون ثقفي نوم محمد بن عبيدالله دي

***************

## ٤_ بَاب مَا جَاءَ فِي الإِمَامِ الْعَادِلِ

### دعادل حاكم بيان

١٣٢٩_ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ الْمُنْذِرِ الْكُوفِيُّ. حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ فُضَيْلٍ. عَنْ فُضَيْلِ بْنِ مَرْزُوقٍ. عَنْ عَطِيَّةَ. عَنْ أَبِي سَعِيدٍ. قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ أَحَبَّ النَّاسِ إِلَى اللهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ. وَأَدْنَاهُمْ مِنْهُ مَجْلِسًا إِمَامٌ عَادِلٌ. وَأَبْغَضَ النَّاسِ إِلَى اللهِ. وَأَبْعَدَهُمْ مِنْهُ مَجْلِسًا إِمَامٌ جَائِرٌ". قَالَ: وَفِي الْبَاب. عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ أَبِي أَوْفَى. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي سَعِيدٍ. حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ هَذَا الْوَجْهِ. ([2])

**ترجمه** : دابوسعيد خدري رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي دقيامت په ورځ به الله تعالي ته دټولو نه زيات محبوب او په مجلس کي دټولو نه زيات قريب تر انصاف دار حاكم وي او دالله تعالي په نزد به په قيامت کي دټولو نه ډير ناخوښه او په مجلس کي دټولو نه زيات لري كيناستونكي ظالم بادشاه وي.
امام ترمذي وائي دابوسعيد خدري حديث حسن غريب دي او دا مونږ ته صرف په همدي سند رارسيدلي دي. او په دي باب کي دعبدالله بن ابي اوفي رضي الله عنه نه هم احاديث مروي دي.

**تشريح:** **ددري كسانو سره به الله دقيامت په ورځ خبري نه كوي**

---

[1] _ ابي داود_ الأقضية ١١(٣٥٩٢) . (تحفة الأشراف : ١١٣٧٣) . و الدارمي_ المقدمة ٢٠(١٧٠)

[2] _ تفرد بذكره المؤلف (تحفة الأشراف : ٤٢٢٨)

عن ابي هريرة ، قال : قال رسول الله ﷺ : (( ثَلاَثَةٌ لاَ يُكَلِّمُهُمُ اللهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ ، وَلاَ يُزَكِّيهِمْ ، وَلاَ يَنْظُرُ إِلَيْهِمْ ، وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ : شَيْخٌ زَانٍ ، وَمَلِكٌ كَذَّابٌ ، وَعَائِلٌ مُسْتَكْبِرٌ )) رواه مسلم .

دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دى چه رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي دري كسان داسي دي چه نه به ورسره الله تعالي دقيامت په ورځ خبري اوكړي او نه به ورته ګناهونه معاف كړي او نه به ورته درحمت په نظر اوګوري بلكه دردناك عذاب به ورته ورکوي . يو بوډا زناكار دى او بل دروغژن بادشاه دى او بل كبرژن غريب دى دعائل معني ده محتاج او فقير اوغريب.

مطلب دادے چه الله تعالي داسي قسم خلق دګناهونو نه نه پاکوي .

"شيخ زان" زنا خو يو ډير بد فعل دے برابره خبره ده چه سړے بوډا وي او كه خوان وي ليكن دبوډا سړي دپاره ډيره بده ده ځكه چه په ده باندي خواهش اومردانګي قوت غالب نه وي او كه څوك داسي اوكړي نو دا به دده په بي انتهاء بي حيايي او خباثت دلالت اوكړي

"وملك كذاب" دروغ وئيل خو دهر چادپاره بد دي ليكن خاص كر دبادشاه دپاره ځكه چه دهغه د دروغو اثر صرف په يو كس باندي نه كيږي بلكه په پوره ملك باندي كيږي، يا دا مطلب دے كه څوك دروغ وائي نو ددي دپاره يي وائي چه څه فائده يي اوشي يادنقصان نه بچ شي مګر بادشاه ته د دروغ وئيلو څه ضرورت دے هغه خو ددينه بغير هم فائده حاصلولے شي او دنقصان نه خان بچ كولے شي.

"وعائل مستكبر" تكبر دهرچادپاره بد دے مګر خاص كر دفقيرانو دپاره ډير بد دے ددي وجه داده كه مالدار تكبر اوكړي نو څه ناڅه خو ورسره وي نو فقير په څه تكبر كوي

***************

١٣٣٠ـ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْقُدُّوسِ بْنُ مُحَمَّدٍ أَبُو بَكْرٍ الْعَطَّارُ. حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَاصِمٍ. حَدَّثَنَا عِمْرَانُ الْقَطَّانُ. عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ الشَّيْبَانِيِّ. عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي أَوْفَى. قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ اللَّهَ مَعَ الْقَاضِي مَا لَمْ يَجُرْ. فَإِذَا جَارَ تَخَلَّى عَنْهُ. وَلَزِمَهُ الشَّيْطَانُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ لَا نَعْرِفُهُ. إِلَّا مِنْ حَدِيثِ عِمْرَانَ الْقَطَّانِ. ([1])

**ترجمه** دعبدالله بن ابي اوفي رضي الله عنه نه روايت دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي ديو بادشاه سره دالله تعالي مدد هغه وخت پوري شامل وي څو پوري چي هغه

[1] ـ ابن ماجه ـ الأحكام ٢ (٢٣١٢). (تحفة الأشراف: ٥١٦٨)

ظلم نه وي کړي او کله چي دي ظلم شروع کړي نو الله تعالي يې پريږدي او دده نه جدا شي او شيطان ورپوري اونخلي
امام ترمذي وائي دا حديث حسن غريب دي او دا مونږ ته صرف دعمران القطان په سند رارسيدلي دي

***************

## ٥_ بابُ مَا جَاءَ فِي الْقَاضِي لا يَقْضِي بَيْنَ الْخَصْمَيْنِ حَتَّى يَسْمَعَ كَلامَهُمَا

**يو قاضي چي څو پوري دجانبينو خبره اوريدلي نه وي ترهغي دي فيصله نه کوي**

١٣٣١_ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا حُسَيْنٌ الْجُعْفِيُّ، عَنْ زَائِدَةَ، عَنْ سِمَاكِ بْنِ حَرْبٍ، عَنْ حَنَشٍ، عَنْ عَلِيٍّ، قَالَ: قَالَ لِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا تَقَاضَى إِلَيْكَ رَجُلَانِ، فَلَا تَقْضِ لِلْأَوَّلِ، حَتَّى تَسْمَعَ كَلَامَ الْآخَرِ، فَسَوْفَ تَدْرِي، كَيْفَ تَقْضِي". قَالَ عَلِيٌّ: فَمَا زِلْتُ قَاضِيًا بَعْدُ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ. (1)

**ترجمه** علي رضي الله عنه نه مروي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم ماته اوفرمائيل کله چي تاته دوه کسان دفيصلي کولو دپاره راشي راو خپله مقدمه درته پيش کړي، نو ته دړومبي په حق کي دهغه وخته پوري فيصله مه کوه ترڅو چي تا ددويم خبره هم نه وي اوريدلي په دي صورت کي ديره نژدي ده چي ته په معامله پوهه شي او فيصله اوکړي دعلي رضي الله عنه قول دي بيا به ددينه پس ما برابر فيصلي کولي
امام ترمذي وائي داحديث حسن دي

***************

**د قاضي د مجلس نه د مدعي عليه (د منکر) د غائب او غير حاضر کيدو بيان**

که مدعی عليه غائب وی که د ښار نه غائب وی اوکه په ښار کي پټ وی.خود قاضی د مجلس نه غائب وی نو قاضي لره څه کول پکار دي ايا قاضي دده خلاف فيصله کولی شي اوکه نه؟
د فقهاؤ په دي خبره اتفاق دی چي قاضی د بينه په وجه نه دده خلاف حکم ورکولي شی اونه دده په حق کي حکم ورکولي شی.او که قاضی د غائب خلاف يا موافق څه فيصله ورکړله.نودا به نشی نافذکولي

---

1 _ ابي داود_الأقضية ٦ (٣٥٨٢)، (تحفة الأشراف: ١٠٠٨١)

او که د مدعی علیه غائب څوك قائم مقام موجود وی،مثلاً دده وکیل وی.یا وصی وی نو په دې صورت کې زمونږ په نزد قضاء علی الغائب جائز ده.
د قضاء علی الغائب په عدم جواز باندې زمونږ د طرفه د ابوداؤد هغه حدیث مستدل دې،په کوم کې چې علیﷺ ته د یمن قاضی مقررولو په وخت فرمانیلی شوی دی:
((لا تقض لأحد الخصمين بشئ حتى تسمع كلام الآخر فإنك إذا سمعت كلام الآخر علمت كيف تقضى))
(رواه الترمذی و أبوداؤد)
یعنی مدعی او مدعی علیه د یوکس په حق کې فیصله مه ورکوه.تردې چې ددویم خبره واورې نو کله چې ته د دویم خبره واورې نو تاته به معلومه شی چې څنګه فیصله پکار ده،ددې روایت نه معلومه شوه چې د فیصلې ورکولو دپاره د مدعی اومدعی علیه دواړو خبره اوریدل ضروری دی اودا هغه وخت کیدې شی،کله چې دواړه پخپله موجود وی،یا قائم مقام موجود وی اوکه نه مدعی علیه حاضر وی اونه دده قائم مقام حاضر وی،نودغه وخت به د قاضی فیصله ورکول درست نه وی.
او امام شافعی رحمه الله فرمائی که مدعی علیه د ښار نه غائب وی اوکه په ښار کې پټ وی،خود قاضی د مجلس نه غائب وی نو په ده باندې فیصله ورکول جائز دی.د امام مالك او امام احمد رحمهما الله هم دا قول دې.
اوکه مدعی علیه د قاضی د مجلس نه غائب وی،خو په ښار کې پټ نه وی بلکه عام خلق دده د اوسیدلو ( د ځائې) نه خبر وی نو په دې باره کې د امام شافعی رحمه الله دوه روایتونه دی:
(۱) یو داچې د مدعی علیه د حاضرئ نه بغیر به فیصله نه ورکوی،امام مالك او امام احمد هم ددې قائل دی.
(۲) دویم روایت دادې چې په دې صورت کې هم قضاء علی الغائب جائز ده،د مدعی علیه د پټیدلو په صورت کې د قضاء علی الغائب جائز کیدلو په منځ کې اود نه پټیدلو په صورت کې د ړومبی روایت مطابق د قضاء علی الغائب ناجائز کیدلو په منځ کې فرق دادې چې د مدعی علیه د پټیدلو په صورت کې که قضاء علی الغائب جائز نکړې شوه،نود مدعی حق به ضائع شی ځکه چې نه به مدعی علیه حاضریږی اونه به قاضی فیصله ورکولې شی،په دې وجه د مدعی حق ضائع کیدلو نه د بچ کولو دپاره د مدعی علیه غائب کیدلو او پټیدلو باوجود د قاضی فیصله جائز اوګرځولې شوه اوپه کوم صورت کې چې مدعی علیه د قاضی د مجلس نه غائب وی،خوپه ښار کې پټ نه وی بلکه دده د اوسیدو ځائې معلوم وی،نوچونکه په دې صورت کې عدالت ته د مدعی حاضرول اوفیصله ورکول ممکن دی،په دې وجه په دې صورت کې به د مدعی ٠ حقوقو ضائع کیدلو امکان نه وی اوهرکله چې د

مدعى د حقوقو ضائع كيدلو امكان نشته نو قضاء على الغائب به هم جائز نه وى.(د جانبينو دلائل او موازنه او وجوهات دترجيح مذهب داحنافو ته په احسن الهدايه او عنايه وغيره كي مذكور دي).

## ٦_ باب مَا جَاءَ فِي إِمَامِ الرَّعِيَّةِ

### درعيت دحاكم بيان

١٣٣٢_ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ. حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ. حَدَّثَنِي عَلِيُّ بْنُ الْحَكَمِ. حَدَّثَنِي أَبُو الْحَسَنِ. قَالَ: قَالَ عَمْرُو بْنُ مُرَّةَ لِمُعَاوِيَةَ. إِنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. يَقُولُ: " مَا مِنْ إِمَامٍ يُغْلِقُ بَابَهُ دُونَ ذَوِي الْحَاجَةِ. وَالْخَلَّةِ. وَالْمَسْكَنَةِ. إِلَّا أَغْلَقَ اللَّهُ أَبْوَابَ السَّمَاءِ دُونَ خَلَّتِهِ. وَحَاجَتِهِ. وَمَسْكَنَتِهِ. فَجَعَلَ مُعَاوِيَةُ رَجُلًا عَلَى حَوَائِجِ النَّاسِ ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ. عَنِ ابْنِ عُمَرَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عَمْرِو بْنِ مُرَّةَ حَدِيثٌ غَرِيبٌ. وَقَدْ رُوِيَ هَذَا الْحَدِيثُ مِنْ غَيْرِ هَذَا الْوَجْهِ. وَعَمْرُو بْنُ مُرَّةَ الْجُهَنِيُّ يُكْنَى: أَبَا مَرْيَمَ. ([1])

**ترجمه** : دعمرو بن مره رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چي ما معاويه رضي الله عنه ته اووئيل ما درسول الله صلي الله عليه وسلم نه اوريدلي دي هر يو حاكم چي حاجتمندو، محتاجو، او مسكينانو ته خپله دروازه بندوي الله تعالي به هم دده دضرورت او حاجت او محتاجي وخت كي دده نه خپله دروازه بنده اوساتي معاويه رضي الله عنه چي كله دا واوريدل نو دخلقو دضرورتونو دپاره يي يو كس مقرر كړو.

امام ترمذي وائي دعمرو بن مره حديث غريب دي او دا حديث په يو بل سند هم مروي دي، او په دي باب كي دابن عمر رضي الله عنهما نه هم حديث مروي دي او دعمرو بن مره جهني اسم كنيه ابو مريم ده.

***************

١٣٣٣_ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ. حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ حَمْزَةَ. عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي مَرْيَمَ. عَنِ الْقَاسِمِ بْنِ مُخَيْمِرَةَ. عَنْ أَبِي مَرْيَمَ صَاحِبِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

[1] _ تفرد بذكره المؤلف وانظر مسند احمد (٤_٢٣١) (تحفة الأشراف: ١٠٧٨٩)

نَحْوَ هَذَا الْحَدِيثِ بِمَعْنَاهُ، وَيَزِيدُ بْنُ أَبِي مَرْيَمَ شَامِيٌّ، وَبُرَيْدُ بْنُ أَبِي مَرْيَمَ كُوفِيٌّ، وَأَبُو مَرْيَمَ هُوَ عَمْرُو بْنُ مُرَّةَ الْجُهَنِيُّ. (1)

**ترجمه** دابومريم رضي الله عنه نه روايت دي او بيا يي دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه ددي هم معني روايت نقل كړو، يزيد بن ابي مريم دشام اوسيدونكي دي او بريد بن ابي مريم دكوفي اوسيدونكي دي او دابومريم نوم عمرو بن مره جهني دي.

*****************

## ٧_باب مَا جَاءَ لا يَقْضِي الْقَاضِي وَهُوَ غَضْبَانُ

## يوقاضي به په غصه كي فيصله نه كوي

١٣٣٤_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، عَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ عُمَيْرٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي بَكْرَةَ، قَالَ: كَتَبَ أَبِي إِلَى عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي بَكْرَةَ، وَهُوَ قَاضٍ، أَنْ لاَ تَحْكُمْ بَيْنَ اثْنَيْنِ، وَأَنْتَ غَضْبَانُ، فَإِنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "لاَ يَحْكُمُ الْحَاكِمُ بَيْنَ اثْنَيْنِ وَهُوَ غَضْبَانُ".
قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَأَبُو بَكْرَةَ اسْمُهُ نُفَيْعٌ. (2)

**ترجمه** دعبدالرحمن بن ابي بكره رضي الله عنه بيان دي فرمائي چي زما پلار عبيدالله بن ابي بكره چي قاضي وو ته خط اوليكلو چي ته دغصي په حالت كي دفريقينو مينځ كي فيصلي مه كوه خكه چي ما درسول الله صلي الله عليه وسلم نه اوريدلي دي يو حاكم دي دغصي په حالت كي دفريقينو مينځ كي فيصله نه كوي

امام ترمذي وائي داحديث حسن صحيح دي او دابوبكره نوم نفيع دي.

**تشريح** د قاضى دپاره دا هم مناسب دى چي دې د غصې په حالت كښې،يا د خوشحالئ په حالت كښې،يا د اولږې په حالت كښې،يا د تندې په حالت كي يا د خفګان په حالت كښې،يا د وروكى او غټ اودس ماتى د تقاضې په حالت كي فيصله ورنكړى،حاصل داچي قاضى به په داسې حالت كي فيصله نه وركوى چي كله دده زړه بل طرف ته مشغول وى اوددې دليل (( لايقضى القاضى وهو غضبان )) حديث دې،دا حديث چونكه معلول دې،په دې وجه به د غضبان نه خاص طور باندې د غصې حالت مراد نه وى بلكه هرهغه حالت به مراد

[1] _ تفرد بذكره المؤلف وانظر مسند احـ ،(٥_٣٣١)(تحفة الأشراف: ١٠٤٨٩)

[2] _ البخارى_ الأحكام ١٣ (٧١٥٨). صحيح مسلم_ الأقضية ٧ (١٧١٧). سنن النسائى_ آداب القضاة ١٨ (٥٤٠٨). سنن ابن ماجه_ الأحكام ٤ (٢٣١٦). (تحفة الأشراف: ١١٦٧٦). واحمد في المسند (٥_٣٦، ٣٧، ٤٦، ٥٢)

وی چي د قاضی زړه مشغوله کړی اوذهنی سکون ختم کړی، صاحب د هدایه وائی چي کوم خلق د قاضی کیدلونه وړاندې دده سره کیناستل،هغوی دې اوس هم دده سره کینی ځکه چي په خانله ناسته کي د رشوت اخستلو یا په ظلم کولو سره د متهم کیدلو خطره ده لکه نقل دی چي کله به خلور صحابه کرام موجود نه وو، عثمان به هیڅ حکم نه ورکولو اومستحب دادی چي د قاضی په مجلس کي د فقهاؤ یو جماعت کینی اوقاضی ددوی سره مشوره کوی لکه د صدیق اکبر په مجلس کي به چي عمر، عثمان اوعلی حاضر اوسیدل.

***************

## ٨_ باب مَا جَاءَ فِي هَدَايَا الأُمَرَاءِ

### بادشاهانواو قاضيانوته دتحفي ورکولوبيان

١٣٣٥_ حَدَّثَنَا أَبُو كُرَيْبٍ، حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ، عَنْ دَاوُدَ بْنِ يَزِيدَ الأَوْدِيِّ، عَنِ الْمُغِيرَةِ بْنِ شُبَيْلٍ، عَنْ قَيْسِ بْنِ أَبِي حَازِمٍ، عَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ، قَالَ: بَعَثَنِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى الْيَمَنِ، فَلَمَّا سِرْتُ أَرْسَلَ فِي أَثَرِي فَرُدِدْتُ، فَقَالَ: " أَتَدْرِي لِمَ بَعَثْتُ إِلَيْكَ؟ لاَ تُصِيبَنَّ شَيْئًا بِغَيْرِ إِذْنِي فَإِنَّهُ غُلُولٌ وَمَنْ يَغْلُلْ يَأْتِ بِمَا غَلَّ يَوْمَ الْقِيَامَةِ، لِهَذَا دَعَوْتُكَ فَامْضِ لِعَمَلِكَ ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ عَدِيِّ بْنِ عَمِيرَةَ، وَبُرَيْدَةَ، وَالْمُسْتَوْرِدِ بْنِ شَدَّادٍ، وَأَبِي حُمَيْدٍ، وَابْنِ عُمَرَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ مُعَاذٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ، لاَ نَعْرِفُهُ إِلاَّ مِنْ هَذَا الْوَجْهِ، مِنْ حَدِيثِ أَبِي أُسَامَةَ، عَنْ دَاوُدَ الأَوْدِيِّ.

([1])

**ترجمه**: دمعاذ بن جبل رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم زه دقاضي توب دپاره يمن ته اوليږلم کله چي زه روان شوم نو زه يي راوګرځولم نو يو کس ماپسي راغي چي زه واپس راشم هر کله چي زه واپس راغلم نو ويي فرمائيل ايا تاته معلومه ده چي ما په تا پسي دراوستلو دپاره يو کس ولي درولیږلو؟ خبره داده چي ته به زما داجازت نه بغير دچا نه کوم څيز نه اخلي ځکه چي دا خيانت دي او څوک چي خيانت کوي دقيامت په ورځ به دخيانت دمال سره حاضريږي او همدي وئيلو دپاره مي ته راغوښتلي يي او اوس ته پخپل کار پسي تلي شي. امام ترمذي واني د معاذ رضي الله عنه دا حديث حسن غريب دي دا مونږ ته صرف په همدي سند په روايت دابو اسامه رارسيدلي دي کوم چي هغه د داود اودي نه نقل کړي دي، او په دي

[1] _ تفرد بذكره المؤلف (تحفة الأشراف: ١١٣٥٥)

باب کي دعدي بن عميره ، بريده، مستورد بن شداد، ابوحميد، او ابن عمر رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي.

**دقاضي دپاره دتحفو قبلولو بيان**

:په هديه او رشوت کي فرق دې.رشوت په دې شرط سره ورکولې شي چي اخستونکې دده مدد اوکړی اوپه هديه کي دا شرط نه دې.

فقهاء وايي چي قاضی به د دوه کسانو نه علاوه د هيڅ چا هديه نه قبلوی. ذی رحم محرم يعنی قرابت دار ( رشته دار) ،او د چا سره چي د قاضی کيدلو نه وړاندې د هديه اخستلو او ورکولو عادت جاري وو.

اوډ قاضی دپاره د هديه قبلولو په عدم جواز باندې حجت دا حديث دې.په بخاری شريف کي د ابوحميدالساعدی نه نقل دی.

((أن رسول اللهﷺ إستعمل رجلاً من الازد على الصدقة فلما قدم قال هذا لكم وهذا أهدى لى فقال رسول اللهﷺ فهلا جلس فى بيت أبيه أو بيت أمه فينظر أيهدى له أم لا))

يعنی رسول اللهﷺ د ازد قبيلې يو سړې په صدقه باندې مقررکړو،بيا کله چي دې راغئ نو وې وئيل چي دا ستاسو مال دې اودا ماته هديه راکړې شوې ده نو رسول اکرمﷺ اوفرمائيل.دې ولې د خپل مور يا خپل پلار په کورکي نه کيناستلو چي کتلی شوی وو چي ده ته هديه ورکولې شی اوکه نشی ورکولې؟ عمرؓ ابوهريرهؓ عامل مقرر کړو.بيا ابوهريرهؓ ځان سره مال راوړو نو عمرؓ تپوس اوکړو چي دا تا د کوم ځاې نه راوړو؟ ابوهريرهؓ اووئيل چي ماته مسلسل هديه ملاؤ شوی دی. عمرؓ اوفرمائيل چي د الله تعالی دښمنه ! ته ولې خپل کور کي نه کيناستلې چي کتلی شوی وو چي تاته هديه درکولې شی اوکه نشی درکولې،بيا ئې د ابوهريرهؓ نه دا مال واخستلو اوپه بيت المال کي ئې جمع کړو.

اود ذی رحم محرم هديه قبلول ځکه جائز دی چي دا هديه د صله رحمئ په وجه ده.د قاضی کيدلو په وجه نه ده اوهم دغه شان د قاضی کيدلو نه وړاندې چي دچا سره د هدې د لين دين عادت جاري وو،د قاضی کيدلو نه پس د هغه هديه قبلول به د قاضی کيدلو په وجه نه وی بلکه د مخکنی عادت په وجه به وی اوکومه هديه چي د قاضی کيدلو په وجه نه وی،د هغې په قبلولوکي هيڅ باك نشته،په دې وجه د ذی رحم محرم هديه اود چا سره ئې چي د مخکي نه عادت جاري وو، ددوی هديه قبلول جائز دی اوددې دواړو نه د علاوه هديه چونکه د قاضی کيدلو په وجه دی،پۀ دې وجه به ددې دواړو نه د علاوه هديه قبلول جائز نه وی،تردې که د يو رشته دار مقدمه جاري وی،( زير سماعت وی) نو قاضی به دده هديه هم

نه قبلوی،یا دچا سره ئې چي د مخکي نه عادت جاری وو که دده مقدمه زیرسماعت وی نو دده هدیه به هم نه قبلوی،یا ده د عام عادت نه زیات راوليگلو نو زياتی مقدار به نه قبلوی،اګرچي دده مقدمه زیرسماعت نه وی ځکه چي دا( زیادت) د قاضی کیدلو په وجه دي نو ددې نه به پرهيز کوی.

او که په ممنوعه صورت کي قاضي د چا هدیه قبوله کړه نو بعضي اهل علم وایي چي دا به په بیت المال کي داخلوی اود عامو عالمانو مذهب دادې چي د کومو خلقو نه ئې اخستې وو که دوی پیژنی،نوهغوی ته دې واپس کړی اوکه دوی نه پیژنی،یا دوی پیژنی.خو د لرې والی په وجه واپس کول متعذر وی،نودا دې په بیت المال کي جمع کړی اوددې حکم به د لقطه د حکم پشان وی.

علماء وائی چي قاضی به خصوصی دعوت نه قبلوی،البته عام دعوت قبلولې شی ځکه چي خصوصی دعوت به د قاضی کیدلو په وجه وی اوددې په قبلولو سره به متهم کیږی،په خلاف د عام دعوت، ځکه چي د عمومی دعوت په قبلولوکي به قاضی نه متهم کیږی.

دهدایه شارحینو دلته ډیر تفصیلات او دلائل هم ذکر کړي دي.

***************

## ٩_ بابُ مَا جَاءَ فِي الرَّاشِي وَالْمُرْتَشِي فِي الْحُكْمِ

### دفيصلي دپاره په رشوت ورکولو او اخستلو با ندي وعيد وارد دي

١٣٣٦_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، عَنْ عُمَرَ بْنِ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: " لَعَنَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الرَّاشِيَ، وَالْمُرْتَشِيَ فِي الْحُكْمِ ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، وَعَائِشَةَ، وَابْنِ حَدِيدَةَ، وَأُمِّ سَلَمَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رُوِيَ هَذَا الْحَدِيثُ عَنْ أَبِي سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَرُوِيَ عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَا يَصِحُّ، قَالَ: وسَمِعْت عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، يَقُولُ: حَدِيثُ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَحْسَنُ شَيْءٍ فِي هَذَا الْبَابِ وَأَصَحُّ. [1]

**ترجمه** : دابوهریره رضي الله عنه بیان دي رسول الله صلي الله علیه وسلم په فیصلو کي په رشوت ورکونکي او اخستونکي دواړو باندي لعنت وئیلي دي.

---

[1] تفرد بذكره المؤلف (تحفة الأشراف: ١٣٩٨٤). وانظر مسند احمد ٥ (٢ ٢٨٤، ٢٨٨)

امام ترمذي وائي دابوهريره حديث حسن صحيح دي، او دا حديث دابوسلمه بن عبدالرحمن نه هم مروي دي او هغه دعبدالله بن عمرو نه او هغه دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه نقل كړي دي او دابو سلمه نه دده دپلار په واسطه هم مروي دي او هغه درسول الله صلي الله عليه وسلم نه نقل كړي دي ليكن دابوسلمه روايت صحيح نه دي ما دعبدالله بن عبدالرحمن دارمي نه اوريدلي دي چي دابوسلمه بن عبدالرحمن حديث كوم چي هغه دعبدالله بن عمرو نه او هغه درسول الله نه نقل كړي دي په دي باب كي دټولو رواياتو نه زيات بهتر او زيات صحيح دي (كوم چي وړاندي راتلونكي دي) او په دي باب كي دعبدالله بن عمرو، عائشه. ابن حديده او ام سلمه رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي.

***************

١٣٣٧_ حَدَّثَنَا أَبُو مُوسَى مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا أَبُو عَامِرٍ الْعَقَدِيُّ، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي ذِئْبٍ، عَنْ خَالِهِ الْحَارِثِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، قَالَ: "لَعَنَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الرَّاشِيَ وَالْمُرْتَشِيَ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.[1]

**ترجمه** : د عبد الله بن عمرو رضي الله عنه نه مروي دي چي رسول الله په رشوت خوړونكي او رشوت وركونكي باندي لعنت ونيلى دى.

امام ترمذي وايي دا حديث حسن صحيح دي.

***************

## ١٠_ بَاب مَا جَاءَ فِي قَبُولِ الْهَدِيَّةِ وَإِجَابَةِ الدَّعْوَةِ

### دهديه او تحفي او دعوت دقبلولو بيان

١٣٣٨_ حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرٍ مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ بَزِيعٍ، حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ الْمُفَضَّلِ، حَدَّثَنَا سَعِيدٌ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَوْ أُهْدِيَ إِلَيَّ كُرَاعٌ، لَقَبِلْتُ، وَلَوْ دُعِيتُ عَلَيْهِ، لَأَجَبْتُ". قَالَ: وَفِي الْبَاب، عَنْ عَلِيٍّ، وَعَائِشَةَ، وَالْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ،

---

[1] _ ابي داود_ الأقضية ٣ (٣٥٨٠) . سنن ابن ماجه_ الأحكام ٢ (٢٣١٣) . (تحفة الأشراف : ٨٩٦٣) . و احمد في المسند (١٦٣، ١٩٠، ١٩٣، ٢١٢)

وَسَلْمَانَ، وَمُعَاوِيَةَ بْنِ حَيْدَةَ، وَعَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَلْقَمَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَنَسٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.[1]

**ترجمه**: دانس بن مالك رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي كه ماله دچيلئ سوزيدلي خپه په هديه كي راكړي شي نو هم يې قبلوم او كه ماته ددي دعوت راكړي شي نو دا هم قبلوم.

امام ترمذي وائي دانس حديث حسن صحيح دي ، او په دي باب كي دعدي، عائشه، مغيره بن شعبه، سلمان، معاويه بن حيده او عبدالرحمن بن علقمه رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي.

## دقاضي هديه قبلول

په هديه او رشوت كي فرق دې،رشوت په دې شرط سره وركولې شي چي اخستونكې دده مدد اوكړى اوپه هديه كي دا شرط نه دې،صاحب د قدورى وايي چي قاضى به د دوه كسانو نه علاوه د هيڅ چا هديه نه قبلوى، ذى رحم محرم يعنى قرابت دار ( رشته دار) ،او د چا سره چي د قاضى كيدلو نه وړاندې د هديه اخستلو او وركولو عادت جارى وو،

اود قاضى دپاره د هديه قبلولو په عدم جواز باندې حجت دا حديث دې،په بخارى شريف كي د ابوحميدالساعدى نه نقل دى.

(( أن رسول الله ﷺ إستعمل رجلاً من الازد على الصدقة فلما قدم قال هذا لكم وهذا أهدى لى فقال رسول الله ﷺ فهلا جلس فى بيت أبيه أو بيت أمه فينظر أيهدى له أم لا ))

يعنى رسول الله ﷺ د ازد قبيلې يو سړې په صدقه باندې مقرركړو،بيا كله چي دې راغئ نو وې وئيل چي دا ستاسو مال دې اودا ماته هديه راكړې شوې ده نو رسول اكرم ﷺ اوفرمائيل،دې ولې د خپل مور يا خپل پلار په كوركي نه كيناستلو چي كتلى شوى وو چي ده ته هديه وركولې شى اوكه نشى وركولې؟ عمر ؓ ابوهريره ؓ عامل مقرر كړو،بيا ابوهريره ؓ خان سره مال راوړو نو عمر ؓ تپوس اوكړو چي دا تا د كوم ځائې نه راوړو؟ ابوهريره ؓ اووئيل چي ماته مسلسل هديه ملاؤ شوى دى، عمر ؓ اوفرمائيل چي د الله تعالى دښمنه ! ته ولې خپل كور كي نه كيناستلې چي كتلى شوى وو چي تاته هديه دركولې شى اوكه نشى دركولې،بيا ئې د ابوهريره ؓ نه دا مال واخستلو اوپه بيت المال كي ئې جمع كړو،

---

[1] ـ تفرد بذكره المؤلف (تحفة الأشراف: ١٢١٦).

اود ذی رحم محرم هدیه قبلول ځکه جائز دی چي دا هدیه د صله رحمی؛ په وجه ده.د قاضی کیدلو په وجه نه ده اوهم دغه شان د قاضی کیدلو نه وړاندې چي دچا سره د هدې د لین دین عادت جاری وو.د قاضی کیدلو نه پس د هغه هدیه قبلول به د قاضی کیدلو په وجه نه وی بلکه د مخکنی عادت په وجه به وی اوکومه هدیه چي د قاضی کیدلو په وجه نه وی.د هغې په قبلولوکي هیڅ باك نشته،په دې وجه د ذی رحم محرم هدیه اود چا سره نې چي د مخکي نه عادت جاری وو، ددوی هدیه قبلول جائز دی اوددې دواړو نه د علاوه هدیه چونکه د قاضی کیدلو په وجه دی،په دې وجه به ددې دواړو نه د علاوه هدیه قبلول جائز نه وی،تردې که د یو رشته دار مقدمه جاری وی.( زیر سماعت وی) نو قاضی به دده هدیه هم نه قبلوی.یا دچا سره نې چي د مخکي نه عادت جاری وو که دده مقدمه زیرسماعت وی نو دده هدیه به هم نه قبلوی،یا ده د عام عادت نه زیات راؤلیګلو نو زیاتی مقدار به نه قبلوی.اګرچي دده مقدمه زیرسماعت نه وی ځکه چي دا( زیادت) د قاضی کیدلو په وجه دې نو ددې نه به پرهیز کوی،

پاتې شوه دا خبره چي په کومو صورتونوکي قاضی دپاره هدیه قبلول جائز نه دی که په دې صورتونوکي قاضی هدیه قبول کړله نو په دې به څه کوی،بعض مشائخ فرمائی چي دا به په بیت المال کي داخلوی اود عامو عالمانو مذهب دادې چي د کومو خلقو نه ئې اخستې وو که دوی پیژنی.نوهغوی ته دې واپس کړی اوکه دوی نه پیژنی.یا دوی پیژنی.خو د لرې والی په وجه واپس کول متعذر وی،نودا دې په بیت المال کي جمع کړی اوددې حکم به د لقطه د حکم پشان وی،

فقهاء وائی چي قاضی به خصوصی دعوت نه قبلوی.البته عام دعوت قبلولې شی ځکه چي خصوصی دعوت به د قاضی کیدلو په وجه وی اوددې په قبلولو سره به متهم کیږی،په خلاف د عام دعوت، ځکه چي عام دعوت قبلولې شی ددې په قبلولوکي قاضی نه متهم کیږی.صاحب د هدایه وائی چي په دې حکم کي یعنی په خصوصی دعوت نه قبلولوکي د قاضی قریبی رشته دارهم شامل دی یعنی قاضی به خصوصی دعوت نه قبلوی.دعوت کونکې که اجنبی وی. او که ذی رحم محرم وی.هم دا د شیخینو قول دې، امام محمد فرمائی چي قاضی د ذی رحم محرم دعوت قبلولې شی.اګرچي خصوصی دعوت وی لکه څنګه چي دده هدیه قبلولې شی اوپه عام او خاص دعوت کي فرق دادې که داعی ته دا معلومه شی چي قاضی به رانشی، نودې دا ملتوی کړی،نودا خاص دعوت دې اوکه داسې نه وی،نودا عام دعوت دې اوبعض مشائخو فرمائیلی دی چي د لسو سړو نه کم خاص دعوت دې اوکه داسې نه وی، یعنی ددې نه زیات وی نو دا عام دعوت دې اوبعض فرمائی چي د نکاح او سنت ( ختنه) دعوت. عام دعوت دې اوددې نه علاوه خاص دعوتونه دی،

***************

## ١١ باب مَا جَاءَ فِي التَّشْدِيدِ عَلَى مَنْ يُقْضَى لَهُ بِشَيْءٍ لَيْسَ لَهُ أَنْ يَأْخُذَهُ

**دقاضي دفيصلي په وجه دپردي مال په اخستلو دوعيد بيان**

١٣٣٩ـ حَدَّثَنَا هَارُونُ بْنُ إِسْحَاقَ الْهَمْدَانِيُّ. حَدَّثَنَا عَبْدَةُ بْنُ سُلَيْمَانَ. عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ. عَنْ أَبِيهِ. عَنْ زَيْنَبَ بِنْتِ أُمِّ سَلَمَةَ. عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ. قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " إِنَّكُمْ تَخْتَصِمُونَ إِلَيَّ وَإِنَّمَا أَنَا بَشَرٌ. وَلَعَلَّ بَعْضَكُمْ أَنْ يَكُونَ أَلْحَنَ بِحُجَّتِهِ مِنْ بَعْضٍ. فَإِنْ قَضَيْتُ لِأَحَدٍ مِنْكُمْ بِشَيْءٍ مِنْ حَقِّ أَخِيهِ. فَإِنَّمَا أَقْطَعُ لَهُ قِطْعَةً مِنَ النَّارِ فَلَا يَأْخُذْ مِنْهُ شَيْئًا ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ. عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ. وَعَائِشَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أُمِّ سَلَمَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (١)

**ترجمه** : دام سلمه رضي الله عنها بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانبلي دي تاسو خو ماته خپلي معاملي او مقدمي راوړئ مګر زه هم يو انسان يم کيدي شي چي په تاسو کي څوك دخپلي دعوي په بيانولو کي ددويم کس نه زيات چالاك وي نو که زه چاته دهغه ديو مسلمان ورور حق اوسپارم او ورله يي تري واخلم نو دا داسي ده لکه چي ما دده دپاره دجهنم يوه تکړه واخستله لهذا هغه دي دده نه هيڅ هم نه اخلي.

امام ترمذي وائي دام سلمه حديث حسن صحيح دي او په دي باب کي دابوهريره او عائشه رضي الله عنهما نه هم روايات وارد دي.

***************

## ١٢ـ باب مَا جَاءَ فِي أَنَّ الْبَيِّنَةَ عَلَى الْمُدَّعِي وَالْيَمِينَ عَلَى الْمُدَّعَى عَلَيْهِ

**ګواهان پيش کول په مدعي دي او قسم په مدعي عليه (منکر) باندي دي**

١٣٤٠ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ. حَدَّثَنَا أَبُو الْأَحْوَصِ. عَنْ سِمَاكِ بْنِ حَرْبٍ. عَنْ عَلْقَمَةَ بْنِ وَائِلِ بْنِ حُجْرٍ. عَنْ أَبِيهِ. قَالَ: جَاءَ رَجُلٌ مِنْ حَضْرَمَوْتَ. وَرَجُلٌ مِنْ كِنْدَةَ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. فَقَالَ الْحَضْرَمِيُّ: يَا رَسُولَ اللهِ. إِنَّ هَذَا غَلَبَنِي عَلَى أَرْضٍ لِي. فَقَالَ الْكِنْدِيُّ: هِيَ أَرْضِي وَفِي يَدِي لَيْسَ لَهُ

---

[1] ـ البخاری ـ المظالم ١٦ (٢٤٥٨) . والشهادات ٢٧ (٢٦٨٠) . والحيل ١٠ (٦٩٦٧) . والأحكام ٢٠ (٧١٦٩) . و ٢٩ (٧١٨١) . و ٣١ (٧١٨٥) . صحيح مسلم ـ الأقضية ٣ (١٧١٣) . سنن ابي داود ـ الأقضية ٧ (٣٥٨٣) . سنن النسائي ـ القضاة ١٣ (٥٤٠٣) . سنن ابن ماجه ـ الأحكام ٥ (٢٣١٧) . (تحفة الأشراف : ١٨٢٦١) . والموطاء الأقضية ١ (١) . و احمد في المسند (٦ ـ ٣٠٧ . ٣٢٠)

فِيهَا حَقٌّ. فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِلْحَضْرَمِيِّ: "أَلَكَ بَيِّنَةٌ؟". قَالَ: لَا. قَالَ: "فَلَكَ يَمِينُهُ". قَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ. إِنَّ الرَّجُلَ فَاجِرٌ لَا يُبَالِي عَلَى مَا حَلَفَ عَلَيْهِ، وَلَيْسَ يَتَوَرَّعُ مِنْ شَيْءٍ. قَالَ: "لَيْسَ لَكَ مِنْهُ، إِلَّا ذَلِكَ". قَالَ: فَانْطَلَقَ الرَّجُلُ لِيَحْلِفَ لَهُ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَمَّا أَدْبَرَ لَئِنْ حَلَفَ عَلَى مَالِكَ لِيَأْكُلَهُ ظُلْمًا لَيَلْقَيَنَّ اللَّهَ وَهُوَ عَنْهُ مُعْرِضٌ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ عُمَرَ، وَابْنِ عَبَّاسٍ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، وَالْأَشْعَثِ بْنِ قَيْسٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ وَائِلِ بْنِ حُجْرٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (1)

**ترجمه** : دوائل بن حجر رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چي دحضرموت قبيلي او كنده قبيلي دوه كسان دنبي كريم صلي الله عليه وسلم په خدمت كي حاضر شول او حضرمي عرض اوكړو اي دالله رسوله دي كس زما په زمكه قبضه كړي ده نو كندي اووئيل دا خو زما زمكه ده او زما په قبضه كي ده او دده هيڅ حق په دي كي نشته رسول الله صلي الله عليه وسلم دحضرمي نه تپوس اوكړو ايا تاسره كوم گواه شته ده اووئيل نشته رسول الله اوفرمائيل بيا ته دده نه قسم اخستلي شئ ده عرض اوكړو اي دالله رسوله دا خو يو فاجر انسان دي ددي خبري هيڅ خيال نه ساتي چي دي په ناجائزه قسم اوخوري او نه په كوم كار كي احتياط كوي. رسول الله بيا اوفرمائيل ته دده نه قسم اخستلي شي پس دا كس قسم خوړلودپاره روان شو هر كله چي دي دقسم دپاره روان شو او رسول الله اوليدلو نو ويي فرمائيل كه چري ده په دروغه او په ظلم ستا دمال خوړلو دپاره قسم اوكړو نو دالله تعالي سره به په داسي حال كي مخامخ كيږي چي مخ به يي ورنه اړولي وي.

امام ترمذي وائي دوائل بن حجرحديث حسن صحيح دي، او په دي باب كي دعمر، ابن عباس، عبدالله بن عمرو، او اشعث بن قيس رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي ، امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي.

## دابوهنيد وائل بن حجر رضي الله عنه مختصر حالات

نوم وائل كنيه ابو هنيد دپلار نوم حجر چي تعلق يي د حضرموت دشاهي خاندان سره وو او پخپله هم سردار وو دفتح مكي نه پس مديني ته داسلام قبلولو په نيت راغى او رسول الله صلي الله عليه وسلم يي پخپله استقبال اوكړو او څادر يي ورته خور كړو او په هغي يي كينولو او دده داولاد دپاره يي دبركت دعا هم اوغوښتله (استيعاب).

---

1 _ مسلم_ الإيمان ٦١ (٢٢٣) . سنن ابي داود_ الأيمان والنذور ٢ (٣٢٤٥) . (تحفة الأشراف : ١١٧٦٨) . و احمد في المسند (٤_٣١٧)

كله چي داسلام قبلولو نه پس واپس روان شو نو رسول الله صلي الله عليه وسلم ورته دحضرموت په زمكو كې يوه ټوټه زمكه وركړه او درخصتئ په وخت كې ورسره دډېره لرې پورې روان وو دكوفي داباديدونه پس په كوفه كې اوسيدو اوپه جنگ صفين كې دعلي رضي الله عنه سره وو چي دحضرموت قبيلي جهنډه يي په لاس كې وه او د اميرمعاويه رضي الله عنه په زمانه كې وفات شو (اصابه)

دده دمروياتو شمير ۱۷۱ دی بخاري ورنه نقل دروايت نه دی کړی او مسلم ورنه شپږ روايات نقل کړي دي.

***************

١٣٤١_ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ، أَنْبَأَنَا عَلِيُّ بْنُ مُسْهِرٍ، وَغَيْرُهُ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عُبَيْدِ اللَّهِ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ فِي خُطْبَتِهِ: " الْبَيِّنَةُ عَلَى الْمُدَّعِي، وَالْيَمِينُ عَلَى الْمُدَّعَى عَلَيْهِ ". هَذَا حَدِيثٌ فِي إِسْنَادِهِ مَقَالٌ، وَمُحَمَّدُ بْنُ عُبَيْدِ اللَّهِ الْعَرْزَمِيُّ يُضَعَّفُ فِي الْحَدِيثِ مِنْ قِبَلِ حِفْظِهِ، ضَعَّفَهُ ابْنُ الْمُبَارَكِ وَغَيْرُهُ.[1]

**ترجمه** : دعبدالله بن عمرو رضي الله عنهما نه روايت دې نبي كريم صلي الله عليه وسلم پخپله خطبه كي فرمانيلي دي گواه دمدعي په ذمه دي او قسم دمدعي عليه په ذمه دي.

امام ترمذي وائي ددي حديث په سند كلام شوي دي محمد بن عبدالله عزرمي دحفظ په اعتبار ضعيف في الحديث گرخولي شوي دي او ابن مبارك وغيره دده تضعيف كړي دي.

***************

١٣٤٢_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَهْلِ بْنِ عَسْكَرٍ الْبَغْدَادِيُّ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوسُفَ، حَدَّثَنَا نَافِعُ بْنُ عُمَرَ الْجُمَحِيُّ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، " أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَضَى أَنَّ الْيَمِينَ عَلَى الْمُدَّعَى عَلَيْهِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ: أَنَّ الْبَيِّنَةَ عَلَى الْمُدَّعِي وَالْيَمِينَ عَلَى الْمُدَّعَى عَلَيْهِ.[2]

---

[1] _ تفرد بذكره المؤلف (تحفة الأشراف: ٨٧٩٢)

[2] _ البخاری_ الرهن ٦ (٢٥١٤). والشهادات ٢٠ (٢٦٦٨). وتفسير سورة آل عمران ٣ (٤٥٥٢). صحيح مسلم_ الأقضية ١ (١٧١١). سنن ابي داود_ الأقضية ٢٣ (٣٦١٩). سنن النسائي_ القضاة ٣٦ (٥٤٢٠). سنن ابن ماجه_ الأحكام ٧ (٢٣٢١). (تحفة الأشراف: ٥٧٩٢). واحمد في المسند (١_ ٣٠٣، ٢٨٨، ٣٤٣، ٣٥١، ٣٥٦، ٣٦٣)

**ترجمه** : دابن عباس رضي الله عنهما بيان دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم دا فيصله کړي ده چي قسم په مدعي عليه دي .
**تشريح** په کتاب الصوم کي د اليمين علي من انکر والا مسئله تفصيلي تيره شوي ده.

***************

## ١٣_ باب مَا جَاءَ فِي الْيَمِينِ مَعَ الشَّاهِدِ

### دګواه سره دمدعي قسم خوړل دعوي لره مضبوطوي

١٣٤٣_ حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ الدَّوْرَقِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ مُحَمَّدٍ، قَالَ: حَدَّثَنِي رَبِيعَةُ بْنُ أَبِي عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ سُهَيْلِ بْنِ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: " قَضَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْيَمِينِ مَعَ الشَّاهِدِ الْوَاحِدِ ". قَالَ رَبِيعَةُ: وَأَخْبَرَنِي ابْنٌ لِسَعْدِ بْنِ عُبَادَةَ، قَالَ: وَجَدْنَا فِي كِتَابِ سَعْدٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَضَى بِالْيَمِينِ مَعَ الشَّاهِدِ. قَالَ: وَفِي الْبَاب، عَنْ عَلِيٍّ، وَجَابِرٍ، وَابْنِ عَبَّاسٍ، وَسُرَّقَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ، " أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَضَى بِالْيَمِينِ مَعَ الشَّاهِدِ الْوَاحِدِ ". حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ. ([1])

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم ديو ګواه دګواهئ په بنياد دمدعي په قسم فيصله کړي وه، ربيعه وائي ماته هم دسعد بن عباده خوي خبر راکړي دي چي مونږ دسعد رضي الله عنه په کتاب کي ليکلي موندلي وو چي نبي کريم صلي الله عليه وسلم په يو ګواه او دمدعي په قسم فيصله کړي وه.
امام ترمذي وائي په دي باب کي دعلي، جابر، ابن عباس، او سرق رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي او دابوهريره رضي الله عنه دا حديث چي نبي کريم صلي الله عليه وسلم په يو ګواه او مدعي په قسم فيصله کړي وه حسن غريب دي.

***************

١٣٤٤_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، وَمُحَمَّدُ بْنُ أَبَانَ، قَالَا: حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ الثَّقَفِيُّ، عَنْ جَعْفَرِ بْنِ مُحَمَّدٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَابِرٍ، " أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَضَى بِالْيَمِينِ مَعَ الشَّاهِدِ ".([2])

---

[1] _ ابي داود_ الأقضية ٢١ (٣٦١٠) . سنن ابن ماجه_ الأحكام ٣١ (٢٣٦٨) . (تحفة الأشراف : ١٢٦٣٠)

[2] _ ابن ماجه_ الأحكام ٣١ (٢٣٦٩) . (تحفة الأشراف : ٢٦٠٤)

**ترجمه** : دجابررضي الله عنه نه روايت دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم په يو ګواه او مدعي په قسم فيصله کړي ده.

***************

١٣٤٥_ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ. أَخْبَرَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ جَعْفَرٍ. حَدَّثَنَا جَعْفَرُ بْنُ مُحَمَّدٍ. عَنْ أَبِيهِ. "أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَضَى بِالْيَمِينِ مَعَ الشَّاهِدِ الْوَاحِدِ". قَالَ: وَقَضَى بِهَا عَلِيٌّ فِيكُمْ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَهَذَا أَصَحُّ. وَهَكَذَا رَوَى سُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ. عَنْ جَعْفَرِ بْنِ مُحَمَّدٍ. عَنْ أَبِيهِ. عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُرْسَلًا. وَرَوَى عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ أَبِي سَلَمَةَ. وَيَحْيَى بْنُ سُلَيْمٍ. هَذَا الْحَدِيثَ عَنْ جَعْفَرِ بْنِ مُحَمَّدٍ. عَنْ أَبِيهِ. عَنْ عَلِيٍّ. عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ. رَأَوْا أَنَّ الْيَمِينَ مَعَ الشَّاهِدِ الْوَاحِدِ جَائِزٌ. فِي الْحُقُوقِ وَالْأَمْوَالِ. وَهُوَ قَوْلُ: مَالِكِ بْنِ أَنَسٍ. وَالشَّافِعِيِّ. وَأَحْمَدَ. وَإِسْحَاقَ. وَقَالُوا: لَا يُقْضَى بِالْيَمِينِ مَعَ الشَّاهِدِ الْوَاحِدِ. إِلَّا فِي الْحُقُوقِ وَالْأَمْوَالِ. وَلَمْ يَرَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَهْلِ الْكُوفَةِ. وَغَيْرِهِمْ. أَنْ يُقْضَى بِالْيَمِينِ مَعَ الشَّاهِدِ الْوَاحِدِ.[1]

**ترجمه** : دابوجعفر صادق نه روايت دي چي نبي کريم صلي الله عليه وسلم په يو ګواه او دمدعي په قسم فيصله کړي ده راوي وائي او علي رضي الله عنه هم په دي باندي ستاسو په مينځ کي فيصله کړي وه.

امام ترمذي وائي دا حديث زيات صحيح دي، دارنګي سفيان ثوري هم په سند د جعفر بن محمد عن ابيه عن النبي صلي الله عليه وسلم سره مرسل نقل کړي دي، عبدالعزيز بن ابو سلمه او يحیٰ بن سليم داحديث په سند د جعفر بن محمد عن ابيه عن علي عن النبي صلي الله عليه وسلم سره مرفوعا نقل کړي دي په صحابه کرامو او ددوئ نه پس په اهل علمو کي دبعضو په دي باندي عمل دي ددوئ رائي داده چي دحقوقو او اموالو په سلسله کي ديو ګواه سره د مدعي قسم کول جائز دي، دامام مالك ، شافعي، احمد، او اسحاق بن راهويه هم دا قول دي دوئ وائي چي ديو ګواه سره دمدعي په قسم خوړلو صرف دحقوقو او اموالو په سلسله

[1] _ البخاري_ الشركة ٥ (٢٤٩١) . و ١٤ (٢٥٠٣) . والعتق ٣ (٢٥٢٢) . صحيح مسلم_ العتق ١ (١٥٠١) الأيمان والنذور ١٢ (١٥٠١_ ٤٧٥٠) . سنن ابي داود_ العتق ٦ (٣٩٣٠) . سنن النسائي_ البيوع ١٠٥ (٤٧١٢) . سنن ابن ماجه العتق ٤ (٢٥٢١) . (تحفة الأشراف : ١١٧٥) . والمؤطاء العتق ١ (١) واحمد في المسند (٢_ ٢. ١٥. ٣٤. ٧٧. ١٠٥. ١١٢. ١٤٢. ١٥٦)

کي فيصله جاري کيدي شي، او په اهل کوفه وغيره کي بعضي اهل علم ديو ګواه سره مدعي په قسم فيصله کول جائز نه ګڼړي.

***************

## ١٤_ باب مَا جَاءَ فِي الْعَبْدِ يَكُونُ بَيْنَ الرَّجُلَيْنِ فَيُعْتِقُ أَحَدُهُمَا نَصِيبَهُ

**ددوه کسانو په مينځ کي دهغه مشترک غلام په کوم کي چي يو کس خپله حصه ازاده کړي**

١٣٤٦_ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: " مَنْ أَعْتَقَ نَصِيبًا، أَوْ قَالَ: شِقْصًا، أَوْ قَالَ: شِرْكًا لَهُ فِي عَبْدٍ فَكَانَ لَهُ مِنَ الْمَالِ مَا يَبْلُغُ ثَمَنَهُ بِقِيمَةِ الْعَدْلِ فَهُوَ عَتِيقٌ، وَإِلَّا فَقَدْ عَتَقَ مِنْهُ مَا عَتَقَ ". قَالَ أَيُّوبُ: وَرُبَّمَا قَالَ نَافِعٌ: فِي هَذَا الْحَدِيثِ يَعْنِي: فَقَدْ عَتَقَ مِنْهُ مَا عَتَقَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ عُمَرَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رَوَاهُ سَالِمٌ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَهُ.[1]

**ترجمه** : دعبدالله بن عمررضي الله عنهما نه مروي دي نبي کريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چاچي په کوم مشترک غلام کي خپله حصه ازاده کړه او دده سره دومره مال موجود وي چي دغلام واجبي قيمت ته رسيږي نو دي دي په دي مال دباقي شريکانو حصه اداء کړي او غلام به پوره ازاد شي او که داسي نه وي نو څومره چي ازاد شوي دي هم دومره به ازاد وي.

امام ترمذي وائي دابن عمر رضي الله عنهما حديث حسن صحيح دي او داحديث سالم بن عبدالله په سند د عن ابيه عن النبي صلي الله عليه وسلم سره ددي په مثل بيان کړي دي.

***************

١٣٤٧_ حَدَّثَنَا بِذَلِكَ الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ الْخَلَّالُ الْحُلْوَانِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَالِمٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: " مَنْ أَعْتَقَ نَصِيبًا لَهُ فِي عَبْدٍ، فَكَانَ لَهُ مِنَ الْمَالِ مَا يَبْلُغُ ثَمَنَهُ، فَهُوَ عَتِيقٌ مِنْ مَالِهِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.[2]

---

[1] _ ابن ماجه_ الأحكام ٣١ (٢٣٦٩) . (تحفة الأشراف : ٧٦٠٢)

[2] _ البخاري_ الشركة ٥ (٢٤٩١) ، و ١٤ (٢٥٠٣) . والعتق ٤ (٢٥٢٢) . صحيح مسلم_ العتق ١ (١٥٠١) . الأيمان والنذور ١٢ (١٥٠١_ ٤٧٥٠) . سنن ابي داود_ العتق ٦ (٣٩٤٠) . سنن النسائي_ البيوع ١٠٥ (٤٧١٣) . سنن ابن ماجه_ العتق ٧ (٢٥٢٨) . (تحفة الأشراف : ٦٩٤٥) . والموطأ العتق ١ (١) واحمد في المسند (٢_ ٢، ١٥، ٣٤، ٧٧، ١٠٥، ١١٢، ١٤٢، ١٥٦)

**ترجمه** دعبدالله بن عمررضي الله عنهما نه مروي دي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چاچې په مشترك غلام كې خپله حصه ازاده كړه او دده سره دومره مال موجود وي چې دغلام قيمت ته رسيږي دي به دباقي شريكانو حصه هم ادا ء كوي او غلام به دده دمال نه ازاد شي

امام ترمذي وائي داحديث حسن صحيح دي

**************

١٣٤٨_ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ خَشْرَمٍ، أَخْبَرَنَا عِيسَى بْنُ يُونُسَ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي عَرُوبَةَ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنِ النَّضْرِ بْنِ أَنَسٍ، عَنْ بَشِيرِ بْنِ نَهِيكٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " مَنْ أَعْتَقَ نَصِيبًا، أَوْ قَالَ شِقْصًا فِي مَمْلُوكٍ، فَخَلَاصُهُ فِي مَالِهِ إِنْ كَانَ لَهُ مَالٌ، فَإِنْ لَمْ يَكُنْ لَهُ مَالٌ، قُوِّمَ قِيمَةَ عَدْلٍ، ثُمَّ يُسْتَسْعَى فِي نَصِيبِ الَّذِي لَمْ يُعْتِقْ غَيْرَ مَشْقُوقٍ عَلَيْهِ ". قَالَ: وَفِي الْبَاب، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي عَرُوبَةَ نَحْوَهُ، وَقَالَ: شَقِيصًا، قَالَ أَبُو عِيسَى: وَهَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَهَكَذَا رَوَى أَبَانُ بْنُ يَزِيدَ، عَنْ قَتَادَةَ مِثْلَ رِوَايَةِ سَعِيدِ بْنِ أَبِي عَرُوبَةَ، وَرَوَى شُعْبَةُ هَذَا الْحَدِيثَ، عَنْ قَتَادَةَ، وَلَمْ يَذْكُرْ فِيهِ أَمْرَ السِّعَايَةِ، وَاخْتَلَفَ أَهْلُ الْعِلْمِ فِي السِّعَايَةِ، فَرَأَى بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ السِّعَايَةَ فِي هَذَا، وَهُوَ قَوْلُ: سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ، وَأَهْلِ الْكُوفَةِ، وَبِهِ يَقُولُ إِسْحَاق، وَقَدْ قَالَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ: إِذَا كَانَ الْعَبْدُ بَيْنَ الرَّجُلَيْنِ فَأَعْتَقَ أَحَدُهُمَا نَصِيبَهُ، فَإِنْ كَانَ لَهُ مَالٌ غَرِمَ نَصِيبَ صَاحِبِهِ، وَعَتَقَ الْعَبْدُ مِنْ مَالِهِ، وَإِنْ لَمْ يَكُنْ لَهُ مَالٌ، عَتَقَ مِنَ الْعَبْدِ مَا عَتَقَ، وَلَا يُسْتَسْعَى، وَقَالُوا بِمَا رُوِيَ عَنِ ابْنِ عُمَرَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَهَذَا قَوْلُ أَهْلِ الْمَدِينَةِ، وَبِهِ يَقُولُ مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ، وَالشَّافِعِيُّ، وَأَحْمَدُ، وَإِسْحَاق. ([1])

**ترجمه** دابوهريره رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چاچې په مشترك غلام كې خپله حصه ازاده كړه نو دباقي حصي ازادي به هم دده دمال نه كيږي كه چري دده سره مال وي او كه مال ورسره نه وي نو ددي غلام واجبي قيمت به اولګولي شي او بيا به غلام ته په پريشاني كې د اچولو نه بغير موقعه وركولي شي چې مال اوګټي اودهغه كس

[1] _ البخاري_ الشركة ٥ (٢٤٩٢)، ١٣ (٢٥٠٣)، والعتق ٥ (٢٥٢٤)، صحيح مسلم_ العتق ١ (١٥٠٣)، سنن ابي داود_ العتق ٣ (٣٩٣٣)، و٥ (٣٩٣٨)، سنن ابن ماجه_ العتق ٧ (٢٥٢٧)، (تحفة الأشراف: ١٢٢١١)، و احمد في المسند (٢_ ٤٢٦، ٤٧٢)

حصه اداء کړي چاچې خپله حصه ازاده کړي نه ده ، دمحمد بن بشار نه هم ددې هم معنی روایت مروي دې او دده په روایت کې د "شقصا" په ځای باندې "شقیصا" لفظ راغلی دی.
امام ترمذي وائي دا حدیث حسن صحیح دې او ددې پشان روایت ابان بن یزید هم دقتاده نه او هغه دسعید بن ابي عروبه نه نقل کړي دي.
او شعبه هم دا روایت دقتاده نه نقل کړي دي مګر شعبه پخپل روایت کې دغلام دازادولو دپاره دمال ګټلو دپاره غلام ته دموقعې ورکولو ذکر نه دې کړې دسعایه (دګټې دپاره موقعه ورکول) باره کې دعلماؤ اختلاف دې بعضې اهل علم په دې باره کې سعایه جائز ګڼړي سفیان ثوري او اهل کوفه هم په دې باندې قول کړې دې او اسحاق بن راهویه هم ددې قائل دې، په دې باب کې دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه هم روایت وارد دې مګر بعضې اهل علم وائي کله چې یو غلام په دوه کسانو کې مشترك وي او په دوئ کې یو کس خپله حصه ازاده کړه نو که دده سره مال وي دې دې دخپل شریك دحصې تاوان هم اداء کړي او غلام به ټول دده دمال نه ازاد شي او که مال ورسره نه وي غلام چې څومره ازاد شوي دې دومره به ازاد وي او دباقي حصې دازادئ دپاره به په ده باندې مزدوري نشي کولی او دوئ دابن عمر دحدیث په بنیاد دا خبره کړي ده او همدا داهل مدینه قول دې امام مالك، شافعي او احمد هم ددې قائل دي.

****************

## ١٥_ باب مَا جَاءَ فِي الْعُمْرَى

### دعمرې بیان

١٣٤٩_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عَدِيٍّ، عَنْ سَعِيدٍ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنِ الْحَسَنِ، عَنْ سَمُرَةَ، أَنَّ نَبِيَّ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "الْعُمْرَى جَائِزَةٌ لِأَهْلِهَا، أَوْ مِيرَاثٌ لِأَهْلِهَا". قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ، وَجَابِرٍ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَعَائِشَةَ، وَابْنِ الزُّبَيْرِ، وَمُعَاوِيَةَ. (١)

**ترجمه** : دسمره رضي الله عنه نه مروي دې نبي کریم صلي الله علیه وسلم فرمائیلي دي عمرې چې چاته ورکړې شوي وي دا دده دکور والا رسیږي، او که داسې یې اوفرمائیل دا دده دکور والاخلقو میراث دي.
امام ترمذي وائي په دې باب کې دزید بن ثابت، جابر، ابوهریره، عائشه، عبدالله بن زبیر، او معاویه رضي الله عنهم نه هم احادیث مروي دي.

****************

[1] _ ابي داود_ البيوع ٨٧ (٣٥٤٩). (تحفة الأشراف: ٤٥٩٣)

١٣٥٠_ حَدَّثَنَا الأَنْصَارِيُّ، حَدَّثَنَا مَعْنٌ، حَدَّثَنَا مَالِكٌ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ جَابِرٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: " أَيُّمَا رَجُلٍ أُعْمِرَ عُمْرَى لَهُ وَلِعَقِبِهِ، فَإِنَّهَا لِلَّذِي يُعْطَاهَا لَا تَرْجِعُ إِلَى الَّذِي أَعْطَاهَا لِأَنَّهُ أَعْطَى عَطَاءً وَقَعَتْ فِيهِ الْمَوَارِيثُ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَهَكَذَا رَوَى مَعْمَرٌ وَغَيْرُ وَاحِدٍ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، مِثْلَ رِوَايَةِ مَالِكٍ، وَرَوَى بَعْضُهُمْ عَنِ الزُّهْرِيِّ، وَلَمْ يَذْكُرْ فِيهِ وَلِعَقِبِهِ، وَرُوِيَ هَذَا الْحَدِيثُ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ، عَنْ جَابِرٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: " الْعُمْرَى جَائِزَةٌ لِأَهْلِهَا وَلَيْسَ فِيهَا لِعَقِبِهِ "، وَهَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ الْعِلْمِ قَالُوا: إِذَا قَالَ: هِيَ لَكَ حَيَاتَكَ وَلِعَقِبِكَ، فَإِنَّهَا لِمَنْ أُعْمِرَهَا، لَا تَرْجِعُ إِلَى الْأَوَّلِ، وَإِذَا لَمْ يَقُلْ لِعَقِبِكَ، فَهِيَ رَاجِعَةٌ إِلَى الْأَوَّلِ إِذَا مَاتَ الْمُعْمَرُ، وَهُوَ قَوْلُ: مَالِكِ بْنِ أَنَسٍ، وَالشَّافِعِيِّ، وَرُوِيَ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: " الْعُمْرَى جَائِزَةٌ لِأَهْلِهَا "، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ الْعِلْمِ قَالُوا: إِذَا مَاتَ الْمُعْمَرُ، فَهُوَ لِوَرَثَتِهِ، وَإِنْ لَمْ تُجْعَلْ لِعَقِبِهِ، وَهُوَ قَوْلُ: سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ، وَأَحْمَدَ، وَإِسْحَاق. [1]

**ترجمه** : دجابر رضي الله عنه نه مروي دي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي عمري چي چاته ورکړي شوه دا دده ده او دده دکور والايعني دده دوارثانو ده خکه چي دا دهغه چا وي چاته چي ورکړي شوي وي او عمري ورکونکي ته نه واپس کيږي خکه چي هغه يوه داسي عطيه ورکړي ده په کومه کي چي ميراث ثابت شوي دي.

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي او ددي پشان روايت معمرو او نورو راويانو هم دزهري نه دمالك درروايت پشان روايت نقل کړي دي او بعضو دزهري نه نقل کړي دي او دزهري په روايت کي د "ولعقبه " ذکر نشته او دا حديث ددي سند نه علاوه په نورو سندونو هم دجابر په واسطه دنبي کريم صلي الله عليه وسلم نه مروي دي چي فرمائيل يي عمري چي چاته ورکړي شي دا دده دکور والاوي او په دي حديث کي د لعقبه ذکر نشته او دا حديث حسن صحيح دي، دبعضي اهل علمو په دي باندي عمل دي دوئ وائي کله چي ورکونکي اووائي دا خيز ستا دعمر پوري ستا دي او ستا دمرګ نه پس ستا د اولاد دي نو دا به هم دهغه چاوي چاته چي ورکړي شوي وي او ورکونکي ته نه واپس کيږي او کله چي داسي اونه وائي چي ستا

---

[1] _ البخاري_ الهبة ٣٢ (٢٦٢٥) . صحيح مسلم_ الهبات ٤ (١٦٢٦) . سنن ابي داود_ البيوع ٨٤ (٣٥٥٠،٣٥٥٢) . و ٨٨ (٣٥٥٣ ٣٥٥٤) و ٨٩ (٣٥٥٨) . سنن النسائي_ العمرى ٢ (٣٧٥٨. ٣٧٦٢،٣٧٦٠. و ٣٧٦٦،٣٧٧٠) . و ٣ (٣٧٧٣،٣٧٧٤. ٣٨٠٢،٣٨٠٩) . ٤ (٣٧٨٣) . سنن ابن ماجه_ الهبات ٣ (٢٣٨٠) . و ٤ (٢٣٨٢) . (تحفة الأشراف : ٣١٣٨)

داولاد هم ده نو چي چاته ورکړي شوي وي دهغه دمرګ نه پس به ورکونکي ته واپس کيږي دامام مالك او امام شافعي هم داقول دي او په بعضي نورو سندونو مروي دي چي رسول الله فرمائيلي دي عمري چي چاته ورکړي شوي وي دهغه دکور والاخلقو حق جوړيږي دبعضي اهل علمو په همدې باندي عمل دي دوئ وائي چاته چي کور ورکړي شي دهغه دمرګ نه پس دا کور دهغه دوارثانو رسيږي اګر که وارثان يي پکي ياد کړي نه وي. دسفيان ثوري او احمد او اسحاق هم دا قول دي.

***************

## ١٦_ باب مَا جَاءَ فِي الرُّقْبَى

### دعقبي بيان

١٣٥١_ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ، عَنْ دَاوُدَ بْنِ أَبِي هِنْدٍ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "الْعُمْرَى جَائِزَةٌ لِأَهْلِهَا، وَالرُّقْبَى جَائِزَةٌ لِأَهْلِهَا". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ، وَقَدْ رَوَى بَعْضُهُمْ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، بِهَذَا الْإِسْنَادِ عَنْ جَابِرٍ، مَوْقُوفًا وَلَمْ يَرْفَعْهُ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ، أَنَّ الرُّقْبَى جَائِزَةٌ مِثْلَ الْعُمْرَى، وَهُوَ قَوْلُ: أَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ، وَفَرَّقَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَهْلِ الْكُوفَةِ وَغَيْرِهِمْ، بَيْنَ الْعُمْرَى، وَالرُّقْبَى، فَأَجَازُوا الْعُمْرَى، وَلَمْ يُجِيزُوا الرُّقْبَى. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَتَفْسِيرُ الرُّقْبَى: أَنْ يَقُولَ هَذَا الشَّيْءُ لَكَ مَا عِشْتَ، فَإِنْ مُتَّ قَبْلِي فَهِيَ رَاجِعَةٌ إِلَيَّ، وَقَالَ أَحْمَدُ، وَإِسْحَاقُ، الرُّقْبَى مِثْلُ الْعُمْرَى، وَهِيَ لِمَنْ أُعْطِيَهَا، وَلَا تَرْجِعُ إِلَى الْأَوَّلِ. [1]

**ترجمه** دجابر رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي عمري چي چاته ورکړي شي دا دهغه دکور والا رسيږي او عقبي چي هم چاته ورکړي شي دا دهغه دکور والاوي.

امام ترمذي وائي داحديث حسن صحيح دي او بعضي راويانو دا د ابوزبير نه او هغه دجابر نه موقوفا نقل کړي دي او رسول الله ته يي نه دي رسولي ، عقبي ديته وائي چي يوسړي دلاسي اووائي ته چي څو پوري ژوندي يي داځيز به ستا وي او کله چي ته زما نه مخکي مړ شوې نو دا

---

[1] _ البخاری_ الهبة ٣٢ (٢٦٢٥) . صحيح مسلم_ الهبات ٤ (١٦٢٦) . سنن ابي داود_ البيوع ٨٤ (٣٥٥٢،٣٥٥٠) . و ٨٨ (٣٥٥٦ ٣٥٥٣) و ٨٩ (٣٥٥٨) . سنن النسائي_ العمری ٢ (٣٧٥٨، ٣٧٦٢، ٣٧٦٠، ٣٧٦٢، و ٣٧٦٦،٣٧٧٠) . و ٣ (٣٧٧٣، ٣٧٧٦، ٣٧٨٢، ٣٧٨٢) ؛ ٤ (٣٧٨٢) سنن ابن ماجه_ الهبات ٣ (٢٣٨٠) . و ٤ (٢٣٨٢) . (تحفة الأشراف : ٢١٢٨)

به واپس ماته راګرځي دصحابه کرامو او بعضي اهل علمو په دې باندې عمل دی چې دعمري
پشان عقبې هم چاته ورکړې شوې وي نو دا دهغه دکور والا رسیږي ذامام احمد او اسحاق هم
دا قول دی او په اهل کوفه وغیره کې بعضي اهل علم وائي چې په عمري او عقبې کې فرق دی
دوئ عمري لره دمعمر دمرګ نه پس دده دوارثانو حق ثابت کړی دی او دعقبې باره کې وائي
چې دا دده دوارثانو حق نه دی بلکه دا به ورکونکي ته واپس کیږي.

***************

## ۱۷_ بَابُ مَا ذُكِرَ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الصُّلْحِ بَيْنَ النَّاسِ

### دخلقو مینځ کې دصلحې کولو په سلسله کې ارشادات نبویه

۱۳۵۲_ حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ الْخَلَّالُ، حَدَّثَنَا أَبُو عَامِرٍ الْعَقَدِيُّ، حَدَّثَنَا كَثِيرُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ عَوْفٍ الْمُزَنِيُّ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "الصُّلْحُ جَائِزٌ بَيْنَ الْمُسْلِمِينَ، إِلَّا صُلْحًا حَرَّمَ حَلَالًا، أَوْ أَحَلَّ حَرَامًا، وَالْمُسْلِمُونَ عَلَى شُرُوطِهِمْ إِلَّا شَرْطًا حَرَّمَ حَلَالًا، أَوْ أَحَلَّ حَرَامًا". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.(1)

**ترجمه**: دعمرو بن عوف مزني رضي الله عنه بیان دی رسول الله صلي الله علیه وسلم فرمائیلي دي صلح به دمسلمانانو په مینځ کې نافذ وي مګر علاوه دهغې صلحې نه چې کومه حلال لره حرام کړي او یا حرام لره حلال کړي او مسلمانان دخپلو شرطونو پابند وي علاوه دداسې شرط نه کوم چې حلال لره حراموي او یا حرام لره حلالوي.

امام ترمذي وائي داحدیث حسن صحیح دی.

**تشریح**: تمام مسلمانان پخپل مینځ کې رونړه دي که ددوئ په مینځ کې څه خفګان راشي نو په دوئ کې دې صلح اوکړې شي دا خبره دپورتني ایت نه معلومیږي او ډیر ارشادات نبوي هم په دې باره کې وارد دي.

مثلاً په یو روایت کې دي ایا زه تاسو ته داسې کار ونه ښایم چې په درجه کې به دروژې او صدقې نه افضل وي؟ صحابه کرامو عرض اوکړو ولې نه ضرور یې راته اوښایه رسول الله صلي الله علیه وسلم اوفرمائیل هغه دادی چې د دوو کسانو په مینځ کې که څه خفګان وي هغه ختم کړې شي او دهغوئ په مینځ کې صلح اوکړئ.

همدارنګې په یو بل روایت کې هم دا ارشاد نبوي دی فساد ذات البین هي الحالقة، یعني کورنئ جګړه یو جرړې ویستونکې څیزدی ددې وضاحت یې داسې اوکړو چې دا جګړه دسره

---

1_ سنن ابن ماجه_ الأحكام ۲۳(۲۳۵۳). (تحفة الأشراف: ۱۰۷۷۵)

پوري نه ده بلکه دبيخه پوري دانسان ددين موند راوباسي.
او اصلاح بين الناس يادخلقو په مينځ کې صلح کول.
سوال: امر بالمعروف کې تمامي نيکۍ راغلي او په دي کې صدقه او اصلاح بين الناس هم راغلل نو چي په عموم کې راغلل نو دواړه يي جدا جدا ولي بيان کړل.
جواب: اګر چي دا دواړه ځيزونه په امر بالمعروف کې داخل دي مګر په دي باندي اجتماعي زندګي درست کيږي نو داجتماعيت داهميت په پيش نظر يي جدا جدا بيان کړو.
بل جواب دادی چي په صدقه کې جلب دمنفعت دی چي خلقو ته فائده رسيږي او په اصلاح بين الناس کې دفع دمضرت ده يعني خلق ورسره دتکليف نه بچ کيږي نو ددي داهميت ظاهرولو دپاره يي جدا جدا بيان کړل.

## د عمرو بن عوف انصاري رضي الله عنه حالات

نوم عمرو کنيه ابوعبدالله چي داسلام په ابتداء کې مسلمان شوی وو او بيا يي ددينه پس مديني ته هجرت هم کړی وو (استيعاب).
کله چي په عزوه تبوك کې سخت قحط وو نو رسول الله ددي دپاره تياري شروع کړو او عمرو بن عوف په دربارنبوت کې حاضر شو او عرض يي اوکړو که زمونږ دپاره هم څه انتظام اوکړی شي نو مونږ به ددي جهاد نه محروم پاتي نشو غرض داچي ددي دپاره څه انتظام اونه شو ليکن الله تعالي دداسي خلقو په باره کې دا ايت کريمه :
ولا على الذين اذا ما اتوك لتحملهم قلت لا اجد ما احملكم عليه تولوا واعينهم تفيض من الدمع حزنا الا يجدوا ماينفقون (توبه) نازل کړو.
يعني او نه په هغه خلقو الزام شته کوم چي تاته دسورلۍ غوښتلو دپاره راغلل او تا ورته اوويل زما سره خو هيڅ ځيز نشته چي تاسو پري سواره کړم نو ددي وينا په اوريدو سره دغم په وجه دهغوی دسترګو نه اوښکي بهيدلي.
وفات: دامير معاويه رضي الله عنه په زمانه کې په دمينه کې وفات شو (استيعاب) دده دمرو ياتو شمير اوو ته رسيږي.

****************

## ١٨_ بَاب مَا جَاءَ فِي الرَّجُلِ يَضَعُ عَلَى حَائِطِ جَارِهِ خَشَبًا

### بغير رضامندۍ دګاونډي په ديوال دلرګي ايخودلو بيان

١٣٥٣_ حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْمَخْزُومِيُّ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنِ الأَعْرَجِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: سَمِعْتُهُ يَقُولُ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " إِذَا اسْتَأْذَنَ

أَحَدَكُمْ جَارُهُ أَنْ يَغْرِزَ خَشَبَهُ فِي جِدَارِهِ، فَلَا يَمْنَعْهُ". فَلَمَّا حَدَّثَ أَبُو هُرَيْرَةَ، طَأْطَئُوا رُءُوسَهُمْ، فَقَالَ: مَا لِي أَرَاكُمْ عَنْهَا مُعْرِضِينَ، وَاللَّهِ لَأَرْمِيَنَّ بِهَا بَيْنَ أَكْتَافِكُمْ. قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، وَمُجَمِّعِ بْنِ جَارِيَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ الْعِلْمِ، وَبِهِ يَقُولُ الشَّافِعِيُّ. وَرُوِيَ عَنْ بَعْضِ أَهْلِ الْعِلْمِ، مِنْهُمْ مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ، قَالُوا لَهُ: أَنْ يَمْنَعَ جَارَهُ أَنْ يَضَعَ خَشَبَهُ فِي جِدَارِهِ، وَالْقَوْلُ الْأَوَّلُ أَصَحُّ. (1)

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه بيانه دي درسول الله صلي الله عليه وسلم نه مي اوريدلي دي كله چي په تاسو كي دچا نه يو ګاونډي ستاسو په ديوال دلرګي ايخودلو اجازت طلب اوكړي نو تاسو ورته انكار مه كوئ، ابوهريره چي كله داحديث بيان كړو نو خلقو خپل سرونه ټيټ كړل ابوهريره اووئيل څه خبره ده زه خوتاسو وينم چي تاسو ددينه اعراض كوئ؟ په الله قسم زه به دا ستاسو په اوږو باندي اولم يعني هميشه به يي تاسوته بيانوم.

امام ترمذي وائي دابوهريره حديث حسن صحيح دي، په دي باب كي دابن عباس، دمجمع بن جاريه رضي الله عنهما نه هم احاديث مروي دي او دبعضي اهل علمو په همدي باندي عمل دي او امام شافعي هم ددي قائل دي ، مګر دبعضي اهل علمو قول دي كومو كي چي امام مالك هم دي چي دا خكه درست نه دي چي يو كس لره روا دي چي خپل ګاونډي لره په ديوال دايخودو نه منع كړي مګر اولني قول زيات صحيح دي.

***************

## ١٩ـ بَاب مَا جَاءَ أَنَّ الْيَمِينَ عَلَى مَا يُصَدِّقُهُ صَاحِبُهُ

### قسم په داسي څيز واقع كيږي په كوم باندي چي مدعي قسم كوي

١٣٥٤ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، وَأَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ الْمَعْنَى وَاحِدٌ، قَالَا: حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " الْيَمِينُ عَلَى مَا يُصَدِّقُكَ بِهِ صَاحِبُكَ ". وقَالَ قُتَيْبَةُ: " عَلَى مَا صَدَّقَكَ عَلَيْهِ صَاحِبُكَ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ. لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ هُشَيْمٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي صَالِحٍ، وَعَبْدُ اللَّهِ بْنُ أَبِي

---

1 ـ البخاري_ المظالم ٢٠ (٢٤٦٣) ، صحيح مسلم_ المساقاة ٢٩ (البيوع ٥٠) ، (١٦٠٩) ، سنن ابي داود_ الأقضية ٣١ (٣٦٣٤) ، سنن ابن ماجه_ الأحكام ١٥ (٢٣٣٥) ، (تحفة الأشراف : ١٣٩٥٤) ، والمؤطاء الأقضية ٢٦ (٣٢) ، و احمد في المسند (٢_٣٩٦)

صَالِحٍ: هُوَ أَخُو سُهَيْلِ بْنِ أَبِي صَالِحٍ. وَالعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ العِلْمِ. وَبِهِ يَقُولُ أَحْمَدُ، وَإِسْحَاق. وَرُوِيَ عَنْ إِبْرَاهِيمَ النَّخَعِيِّ، أَنَّهُ قَالَ: إِذَا كَانَ الْمُسْتَحْلِفُ ظَالِمًا، فَالنِّيَّةُ نِيَّةُ الحَالِفِ، وَإِذَا كَانَ الْمُسْتَحْلِفُ مَظْلُومًا، فَالنِّيَّةُ نِيَّةُ الَّذِي اسْتَحْلَفَ. (1)

**ترجمه** دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي قسم خاص په هغه څيز واقع کيږي په کوم باندي چي ستاسومخالف قسم کوي (او توريه به معتبر نه وي) امام ترمذي وائي داحديث حسن غريب دي او دا مونږ ته صرف دهشيم په روايت رارسيدلي دي او هغه دعبدالله بن ابي صالح نه نقل کړي دي او عبدالله بن ابي صالح دسهيل بن ابي صالح ورور دي دبعضي اهل علمو هم په دي باندي عمل دي دامام احمد او اسحاق بن راهويه هم دا قول دي، مګر ابراهيم نخعي وائي کله چي قسم اخستونکي ظالم وي نو دقسم کونکي نيت لره به اعتبار وي او چي کله قسم اخستونکي مظلوم وي نو دقسم اخستونکي نيت به معتبر وي.

****************

## ٢٠_ باب مَا جَاءَ فِي الطَّرِيقِ إِذَا اخْتُلِفَ فِيهِ كَمْ يُجْعَلُ

### کله چي په لاره کي اختلاف پيداشي نودا به څومره پريخودلي شي

١٣٥٥_ حَدَّثَنَا أَبُو كُرَيْبٍ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنِ الْمُثَنَّى بْنِ سَعِيدٍ الضُّبَعِيِّ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ بَشِيرِ بْنِ نَهِيكٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " اجْعَلُوا الطَّرِيقَ سَبْعَةَ أَذْرُعٍ ".(2)

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي لاره به اوه لاسونه پلنه پريږدئ

****************

١٣٥٦_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا الْمُثَنَّى بْنُ سَعِيدٍ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ بُشَيْرِ بْنِ كَعْبٍ العَدَوِيِّ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " إِذَا

---

[1] _ مسلم_ الأيمان والنذور ٤ (١٦٥٣) . سنن ابي داود_ الأيمان والنذور ٨ (٣٢٥٥) . سنن ابن ماجه_ الكفارات ١٤ (٢١٢٠) . (تحفة الأشراف: ١٢٨٢٦) . واحمد في المسند (٢_٢٢٨) . وسنن الدارمي_ النذور ١١ (٢٣٩٤)

[2] _ تفرد بذكره المؤلف (تحفة الأشراف: ١٢٢١٨)

تَشَاجَرْتُمْ فِي الطَّرِيقِ، فَاجْعَلُوهُ سَبْعَةَ أَذْرُعٍ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَهَذَا أَصَحُّ مِنْ حَدِيثِ وَكِيعٍ. قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ بُشَيْرِ بْنِ كَعْبٍ الْعَدَوِيِّ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَرَوَى بَعْضُهُمْ هَذَا عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ بَشِيرِ بْنِ نَهِيكٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، وَهُوَ غَيْرُ مَحْفُوظٍ. (1)

**ترجمه** دابوهريره رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي کله چي دلاري باره کي ستاسو اختلاف پيداشي نو دا به اوه لاسونه پلنه پريږدئ

امام ترمذي وائي دارو ايت دسابقه روايت نه زيات صحيح دي دبشير بن کعب حديث کوم چي هغه دابوهريره نه نقل کړي دي حسن صحيح دي او بعضي راويانو دقتاده نه اوقتاده دبشير بن نهيك نه او هغه دابوهريره نه نقل کړي دي مگر دا سند محفوظ نه دي او په دي باب کي دابن عباس نه هم روايت وارد دي.

***************

## ٢١_ بَاب مَا جَاءَ فِي تَخْيِيرِ الْغُلَامِ بَيْنَ أَبَوَيْهِ إِذَا افْتَرَقَا

### دمور او پلار دجدائي په صورت کي بچي ته داختيار ورکولو بيان

١٣٥٧_ حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ زِيَادِ بْنِ سَعْدٍ، عَنْ هِلَالِ بْنِ أَبِي مَيْمُونَةَ الثَّعْلَبِيِّ، عَنْ أَبِي مَيْمُونَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، "أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَيَّرَ غُلَامًا بَيْنَ أَبِيهِ وَأُمِّهِ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو، وَجَدِّ عَبْدِ الْحَمِيدِ بْنِ جَعْفَرٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَأَبُو مَيْمُونَةَ اسْمُهُ: سُلَيْمٌ. وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ. قَالُوا: يُخَيَّرُ الْغُلَامُ بَيْنَ أَبَوَيْهِ إِذَا وَقَعَتْ بَيْنَهُمَا الْمُنَازَعَةُ فِي الْوَلَدِ، وَهُوَ قَوْلُ: أَحْمَدَ، وَإِسْحَاق. وَقَالَا: "مَا كَانَ الْوَلَدُ صَغِيرًا. فَالْأُمُّ أَحَقُّ. فَإِذَا بَلَغَ الْغُلَامُ سَبْعَ سِنِينَ. خُيِّرَ بَيْنَ أَبَوَيْهِ". هِلَالُ بْنُ أَبِي مَيْمُونَةَ: هُوَ هِلَالُ بْنُ عَلِيِّ بْنِ أُسَامَةَ وَهُوَ مَدَنِيٌّ. وَقَدْ رَوَى عَنْهُ يَحْيَى بْنُ أَبِي كَثِيرٍ، وَمَالِكُ بْنُ أَنَسٍ، وَفُلَيْحُ بْنُ سُلَيْمَانَ. (2)

---

1 _ البخاري_ المظالم ٢٩ (٢٤٧٣)، صحيح مسلم_ المساقاة ٣١ (البيوع ٥٢)، (١٦١٣)، سنن ابي داود_ الأقضية ٣١ (٣٦٣٣)، سنن ابن ماجه_ الأحكام ١٦ (٢٣٣٨)، (تحفة الأشراف: ١٢٢٢٣) واحمد في المسند (٢_ ٤٦٦)

2 _ داود_ الطلاق ٣٥ (٢٢٧٧)، سنن النسائي_ الطلاق ٥٢ (٣٥٢٦)، سنن ابن ماجه_ الأحكام ٢٢ (٢٣٥١)، (تحفة الأشراف: ١٥٤٦٣)، واحمد في المسند (٢_ ٢٤٧)، وسنن الدارمي الطلاق ١٥ (٢٣٣٩)

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه بيان دي نبي کريم صلي الله عليه وسلم يوماشوم ته اختيار ورکړو او ورته يې اوفرمائيل ستا خوښه ده چې دپلار سره پاتې کيږي او که دمور سره پاتې کيږي.

امام ترمذي وائي دابوهريره حديث حسن صحيح دي ، او په دې باب کې دعبدالله بن عمرو او عبدالحميد بن جعفر دنيکه نه هم احاديث مروي دي په صحابه کرامو او اهل علمو کې دبعضو په همدې حديث عمل دې دوئ وائي کله چې دمور او پلار دبچي باره کې اختلاف پيدا شي نو بچي له به اختيار ورکولي شي دهغه خوښه ده چې پلار سره پاتې کيږي او که دمور سره پاتې کيږي او همدا دامام احمد او اسحاق بن راهويه قول دې دوئ وائي کله چې ماشوم کم عمره وي نو مور دهغه زياته مستحقه ده او کله چې اوه کالو ته ورسيږي ده ته به اختيار ورکړې شي چې دپلار سره پاتې کيږي او که دمور سره.

**تشريح**: کله چې په څه وجه ښځې او خاوند کې جدايي راشي او ماشوم باره کې اختلاف پيدا شي نو ماشوم به د چا رسيږي ؟ په دې باره کې دوه مذاهب دي:

امام ابو حنيفه وايي ماشوم که هلك وي د اوه کالو پورې به د مورسره پاتې کيږي اود اوه کالو نه پس به پلار سره پاتې کيږي ، او که جينۍ وي نود بالغ کيدو پورې به د مور سره اوسيږي اود بلوغ نه پس به د پلار سره وي.

امام شافعي وايي که ماشوم هوښيار يدو ته رسيدلی وي نو اختيار به ورته ورکولي شي چې د مور سره اوسيدل غواړي او که د پلار سره.او هغه په دې سلسله کې د حديث الباب نه استدلال کړی دی،دلائل دجانبيو په تعليمات محمدي شرح ترمذي کې مذکور دی).

*****************

## ٢٢_ بَابُ مَا جَاءَ أَنَّ الْوَالِدَ يَأْخُذُ مِنْ مَالِ وَلَدِهِ

### دپلار دپاره دځوی دمال نه اخستل جائز دي

١٣٥٨_ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ زَكَرِيَّا بْنِ أَبِي زَائِدَةَ، حَدَّثَنَا الأَعْمَشُ، عَنْ عُمَارَةَ بْنِ عُمَيْرٍ، عَنْ عَمَّتِهِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ أَطْيَبَ مَا أَكَلْتُمْ مِنْ كَسْبِكُمْ، وَإِنَّ أَوْلاَدَكُمْ مِنْ كَسْبِكُمْ". قَالَ: وَفِي البَابِ، عَنْ جَابِرٍ، وَعَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ، وَقَدْ رَوَى بَعْضُهُمْ هَذَا، عَنْ عُمَارَةَ بْنِ عُمَيْرٍ، عَنْ أُمِّهِ، عَنْ عَائِشَةَ، وَأَكْثَرُهُمْ قَالُوا: عَنْ عَمَّتِهِ، عَنْ عَائِشَةَ. وَالعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ العِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ

صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ. قَالُوا: إِنَّ يَدَ الْوَالِدِ مَبْسُوطَةٌ فِي مَالِ وَلَدِهِ، يَأْخُذُ مَا شَاءَ. وَقَالَ بَعْضُهُمْ: لَا يَأْخُذُ مِنْ مَالِهِ إِلَّا عِنْدَ الْحَاجَةِ إِلَيْهِ. (1)

**ترجمه** : ام المؤمنين عائشه رضي الله عنها نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دټولو نه زيات پاك هغه څيز چي تاسو يې خورئ ستاسو دپاره ستاسو دلاسونو ګټلي مال دي او ستاسو اولاد هم ستاسو ګټه ده.

امام ترمذي وائي داحديث حسن صحيح دي دا حديث بعضي راويانو دعماره بن عمير نه او هغه دخپلي مور نه او هغي دعائشه رضي الله عنها نه نقل کړي وو ليکن اکثرو راويانو د "عن امه" په ځاي باندي "عن عمته" ونيلي وو يعني عماره دخپلي ترور نه او هغي دعائشه رضي الله عنها نه روايت نقل کړي دي، او په دي باب کي دجابر او عبدالله بن عمرو رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي په صحابه کرامو او اهل علمو کي دبعضو په دي باندي عمل دي دوئ وائي پلار ته دخوي په مال کي کامل اختيار دي چي څومره يې خوښه وي دومره ورنه اخستلي شي، او دبعضو قول دي چي پلار دخوي دمال نه دضرورت په وخت کي (په قدر دضرورت) اخستلي شي.

*************

## ٢٣_ باب مَا جَاءَ فِيمَنْ يُكْسَرُ لَهُ الشَّيْءُ مَا يُحْكَمُ لَهُ مِنْ مَالِ الْكَاسِرِ

### دچاچي کوم څيز مات شي نو دماتونکي دمال نه به ددي تاوان اخستلي شي

١٣٥٩_ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ الْحَفَرِيُّ، عَنْ سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ، عَنْ حُمَيْدٍ، عَنْ أَنَسٍ، قَالَ: أَهْدَتْ بَعْضُ أَزْوَاجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ طَعَامًا فِي قَصْعَةٍ، فَضَرَبَتْ عَائِشَةُ الْقَصْعَةَ بِيَدِهَا، فَأَلْقَتْ مَا فِيهَا، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "طَعَامٌ بِطَعَامٍ، وَإِنَاءٌ بِإِنَاءٍ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (2)

---

[1] _ ابي داود_ البيوع ٧٩ (٣٥٢٨) . سنن النسائي_ البيوع ١ (٤٤٥٢) . سنن ابن ماجه_ التجارات ١ (٢١٣٧) . (تحفة الأشراف : ١٧٩٩٢) . و احمد في المسند (٦_ ٣١، ٤٢، ١٢٧، ١٦٢، ١٩٣، ٢٢٠) . سنن الدارمي_ البيوع ٦ (٢٥٧٩)

[2] _ تفرد بذكره المؤلف (تحفة الأشراف : ٧٧٧) . وراجع: اخرجه البخاري في الصحيح_ المظالم ٣٤ (٢٤٨١) . والنكاح ١٠٧ (٥٢٢٥) . سنن ابي داود_ البيوع ٩١ (٣٥٦٧) . سنن النسائي_ عشرة النساء ٤ (٣٤٠٧) . سنن ابن ماجه_ الأحكام ١٤ (٢٣٣٤) . مسند احمد (٣_ ١٠٥، ٢٦٣) . سنن الدارمي_ البيوع ٥٨ (٢٦٤٠)

**ترجمه** : دانس رضي الله عنه بيان دي چي دنبي كريم صلي الله عليه وسلم كومي بي بي پخپل لوښي كي دخوراك كوم څيز دهديه په طور عائشه رضي الله عنها ته وليږل نو عائشه رضي الله عنها دغصي په حالت كي دهغي په لاس كي پياله اووهله او چي څه پكي وو هغه اوغورځيدل رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل دخوراك په بدل كي خوراك دي او دلوښي په بدل كي لوښي وركول دي.

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي.

***************

١٣٦٠_ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ، أَخْبَرَنَا سُوَيْدُ بْنُ عَبْدِ الْعَزِيزِ، عَنْ حُمَيْدٍ، عَنْ أَنَسٍ، "أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اسْتَعَارَ قَصْعَةً، فَضَاعَتْ فَضَمِنَهَا لَهُمْ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَهَذَا حَدِيثٌ غَيْرُ مَحْفُوظٍ، وَإِنَّمَا أَرَادَ عِنْدِي سُوَيْدٌ الْحَدِيثَ الَّذِي رَوَاهُ الثَّوْرِيُّ، وَحَدِيثُ الثَّوْرِيِّ أصح اسم أبي داود عمر بن سعد. (١)

**ترجمه** دانس رضي الله عنه بيان دي چي دنبي كريم صلي الله عليه وسلم يوه كاسه دچانه اوغوښتله او هغه ماته شوه دچانه چي يي دا اخستلي وه هغوئ ته يي ددي تاوان اداء كړو.

امام ترمذي وائي دا حديث محفوظ نه دي ، سويد ماته هغه حديث بيانول غوښتل كوم چي ثوري نقل كړي دي ، او د ثوري حديث زيات صحيح دي.

***************

## ٢٤_ باب مَا جَاءَ فِي حَدِّ بُلُوغِ الرَّجُلِ وَالْمَرْأَةِ

### د نارينه او زنانه دبالغ كيدو دحد بيان

١٣٦١_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ وَزِيرٍ الْوَاسِطِيُّ، حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ يُوسُفَ الأَزْرَقُ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: "عُرِضْتُ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي جَيْشٍ وَأَنَا ابْنُ أَرْبَعَ عَشْرَةَ، فَلَمْ يَقْبَلْنِي، فَعُرِضْتُ عَلَيْهِ مِنْ قَابِلٍ فِي جَيْشٍ وَأَنَا ابْنُ خَمْسَ عَشْرَةَ، فَقَبِلَنِي". قَالَ نَافِعٌ: وَحَدَّثْتُ بِهَذَا الْحَدِيثِ عُمَرَ بْنَ عَبْدِ الْعَزِيزِ، فَقَالَ: هَذَا حَدُّ مَا بَيْنَ الصَّغِيرِ وَالْكَبِيرِ، ثُمَّ كَتَبَ أَنْ يُفْرَضَ لِمَنْ يَبْلُغُ الْخَمْسَ عَشْرَةَ. حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَ هَذَا،

---

[1] _ تفرد به كره المؤلف (تحفة الأشراف: ٦٨٨)

وَلَمْ يَذْكُرْ فِيهِ أَنَّ عُمَرَ بْنَ عَبْدِ الْعَزِيزِ كَتَبَ أَنَّ هَذَا حَدُّ مَا بَيْنَ الصَّغِيرِ وَالْكَبِيرِ. وَذَكَرَ ابْنُ عُيَيْنَةَ فِي حَدِيثِهِ. قَالَ نَافِعٌ: فَحَدَّثْنَا بِهِ عُمَرَ بْنَ عَبْدِ الْعَزِيزِ فَقَالَ: هَذَا حَدُّ مَا بَيْنَ الذُّرِّيَّةِ، وَالْمُقَاتِلَةِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ. وَبِهِ يَقُولُ سُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ، وَابْنُ الْمُبَارَكِ، وَالشَّافِعِيُّ، وَأَحْمَدُ، وَإِسْحَاق، يَرَوْنَ أَنَّ: الْغُلَامَ إِذَا اسْتَكْمَلَ خَمْسَ عَشْرَةَ سَنَةً. فَحُكْمُهُ حُكْمُ الرِّجَالِ، وَإِنِ احْتَلَمَ قَبْلَ خَمْسَ عَشْرَةَ. فَحُكْمُهُ حُكْمُ الرِّجَالِ". وَقَالَ أَحْمَدُ، وَإِسْحَاق: الْبُلُوغُ ثَلَاثَةُ مَنَازِلَ. بُلُوغُ خَمْسَ عَشْرَةَ. أَوِ الِاحْتِلَامُ. فَإِنْ لَمْ يُعْرَفْ سِنُّهُ وَلَا احْتِلَامُهُ فَالْإِنْبَاتُ يَعْنِي الْعَانَةَ.[1]

**ترجمه**: دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت دي چي زه درسول الله صلي الله عليه وسلم په وړاندي په يو لښکر کي پيش کړي شوم او دغه وخت کي زما عمر څوارلس کاله وو نو رسول الله زه په لښکر کي قبول نکړم بيا په راتلونکي کال زه دهغوئ په وړاندي په يو بل لښکر کي پيش کړي شوم او دغه وخت کي زما عمر پنځلس کاله وو نورسول الله زه په لښکر کي قبول کړم، نافع وائي ما عمر بن عبدالعزيز ته داحديث بيان کړو نوهغوئ اووئيل دبالغ او نابالغ په مينځ کي همدا حد دي، او هغوئ خپلو عاملانو ته اوليکل څوك چي پنځلس کالو ته ورسيږي نو د غنيمت دمال نه دي هغوئ ته جصي ورکړي شي ، او په يو بل سند هم عمر دنبي کريم صلي الله عليه وسلم نه ددي هم معني روايت نقل کړي دي او په هغي کي ددي ذکر نشته چي عمر بن عبدالعزيز خپلو عاملانو ته اوليکل چي دبالغ او نابالغ په مينځ کي همدا حد دي البته سفيان بن عيينه پخپل حديث کي دا بيان کړي دي چي نافع وائي ماچي کله داحديث عمر بن عبدالعزيز ته بيان کړو نو هغه اووئيل دماشوم او مقاتل په مينځ کي همدا حد دي.

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي او داهل علمو عمل هم په دي باندي دي، سفيان ثوري، ابن مبارك، شافعي، احمد، او اسحاق هم ددي قائل دي دوئ وائي چي کله يو ماشوم پنځلس کاله پوره کړي نو دده حکم به دسړو دحکم پشان وي او که دپنځلس کالو نه مخکي دده علامات دبلوغ اوليدلي شي نو بيا به هم دده حکم دسړو وي امام احمد او اسحاق بن راهويه وائي دبلوغ دري علامات دي يوه داده چي پنځلس کالو ته ورسيږي او دويمه علامه يي احتلام دي که چري عمر او احتلام يي معلوميدي نشي نو بيا د بلوغ بله علامه د نوم لاندي په شرمګاه ويښتو راتوکيدل دي.

---

[1] _ البخاري_ الشهادات ١٨ (٢٦٦٣) . سنن ابي داود_ المغازي ٢٩ (٢٠٩٧) . صحيح مسلم_ الإمارة ٢٣ (١٨٦٨_ ٩١) سنن ابن ماجه_ الحدود ٤ (٢٥٤٣) . (تحفة الأشراف : ٧٩٠٠) ويأتي عند المؤلف في الجهاد ٣٢ (١٧١١)

*****************

## ٢٥ باب فِيمَنْ تَزَوَّجَ امْرَأَةَ أَبِيهِ

## دپلار دښځې سره په واده کولو دوعيد بيان

١٣٦٢ـ حَدَّثَنَا أَبُو سَعِيدٍ الأَشَجُّ، حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ غِيَاثٍ، عَنْ أَشْعَثَ، عَنْ عَدِيِّ بْنِ ثَابِتٍ، عَنِ الْبَرَاءِ، قَالَ: مَرَّ بِي خَالِي أَبُو بُرْدَةَ بْنُ نِيَارٍ وَمَعَهُ لِوَاءٌ، فَقُلْتُ: أَيْنَ تُرِيدُ، قَالَ: "بَعَثَنِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى رَجُلٍ تَزَوَّجَ امْرَأَةَ أَبِيهِ، أَنْ آتِيَهُ بِرَأْسِهِ". قَالَ: وَفِي الْبَاب، عَنْ قُرَّةَ الْمُزَنِيِّ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ الْبَرَاءِ حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ، وَقَدْ رَوَى مُحَمَّدُ بْنُ إِسْحَاق، هَذَا الْحَدِيثَ عن عَدِيِّ بْنِ ثَابِتٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ يَزِيدَ، عَنِ الْبَرَاءِ، وَقَدْ رُوِيَ هَذَا الْحَدِيثُ عَنْ أَشْعَثَ، عَنْ عَدِيٍّ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ الْبَرَاءِ، عَنْ أَبِيهِ، وَرُوِيَ عن أَشْعَثَ، عَنْ عَدِيٍّ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ الْبَرَاءِ، عَنْ خَالِهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.[1]

**ترجمه**: دبراء بن عازب رضي الله عنه بيان دي فرمائي چي يو ځل زما ماما ابو برده بن نيار زما په خوا کي تيريدلو او په لاس کي يي يوه جهنډه وه ما ورته تپوس اوکړو چرته روان يې؟ هغه اووئيل رسول الله صلي الله عليه وسلم په يو کس پسي ليږلي يم چاچي دخپل پلار ددويمي ښځي سره واده کړي دي تردي چي زه لاړ شم او دهغه سر راوړم.

امام ترمذي وائي دبراء حديث حسن غريب دي، محمد بن اسحاق هم دا حديث دعدي بن ثابت نه او هغه دعبدالله بن زيد نه او هغه دبراء رضي الله عنه نه نقل کړي دي، دارنګي داحديث داشعث نه هم مروي دي او هغه د عدي نه نقل کړي دي او هغه ديزيد بن براء نه او يزيد دبراء رضي الله عنه نه نقل کړي دي، دا رنګي دا حديث اشعث دعدي نه او هغه ديزيد بن براء نه او هغه دخپل ماما نه او د هغه ماما دنبي کريم صلي الله عليه وسلم نه نقل کړي دي ، او په دي باب کي دقره مزني رضي الله عنه نه هم روايت مروي دي.

*****************

## ٢٦ـ باب مَا جَاءَ فِي الرَّجُلَيْنِ يَكُونُ أَحَدُهُمَا أَسْفَلَ مِنَ الآخَرِ فِي الْمَاءِ

## دهغه دوه کسانو بيان په کوموکي چي ديوه دفصل اوبه د دويم داوبو نه ښکته وي

---

[1] ـ ابي داود ـ الحدود ٢٧ (٤٤٥٦) (٤٤٥٧، ٤٤٥٨). سنن النسائي ـ النكاح ٥٨ (٣٣٣٣). سنن ابن ماجه ـ الحدود ٣٥ (٢٦٠٧). (تحفة الأشراف: ١٥٥٣٤)، واحمد في المسند (٤/ ٢٩٢، ٢٩٥، ٢٩٧)

١٣٦٣_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ عُرْوَةَ أَنَّهُ حَدَّثَهُ، أَنَّ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ الزُّبَيْرِ حَدَّثَهُ، أَنَّ رَجُلًا مِنَ الأَنْصَارِ خَاصَمَ الزُّبَيْرَ عِنْدَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي شِرَاجِ الحَرَّةِ الَّتِي يَسْقُونَ بِهَا النَّخْلَ، فَقَالَ الأَنْصَارِيُّ: سَرِّحِ المَاءَ يَمُرُّ فَأَبَى عَلَيْهِ، فَاخْتَصَمُوا عِنْدَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِلزُّبَيْرِ: " اسْقِ يَا زُبَيْرُ، ثُمَّ أَرْسِلِ المَاءَ إِلَى جَارِكَ "، فَغَضِبَ الأَنْصَارِيُّ، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، أَنْ كَانَ ابْنَ عَمَّتِكَ، فَتَلَوَّنَ وَجْهُ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، ثُمَّ قَالَ: " يَا زُبَيْرُ، اسْقِ ثُمَّ احْبِسِ المَاءَ حَتَّى يَرْجِعَ إِلَى الجَدْرِ "، فَقَالَ الزُّبَيْرُ: وَاللَّهِ، إِنِّي لَأَحْسِبُ نَزَلَتْ هَذِهِ الآيَةُ فِي ذَلِكَ فَلا وَرَبِّكَ لا يُؤْمِنُونَ حَتَّى يُحَكِّمُوكَ فِيمَا شَجَرَ بَيْنَهُمْ (النساء :٦٥) قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَرَوَى شُعَيْبُ بْنُ أَبِي حَمْزَةَ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ، عَنِ الزُّبَيْرِ، وَلَمْ يَذْكُرْ فِيهِ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الزُّبَيْرِ، وَرَوَاهُ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ وَهْبٍ، عَنِ اللَّيْثِ، وَيُونُسُ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الزُّبَيْرِ نَحْوَ الحَدِيثِ الأَوَّلِ.[1]

**ترجمه** : دعبدالله بن زبير رضي الله عنه بيان دي چي يو انصاري د رسول الله صلي الله عليه وسلم په وړاندي دزبير رضي الله عنه سره دحره مقام دلختو باره کي جګړه کوله چي خلقو به وړباندي خپلي کجوري اوبه کولي (په دوئ کي د يو زمکه ژوره وه او د بل اوچته وه) انصاري زبيرته اوونيل اوبه پريږده چي بهيږي مګر زبير دده خبره اونه منله نو دواړو درسول الله صلي الله عليه وسلم په وړاندي خپله مقدمه پيش کړه رسول الله صلي الله عليه وسلم زبير ته اوفرمائيل اي زبير خپل فصل اوبه کړه او بيا خپل ګاونډي ته اوبه پريږده ددي په اوريدو سره انصاري غصه شو او په طور دخفګان يي ونيل اي دالله رسوله داسي فيصله مو په دي وجه اوکړه چي زبير ستادترور خوي دي ددي په اوريدو سره درسول الله صلي الله عليه وسلم دمخ رنګ بدل شو او ويي فرمائيل اي زبير خپل فصل اوبه کړه او بيا اوبه بندي اوساته تردي چي دديوالونو بيخونوته ورسيږي، زبير وائي په الله قسم زما ګمان دي چي په همدي سلسله کي دا ايت کريمه "فلاوربك لايؤمنون حتي يحكموك فيما شجر بينهم " نازل شوي دي (النساء ٥٢)

[1] _ البخاري_ الشرب والمساقاة ٦ (٢٣٦٠) ، و ٨ (٢٣٦٢) ، والعلم ١٢ (٢٧٠٨) ، والتفسير سورة النساء ١٢ (٥٣٨٥) ، صحيح مسلم_ الفضائل ٣٦ (٢٣٥٧) ، سنن ابي داود_ الأقضية ٣١ (٣٦٣٧) ، سنن النسائي_ القضاة ١٩ (٥٣٢٢) ، سنن ابن ماجه_ المقدمة ٢ (١٥) ، والرهون ٢٠ (٢٤٨٠) ، (تحفة الأشراف : ٥٢٧٥) ، واحمد في المسند (١_١٦٥)

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي شعيب بن ابي حمزه دزهري نه او هغه دعروه بن زبير نه او هغه دزبيررضي الله عنه نه نقل كړي دي او شعيب په دې كې دعبدالله بن زبير واسطه نه ده ذكر كړي او عبدالله بن وهب داسند دسابقه روايت پشان دليث او يونس نه نقل كړي دي او هغوئ دواړو دزهري نه او زهري دعروه نه او عروه دعبدالله بن زبير نه نقل كړي دي.

**تشريح** په صحاح سته كې ذكرشوي دي چې د حره مقام دغر په يو لختي باندې دفصلونو داوبو كولو متعلق دزبيربن عوام رضي الله عنه ديو انصاري سره جګړه اوشوه دواړه دنبي عليه السلام په خدمت كې حاضر شول نبي عليه السلام حكم اوكړو اي زبير ته مخكې خپل فصل اوبه كړه او بيا خپل ګاونډي ته اوبه پرېږده . انصاري په دي فيصله باندي راضي نه شو او وېي وئيل اي دالله رسوله ددي فيصلي وجه دا ده چې زبير ستا دترور خوي دي نبي عليه السلام چې دا واورېدل نو رنګ يې بدل شو او وېي فرمائيل اي زبير دخپل فصل داوبه كولو نه پس اوبه دومره حصاري كړه چې ګيټو ته ورسيږي ،په شروع كې نبي عليه السلام داسي مشوره وركړي وه چې دزبير او انصاري دواړو كار اوشي ليكن چې هغه ورباندي خوشحاله نه شو نو دوباره يې زبير ته داسي حكم اوكړو چې هغه خپل پوره حق وصول كړو ،اګر چې دانصاري په دي كې نقصان وو يعني اولني حكم استحبابي وو او دويم استحقاقي،

دزبير رضي الله عنه بيان دي كله چې انصاري رسول الله لره خفه كړو نو په صراحت سره يې ماته دپوره حق ملاوېدو حكم صادر كړو نو په الله قسم زما خيال دي چې پورتني ايت هم په دي سلسله كې نازل شو .طبراني په كبير كې اوحميدي په مسند كې دام سلمه رضي الله عنها نه روايت بيان كړي دي چې دزبير رضي الله عنه ديوكس سره جګړه اوشوه دواړو خپله معامله نبي عليه السلام ته پيش كړه نونبي عليه السلام دزبير په حق كې فيصله اوكړه نودهغه مخالف اوونيل دزبير په حق كې دي خكه فيصله اوكړه چې هغه ستا دترور خوي دي نو په دي باره كې دا ايت نازل شو.

بغوي ليكلي دي چې ديو انصاري دزبير رضي الله عنه سره جګړه اوشوه دانصاري نوم حاطب بن ابي بلتعه وو . ابن ابي حاتم دسعيد بن مسيب نه روايت بيان كړي دي چې ددي ايت نزول دزبير بن عوام رضي الله عنه او دحاطب بن ابي بلتعه رضي الله عنه متعلق شوي دي داوبو په معامله باندي دواړو جګړه كړي وه اورسول الله فيصله اوكړه چې اول لوړي زمكي ته اوبه وركړئ بيا ژوري زمكي ته.

حَتَّىٰ يُحَكِّمُوكَ فِيمَا شَجَرَ بَيْنَهُمْ . . . ترديچې دخپلو اندروني اختلافاتوفيصله اوحاكم تالره ونه گرځوي ، دشجر نه مراد اختلاف دي وئي ته شجر ځکه ونيلي شي چې خانګونه ئي ديو بل سره لګيدلي وي.

ثُمَّ لَا يَجِدُوا فِي أَنفُسِهِمْ حَرَجًا مِّمَّا قَضَيْتَ . . . اوبيا پخپلوزړونوكي ستاپه فيصلي باندي زړه تنګي اوخفګان محسوس نكړي ، دمجاهد قول دي چې دحرجانه مراد شك دي ، ځكه چې شك كونكي هميشه پخپله معامله كې تنګي محسوسوي.(مظهري)

***************

## ٢٧ــ بَاب مَا جَاءَ فِيمَنْ يُعْتِقُ مَمَالِيكَهُ عِنْدَ مَوْتِهِ وَلَيْسَ لَهُ مَالٌ غَيْرُهُمْ

## چې يوكس دمرګ په وخت كې خپل غلامان ازاد كړي او ده سره ددې غلاما نو نه نورمال نه وي نو څه كول پكار دي

١٣٦٤ــ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ أَبِي قِلَابَةَ، عَنْ أَبِي الْمُهَلَّبِ، عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ، "أَنَّ رَجُلًا مِنَ الْأَنْصَارِ أَعْتَقَ سِتَّةَ أَعْبُدٍ لَهُ عِنْدَ مَوْتِهِ، وَلَمْ يَكُنْ لَهُ مَالٌ غَيْرُهُمْ. فَبَلَغَ ذَلِكَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. فَقَالَ لَهُ قَوْلًا شَدِيدًا. ثُمَّ دَعَاهُمْ فَجَزَّأَهُمْ. ثُمَّ أَقْرَعَ بَيْنَهُمْ. فَأَعْتَقَ اثْنَيْنِ، وَأَرَقَّ أَرْبَعَةً". قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ. وَهُوَ قَوْلُ: مَالِكٍ، وَالشَّافِعِيِّ، وَأَحْمَدَ، وَإِسْحَاق. يَرَوْنَ اسْتِعْمَالَ الْقُرْعَةِ فِي هَذَا وَفِي غَيْرِهِ. وَأَمَّا بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَهْلِ الْكُوفَةِ وَغَيْرِهِمْ. فَلَمْ يَرَوْا الْقُرْعَةَ. وَقَالُوا: يُعْتَقُ مِنْ كُلِّ عَبْدٍ الثُّلُثُ، وَيُسْتَسْعَى فِي ثُلُثَيْ قِيمَتِهِ. وَأَبُو الْمُهَلَّبِ اسْمُهُ: عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ عَمْرٍو الْجَرْمِيُّ وَهُوَ غَيْرُ أَبِي قِلَابَةَ. وَيُقَالُ: مُعَاوِيَةُ بْنُ عَمْرٍو، وَأَبُو قِلَابَةَ الْجَرْمِيُّ: اسْمُهُ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ زَيْدٍ. (١)

**ترجمه** : دعمران بن حصين رضي الله عنه بيان دي چې يو انصاري دمرګ په وخت كې خپل شپږ غلامان ازاد كړل او ده سره ددوئ نه علاوه نور مال نه وو رسول الله صلي الله عليه وسلم ته چې دا خبر اورسيدو نو ددې سړي په حق كې يې سختې خبرې اوكړې او بيا يې دا غلامان راوغوښتل او دوئ يې دوه دوه كړل او درې حصې يې ورنه جوړې كړې خو بيا يې ددوئ په

[1] ــ مسلم ــ الأيمان والنذور ١٧(١٦٦٨). سنن ابي داود ــ العتق ١٠(٣٩٥٨). سنن النسائي ــ الجنائز ٦٥(١٩٥٤). سنن ابن ماجه ــ الأحكام ٢٠(٢٣٤٥). (تحفة الأشراف: ١٠٨٨٠). و احمد في المسند (٤ ــ ٤٢٦، ٤٣١، ٤٤٠)

مینځ کي قرع اندازي اوکړه نو دکومو نومونه چي په قرع کي اوختل هغه يي ازاد کړل او څلور يي دغلامۍ په حال کي پريخودل.
امام ترمذي وائي دعمران بن حصين حديث حسن صحيح دي او دا حديث په نورو سندونو هم دعمران بن حصين نه مروي دي، او په دي باب کي دابوهريره رضي الله عنه نه هم روايت مروي دي په صحابه کرامو او اهل علمو کي دبعضي په دي باندي عمل دي او همدادامام مالك ، شافعي، احمد ، او اسحاق بن راهويه قول هم دي دوئ په نورو مواقعو کي هم قرع اندازي درست ګڼري او په اهل کوفه وغيره بعضي اهل علم قرع اندازي ناجائز ګڼري په دي موقعه کي دوئ وائي چي په هر غلام کي به يوثلث ازاديږي او د دوه ثلثونو دازادئ دقيمت دپاره به په دوئ باندي کسب کولي شي.

## دعمران بن حصين رضي الله عنه دزندګئ حالات

نوم عمران کنيه او ابو نجيد او دپلار نوم يي حصين وو دهجرت په ابتداء کي مسلمان شوی وو (مستدرك حاکم).
په بعضي عزواتو کي يي درسول الله صلي الله عليه وسلم سره ملګرتيا کړي وه او درسول الله په توله زندګئ کي دی په مدينه کي پاتي شوی دی او د وفات نبوي نه پس يي مدينې ته راتلل پريخودل او ګوشه نشيني يي اختيار کړه، د عمرفاروق رضي الله عنه په زمانه کي چي کله بصره اباده شوه نو هلته منتقل شوه او عمرفاروق رضي الله عنه ورته دتعليم خدمت حواله کړو (طبقات ابن سعد).
عمر رضي الله عنه ددور نه پس چي کله جنګونه شروع شول نو ده ورنه خان اوساتلو (الاصابه).
علامه ابن عبدالبر ليکلي دي كان من فضلاء الصحابة وفقهائهم (الاستيعاب).
دحسن بصري قول دی چي دعمران پشان بل بهترين سړی بصري ته نه دی راغلی (استيعاب).
دده په زندګئ کي يو څو خصوصيات وو مثلا احترام رسول داسوه رسول پابندي په عبادت کي رياضت کول باوجود ددي چي دده ذات مرجع الخلائق وو څوك چي به په لاره تيريدل نو دده نه به يي مسائل معلومول.
وفات: داستخساء په مرض مريض شو او هم دي مرض په نتيجه کي په ۵۲هجري کي په بصره کي وفات شو (مستدرك).
مرويات: دده دمروياتو شمير ۱۳۰ د۲ په احاديثو کي به يي ډير زيات احتياط کولو نو څکه يي دمروياتو شمير کم دی چي ۸ دهغي نه متفق عليه دي په بخاري کي څوارلس او نهه په مسلم کي دي.

***************

## ٢٨ـ باب مَا جَاءَ فِيمَنْ مَلَكَ ذَا رَحِمٍ مَحْرَمٍ
## د محرم دمالک کیدو بیان

١٣٦٥ـ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُعَاوِيَةَ الْجُمَحِيُّ الْبَصْرِيُّ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنِ الْحَسَنِ، عَنْ سَمُرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "مَنْ مَلَكَ ذَا رَحِمٍ مَحْرَمٍ فَهُوَ حُرٌّ".
قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ لَا نَعْرِفُهُ مُسْنَدًا إِلَّا مِنْ حَدِيثِ حَمَّادِ بْنِ سَلَمَةَ، وَقَدْ رَوَى بَعْضُهُمْ هَذَا الْحَدِيثَ عَنْ قَتَادَةَ، عَنِ الْحَسَنِ، عَنْ عُمَرَ شَيْئًا مِنْ هَذَا.
حَدَّثَنَا عُقْبَةُ بْنُ مُكْرَمٍ الْعَمِّيُّ الْبَصْرِيُّ، وَغَيْرُ وَاحِدٍ، قَالُوا: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَكْرٍ الْبُرْسَانِيُّ، عَنْ حَمَّادِ بْنِ سَلَمَةَ، عَنْ قَتَادَةَ، وَعَاصِمٍ الْأَحْوَلِ، عَنِ الْحَسَنِ، عَنْ سَمُرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "مَنْ مَلَكَ ذَا رَحِمٍ مَحْرَمٍ فَهُوَ حُرٌّ".
قَالَ أَبُو عِيسَى: وَلَا نَعْلَمُ أَحَدًا ذَكَرَ فِي هَذَا الْحَدِيثِ عَاصِمًا الْأَحْوَلَ، عَنْ حَمَّادِ بْنِ سَلَمَةَ، غَيْرَ مُحَمَّدِ بْنِ بَكْرٍ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا الْحَدِيثِ عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ الْعِلْمِ، وَقَدْ رُوِيَ عَنِ ابْنِ عُمَرَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "مَنْ مَلَكَ ذَا رَحِمٍ مَحْرَمٍ فَهُوَ حُرٌّ". رَوَاهُ ضَمْرَةُ بْنُ رَبِيعَةَ، عَنِ الثَّوْرِيِّ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ دِينَارٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَمْ يُتَابَعْ ضَمْرَةُ عَلَى هَذَا الْحَدِيثِ، وَهُوَ حَدِيثٌ خَطَأٌ عِنْدَ أَهْلِ الْحَدِيثِ. (1)

**ترجمه**: دسمره رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي څوک چي دکوم محرم رشته دار مالك شي نوهغه ازاديږي.
امام ترمذي وائي دا حديث مونږ ته صرف دحماد بن سلمه په روايت مسندا مرفوع رارسيدلي دي او بعضي راويانو ددي حديث څه حصه دقتاده نه اوقتاده دحسن نه اوحسن دعمر رضي الله عنه نه موقوفا نقل کړي دي، اوپه همدي سند هم محمد بن بکر برساني بيان کړي دي هغه دحماد بن سلمه نه او حماد دقتاده او عاصم احول نه اودوئ دواړو دحسن بصري نه او حسن دسمره نه او سمره دنبي کريم صلي الله عليه وسلم نه نقل کړي دي چي فرمائيل يي څوک چي دکوم محرم رشته دار مالك شي نو هغه ازاديږي دارو ايت سمره دربيعه نه او ربيعه دثوري نه نقل کړي دي او هغوئ دعبدالله بن دينار نه او عبدالله دابن عمر نه او ابن عمر دنبي کريم صلي

1 ـ ابي داود ـ العتق ٧ (٣٩٤٩). سنن ابن ماجه ـ العتق ٥ (٢٥٢٤). (تحفة الأشراف: ٤٥٨٥). واحمد في المسند (٥/ ١٥، ٢٠١٨)

الله عليه وسلم نه ددي حديث هم معني روايت بيان كړي دي ، او په دي حديث كي بعضي راويانو دضمره متابعت نه دي كړي او دا سند دمحدثينو په نزد غلط دي.

***************

## ۲۹_ باب مَا جَاءَ فِيمَنْ زَرَعَ فِي أَرْضِ قَوْمٍ بِغَيْرِ إِذْنِهِمْ

### پردئ زمکه کي بغير داجازت نه دفصل كرلو بيان

۱۳٦٦_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا شَرِيكُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ النَّخَعِيُّ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ عَطَاءٍ، عَنْ رَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "مَنْ زَرَعَ فِي أَرْضِ قَوْمٍ بِغَيْرِ إِذْنِهِمْ، فَلَيْسَ لَهُ مِنَ الزَّرْعِ شَيْءٌ وَلَهُ نَفَقَتُهُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ، لَا نَعْرِفُهُ مِنْ حَدِيثِ أَبِي إِسْحَاقَ إِلَّا مِنْ هَذَا الْوَجْهِ مِنْ حَدِيثِ شَرِيكِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ. وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا الْحَدِيثِ عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ الْعِلْمِ، وَهُوَ قَوْلُ: أَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ، وَسَأَلْتُ مُحَمَّدَ بْنَ إِسْمَاعِيلَ عَنْ هَذَا الْحَدِيثِ فَقَالَ: هُوَ حَدِيثٌ حَسَنٌ، وَقَالَ: لَا أَعْرِفُهُ مِنْ حَدِيثِ أَبِي إِسْحَاقَ إِلَّا مِنْ رِوَايَةِ شَرِيكٍ، قَالَ مُحَمَّدٌ: حَدَّثَنَا مَعْقِلُ بْنُ مَالِكٍ الْبَصْرِيُّ، حَدَّثَنَا عُقْبَةُ بْنُ الْأَصَمِّ، عَنْ عَطَاءٍ، عَنْ رَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَهُ. [1]

**ترجمه** : درافع بن خديج رضي الله عنه نه روايت دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي څوك چي دچا زمکه بغير داجازت نه اوکړي نو دده په فصل کي هيڅ نه رسيږي او دي صرف خرچه اخستلي شي.

امام ترمذي وائي داحديث حسن غريب دي او دا مونږ ته صرف په روايت دابواسحاق بن شريك بن عبدالله رارسيدلي دي، او په همدي دبعضو اهل علمو عمل دي او همدا امام احمد او اسحاق بن راهويه قول دي، ما دامام بخاري نه دي حديث باره کي تپوس اوکړو نو هغوئ اوونيل داحديث حسن دي او دا يي هم اوونيل داحديث ماته په روايت دابو اسحاق نه صرف دشريك په سند رارسيدلي دي ، امام بخاري وائي دا حديث مونږ ته معقل بن مالك بصري په سند د عقبه بن الاصم عن عطاء عن رافع بن خديج عن النبي صلي الله عليه وسلم سره بيان كړي دي.

***************

---

[1] _ ابي داود_ البيوع ۳۳ (۳۴۰۳) . سنن ابن ماجه_ الرهون ۱۳ (الأحكام ۷۴) . (۲۴٦٦) . (تحفة الأشراف : ۳۵۷۰) . و احمد في المسند (۳_ ٤٦٥).

## ۳۰_ باب مَا جَاءَ فِي النُّحْلِ وَالتَّسْوِيَةِ بَيْنَ الْوَلَدِ

## په څه شيز ورکولو کې داولاد په مينځ کې دبرابرۍ کولو بيان

۱۳٦۷_ حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ، وَسَعِيدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْمَخْزُومِيُّ الْمَعْنَى وَاحِدٌ، قَالَا: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ حُمَيْدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، وَعَنْ مُحَمَّدِ بْنِ النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيرٍ يُحَدِّثَانِ، عَنِ النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيرٍ، أَنَّ أَبَاهُ نَحَلَ ابْنًا لَهُ غُلَامًا، فَأَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُشْهِدُهُ، فَقَالَ: "أَكُلَّ وَلَدِكَ نَحَلْتَهُ مِثْلَ مَا نَحَلْتَ هَذَا"، قَالَ: لَا، قَالَ: "فَارْدُدْهُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رُوِيَ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ، عَنِ النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيرٍ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ الْعِلْمِ، يَسْتَحِبُّونَ التَّسْوِيَةَ بَيْنَ الْوَلَدِ، حَتَّى قَالَ بَعْضُهُمْ: يُسَوِّي بَيْنَ وَلَدِهِ حَتَّى فِي الْقُبْلَةِ، وَقَالَ بَعْضُهُمْ: يُسَوِّي بَيْنَ وَلَدِهِ فِي النُّحْلِ وَالْعَطِيَّةِ، يَعْنِي: الذَّكَرُ وَالْأُنْثَى سَوَاءٌ، وَهُوَ قَوْلُ: سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ، وَقَالَ بَعْضُهُمْ: التَّسْوِيَةُ بَيْنَ الْوَلَدِ أَنْ يُعْطَى الذَّكَرُ مِثْلَ حَظِّ الْأُنْثَيَيْنِ مِثْلَ قِسْمَةِ الْمِيرَاثِ وَهُوَ قَوْلُ: أَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ.[1]

**ترجمه** : دنعمان بن بشير رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چي دنعمان پلار بشير خپل يوځوي ته يو غلام ورکړو او هغه دنبي کريم صلي الله عليه وسلم په خدمت کي حاضرشو ترڅو چي رسول الله په دي باندي ګواه کړي رسول الله ددوئ نه تپوس اوکړو ايا تا خپلو ټولو ځامنو ته همداسي يو يو غلام ورکړي دي څنګه چي دي ده ته ورکړي دي؟ هغه اووئيل نه رسول الله اوفرمائيل دا ورنه واپس واخله.

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي او دا په نورو سندونو هم دنعمان بن بشير رضي الله عنه نه مروي دي او دبعضي اهل علمو په دي باندي عمل هم دي او ددوئ په نزد داولاد په مينځ کي مساوات کول مستحب دي تردي پوري چي بعضي علماؤ وئيلي دي چي په ښکلولو کي هم داولاد په مينځ کي برابرۍ کول پکار دي، او بعضي اهل علم وائي چي د اولاد مينځ کي يعني دلونړو او ځامنو مينځ کي هم برابري کول پکار دي او همدا دسفيان ثوري قول دي او

[1] _ البخاري_ الهبة ۱۲ (۲۵۸٦) . والشهادات ۹ (۲٦۵۰) . صحيح مسلم_ الهبات ۳ (۱٦۲۳) . سنن ابي داود_ البيوع ۸۵ (۳۵۴۲) . سنن النسائي_ النخل ۱ (۳۷۰۲) . ۳۷۰۳) . . ۳۷۰۴. ۳۷۱۲. ۳۷۰۹) سنن ابن ماجه_ الهبات ۱ (الأحكام ) (د ۲۳۷۵ ۲۳۷٦) . (تحفة الأشراف : ۱۱٦۱۷ و ۱۱٦۳۸) . و موطا امام مالک_ الأقضية ۳۳ (۳۹) . و احمد في المسند (۴_ ۲٦۸. ۲٦۹. ۲۷۰. ۲۷٦)

بعضي اهل علم وائي داولاد په مينځ کي دبرابري مطلب دادي چي دميراث پشان هلکانو ته دجينئ دحصي په ډبل حصه ورکړي شي.

## د نعمان بن بشير رضي الله عنه حالات:

نوم نعمان کنيه ابو عبدالله او دپلار نوم يي بشير وو نعمان بلند پايه صحابي وو دده مور دعبدالله بن رواحه خور وه دهجرت نه پس په انصارو کي دټولو نه مخکي دده پيدائش شوی وو او بيا شپږمياشتي پس عبدالله بن زبير پيدا شو چي لږ هوښيار شو نو دمنبر نبوي سره به نژدي کيناستو او وعظ نصيحت به يي اوريدلو(مسند احمد).

دهجرت په ۵۹کال کي امير معايه دکوفي حاکم مقرر کړو او بيا دحمص امير مقرر شو دده په باره کي صاحب دفحري ليکلي دي کان حليما ناسکا يحب العافية، يعني دی ډير صبرناك عابد او عافيت پسند انسان وو.

وفات: دهجرت په ۶۵ کال دحمص علاقه بيران نومي کلي کي وفات شو او پدغه وخت کي دابن زبير او مروان جنګ جاري وو په کوم کي چي ده دزبير ملګرتياکړي وه نو په دي وجه دمروان کسانو دی قتل کړو او دده سر يي کټ کړو دده ښځي دده سر پخپله غيږ کي کيخودو او پدغه وخت کي دده عمر ۶۴کلونه وو (استيعاب).

دده دمرویاتو شمير ۱۲۴ دی چي پنځه متفق عليه دي يو په بخاري کي او څلور په مسلم کي.

***************

## ۳۱_ بَاب مَا جَاءَ فِي الشُّفْعَةِ

### دشفعي بيان

۱۳۶۸_ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ ابْنُ عُلَيَّةَ، عَنْ سَعِيدٍ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنِ الْحَسَنِ، عَنْ سَمُرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " جَارُ الدَّارِ أَحَقُّ بِالدَّارِ ". قَالَ: وَفِي الْبَاب، عَنِ الشَّرِيدِ، وَأَبِي رَافِعٍ، وَأَنَسٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ سَمُرَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَرَوَى عِيسَى بْنُ يُونُسَ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي عَرُوبَةَ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَنَسٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِثْلَهُ، وَرُوِيَ عَنْ سَعِيدٍ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنِ الْحَسَنِ، عَنْ سَمُرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالصَّحِيحُ عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ حَدِيثُ الْحَسَنِ، عَنْ سَمُرَةَ، وَلَا نَعْرِفُ حَدِيثَ قَتَادَةَ، عَنْ أَنَسٍ، إِلَّا مِنْ حَدِيثِ عِيسَى بْنِ يُونُسَ، وَحَدِيثُ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ الطَّائِفِيِّ، عَنْ عَمْرِو بْنِ الشَّرِيدِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي هَذَا الْبَابِ، هُوَ حَدِيثٌ حَسَنٌ، وَرَوَى إِبْرَاهِيمُ بْنُ مَيْسَرَةَ، عَنْ

عَمْرِو بْنِ الشَّرِيدِ، عَنْ أَبِي رَافِعٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. قَالَ: سَمِعْتُ مُحَمَّدًا يَقُولُ: كِلَا الحَدِيثَيْنِ عِنْدِي صَحِيحٌ. [1]

**ترجمه** : دسمره رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي ديو كور گاونډي ددي داخستلو زيات حقدار دي.

امام ترمذي وائي دسمره حديث حسن صحيح دي، او عيسي بن يونس دسعيد بن ابي عروبه نه او هغه دقتاده نه او قتاده دانس نه او انس دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه ددي هم معني روايت نقل كړي دي همدا رنګي سعيد بن ابي عروبه نه مروي دي او هغه دقتاده نه نقل كوي او هغه دحسن نه او حسن دسمره نه او سمره دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه هم دا روايت نقل كړي دي، په دي باب كي دشريد، ابورافع، او انس رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي خو داهل علمو په نزد دحسن هغه حديث صحيح دي كوم چي دسمره نه مروي دي او مونږ ته دقتاده حديث كوم چي دانس نه نقل كوي صرف دعيسي بن يونس په سند رارسيدلي دي او دعبدالله بن عبدالرحمن الطائفي حديث كوم چي هغه دعمرو بن شريد او عمرو دخپل پلار او دده پلار دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه نقل كړي دي دا په دي باب كي حسن حديث دي، او ابراهيم بن ميسره دعمرو بن شريد نه او عمرو دابورافع نه او ابورافع دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه روايت بيان كړي دي، امام ترمذي وائي ما دامام بخاري نه اوريدلي دي فرمائيل يي چي زما په نزد دا دواړه احاديث صحيح دي.

**تشريح**: شفعه د شفع نه مشتق ده او شفع ملاوولو ته وائي او شفعي ته شفعة ددي وجي وايي چي په شفع كي مشتراة ضم كوي د زمكي وغيره سره.

د شفعي اصطلاحي تعريف دادي ((هي تملك البقعة بما قام على المشتري بالشركة أو الجوار)).

كومو كسا نوته چي شفعة ملاويږی داداتصال په بنا ملاويږی اوپه اتصال كي درې فريق شامل دی ، اوددوئ داستحقاق ترتيب هم دلاندني ترتيب مطابق دی:

(۱) چي په عين مبيع كي شريك وی.

(۲) شركت وو اواوس تقسيم شوې دې،البته په اوبواو لاره كي شركت باقی دې.

(۳) ګاونډی توب.

***************

[1] ـ ابي داود ـ البيوع ۷۵ (۳۵۷۱) . (تحفة الأشراف : ۴۵۸۸) و احمد في المسند (۵ـ ۱۲. ۱۳. ۱۸)

## ٣٢_ باب مَا جَاءَ فِي الشُّفْعَةِ لِلْغَائِبِ

## دغائب (غير موجود) كس دشفعي بيان

١٣٦٩_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ عَبْدِ اللهِ الوَاسِطِيُّ، عَنْ عَبْدِ المَلِكِ بْنِ أَبِي سُلَيْمَانَ، عَنْ عَطَاءٍ، عَنْ جَابِرٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " الجَارُ أَحَقُّ بِشُفْعَتِهِ يُنْتَظَرُ بِهِ وَإِنْ كَانَ غَائِبًا إِذَا كَانَ طَرِيقُهُمَا وَاحِدًا ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ، وَلَا نَعْلَمُ أَحَدًا رَوَى هَذَا الحَدِيثَ غَيْرَ عَبْدِ المَلِكِ بْنِ أَبِي سُلَيْمَانَ، عَنْ عَطَاءٍ، عَنْ جَابِرٍ، وَقَدْ تَكَلَّمَ شُعْبَةُ فِي عَبْدِ المَلِكِ بْنِ أَبِي سُلَيْمَانَ، مِنْ أَجْلِ هَذَا الحَدِيثِ، وَعَبْدُ المَلِكِ: هُوَ ثِقَةٌ مَأْمُونٌ عِنْدَ أَهْلِ الحَدِيثِ، وَلَا نَعْلَمُ أَحَدًا تَكَلَّمَ فِيهِ غَيْرَ شُعْبَةَ، مِنْ أَجْلِ هَذَا الحَدِيثِ، وَقَدْ رَوَى وَكِيعٌ، عَنْ شُعْبَةَ، عَنْ عَبْدِ المَلِكِ بْنِ أَبِي سُلَيْمَانَ، هَذَا الحَدِيثَ، وَرُوِيَ عَنِ ابْنِ المُبَارَكِ، عَنْ سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ، قَالَ عَبْدُ المَلِكِ بْنُ أَبِي سُلَيْمَانَ: مِيزَانٌ يَعْنِي: فِي العِلْمِ وَالعَمَلُ عَلَى هَذَا الحَدِيثِ عِنْدَ أَهْلِ العِلْمِ أَنَّ الرَّجُلَ أَحَقُّ بِشُفْعَتِهِ، وَإِنْ كَانَ غَائِبًا فَإِذَا قَدِمَ فَلَهُ الشُّفْعَةُ وَإِنْ تَطَاوَلَ ذَلِكَ. (¹)

**ترجمه** : دجابررضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي يو ګاونډي دبل ګاونډي دشفعي زيات حقدار دي خو چي لاره ددواړو يوه وي او دده انتظار کول به ضروري وي اګر که دي موجود نه وي.

امام ترمذي وائي داحديث غريب دي او دا مونږ ته صرف د عبدالملك بن سليمان په سند رارسيدلي دي کوم چي هغه دعطاء نه او عطاء دجابر نه نقل کړي دي، او شعبه په عبدالملك بن سليمان دهمدي حديث په وجه کلام کړي دي عبدالملك دمحدثينو په نزد ثقه او مامون دي دشعبه نه علاوه مونږ ته بل څوك داسي نه دي معلوم چي په عبدالملك يي کلام کړي وي او شعبه ورباندي هم صرف ددي حديث په وجه کلام کړي دي ، وکيع هم دا حديث دشعبه نه او شعبه دعبدالملك بن ابي سليمان نه نقل کړي دي او ابن مبارك دسفيان ثوري نه روايت نقل کړي دي چي هغوئ ونيل عبدالملك بن سفيان ميزان دي يعني په علم کي، او داهل علمو په همدي حديث عمل دي چي بنده دخپلي شفعي زيات حقدار دي اګر که هغه غائب ولي نه وي کله چي دسفر وغيره نه واپس راشي نو ده ته به شفع ملاويږي اګر که په دي باندي اوږده زمانه تيره شوي وي.

---

¹ _ ابي داود_ البيوع ٧٥ (٣٥١٨) . سنن ابن ماجه_ الشفعة ٢ (٢٤٩٣) . (تحفة الأشراف : ٢٤٣٣) . و احمد في المسند (٣_٣٠٣)

**تشريح:** څوشفعاء دی،خو په هغو کي څه غائب دي او څه موجود دی نود موجودو په حق کي په قاضی د هغوی په مطالبه باندی فیصله کوی اود غائب به څه خیال نه ساتی بلکه د موجودینو په حق کي د سرو نو په شمارمطابق تقسیم کولې شی،د غائب د خیال نه ساتلو وجه دا ده چي کیدي شی،هغه د شفعة مطالبه اونکړی، قاضی به اول د غایب څه خیال نه ساتی،خو که د فیصلې نه پس هغه راغلو اود شفعة مطالبه ئې اوکړله حالانکه د یو موجود دپاه قاضی د ټولې شفعة فیصله کړې وه نواوس به قاضی د راتلونکی دپاره د نصف فیصله کوی او که چرې دریم بم راغلواو هغه هم د شفعه مطالبه اوکړله نود دواړو په قبضه کي چي څه وی نوپه هغې کي به هر یو ته قاضی ثلث ورکړی ځکه چي په دې صورت کي به په دري واړو کي مساوات کولې شی، حاضر شفیع د شفعة دعوه وکړله او قاضی د ټولې شفعې د هغه په حق کي فیصله اوکړه،خو حاضر شفیع وانه خستله او بیا غایب شفیع راغلواو شفعه طلبوی نوهغه ته به پوره نه ملاویږی بلکه د هغې د نصف به ورته ملاویږی ځکه چي کله قاضی د حاضر دپاره د ټولې فیصله اوکړله،خو هغه وانه خستله نود قاضی فیصلې د راتلونکی دپاره نیم حق ساقط کړې دې او که چرې اوسه پورې قاضی لا فیصله نه وی کړې اوپه دې کي غائب راغلو نوپوره شفعه به هغه ته ملاویږی.بهر حال د قاضی د فیصلې نه مخکښ نصف نه ساقطیږی.

****************

## ٣٣ـ بَابُ مَا جَاءَ إِذَا حُدَّتِ الْحُدُودُ وَوَقَعَتِ السِّهَامُ فَلاَ شُفْعَةَ

### کله چي حدبندي اوکړې شي او حصې تقسیم کړې شي نوشفعه نشته

١٣٧٠ـ حَدَّثَنَا عَبْدُ بْنُ حُمَيْدٍ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " إِذَا وَقَعَتِ الْحُدُودُ، وَصُرِّفَتِ الطُّرُقُ، فَلَا شُفْعَةَ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رَوَاهُ بَعْضُهُمْ مُرْسَلًا. عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْهُمْ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ، وَعُثْمَانُ بْنُ عَفَّانَ، وَبِهِ يَقُولُ بَعْضُ فُقَهَاءِ التَّابِعِينَ، مِثْلَ عُمَرَ بْنِ عَبْدِ الْعَزِيزِ، وَغَيْرِهِ، وَهُوَ قَوْلُ: أَهْلِ الْمَدِينَةِ مِنْهُمْ يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ الْأَنْصَارِيُّ، وَرَبِيعَةُ بْنُ أَبِي عَبْدِ الرَّحْمَنِ، وَمَالِكُ بْنُ أَنَسٍ، وَبِهِ يَقُولُ الشَّافِعِيُّ، وَأَحْمَدُ، وَإِسْحَاق: لَا يَرَوْنَ الشُّفْعَةَ إِلَّا لِلْخَلِيطِ، وَلَا يَرَوْنَ لِلْجَارِ شُفْعَةً إِذَا لَمْ يَكُنْ خَلِيطًا. وَقَالَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ: الشُّفْعَةُ لِلْجَارِ، وَاحْتَجُّوا

بِالْحَدِيثِ الْمَرْفُوعِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: " جَارُ الدَّارِ أَحَقُّ بِالدَّارِ ". وَقَالَ: " الْجَارُ أَحَقُّ بِسَقَبِهِ ". وَهُوَ قَوْلُ: الثَّوْرِيِّ، وَابْنِ الْمُبَارَكِ، وَأَهْلِ الْكُوفَةِ. ([1])

**ترجمه** دجابر بن عبدالله رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي كله چي حدبندي اوکړي شي او لاري جدا کړي شي نو شفعه ختمه شوه.

امام ترمذي وائي داحديث حسن صحيح دي داحديث بعضي راويانو دابو سلمه نه او هغوئ دنبي کريم صلي الله عليه وسلم نه مرسل نقل کړي دي په صحابه کرامو او اهل علمو کي دبعضو په کومو کي چي عمر بن الخطاب او عثمان بن عفان رضي الله عنهما هم شامل دي په همدي باندي عمل دي او بعضي فقهاء لکه عمر بن عبدالعزيز وغيره هم ددي قائل دي او همدا داهل مدينه قول شو په کومو کي چي يحیٰ بن سعيد انصاري، ربيعه بن ابوعبدالرحمن، او مالک بن انس، او شافعي، او احمد بن حنبل او اسحاق بن راهويه رحمهم الله هم شامل دي هم ددي قائل دي دوئ صرف دکور دګاونډي دپاره دشفعي دحق قائل دي او کله چي ګاونډي په کور کي شريک نه وي نو دده دپاره دشفعي دحق قائل نه وي په صحابه کرامو کي بعضي اهل علم وائي چي دګاونډي دپاره هم شفعه شته او دوئ دمرفوع حديث نه استدلال کړي دي په کوم کي چي نبي کريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي ديو کور ګاونډي ددي زيات حقدار دي ، همدا رنګي فرمائي چي يوګاونډي دخان سره دجوختي زمکي ياکور زيات حقدار دي او همدا د سفيان ثوري، ابن مبارک، او اهل کوفه قول هم دي.

**************

## ٣٤ـ بَاب مَا جَاءَ أَنَّ الشَّرِيكَ شَفِيعٌ

### شريک ته هم دشفعي حق حاصل دي

١٣٧١ـ حَدَّثَنَا يُوسُفُ بْنُ عِيسَى، حَدَّثَنَا الْفَضْلُ بْنُ مُوسَى، عَنْ أَبِي حَمْزَةَ السُّكَّرِيِّ، عَنْ عَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ رُفَيْعٍ، عَنِ ابْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " الشَّرِيكُ شَفِيعٌ، وَالشُّفْعَةُ فِي كُلِّ شَيْءٍ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ لَا نَعْرِفُهُ مِثْلَ هَذَا إِلَّا مِنْ حَدِيثِ أَبِي حَمْزَةَ السُّكَّرِيِّ، وَقَدْ رَوَى غَيْرُ وَاحِدٍ هَذَا الْحَدِيثَ، عَنْ عَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ رُفَيْعٍ، عَنِ ابْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُرْسَلًا وَهَذَا أَصَحُّ. حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرِ بْنُ

---

[1] ـ البخاري ـ البيوع ٩٦ (٢٢١٣)، و٩٧ (٢٢١٤)، والشفعة ١ (٢٢٥٧)، والشركة ٨ (٢٤٩٥)، والحيل ١٤ (٦٩٧٦)، سنن ابي داود ـ البيوع ٧٥ (٣٥١٤)، سنن ابن ماجه ـ الشفعة ٣ (٢٤٩٧)، (تحفة الأشراف: ٣١٥٣)، واحمد في المسند (٣ـ٢٩٦)

عَيَّاشٍ، عَنْ عَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ رُفَيْعٍ، وعَنِ ابْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَهُ بِمَعْنَاهُ، وَلَيْسَ فِيهِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، وَهَكَذَا رَوَى غَيْرُ وَاحِدٍ عَنْ عَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ رُفَيْعٍ، مِثْلَ هَذَا لَيْسَ فِيهِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، وَهَذَا أَصَحُّ مِنْ حَدِيثِ أَبِي حَمْزَةَ، وَأَبُو حَمْزَةَ ثِقَةٌ، يُمْكِنُ أَنْ يَكُونَ الْخَطَأُ مِنْ غَيْرِ أَبِي حَمْزَةَ. حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا أَبُو الأَحْوَصِ، عَنْ عَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ رُفَيْعٍ، عَنِ ابْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَ حَدِيثِ أَبِي بَكْرِ بْنِ عَيَّاشٍ، وقَالَ أَكْثَرُ أَهْلِ الْعِلْمِ: إِنَّمَا تَكُونُ الشُّفْعَةُ فِي الدُّورِ وَالأَرَضِينَ، وَلَمْ يَرَوْا الشُّفْعَةَ فِي كُلِّ شَيْءٍ، وَقَالَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ: الشُّفْعَةُ فِي كُلِّ شَيْءٍ، وَالْقَوْلُ الاول أَصَحُّ. [1]

**ترجمه** : دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي ديو كورګاونډي ته دشفعي حق حاصل دي او شفعه په هر يو څيز کي شته.

امام ترمذي وائي مونږ ته دا حديث همداسي مرفوعا صرف ابوحمزه سکري بيان کړي دي او دا حديث بعضي راويانو دعبدالعزيز بن رفيع نه او هغه دابن ابي مليکه نه او هغه دنبي کريم صلي الله عليه وسلم نه مرسل نقل کړي دي او همدا سند زيات صحيح دي، په دي سند کي هناد دابوبکر بن عياش نه او هغه دعبدالعزيز بن رفيع نه او هغه دابن ابي مليکه نه او هغه دنبي کريم صلي الله عليه وسلم نه ددي هم مغني روايت نقل کړي دي او په دي سند کي دابن عباس واسطه نشته دارنګي نورو راويانو دعبدالعزيز بن رفيع نه ددي هم معني روايت نقل کړي دي او په دي سند کي هم دابن عباس واسطه نشته، او دابو حمزه داحديث دمرفوع حديث نه زيات صحيح دي ، ابوحمزه ثقه دي ، ممکن ده چي دا خطاء دابوحمزه نه علاوه دبل چانه شوي وي ، په دي سند کي هناد دابوالاحوص نه او هغه دعبدالعزيز بن رفيع نه او هغه دابي مليکه نه او هغه دنبي کريم صلي الله عليه وسلم نه دابوبکر بن عياش دحديث هم معني روايت بيان کړي دي، اکثر اهل علم وائي چي دشفعي نفاذ صرف په کور او زمکه کي کيږي او ددوئ په نزد په هر يو څيز کي شفعه نشته او بعضي اهل علم وائي شفعه په هر يو څيز کي شته ليکن اولني قول زيات صحيح دي.

****************

## ٣٥_ بَاب مَا جَاءَ فِي اللُّقَطَةِ وَضَالَّةِ الإِبِلِ وَالْغَنَمِ

### دورک شوو څيزونو او ورک شوو اوښانو او چيلوګډو بيان

[1] _ تفرد بذكره المؤلف (تحفة الأشراف: ٥٧٩٥)

۱۳۷۲ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ. حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ جَعْفَرٍ، عَنْ رَبِيعَةَ بْنِ أَبِي عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ يَزِيدَ مَوْلَى الْمُنْبَعِثِ، عَنْ زَيْدِ بْنِ خَالِدٍ الْجُهَنِيِّ، أَنَّ رَجُلًا سَأَلَ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ اللُّقَطَةِ، فَقَالَ: "عَرِّفْهَا سَنَةً، ثُمَّ اعْرِفْ وِكَاءَهَا، وَوِعَاءَهَا، وَعِفَاصَهَا، ثُمَّ اسْتَنْفِقْ بِهَا فَإِنْ جَاءَ رَبُّهَا فَأَدِّهَا إِلَيْهِ". فَقَالَ لَهُ: يَا رَسُولَ اللهِ، فَضَالَّةُ الْغَنَمِ؟ فَقَالَ: "خُذْهَا فَإِنَّمَا هِيَ لَكَ أَوْ لِأَخِيكَ أَوْ لِلذِّئْبِ". فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللهِ، فَضَالَّةُ الإِبِلِ؟ قَالَ: فَغَضِبَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتَّى احْمَرَّتْ وَجْنَتَاهُ، أَوِ احْمَرَّ وَجْهُهُ، فَقَالَ: "مَا لَكَ وَلَهَا مَعَهَا حِذَاؤُهَا، وَسِقَاؤُهَا، حَتَّى تَلْقَى رَبَّهَا". حَدِيثُ زَيْدِ بْنِ خَالِدٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رُوِيَ عَنْهُ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ، وَحَدِيثُ يَزِيدَ مَوْلَى الْمُنْبَعِثِ، عَنْ زَيْدِ بْنِ خَالِدٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رُوِيَ عَنْهُ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ، قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ، وَعَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو، وَالْجَارُودِ بْنِ الْمُعَلَّى، وَعِيَاضِ بْنِ حِمَارٍ، وَجَرِيرِ بْنِ عَبْدِ اللهِ. [1]

**ترجمه**: دزيد بن خالد جهني رضي الله عنه بيان دي فرمائي چي يو كس درسول الله صلي الله عليه وسلم نه دلقطه (ورك شوي څيز) باره كي تپوس اوكړو رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل ديو كال پوري خلقو سره ددي څيز مذاكره كوه او بيا ددي سر بند كړه او لوښي او بوجهئ وغيره يي اوپيژنه او بيا دي لره خرخ كړه او كه مالك يي راشي نو هغه ته يي وركړه دي كس عرض اوكړو اي دالله رسوله د وركي شوي چيلئ څه حكم دي؟ رسول الله اوفرمائيل ويي نيسه او بيا يي اوتړه خكه چي دا ستا دپاره ده او يا ستا د ورور دپاره ده او يا دشرمخ دپاره ده دي كس عرض اوكړو اي دالله رسوله دورك شوي اوښ څه حكم دي ددي خبري په اوريدو رسول الله خفګان ښكاره كړو تردي پوري چي دمخ مبارك رنګ يي سور او زيړ شو او بيا يي اوفرمائيل ستا ورسره څه كار دي دده سره خو خپل مشك او خپل پيزار دي (اوبو ته ورتلي شي او دونو نه خوراك كولي شي تردي پوري چي خپل مالك سره به ملاؤ شي.

امام ترمذي واني دزيد بن خالد حديث حسن صحي دي او دهغه نه دا په نورو سندونو هم مروي دي دمنبعث مولي ديزيد حديث كوم چي هغه دزيد بن خالد نه نقل كړي دي حسن صحيح دي او دهغه نه دا حديث په نورو سندونو هم مروي دي.

---

[1] ـ البخاري ـ العلم ۲۸ (۹۱) . والشرب والمساقاة ۱۲ (۲۳۷۲) . واللقطه ۲ (۲۴۲۷) . صحيح مسلم ـ اللقطة ۱ (۱۷۲۲) . سنن ابي داود اللقطة ۱ (۱۷۰۴/۱۷۰۸) . سنن ابن ماجه ـ اللقطة ۱ (۲۵۰۴) . (تحفة الأشراف : ۳۷۶۳) . والمؤطاء الأقضية ۳۸ (۴۶) . واحمد في المسند (۴ـ ۱۱۵)

**تشریح**: په مذکوره حدیث کې د ورک شوي څیز د حفاظت او خپل مالک ته ددې رسولو بیان شوی دی، چې داد موندونکي ذمه واري ده خو بل طرف ته ددې د لټولو مسئله ده چې ددې مالك به ددې لټون او تلاش څنګه کوي بعضې خلق دا غلطې کوي چې په مسجدو کې ددې اعلانات کوي نو دا ډیر بد او خلاف شریعت کار دی اود مسجد بې ادبي ده ، په دې سلسله مسلم د ابو هریره رضي الله عنه نه روایت نقل کړی دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلي دي څوك چې په جمات کې ورك څیز دپاره اعلان کوي ورته اووائي خدای پاك دې درته واپس درنه کړي ځکه چې جماتونه دی کار دپاره نه دي جوړ ،جماتونه خو دالله دذکر اوعبادت دپاره جوړ دي.

صاحب دسبل السلام لیکلي دي والحدیث دلیل علی تحریم السوال عن ضالة الحیوان. دپورتني حدیث نه معلومیږي چې ورك شوی څیز په مسجد کې لټول یا ددې دپاره اعلان کول مکروه تحریمي دي.

مولانا محمد یوسف بنوري وائي واما انشاد الضالة فلها صورتان احدهما هي اقبح واشنع بان یضل شئ خارج المسجد ثم ینشد في المسجد لاجتماع الناس فیه والثانیة ان یضل في المسجد نفسه فینشده فیه وهذ یجوز اذا کان من غیر لغط وشغب الخ.

یعني د ورك شوي څیز دوه صورتونه دي په دې دواړو کې زیات قبیح او مذموم صورت هغه دی چې یو شئ دمسجد نه بهر ورك شوی وي او دخلقو دراټولیدو په وجه په مسجد کې دهغې دپاره اعلان اوکړی شي دویم صورت دادی چې څیز په مسجد کې دننه ورك شوی وي او بیا ددې دلټول دپاره اعلان په مسجد کې وکړی شي دا دویم صورت به جائز وي خو په دې شرط چې کله د مسجد احترام خیال اوساتي او شور او غوغا جوړه نکړي.

لا ردها الله علیك: الله دي درته پیدا نکړي علماء وائي چې اوریدونکي به دا جمله په تیزه وائي ددې دپاره چې دی ورټلی شي او دده دپاره عبرت اوګرځي او دخپل نامناسبه کار سزا اومومي او بیا چرته داسي حرکت کولو جرئت اونکړي

****************

۱۳۷۳ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ. حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرٍ الْحَنَفِيُّ. أَخْبَرَنَا الضَّحَّاكُ بْنُ عُثْمَانَ. حَدَّثَنِي سَالِمٌ أَبُو النَّضْرِ. عَنْ بُسْرِ بْنِ سَعِيدٍ، عَنْ زَيْدِ بْنِ خَالِدٍ الْجُهَنِيِّ. أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سُئِلَ عَنِ اللُّقَطَةِ. فَقَالَ: " عَرِّفْهَا سَنَةً فَإِنِ اعْتُرِفَتْ فَأَدِّهَا، وَإِلَّا فَاعْرِفْ وِعَاءَهَا، وَعِفَاصَهَا، وَوِكَاءَهَا، وَعَدَدَهَا. ثُمَّ كُلْهَا. فَإِذَا جَاءَ صَاحِبُهَا فَأَدِّهَا" . قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ زَيْدِ بْنِ خَالِدٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ

صَحِيحٌ غَرِيبٌ مِنْ هَذَا الوَجْهِ. أَصَحُّ شَيْءٍ فِي هَذَا البَابِ هَذَا الحَدِيثُ. وَالعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ العِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ. وَرَخَّصُوا فِي اللُّقَطَةِ إِذَا عَرَّفَهَا سَنَةً. فَلَمْ يَجِدْ مَنْ يَعْرِفُهَا أَنْ يَنْتَفِعَ بِهَا. وَهُوَ قَوْلُ: الشَّافِعِيِّ، وَأَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ. وقَالَ بَعْضُ أَهْلِ العِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ: يُعَرِّفُهَا سَنَةً. فَإِنْ جَاءَ صَاحِبُهَا وَإِلَّا تَصَدَّقَ بِهَا. وَهُوَ قَوْلُ: سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ، وَعَبْدِ اللهِ بْنِ المُبَارَكِ. وَهُوَ قَوْلُ: أَهْلِ الكُوفَةِ. لَمْ يَرَوْا لِصَاحِبِ اللُّقَطَةِ أَنْ يَنْتَفِعَ بِهَا إِذَا كَانَ غَنِيًّا. وقَالَ الشَّافِعِيُّ: يَنْتَفِعُ بِهَا وَإِنْ كَانَ غَنِيًّا. لِأَنَّ أُبَيَّ بْنَ كَعْبٍ أَصَابَ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صُرَّةً فِيهَا مِائَةُ دِينَارٍ. فَأَمَرَهُ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يُعَرِّفَهَا، ثُمَّ يَنْتَفِعَ بِهَا. وَكَانَ أُبَيٌّ كَثِيرَ المَالِ، مِنْ مَيَاسِيرِ أَصْحَابِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. فَأَمَرَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يُعَرِّفَهَا. فَلَمْ يَجِدْ مَنْ يَعْرِفُهَا. فَأَمَرَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يَأْكُلَهَا. فَلَوْ كَانَتِ اللُّقَطَةُ لَمْ تَحِلَّ إِلَّا لِمَنْ تَحِلُّ لَهُ الصَّدَقَةُ. لَمْ تَحِلَّ لِعَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ. لِأَنَّ عَلِيَّ بْنَ أَبِي طَالِبٍ أَصَابَ دِينَارًا عَلَى عَهْدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَعَرَّفَهُ. فَلَمْ يَجِدْ مَنْ يَعْرِفُهُ. فَأَمَرَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِأَكْلِهِ. وَكَانَ لَا يَحِلُّ لَهُ الصَّدَقَةُ. وَقَدْ رَخَّصَ بَعْضُ أَهْلِ العِلْمِ إِذَا كَانَتِ اللُّقَطَةُ يَسِيرَةً أَنْ يَنْتَفِعَ بِهَا. وَلَا يُعَرِّفَهَا وقَالَ بَعْضُهُمْ: إِذَا كَانَ دُونَ دِينَارٍ يُعَرِّفُهَا قَدْرَ جُمْعَةٍ. وَهُوَ قَوْلُ: إِسْحَاقَ بْنِ إِبْرَاهِيمَ. (1)

**ترجمه** دزيد بن خالد رضي الله عنه بيان دي چي دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه دلقطه (پريوتول او ورك شوو څيزونو) باره كي تپوس اوكړي شو نو ويې فرمائيل پوره يو كال ددي اعلان كوه كه څوك يې نخه وښايي نو ورته ورېي كړه كنه نو ددي سر بند ساته او بيا يې اوخوره او كه مالك يې راشي نو هغه ته يې وركړه.

امام ترمذي وائي دزيد بن خالد حديث په دي سند حسن غريب دي ، امام احمد بن حنبل وائي دا په دي باب كي دټولو نه زيات صحيح حديث دي او دا حديث دزيد بن ثابت نه په نورو سندونو هم مروي دي په صحابه كرامو كي دبعضي اهل علمو په دي باندي عمل هم دي دوئ دلقطه نه فائده اخستل جائز ګڼړي خو دا هغه وخت كي كله چي ديو كال پوري ددي اعلان اوشي او څوك پيژندونكي يې ملاؤ نشي، امام شافعي او احمد او اسحاق هم په دي باندي قول كړي دي مګر په صحابه كرامو كي بعضي اهل علم وائي چي دي به يو كال پوري ددي اعلان كوي كه مالك يې راشي خو ټهيك ده او كه رانشي نو دادي صدقه كړي سفيان ثوري او عبدالله

1 _ انظر ماقبله (تحفة الأشراف: ٣٧٤٨)

بن مبارك هم په دي باندي قول کړي دي اودا داهل کوفه قول هم دي، کله چي لقطه پورته کونکي مالدار وي نو دوئ دده دپاره ددينه فائده اخستل جائز نه ګنړي امام شافعي وائي چي ددينه فائده اخستلي شي اګر که مالدار هم وي ځکه چي د رسول الله صلي عليه وسلم په زمانه کي اوبئ بن کعب يوه ګوتئ موندلي وه چي سل دينار پکي موجودوو رسول الله ورته حکم اوکړو چي ددي اعلان اوکړه او بيا ورنه فائده واخله ابئ بن کعب په صحابه کرامو کي داسوده زندګئ والاوو او ډير مالدار وو بياورته رسول الله صلي الله عليه وسم ددي داعلان کولو حکم اوکړو او چي کله ددي څوك پيژندونکي رانغلو نو بيا يي ده ته ددي دخوړلو حکم اوکړو (دويمه خبره داده) که لقطه صرف دهغه چاډپاره جائز وي چالره چي صدقه اخستل جائز دي نو دا به دعلي رضي الله عنه دپاره جائز نه وه ځکه چي علي رضي الله عنه دنبي کريم صلي الله عليه وسلم په زمانه کي يودينار موندلي وو او ديو کال پوري يي ددي اعلان اوکړو ليکن ددي دنخي خودلو والاڅوك پيدانشو نبي کريم صلي الله عليه وسلم ورته ددي دخوړلو حکم اوکړو او حال دادي چي دهغوئ دپاره صدقه خوړل جائز نه دي، بعضي اهل علمو دلقطي دخوړلو اجازت ورکړي دي خو دا هغه وخت کي چي کله دا معمولي څيز وي نو پورته کونکي ورنه فائده اخستلي شي او ددي مشهورتيا کول ضروري نه دي، بعضي اهل علم وائي کله چي لقطه ديو دينار نه زياته وي نو دي به ددي يوه هفته اعلان کوي او دا داسحاق بن ابراهيم بن راهويه قول دي، او په دي باب کي دابئ بن کعب ، عبدالله بن عمرو، جارود بن معلي، او جرير بن عبدالله رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي.

## دزيد بن خالد رضي الله عنه حالات

نوم زيد کنيه ابو عبدالرحمان دپلار نوم خالد دقبيله جهينه سره يي تعلق وو، دصلح حديبيه نه مخکي مسلمان شوی وو او په مدينه کي يي رهائش اختيار کړی وو دفتح مکي په ورځ دده دقبيلي جهنډه دده په لاس کي وه (الاصابه).

وفات: دده د وفات کيدو دکال په تاريخ کي اختلاف دی زيات صحيح قول دادی چي په مدينه کي ۷۸هجري کي وفات شوی وو او دوفات کيدو په وخت کي يي عمر ۸۵کلونه وو (طبقات ابن سعد تهذيب التهذيب).

****************

١٣٧٤ـ حَدَّثَنَا الحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ الخَلَّالُ. حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ نُمَيْرٍ. وَيَزِيدُ بْنُ هَارُونَ. عَنْ سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ. عَنْ سَلَمَةَ بْنِ كُهَيْلٍ. عَنْ سُوَيْدِ بْنِ غَفَلَةَ. قَالَ: خَرَجْتُ مَعَ زَيْدِ بْنِ صُوحَانَ. وَسَلْمَانَ بْنِ رَبِيعَةَ. فَوَجَدْتُ سَوْطًا. قَالَ ابْنُ نُمَيْرٍ فِي حَدِيثِهِ: فَالْتَقَطْتُ سَوْطًا. فَأَخَذْتُهُ قَالَا: دَعْهُ. فَقُلْتُ: لَا

أَدَعُهُ تَأْكُلُهُ السِّبَاعُ، لَآخُذَنَّهُ فَلَأَسْتَمْتِعَنَّ بِهِ، فَقَدِمْتُ عَلَى أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ فَسَأَلْتُهُ عَنْ ذَلِكَ وَحَدَّثْتُهُ الْحَدِيثَ، فَقَالَ: أحسنت وجدت على عهد رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صُرَّةً فِيهَا مِائَةُ دِينَارٍ، قَالَ: فَأَتَيْتُهُ بِهَا، فَقَالَ لِي: " عَرِّفْهَا حَوْلًا "، فَعَرَّفْتُهَا حَوْلًا، فَمَا أَجِدُ مَنْ يَعْرِفُهَا، ثُمَّ أَتَيْتُهُ بِهَا، فَقَالَ: " عَرِّفْهَا حَوْلًا آخَرَ "، فَعَرَّفْتُهَا، ثُمَّ أَتَيْتُهُ بِهَا، فَقَالَ: " عَرِّفْهَا حَوْلًا آخَرَ "، وَقَالَ: " أَحْصِ عِدَّتَهَا، وَوِعَاءَهَا، وَوِكَاءَهَا، فَإِنْ جَاءَ طَالِبُهَا فَأَخْبَرَكَ بِعِدَّتِهَا، وَوِعَائِهَا، وَوِكَائِهَا، فَادْفَعْهَا إِلَيْهِ، وَإِلَّا فَاسْتَمْتِعْ بِهَا ". قَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.(١)

**ترجمه** : دسويد بن غفله بيان دي چي زه دصوحان اوسليمان بن ربيعه سره روان شوم نو په لاره کي مي يوه همسا اوموندله دابن نمير په روايت کي دي چي ما يوه غورخيدلي همسا اوموندلي نو مادا راپورته کړه او دوئ دواړو راته اوونيل داپريږده مه يي اوچتوه ما ورته اوونيل زه داددي دپاره نشم پريخودلي چي ليوان يي اوخوري زه به يي ضرور پورته کوم او فائده به ورنه اخلم زه بيا ابئ بن کعب ته ورغلم او دهغه نه مي په دي باره کي تپوس اوکړو او پوره واقعه مي ورته بيان کړه ابئ بن کعب اوونيل ډير ښه کار دي کړي دي درسول الله صلي الله عليه وسلم په زمانه کي ما يوه ګوتئ موندلي وه چي سل دينار پکي موجود وو ما راپورته کړه رسول الله صلي الله عليه وسلم ته مي راوړه ماته يي اوفرمائيل ديو کال پوري ددي اعلان کوه نو ما دکال پوري ددي اعلان اوکړو ليکن داسي څوک پيدانشو چي دا يي پيژندلي وي ما دا راواخستل او بيا مي رسول الله ته راوړل راته يي اوفرمائيل چي ديو کال پوري ددي اعلان اوکړه نو ما ددي يو کال اعلان اوکړو نو بيا مي دا رسول الله ته راوړله نو راته يي اوفرمائيل يو کال پوري ددي اعلان اوکړه او ونيل يي چي دا اوشميره ددي ګوتئ او سر بند اوساته او ښه پيژندګلي يي اوکړه که ددي څوک طلب کونکي راشي او ددي دتعداد او ددي دلوښي باره کي معلومات ورکړي نو دا ورته ورکړه او که نه وي نو پخپله يي استعمال کړه.

امام ترمذي وائي داحديث حسن صحيح دي.

**تشريح**: په دي باب کي دري مسائل معلومول ضروري دي.

اوله مسئله: (١) په دي خبره دتمامو اهل علمو اتفاق دي چي دلقطه باره کي اعلان کول ضروري دي مګر اختلاف په دي کي دي چي څومره مودي پوري اعلان کول پکار دي نو په دي کي دعلماؤ دوه مذاهب دي.

---

[1] ــ البخاري ــ اللقطة ا (٢٤٢٦). صحيح مسلم ــ اللقطة ا (١٧٢٣). سنن ابي داود ــ اللقطة ا (١٧٠١). سنن ابن ماجه ــ اللقطة ٢ (٢٥٠٦). و احمد في المسند (٥ ــ ١٢٦)

دويمه مسئله (۲) دامام ابو حنيفه په نزد ددي داعلان دپاره كومه خاص موده مقرر نه ده بلكه ددغه څيز دحالت او شان په مقدار اعلان كول پكار دي

دريمه مسئله(۳) دبعضي علماؤ په نزد دلقطي باره كي ديو كال پوري اعلان كول پكار دي

دويمه اختلافي مسئله داده چي لقطه به كله حواله كولي شي په دي كي دوه مذاهب دي.

دامام مالك په نزد چي كله يو كس ديو څيز علامات بيان كړي نو ددي څيز وركول ورته واجب دي خكه چي ابيّ بن كعب ته نبي كريم صلي الله عليه وسلم دعلاماتو دمحفوظ ساتلو حكم كړي وو ددي مقصد همدا وو چي كله څوك علامات بيان كړي نو بيا ورته دا وركړي.

دويم مذهب دجمهورو فقهاؤ دي ددوئ په نزد صرف علاماتو بيانولو سره څيز سپارل ضروري نه دي بلكه اصل مقصد اعتماد او يقين دي او ابيّ بن كعب ته هم دعلاماتو دمحفوظ ساتلو حكم همدي مقصد دپاره شوي دي ددينه معلومه شوه علامات صحيح بيان كړي ليكن اطمينان نه وي نو په دي صورت كي داسي كس ته ددي څيز سپارل واجب نه دي.

مسئله (۳) په دي كي اختلاف دي چي لقطه پورته كونكي استعمالولي شي او كنه په دي كي دفقهاؤ دوه مذاهب دي.

(۱) دامام ابو حنيفه په نزد كه چري پورته كونكي مستحق وي نو ددي استعمال دده دپاره جائز دي او كه غني وي نو بيا جائز نه دي يا خو به دا څيز دهميشه دپاره خان سره امانت ساتي او يا به يي صدقه كوي كه چري مالك يي راشي او هغه صدقه كول نافذ كړي خو ډيره ښه ده او كنه نو په پورته كونكي به ددي تاوان لازميږي (ددي مسئلي دلائل دعلم فقه په كتابونو كي مذكور دي).

***************

## ٣٦ـ بَابٌ فِي الْوَقْفِ

## د وقف شوو څيزونو بيان

١٣٧٥ـ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ، أَنْبَأَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، عَنِ ابْنِ عَوْنٍ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: أَصَابَ عُمَرُ أَرْضًا بِخَيْبَرَ، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، أَصَبْتُ مَالًا بِخَيْبَرَ لَمْ أُصِبْ مَالًا قَطُّ، أَنْفَسَ عِنْدِي مِنْهُ، فَمَا تَأْمُرُنِي، قَالَ: "إِنْ شِئْتَ حَبَسْتَ أَصْلَهَا، وَتَصَدَّقْتَ بِهَا". فَتَصَدَّقَ بِهَا عُمَرُ، أَنَّهَا لَا يُبَاعُ أَصْلُهَا، وَلَا يُوهَبُ، وَلَا يُورَثُ، تَصَدَّقَ بِهَا فِي الْفُقَرَاءِ، وَالْقُرْبَى، وَالرِّقَابِ، وَفِي سَبِيلِ اللَّهِ، وَابْنِ السَّبِيلِ، وَالضَّيْفِ، لَا جُنَاحَ عَلَى مَنْ وَلِيَهَا أَنْ يَأْكُلَ مِنْهَا بِالْمَعْرُوفِ، أَوْ يُطْعِمَ صَدِيقًا غَيْرَ مُتَمَوِّلٍ فِيهِ، قَالَ: فَذَكَرْتُهُ لِمُحَمَّدِ بْنِ سِيرِينَ، فَقَالَ غَيْرَ مُتَأَثِّلٍ مَالًا، قَالَ ابْنُ عَوْنٍ: فَحَدَّثَنِي بِهِ

رَجُلٌ آخَرُ، أَنَّهُ قَرَأَهَا فِي قِطْعَةِ أَدِيمٍ أَحْمَرَ غَيْرَ مُتَأَثِّلٍ مَالًا. قَالَ إِسْمَاعِيلُ، وَأَنَا قَرَأْتُهَا عِنْدَ ابْنِ عُبَيْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ، فَكَانَ فِيهِ غَيْرَ مُتَأَثِّلٍ مَالًا. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ العِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ، لَا نَعْلَمُ بَيْنَ الْمُتَقَدِّمِينَ مِنْهُمْ فِي ذَلِكَ اخْتِلَافًا فِي إِجَازَةِ وَقْفِ الأَرَضِينَ وَغَيْرِ ذَلِكَ. [1]

**ترجمه**: دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما بيان دي چي عمر رضي الله عنه ته په خيبر كي په غنيمت كي څه زمكه وركړي شوي وه هغه عرض اوكړو اي دالله رسوله ماته چي په خيبر كي كوم مال راكړي شوي دي ددينه بهتر مال ماته هيڅ كله نه دي راكړي شوي په دي باره كي راته څه حكم كوئ رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل كه خوښه دي وي ددي اصل دخان سره اوساته او پيداوار يي صدقه كوه نو عمر رضي الله عنه دا په همدي طريقه صدقه كړل چي اصل زمكه هم بچ پاتي شي نه هبه كړي شي او نه چاته په وراثت كي ورسيږي او دا په فقيرانو او رشته دارو لو غلامانو ازادولو كي او دالله په لاره كي په مسافرو باندي او په ميلمنو باندي خرچ كړي شي او څوك چي ددي نگراني كونكي وي دهغه دپاره ددينه په جائز طريقه خوړل او په دوستانو خوړلو كي څه حرج نشته مگر چي دي ددينه جمع كونكي نه وي، ابن عون وائي ما دا روايت محمد بن سيرين ته بيان كړو نو هغه د "غيرمتمول فيه" په ځاي باندي "غير متاثل مالا" اووئيل ابن عون وائي ماته دا روايت يو بل كس بيان كړي دي چي هغه په دي كي وقف نامه اولوستله چي په يوه سره چمړه باندي ليكلي شوي وه او په هغي كي هم "غيرمتاثل مالا" الفاظ وو ، اسماعيل وائي ما دا وقف نامه د ابن عبيدالله بن عمر سره لوستلي وه او په هغي كي هم غير متاثل مالا الفاظ وو.

امام ترمذي وائي داحديث حسن صحيح دي او په صحابه كرامو كي داهل علمو په دي باندي عمل دي او په متقدمينو كي هيڅوك داسي نشته چاچي دزمكي وغيره په وقف كولو كي اختلاف كړي وي.

****************

١٣٧٦_ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ، أَخْبَرَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ جَعْفَرٍ، عَنِ العَلَاءِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: " إِذَا مَاتَ الإِنْسَانُ انْقَطَعَ

---

[1] _ البخاري_ الشروط ١٩ (٢٧٣٧). والوصايا ٢٢ (٢٧٦٤). و ٢٨ (٢٧٧٢). و٢٩ (٢٧٧٣). و ٣٢ (٢٧٧٤). صحيح مسلم_ الوصايا ٤ (١٦٣٢). سنن ابي داود_ الوصايا ١٣ (٢٨٧٨). سنن النسائي_ الإحباس ٢ (٣٦٢٧). سنن ابن ماجه_ الصدقات ٤ (٢٣٩٦). (تحفة الأشراف: ٧٧٤٢). واحمد في المسند (٢_ ٥٥. ١٢٥)

عَمَلُهُ إِلَّا مِنْ ثَلَاثٍ، صَدَقَةٌ جَارِيَةٌ، وَعِلْمٌ يُنْتَفَعُ بِهِ، وَوَلَدٌ صَالِحٌ يَدْعُو لَهُ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [1]

**ترجمه** د ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دی چي رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل چي کله انسان مړ شي نو دهغه دعملونو سلسله ختمه شي ليکن دری خبری چي دهغی داجر سلسله جاري وي يوه صدقه جاريه، دويم علم چي دهغی نه فائده اخستلی شي، او دريم نيك او صالح اولاد چي هغه دپاره دعا کوي.

امام ترمذي وايي دا حديث حسن صحيح دي.

**لغات**: انقطع کټ کيدل، بنديدل لکه انقطع الحر والبرد گرمي يا يخني ختمه شوه

**تشريح**: اولني هغه ځيز چي ثواب يي انسان ته دمرګ نه پس ملاويږي په دي کې عموم دي، په دي کې دا هم داخل دي چي چاته دلوستلو دپاره قران کريم ورکړی او هغه يي لولي نو ده ته به ثواب ملاويږي همدا رنګي که څوك جومات جوړ کړي يا کوهی اوکني يا نهر جاري کړي خکه چي "الدال علي الخير کفاعله" نيکۍ طرف ته رهنمائي کونکی دنيکۍ کونکي پشان دی.

دويم هغه ځيز دکوم ثواب چي انسان ته دمرګ نه پس ملاويږي علم دی او خصوصا هغه علم کوم چي يي په خلقو کې خور کړی وي او هم ددينه په يو بل حديث کې په علم نافع سره تعبير شوی دی.

دريم ځيز ولد صالح دی ابن حجر مکي وائي چي دصالح نه مراد مومن دی علماء وائي دولد سره صالح قيد خکه لګولی شوی دی چي خلقو ته ترغيب ورکړی شي تردي چي بيا هر يو انسان نيك جوړ شي ، علماء وائي که ولد غير صالح هم وي او دعا اوغواړي نو فائده به يي وي علماؤ په ولد صالح کې يوي عجيبي نکتي ته اشاره کړي ده او هغه داده چي والدينو لره پکار دي چي خپل اولاد ته دنيکۍ تعليم ورکړي نو هله به دوی ته فائده رسيږي.

***************

## ٣٧_ بَاب مَا جَاءَ فِي الْعَجْمَاءِ جُرْحُهَا جُبَارٌ

### که څاروي چالره زخمي کړي نو ددي زخم لغودي

---

[1] _ مسلم_ الوصايا ٣ (١٦٣١)، سنن ابي داود_ الوصايا ١٤ (٢٨٨٠)، سنن النسائي_ الوصايا ٨ (٣٦٨١)، (تحفة الأشراف: ١٣٩٧٥)، و احمد في المسند (٢_٣١٦، ٣٥٠، ٣٧٢)، وسنن الدارمي_ المقدمة ٤٦ (٥٧٨)

١٣٧٧_ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيِّبِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "الْعَجْمَاءُ جَرْحُهَا جُبَارٌ، وَالْبِئْرُ جُبَارٌ، وَالْمَعْدِنُ جُبَارٌ، وَفِي الرِّكَازِ الْخُمُسُ". حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيِّبِ، وَأَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَهُ. قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ جَابِرٍ، وَعَمْرِو بْنِ عَوْفٍ الْمُزَنِيِّ، وَعُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.

حَدَّثَنَا الْأَنْصَارِيُّ، حَدَّثَنَا مَعْنٌ، قَالَ: أَخْبَرَنَا مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ، وَتَفْسِيرُ حَدِيثِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "الْعَجْمَاءُ جَرْحُهَا جُبَارٌ". يَقُولُ هَدَرٌ: لَا دِيَةَ فِيهِ، قَالَ أَبُو عِيسَى: وَمَعْنَى قَوْلِهِ الْعَجْمَاءُ: جَرْحُهَا جُبَارٌ، فَسَّرَ ذَلِكَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ قَالُوا: الْعَجْمَاءُ: الدَّابَّةُ الْمُنْفَلِتَةُ مِنْ صَاحِبِهَا فَمَا أَصَابَتْ فِي انْفِلَاتِهَا فَلَا غُرْمَ عَلَى صَاحِبِهَا، وَالْمَعْدِنُ جُبَارٌ، يَقُولُ: إِذَا احْتَفَرَ الرَّجُلُ مَعْدِنًا فَوَقَعَ فِيهِ إِنْسَانٌ فَلَا غُرْمَ عَلَيْهِ، وَكَذَلِكَ الْبِئْرُ: إِذَا احْتَفَرَهَا الرَّجُلُ لِلسَّبِيلِ فَوَقَعَ فِيهَا إِنْسَانٌ فَلَا غُرْمَ عَلَى صَاحِبِهَا، وَفِي الرِّكَازِ الْخُمُسُ، وَالرِّكَازُ: مَا وُجِدَ فِي دَفْنِ أَهْلِ الْجَاهِلِيَّةِ، فَمَنْ وَجَدَ رِكَازًا، أَدَّى مِنْهُ الْخُمُسَ إِلَى السُّلْطَانِ وَمَا بَقِيَ فَهُوَ لَهُ.[1]

**ترجمه**: دابوهريره رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي د بي زبانه (ځاروي) زخم ويړيا دي او چي څوك كوهي ته پريوځي اويا كان ته پريوځي نو دده وينه هم ويړيا ده او دجاهليت دزماني په خښو كړو خزانو كي پنځمه حصه ده ، مؤلف پخپل سند عن ابن شهاب عن سعيد بن المسيب وابي سلمة عن ابي هريرة عن النبي صلي الله عليه وسلم سره هم ددي هم معني روايت بيان كړي دي.

امام ترمذي وائي دابوهريره حديث حسن صحيح دي ، په دي باب كي دجابر، عمرو بن عوف مزني، او عباده بن صامت رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي مالك بن انس وائي چي دنبي كريم صلي الله عليه وسلم دقول "العجماء جرحها جبار" تفسير دادي چي دځاروو زخمي

---

[1] _ مسلم_ الزكاة ٦٦ (١٣٩٩) . والمساقاة ٣ (٢٣٥٥) . والديات ٢٨ (٦٩١٢) . و ٢٩ (٦٩١٣) . مسلم_ الحدود ١١ (القسامة ٢٢) . (١٧١٠) . ابي داود_ الخراج ٤٠ (٣٠٨٥) . والديات ٣٠ (٤٥٩٣) . سنن النسائي_ الزكاة ٢٨ (٢٤٩٧) . سنن ابن ماجه_ الأحكام ٤ (٢٦٧٣) . (تحفة الأشراف : ١٣١٢٨) . و موطا مالك_ الزكاة ٤ (٩) . والعقول ١٨ (٢) . و احمد في المسند (٢_ ٢٢٨، ٢٥٤، ٢٧٤، ٢٨٢، ٢٨٦، ٤٠٦، ٤١١، ٤٥٤، ٤٥٦، ٤٦٧، ٤٧٥، ٤٨٢، ٤٩٥، ٤٩٩، ٥٠١، ٥٠٧) . وسنن الدارمي_ الزكاة ٣٠ (١٧١٠)

کړي زخم ویړیا دي یعني په دي کي دیت نشته بعضي علماؤ ددي همداتفسیر کړي دي دوئ وائي چي بي زبانه څاروي هغه دي کوم چي دخپل مالك نه اوتختي او که ددوئ دتیختي په حالت کي څوك ددوئ نه زخمي شو نو په څاروي والا باندي به څه تاوان نه وي او د "والمعدن جبار" په تفسیر کي امام مالك وائي چي یو سړي کان اوکني او په دي کي څوك پریوځي نو په کان جوړونکي باندي څه قسم تاوان نشته!و د "وفي الرکاز الخمس" په تفسیر کي امام مالك وائي رکاز دجاهلیت دزماني خښي کړي خزاني ته ونیلي شي نو که څوك دجاهلیت دزماني خښه کړي خزانه بیامومي نو هغه به ددي پنځمه حصه په بیت المال کي جمع کوي او کوم چي ددي پنځمي حصي نه پاتي شي هغه به دده وي.

**تشریح: په لاره کې څاروي پرېخودل**

چا په لاره کي خپل یو څاروي پرېخودو او هغه تر اوسه پورې پخپل انداز باندې روان وو او هم په دې دواران کي هغه په چا حمله اوکړله او هغه ئې هلاك کړو نو په لیګونکی به ضمان واجب وی او که هغه انداز بدل کړو یعني لاره کلاو ده،په نیغ تللو کي هیڅ تکلیف نشته،ددې باوجود هغه په لاره کي ښی یا ګس طرف ته اوګرځیدو،بیا روان شو نو د تیر شوی انداز ختمیدو په وجه د لیګلو حکم کټ شو او اوس به په لیګونکی باندې ضمان واجب نه وی،البته که لاره تنګه وی چي د ګګیدو نه بغیر په دې کي تلل ممکن نه وی نو هغه به په تیر شوی انداز به ګڼرلې شی او په لیګونکی به ضمان واجب وی،

که د لیګلو نه وروسته څناور د خپل مخکنی انداز نه واوړیدو نو لیګل منقطع کیږی بیا که چرې مالك څناور پرېخودو او هغه فوراً د چا فصل خراب کړو نو لیګونکې ضامن دې او که د خپل انداز نه واوړیدو،بیا ئې فصل خراب کړې وی نو ضمان به واجب نه وی او که چرې څاروې پخپله خلاص شو او او تختیدو او څوك سړې یا د چا مال ئې هلاك کړو،که په ورځ کي وی څاروي مالك به ضامن وي، او که چرې په شپه کي وی نو په مالك به ضمان نه راځی. دمذکوره حدیث په وجه. په دې صورت کي د مالك د طرفه هیڅ داسې فعل اونه مونډې شو چي دهغې په وجه د څناور فعل مالك طرف ته منسوب کړې شی یعنی د مالك د طرفه نه لیګل شته او نه شړل او نه ئې هغه رابنکلې دې او نه په هغې سور شوې دې.

زید پخپل څاروی باندې ناست روان وو چي خالد هغه په سومبئ اووهلو چي په دې سره هغه راپریوتلو، یا ئې یوکس اووهلو او هلاك ئې کړو نو ددې ضمان به په خالد باندې وی،په زید باندې به نه وی،د عمر او ابن مسعودﷺ نه هم دا نقل دی.

**************

## ۳۸....باب مَا ذُكِرَ فِي إِحْيَاءِ أَرْضِ الْمَوَاتِ

## دشاړي زمکي ابادولو بيان

١٣٧٨_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ الوَهَّابِ الثَّقَفِيُّ، أَخْبَرَنَا أَيُّوبُ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ زَيْدٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "مَنْ أَحْيَى أَرْضًا مَيِّتَةً فَهِيَ لَهُ، وَلَيْسَ لِعِرْقِ ظَالِمٍ حَقٌّ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ، وَقَدْ رَوَاهُ بَعْضُهُمْ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُرْسَلًا. وَالعَمَلُ عَلَى هَذَا الحَدِيثِ عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ العِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ، وَهُوَ قَوْلُ: أَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ، قَالُوا لَهُ: أَنْ يُحْيِيَ الأَرْضَ المَوَاتَ بِغَيْرِ إِذْنِ السُّلْطَانِ، وَقَدْ قَالَ بَعْضُهُمْ: لَيْسَ لَهُ أَنْ يُحْيِيَهَا إِلَّا بِإِذْنِ السُّلْطَانِ، وَالقَوْلُ الأَوَّلُ أَصَحُّ، قَالَ: وَفِي البَابِ، عَنْ جَابِرٍ، وَعَمْرِو بْنِ عَوْفٍ المُزَنِيِّ جَدِّ كَثِيرٍ، وَسَمُرَةَ، حَدَّثَنَا أَبُو مُوسَى مُحَمَّدُ بْنُ المُثَنَّى، قَالَ: سَأَلْتُ أَبَا الوَلِيدِ الطَّيَالِسِيَّ عَنْ قَوْلِهِ: وَلَيْسَ لِعِرْقٍ ظَالِمٍ حَقٌّ، فَقَالَ: العِرْقُ الظَّالِمُ: الغَاصِبُ الَّذِي يَأْخُذُ مَا لَيْسَ لَهُ قُلْتُ: هُوَ الرَّجُلُ الَّذِي يَغْرِسُ فِي أَرْضِ غَيْرِهِ، قَالَ: هُوَ ذَاكَ. (1)

**ترجمه** : دسعيد بن زيد رضي الله عنه بيان دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چاچي بنجر زمكه اباده كړه نو دا هم دده ده او دكوم ظالم درګ حق نشته.

امام ترمذي وائي داحديث حسن غريب دي، بعضي راويانو داحديث دهشام بن عروه نه او هغه دخپل پلار نه او عروه دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه مرسل نقل كړي دي په صحابه كرامو وغيره متقدمينو كي دبعضي اهل علمو په دي باندي عمل دي او دامام احمد او اسحاق هم دا قول دي دوئ وائي چي دحاكم داجازت نه بغير دشاړي زمكي ابادول جائز دي بعضي علماء وائي دحاكم داجازت نه بغير شاړه زمكه ابادول جائز نه دي ليكن اولني قول زيات صحيح دي، او په دي باب كي دجابر، دكثير دنيكه عمرو بن عوف مزني او سمره رضي الله عنه نه هم احاديث وارد دي مونږ ته ابوموسي محمد بن مثني روايت بيان كړي دي وائي چي ما دابوالوليد طيالسي نه درسول الله دقول "وليس لعرق ظالم حق" دمطلب تپوس اوكړو نو هغوئ اوونيل دالعرق الظالم نه مراد هغه غاصب دي څوك چي دخلقو مالونه په زبردستئ اخلي ما اوونيل ددينه مراد هغه كس دي څوك چي په پردئ زمكه كي اوني اوكري هغه اوونيل همداكس ورنه مراد دي.

1 _ ابي داود_ الإمارة ٣٧ (٣٠٧٣) . (تحفة الأشراف : ٤٤٦٣) . والمؤطاء الأقضية ٢٤ (٢٦)

**تشريح**: موات په اصل کي هغه حيوان ته وئيلې شی چي هغه مړ شوې وی،بيا هغه زمکې ته چي د هغې هيڅ څوك مالك نه وي او هغه نا قابل انتفاع وی،د څاروی مرګ سره تشبيه ورکولو سره موات (مړه يعني شاړه زمکه) نوم ايخودلې شوې دې او د احياء نه مراد په اعتبار د عرف تصرف او انتفاع ده مثلاً زمکه باندې ني عمارت جوړ کړو.يا ني په دې کي کرونده اوکړله. يا ني ونې اولګولې.

موات هغه زمکې ته وئيلې شی چي په څه وجه هغه قابل د انتفاع نه وی پاتې شوې،يا خو ددې د مالګين کيدو په وجه. يا د شګې د ډيروالی په وجه. يا د خالص بدليدو په وجه. يا د اوبو منقطع کيدو په وجه. يا د اوبو د ډير والی په وجه.

موات هغه زمکې ته وائی چي د پخوا زمانې داسې ورانه، شاړه او د کروندې نا قابله پرته وي او د هغې هيڅ څوك مالك نه وی يا دارالاسلام د هغې مالك وی،خو څوك سړې د هغې مالك نه وي او د آبادئ نه دومره لرې وی که څوك سړې د آبادئ آخری حصه کي اودريږي او آواز اوکړی نودغه زمکې پورې آواز نه رسيږی که دا شرطونه موجود نه وی نوهغې ته به موات نه وائي او د هغې آبادول به صحيح نه وي او که چري دا آبادئ ته نيزدې وی نودا د شهر فناء (حريم او احاطه) ده چي د کلی خلق ددې نه فائده اخلی نوددې آبادول به صحيح نه وی. امام محمد دا شرط لګولې دې چي د زمکې نا قابل انتفاع کيدو سره سره دا شرط هم دې چي دا د يو مسلمان يا ذمی مملوك نه وی،ګنی دا به موات نه وی او که چري ددې څوك مالك معلوم نه وی نوهغه د مسلمانا نو د جماعت دپاره ده،خاص يو کس ته به ددې د مالك جوړيدو حق نه وی، که د يوکس په زمکه کي ئې کرونده اوکړله،بيا دهغې مالك ښکاره شو نودا زمکه به مالك ته واپس کولې شي او زميندار به ددې د نقصان تاوان مالك ته ورکوی.

قاعده دا ده چي مطلق کامل طرف ته منسوب (او مائل) وي او مطلق موات هغه زمکه ده،کومه چي د هيڅ مسلمان او ذمی مملوك نه وی نوکه يوه زمکه د يو مسلمان يا د يو ذمی وي او هغه ورانه وی نوهغې ته به مرداره (شاړه) نشی وئيلې ځکه چي کومه زمکه د مسلمان يا ذمی مملوك ده،د هغې د خرابوالی باوجود به د هغې نه د مسلمان ملکيت نه زائل کيږی په حديث کي چي کوم لفظ د ميته استعمال شوې دې،د هغې نه به کامل مراد وي او د کامل کيدو دپاره ضروری ده چي هغه د چا مملوك نه وی.په دې وجه امام محمد دا شرط اولګولو کوم چي ذکر شو.

د آبادئ نه د لرې والی کوم شرط چي متن کي تيرشو.دا د امام ابويوسف قول دې ځکه چي دې سره به معلومه شی چي ددې نه د کلی د خلقو انتفاع منقطع شوې ده او که چري نيزدې وی نوبه دې کي د انتفاع انقطاع نه کيږی،بهرحال د امام ابويوسف په نزد مدار په قرب او عدم قرب باندې دې او امام محمد په حقيقت کي د انتفاع منتقطع کيدو اعتبار کړې دې

كه لرې وي او كه چرې نيزدې وى نوكه دا زمكه كلى ته نيزدې وى،خو د كلى دخلقو انتفاع ددې سره متعلق نه وى نودا د امام محمد په نزد موات ده. (عنايه، فتح القدير)

***************

١٣٧٩_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الوَهَّابِ، حَدَّثَنَا أَيُّوبُ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ وَهْبِ بْنِ كَيْسَانَ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "مَنْ أَحْيَى أَرْضًا مَيِّتَةً فَهِيَ لَهُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (1)

**ترجمه**: دجابر بن عبدالله بيان دي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي څوك چي شاړه زمكه اباده كړي نودا هم دده ده، امام ترمذي وائي داحديث حسن صحيح دي.

***************

## ٣٩_ باب مَا جَاءَ فِي الْقَطَائِعِ

### دجائيداد وركولو بيان

١٣٨٠_ قَالَ: قُلْتُ لِقُتَيْبَةَ بْنِ سَعِيدٍ: حَدَّثَكُمْ مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى بْنِ قَيْسٍ المَأْرِبِيُّ، حَدَّثَنِي أَبِي، عَنْ ثُمَامَةَ بْنِ شَرَاحِيلَ، عَنْ سُمَيِّ بْنِ قَيْسٍ، عَنْ سُمَيْرٍ، عَنْ أَبْيَضَ بْنِ حَمَّالٍ، أَنَّهُ وَفَدَ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاسْتَقْطَعَهُ المِلْحَ، فَقَطَعَ لَهُ، فَلَمَّا أَنْ وَلَّى قَالَ رَجُلٌ مِنَ المَجْلِسِ: أَتَدْرِي مَا قَطَعْتَ لَهُ، إِنَّمَا قَطَعْتَ لَهُ المَاءَ العِدَّ، قَالَ: فَانْتَزَعَهُ مِنْهُ، قَالَ: وَسَأَلَهُ عَمَّا يُحْمَى مِنَ الأَرَاكِ، قَالَ: "مَا لَمْ تَنَلْهُ خِفَافُ الإِبِلِ"، فَأَقَرَّ بِهِ قُتَيْبَةُ، وَقَالَ: نَعَمْ. حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ. (2)

**ترجمه**: دابيض بن حمال رضي الله عنه بيان دي فرمائي چي زه درسول الله صلي الله عليه وسلم په خدمت كي حاضر شوم او دهغه نه مي په جائيداد كي دمالګي كان اوغوښتلو نو هغوئ راته دا راكړو ليكن كله چي هغوئ دمجلس نه روان شول او شا يي كړه نو په مجلس كي موجود يو كس عرض اوكړو ايا تاسو ته معلومه ده چي په جائيداد كي موده ته څه وركړل ؟ تاسو ورته په جائيداد كي داسي اوبه وركړي كومي چي هيڅ كله نه بنديږي (او مالګه به ورنه برابر اوځي) نو رسول الله ورنه دا واپس واخستله ده ورنه تپوس اوكړو په كيكرو كي به كومه

---

1 _ في الكبرئ (تحفة الأشراف : ٣١٢٩) . واحمد في المسند (٣_٣٣٨، ٣٨١)

2 _ ابي داود_ الخراج ٣٦ (٣٠٦٤) . سنن ابن ماجه_ الرهون ١٧ (٢٤٨٥) . (تحفة الأشراف)

حصه ساتلي شي رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل دكومي زمكي پوري چي داوښانو خپي رسيدي نشي (يعني چي دابادئ اوچراهگاه نه دېرلري وي.
امام ترمذي وائي دابيض حديث غريب دي مادقتيبه نه تپوس اوكړو چي ايا تاته محمد بن يحیٰ بن قيس داحديث بيان كړي دي ؟ نو هغه اقرار اوكړو چي هو.

****************

حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى بْنِ قَيْسٍ الْمَأْرِبِيُّ. بِهَذَا الإِسْنَادِ نَحْوَهُ الْمَأْرِبُ نَاحِيَةٌ مِنَ الْيَمَنِ. قَالَ: وَفِي الْبَابِ. عَنْ وَائِلٍ، وَأَسْمَاءَ بِنْتِ أَبِي بَكْرٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبْيَضَ حَدِيثٌ غَرِيبٌ. وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ. فِي الْقَطَائِعِ يَرَوْنَ جَائِزًا أَنْ يُقْطِعَ الإِمَامُ لِمَنْ رَأَى ذَلِكَ. [1]

**ترجمه** : دوائل بن حجر رضي الله عنه نه روايت دي نبي كريم صلي الله عليه وسلم زاته په حضرموت مقام كي څه زمكه په طور دجائيداد راكړه رسول الله صلي الله عليه وسلم معاويه رضي الله عنه اوليږلو تردي چي دا زمكه هغه ته په طور دجائيداد وركړي امام ترمذي وائي داحديث حسن دي.

****************

١٣٨١ـ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ، أَخْبَرَنَا شُعْبَةُ، عَنْ سِمَاكٍ، قَالَ: سَمِعْتُ عَلْقَمَةَ بْنَ وَائِلٍ يُحَدِّثُ، عَنْ أبِيهِ، "أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَقْطَعَهُ أَرْضًا بِحَضْرَمَوْتَ". قَالَ مَحْمُودٌ: أَخْبَرَنَا النَّضْرُ، عَنْ شُعْبَةَ، وَزَادَ فِيهِ: وَبَعَثَ لَهُ مُعَاوِيَةَ "لِيُقْطِعَهَا إِيَّاهُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [2]

**ترجمه** : دشعبه په روايت كي دا اضافه ده چي معاويه رضي الله عنه يي ددي دپاره اوليږلو چي ده ته زمكه حواله كړي.

****************

## ٤٠ـ بَاب مَا جَاءَ فِي فَضْلِ الْغَرْسِ

[1] ـ ابي داود ـ الخراج ٣٦ (٣٠٦٣). سنن ابن ماجه ـ الرهون ١٧ (٢٤٨٥). (تحفة الأشراف)

[2] ـ ابي داود ـ الخراج ٣٦ (٣٠٥٨، ٣٠٥٩). (تحفة الأشراف: ١١٧٧٣). و احمد في المسند (٢٩٩٦). و سنن الدارمي ـ البيوع ٦٦ (٢٦٥١)

## دونوكرلو دفضيلت بيان

١٣٨٢ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَنَسٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "مَا مِنْ مُسْلِمٍ يَغْرِسُ غَرْسًا، أَوْ يَزْرَعُ زَرْعًا، فَيَأْكُلُ مِنْهُ إِنْسَانٌ، أَوْ طَيْرٌ، أَوْ بَهِيمَةٌ، إِلَّا كَانَتْ لَهُ صَدَقَةٌ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ أَبِي أَيُّوبَ، وَجَابِرٍ، وَأُمِّ مُبَشِّرٍ، وَزَيْدِ بْنِ خَالِدٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَنَسٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (١)

ترجمه دانس رضي الله عنه نه مروي دي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي هر مسلمان چي يو بوټی نال كړي نو چي بنيادم يا څاروي يا مرغان ترينه څه خوري دقيامت تر ورځي دا دهغه دپاره خيرات دی او دمسلم يو بل روايت دی، هر مسلمان چي يو بوټی نال كړي يا فصل اوكري دهغي نه بنيادم يا څاروي يابل څه شی خوري هغه دهغه خيرات دی.

امام ترمذي وائي دانس حديث حسن صحيح دي او په دي باب كي دابوايوب، جابر، ام مبشر او زيد بن خالد رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي.

**لغات**: يغرس: غرس غرسا دضرب نه په معني دونو كرلو دي.

يزرع زرع زرعا دفتح نه په معني دتخم كرلو دي په زمكه كي .

**تشريح**: دحديث مطلب دادی كه كوم مسلمان ونه يا فصل اوكري او څاروي يا انسانان ورنه فائده اخلي نو ده ته ددي ثواب ملاويږي ګويا كي په دي حديث كي دفصل مالك ته تسلي وركولی شي چي كه كوم نقصان دي شوی وي په هغي صبر اوكړه ددي په بدل كي به درته ثواب ملاوشي

سوال: داعمالو ثواب خو په نيت موقوف دی او دلته خو دفصل دمالك نيت نه وي؟

جواب: شاعبدالعزيز بن شاولي الله وائي چي دفصل كرلو اصل مقصود دنوع انساني خدمت دی او دثواب دحصول دپاره اجمالي نيت كافي دی مالك ته به دهغه په اجمالي نيت ثواب وركولی شي نو اوس كه څوك انسان يا څاروی ددينه فائده واخلي په جائزه يا ناجائزه طريقه نو ده ته به ددي ثواب ملاويږي.

****************

## ٤١ـ باب مَا ذُكِرَ فِي الْمُزَارَعَةِ

---

[1] ـ البخاري ـ الحرث المزارعة ١(٢٣٢٠). والأدب ٢٧(٦٠١٢). صحيح مسلم ـ المساقاة ٢(البيوع ٢٢)(١٥٥٣). (تحفة الأشراف: ١٤٣١). واحمد في المسند(٣ـ ١٤٧، ١٩٢، ٢٢٩، ٢٤٣)

## دمزارعت (زميندارئ) بيان

١٣٨٣_ حَدَّثَنَا إِسْحَاق بْنُ مَنْصُورٍ، أَخْبَرَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، عَنْ عُبَيْدِ اللهِ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، "أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَامَلَ أَهْلَ خَيْبَرَ بِشَطْرِ مَا يَخْرُجُ مِنْهَا مِنْ ثَمَرٍ أَوْ زَرْعٍ". قَالَ: وَفِي البَاب، عَنْ أَنَسٍ، وَابْنِ عَبَّاسٍ، وَزَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ، وَجَابِرٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ العِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ، لَمْ يَرَوْا بِالْمُزَارَعَةِ بَأْسًا عَلَى النِّصْفِ وَالثُّلُثِ وَالرُّبُعِ، وَاخْتَارَ بَعْضُهُمْ أَنْ يَكُونَ الْبَذْرُ مِنْ رَبِّ الأَرْضِ، وَهُوَ قَوْلُ: أَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ، وَكَرِهَ بَعْضُ أَهْلِ العِلْمِ الْمُزَارَعَةَ بِالثُّلُثِ وَالرُّبُعِ، وَلَمْ يَرَوْا بِمُسَاقَاةِ النَّخِيلِ بِالثُّلُثِ وَالرُّبُعِ بَأْسًا، وَهُوَ قَوْلُ: مَالِكِ بْنِ أَنَسٍ، وَالشَّافِعِيِّ، وَلَمْ يَرَ بَعْضُهُمْ أَنْ يَصِحَّ شَيْءٌ مِنَ الْمُزَارَعَةِ، إِلَّا أَنْ يَسْتَأْجِرَ الأَرْضَ بِالذَّهَبِ وَالفِضَّةِ.[1]

**ترجمه**: دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما بيان دي نبي كريم صلي الله عليه وسلم دخيبر والا سره داسي معامله اوكړه چي هره يوه ميوه يا غله دزمكي نه حاصليږي دوئ به ددي نيمه بيت المال ته وركوي.

امام ترمذي وائي داحديث حسن صحيح دي او په دي باب كي د انس، ابن عباس، زيد بن ثابت، او جابر رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي دصحابه كرامو او ددوئ نه پس په اهل علمو كي دبعضو په دي باندي عمل دي ددوئ په نزد په نيمه يا په دريمه حصه يا په څلورمه حصه باندي مزارعت كول جائز دي، او بعضي اهل علمو دا اختيار وركړي دي تخم به دزمكي والا وركوي امام احمد او اسحاق بن راهويه هم دا قول دي او بعضي اهل علمو په دريمه يا په څلورمه حصه باندي په مزارعت زمكه وركول مكروه ګڼړلي دي ليكن دوئ په دريمه يا څلورمه حصه باندي دكجورو وني اوبه كول درست ګڼړي امام مالك او شافعي هم په دوئ باندي قول كړي دي او بعضي اهل علم مطلقا مزارعت درست نه ګڼړي البته دسرو ياسپينو زرو (نقدي) په عوض په كرايه زمكه اخستل درست ګڼړي.

***************

## ٤٢_ باب مِنَ الْمُزَارَعَةِ

---

[1] _ البخاري_ الحرث ٨ (٢٢٢٨)، ٩ (٢٢٢٩). صحيح مسلم_ المساقاة ١ (البيوع ٢٢). (١٥٥١). سنن ابي داود_ البيوع ٣٥ (٢٤٠٨). سنن النسائي_ الأيمان والمزارعة ٣٦ (٢٩٦١، ٢٩٦٢). سنن ابن ماجه_ الرهون ١٤ (٢٤٦٧). (تحفة الأشراف: ٨١٣٨). واحمد في المسند (٢_١٧، ٢٢، ٣٧)

۱۳۸٤ـ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرِ بْنُ عَيَّاشٍ، عَنْ أَبِي حُصَيْنٍ، عَنْ مُجَاهِدٍ، عَنْ رَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ، قَالَ: نَهَانَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ أَمْرٍ كَانَ لَنَا نَافِعًا، إِذَا كَانَتْ لِأَحَدِنَا أَرْضٌ، أَنْ يُعْطِيَهَا بِبَعْضِ خَرَاجِهَا، أَوْ بِدَرَاهِمَ، وَقَالَ: "إِذَا كَانَتْ لِأَحَدِكُمْ أَرْضٌ، فَلْيَمْنَحْهَا أَخَاهُ، أَوْ لِيَزْرَعْهَا".[1]

**ترجمه** : درافع بن خديج رضي الله عنه بيان دي فرمائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم مونږ ديوداسي كار نه منع كړو كوم چي زمونږ دپاره فائده مند وو او هغه دادي چي كله به هم دچاسره زمكه وه او هغه به يي دپيداوار په يو حصه يا د پيسو په عوض چاته وركوله نورسول الله به فرمائيل په تاسو كي كه دچا سره زمكه وي نو هغه دي خپل ورور ته مفته وركړي او يا دي پخپله زراعت اوكړي.

***************

۱۳۸٥ـ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، أَخْبَرَنَا الْفَضْلُ بْنُ مُوسَى السِّينَانِيُّ، أَخْبَرَنَا شَرِيكٌ، عَنْ شُعْبَةَ، عَنْ عَمْرِو بْنِ دِينَارٍ، عَنْ طَاوُسٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، "أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمْ يُحَرِّمْ الْمُزَارَعَةَ، وَلَكِنْ أَمَرَ أَنْ يَرْفُقَ بَعْضُهُمْ بِبَعْضٍ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وحَدِيثُ رَافِعٍ فِيهِ اضْطِرَابٌ، يُروى هَذَا الْحَدِيثُ، عَنْ رَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ، عَنْ عُمُومَتِه، ويُروى عَنْهُ، عَنْ ظُهَيْرِ بْنِ رَافِعٍ، وَهُوَ أَحَدُ عُمُومَتِه، وَقَدْ رَوَى هَذَا الْحَدِيثُ عَنْه عَلَى رِوَايَاتٍ مُخْتَلِفَةٍ، وَفِي الْبَابِ: عَنْ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ، وَجَابِرٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا.[2]

**ترجمه** : دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه مروي دي فرمائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم مزارعت حرام كړي نه دي ليكن رسول الله ديو بل سره دنرمئ كولو حكم كړي دي. امام ترمذي وائي داحديث حسن صحيح دي او د رافع په مذكوره حديث كي اضطراب دي كله دا حديث په واسطه درافع بن خديج دهغه دتره نه نقل كيږي او كله په واسطه درافع بن خديج دظهير بن رافع نه نقل كيږي او دا هم دهغه يو تره دي، او دده نه دا حديث په مختلفو سندونو منقول دي. او په دي باب كي دزيد بن ثابت او جابر رضي الله عنهما نه هم احاديث وارد دي

---

[1] ـ النسائي ـ المزارعة ٢ (٣٨٩٩). (تحفة الأشراف: ٣٥٤٨). (وانظر أيضا: أحاديث النسائي من الأرقام: ٣٨٩٣ إلى ٣٩٠٣)

[2] ـ البخاري ـ الحرث ١٠ (٢٣٣٠)، و١٨ (٢٣٤٢). والهبة ٣٥ (٢٦٣٤). صحيح مسلم ـ البيوع ٢١ (١٥٤٧). سنن ابي داود ـ البيوع ٣ (٣٣٨٩). سنن النسائي ـ المزارعة ٢٥ (٣٩٢٠). سنن ابن ماجه ـ الرهون ١١ (٢٤٥٣). (تحفة الأشراف: ٥٧٣٥)

***************

# كتاب الديات عن رسول الله صلى الله عليه وسلم

## ددیت احکام

دیت په شریعت کي هغه مال ته وائی،کوم چي د نفس بدل کرځولې شوې دې یعنی دا د"تسمية الشئ بإسم المصدر" د قبیلې نه دي، او تاوان هغه مال ته وائی.کوم چي د نفس نه په کم کي واجبیږی .

د قتل شبه عمد دیت په عاقله باندې وی او کفاره په قاتل باندې وی،او عاقله د پلار دطرفه رشته دارانو ته ونیلي شي.

دیت په قتل خطاء کي دی اوپه شبه عمد کي دی، او په قتل عمد کي په قصاص او دیت دواړو وارثانو د مقتول ته اختیار دی.

اوپه خطاء کي صرف دیت دی قصاص نشته نو اختیار هم ختم شو.

### ١_ باب مَا جَاءَ فِي الدِّيَةِ كَمْ هِيَ مِنَ الإِبِلِ

### په دیت کي د ورکونکو اوښانو دتعداد بیان

١٣٨٦_ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ سَعِيدٍ الْكِنْدِيُّ الْكُوفِيُّ، أَخْبَرَنَا ابْنُ أَبِي زَائِدَةَ، عَنِ الْحَجَّاجِ، عَنْ زَيْدِ بْنِ جُبَيْرٍ، وعَنْ خِشْفِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: سَمِعْتُ ابْنَ مَسْعُودٍ، قَالَ: " قَضَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي دِيَةِ الْخَطَإِ عِشْرِينَ بِنْتَ مَخَاضٍ، وَعِشْرِينَ بَنِي مَخَاضٍ ذُكُورًا، وَعِشْرِينَ بِنْتَ لَبُونٍ، وَعِشْرِينَ جَذَعَةً، وَعِشْرِينَ حِقَّةً ". قَالَ: وَفِي الْبَاب، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، أَخْبَرَنَا أَبُو هِشَامٍ الرِّفَاعِيُّ، أَخْبَرَنَا ابْنُ أَبِي زَائِدَةَ، وَأَبُو خَالِدٍ الأَحْمَرُ، عَنِ الْحَجَّاجِ بْنِ أَرْطَاةَ نَحْوَهُ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ مَسْعُودٍ لَا نَعْرِفُهُ مَرْفُوعًا، إِلَّا مِنْ هَذَا الْوَجْهِ، وَقَدْ رُوِيَ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ مَوْقُوفًا، وَقَدْ ذَهَبَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ إِلَى هَذَا، وَهُوَ قَوْلُ: أَحْمَدَ، وَإِسْحَاق، وَقَدْ أَجْمَعَ أَهْلُ الْعِلْمِ عَلَى أَنَّ الدِّيَةَ تُؤْخَذُ فِي ثَلَاثِ سِنِينَ، فِي كُلِّ سَنَةٍ ثُلُثُ الدِّيَةِ، وَرَأَوْا أَنَّ دِيَةَ الْخَطَإِ عَلَى الْعَاقِلَةِ، وَرَأَى بَعْضُهُمْ أَنَّ الْعَاقِلَةَ قَرَابَةُ الرَّجُلِ مِنْ قِبَلِ أَبِيهِ، وَهُوَ قَوْلُ: مَالِكٍ، وَالشَّافِعِيِّ، وَقَالَ بَعْضُهُمْ: إِنَّمَا الدِّيَةُ عَلَى

الرِّجَالِ دُونَ النِّسَاءِ وَالصِّبْيَانِ مِنَ الْعَصَبَةِ. يُحَمَّلُ كُلُّ رَجُلٍ مِنْهُمْ رُبُعَ دِينَارٍ. وَقَدْ قَالَ بَعْضُهُمْ: إِلَى نِصْفِ دِينَارٍ. فَإِنْ تَمَّتِ الدِّيَةُ، وَإِلَّا نُظِرَ إِلَى أَقْرَبِ الْقَبَائِلِ مِنْهُمْ فَأُلْزِمُوا ذَلِكَ. (1)

**ترجمه**: دعبدالله بن مسعود رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم حكم كړي دي چي دقتل خطاء په ديت كي شل بنت مخاض، شل ابن مخاض، شل بنت لبون، شل جزعه. او شل حقي اداء كول دي ، اومونږ ته هشام رفاعي دابن ابي زائده اوابوخالد احمر نه او هغوئ دحجاج بن ارطات نه ددي هم معني روايت بيان كړي دي.

امام ترمذي وائي دابن مسعودرضي الله عنه حديث مونږ ته صرف په همدي سند مرفوع رارسيدلي دي او دابن مسعود نه دا حديث موقوف هم مروي دي، او په دي باب كي دعبدالله بن عمر نه هم روايت وارد دي او دبعضي اهل علمو همدا مسلك دي امام احمد او اسحاق هم په دي باندي قول كړي دي، داهل علمو په دي باندي اتفاق دي چي ديت به په دري كاله كي وصول كولي شي او په هر كال كي به د ديت دريمه حصه اخستلي شي او ددي خيال دي چي دقتل خطاء ديت په عصبه دي او دبعضي علماؤ په نزد عصبه هغه څوك دي څوك چي دپلار دطرفه دسړي رشته داران وي، دامام مالك او شافعي هم داقول دي ليكن بعضي علماء وائي په عصبه كي چي څوك نارينه وي ديت په هغوئ باندي لازم دي په ښځو او ماشومانو باندي لازم نه دي په دوئ كي به هر كس د دينار په څلورمه حصه مكلف كولي شي اودبعضو په قول به په نيم دينار مكلف كولي شي كه ديت پوره كيږي خو درسته ده او كنه نو دټولو نه نږدي قبيلي ته به كتلي شي او هغوئ به په دي باندي مكلف كولي شي.

**تشريح**: كومه كفاره چي د قتل شبه عمد كفاره ده،هم هغه د قتل خطاء كفاره ده او په شبه عمد كي به سل اوښان واجب وى چي په دې كي د ذكر شوى بيان مطابق څلور قسمونه وى او دا د شيخينو مذهب دې:

(۱) بنت مخاض: چي دا د اوښ هغه بچې دې چي په دويم كال كي شروع شوې وى او چونكه اوښ به ددې مور په دويم بچى سره حامله شوې وى،په دې وجه دې ته بنت مخاض وائى:

(۲) بنت لبون: كومه چي په دريم كال كي شروع شى او چونكه اوس به ددې مور دويم بچې راوړلې وى او پىٔ به وركوى،په دې وجه دې ته بنت لبون وائى.

(۳) حقه: كوم چي په څلورم كال كي شروع شى. چونكه اوس به دا استحقاق وى چي په دې سور شى او په دې بوج بار كړې شى،په دې وجه دې ته حقه وائى.

---

(1) _ ابي داود_ الديات ۱۸ (۴۵۴۵) . سنن النسائي_ القسامة ۳۴ (۴۸۰۶) . سنن ابن ماجه_ الديات ٦ (۲٦۳۱) . (تحفة الأشراف : ۱۹۸) . و احمد في المسند (۱_ ۴۵۰)

(۳) جذعه: کومه چي په پنځم کال کي شروع شي، ځکه چي اوس به دې دوه غابنونه کړی وی، په دې وجه دې جذعه وائی.
بهرحال د شيخينو په نزدد سلو اوښانو تفصيل دادې، کوم چي ذکر شو.

***************

۱۳۸۷ـ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ سَعِيدٍ الدَّارِمِيُّ، أَخْبَرَنَا حَبَّانُ وَهُوَ ابْنُ هِلَالٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ رَاشِدٍ، أَخْبَرَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ مُوسَى، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: " مَنْ قَتَلَ مُؤْمِنًا مُتَعَمِّدًا دُفِعَ إِلَى أَوْلِيَاءِ الْمَقْتُولِ، فَإِنْ شَاءُوا قَتَلُوا، وَإِنْ شَاءُوا أَخَذُوا الدِّيَةَ، وَهِيَ ثَلَاثُونَ حِقَّةً، وَثَلَاثُونَ جَذَعَةً، وَأَرْبَعُونَ خَلِفَةً، وَمَا صَالَحُوا عَلَيْهِ فَهُوَ لَهُمْ، وَذَلِكَ لِتَشْدِيدِ الْعَقْلِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ. [1]

**ترجمه** : دعبدالله بن عمر رضي الله عنهمابيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي چاچي کوم مومن لره قصدا قتل کړو دي به وارثانو دمقتول ته حواله کولي شي که هغوئ غواړي نو دي دي قتل کړي او که ديت ورنه اخستل غواړي نو ديت دي ورنه واخلي، او د ديت مقدار ديرش حقي ، ديرش جذعي، او څلوېښت خلفي دي او په کوم څيز چي وارثان صلح اوکړي هغه دهغوئ دپاره دي او دا حکم د ديت په سلسله کي دسختئ په وجه دي.
امام ترمذي وائي دعبدالله بن عمروحديث حسن غريب دي.

**مسئله** : دعلماؤ اجماع ده چي په شبه عمد کې ديت مغلظه دي اودا ديت مغلظه په هغه قتل عمد کې هم دي په کوم کې چي په څه وجه باندي قصاص ساقط شوي وي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي په شبه عمد کې هم داسي ديت دي لکه څنګ چي دقتل عمد دي، مګر په شبه عمد کې به قاتل لره نشي قتل کولي اوددي صورت داسي دي چي په خلقوکې شيطان نتوتلي وي اود کانړو باران ئي کړي وي مګر فتنه نه وي اوداسلحي استعمال نه وي شوي (رواه احمد).
دقتل خطا په نورو قسمونو کې ديت خفيفه دي اوديت مغلظه صرف په اوښانو ادا کيږي (په سپينو اوسرو زرو وغيره سره نه وي)
دامام ابوحنيفه او امام ابويوسف په نزد باندي دي سل اوښان په دي شان سره ورکړي شي چي ۲۵ بنت مخاض ، ۲۵ بنت لبون، او ۲۵ حقي او ۲۵ جذعي وي اود امام محمد او امام شافعي په نزد باندي ۳۰ جذعي او ۳۰ حقي او ۴۰ ثنيي ادا کول دي اوټولي به هغه اوښي وي چي په

[1] ـ ابي داود ـ الديات ۴ (۴۵۰۶) . ابن ماجه ـ الديات ۲۱ (۲۶۵۹) . (تحفة الأشراف : ۸۷۰۸)

خيتو کې ئې بچي وي ځکه چې دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت دي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي واورئ په قتل شبه عمد کې يعني دکوړې اودهمسا په قتل کې سل اوښان دي چې څلويښت به پکې داسي وي چې په خيټو کې ئې بچي وي(رواه احمد وابوداود والنسائي) اوابن حبان ددي روايت صحيح کړي دی.(مظهري)

***************

## ٢_ بَاب مَا جَاءَ فِي الدِّيَةِ كَمْ هِيَ مِنَ الدَّرَاهِمِ

## په ديت کې به څومره پيسي ورکولي شي

١٣٨٨_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا مُعَاذُ بْنُ هَانِئٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مُسْلِمٍ الطَّائِفِيُّ، عَنْ عَمْرِو بْنِ دِينَارٍ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، " عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ جَعَلَ الدِّيَةَ اثْنَيْ عَشَرَ أَلْفًا ".([1])

**ترجمه** : دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه روايت دي چې نبي کريم صلي الله عليه وسلم ديت دولس زره درهم مقرر کړي دي.

**تشريح: د نقدي ديت ادا د مقدار متعلق دفقهاؤ اختلاف:**

که د قتل خطاء ديت د سرو زرو نه ادا کول غواړی نو زر ديناره د هغې مقدار دې او که چرې د سپينو زرو نه ادا کول وی نو ددې مقدار لس زره درهمه دې.امام شافعی فرمائی چې دولس زره درهمه دې،امام شافعی د ابن عباس رضی الله عنهما روايت نه استدلال کړې دې او احنافو د عمر رضي الله عنه د روايت نه استدلال کړې دې او احنافو د امام شافعی د روايت جواب دا ورکړې دې چې د دراهمو وزن مخکي کم او زيات پاتې شوې دې،په يوه زمانه کي دا وزن هم وو چې د لسو درهمو او د شپږو مثقالو وزن به برابر وو نو په داسې صورت کي به د درهم وزن کم وی نو ددې مقدار دولس زره درهم به د مروجه وزن لس زره درهمه جوړيږی نو د دواړو حديثونو انجام يو ثابت شو،يو درهم درې ماشې او يوه رتئ او د يوې رتئ ١١٥ ده او مثقال د څلورو ماشو او څلورو رتو وی، دا هم هغه وزن دې،په کوم کي چي اووه مثقاله او د لس درهمو وزن برابر وی او هم دې ته وزن سبعه وائی او د عمر رضي الله عنه د زماني نه هم دا وزن معتبر ګڼړلي شوې وو.(عنايه علي الهدايه)

***************

---

[1] _ ابی داود_ الديات ١٨ (٤٥٤٦) . سنن النسائی_ القسامة ٣٥ (٤٨٠٧، ٤٨٠٨) . سنن ابن ماجه_ الديات ٦ (٢٦٢٩) . (تحفة الأشراف : ٦١٦٥) وسنن الدارمی_ الديات١١

١٣٨٩_ حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْمَخْزُومِيُّ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنْ عَمْرِو بْنِ دِينَارٍ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَهُ، وَلَمْ يَذْكُرْ فِيهِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، وَفِي حَدِيثِ ابْنِ عُيَيْنَةَ كَلَامٌ أَكْثَرُ مِنْ هَذَا. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَلَا نَعْلَمُ أَحَدًا يَذْكُرُ فِي هَذَا الْحَدِيثِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ غَيْرَ مُحَمَّدِ بْنِ مُسْلِمٍ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا الْحَدِيثِ عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ الْعِلْمِ، وَهُوَ قَوْلُ: أَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ، وَرَأَى بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ الدِّيَةَ عَشَرَةَ آلَافٍ، وَهُوَ قَوْلُ: سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ، وَأَهْلِ الْكُوفَةِ، وقَالَ الشَّافِعِيُّ: لَا أَعْرِفُ الدِّيَةَ إِلَّا مِنَ الْإِبِلِ، وَهِيَ مِائَةٌ مِنَ الْإِبِلِ أَوْ قِيمَتُهَا. (1)

**ترجمه** : مونږ ته سعيد بن عبدالرحمن المخزومي ددي هم معني روايت بيان کړي دي ليکن هغوئ په دي روايت کي دابن عباس ذکر نه دي کړي، دابن عيينه په روايت کي دمحمد بن مسلم طائفي دروايت په نسبت څه زياتي خبري دي.

امام ترمذي وائي زمونږ په علم کي دمحمد بن مسلم نه علاوه هيڅاداحديث دابن عباس په واسطه نه دي ذکر کړي او دبعضي اهل علمو په نزد په همدي حديث عمل دي امام احمد او اسحاق بن راهويه هم ددي قائل دي، او دبعضي اهل علمو په نزد لس زره درهم دي، امام ثوري او اهل کوفه هم ددي قائل دي، امام شافعي وائي اصل ديت صرف اوښان دي او هغه سل اوښان اويا ددي قيمت دي.

***************

## ٣_ بَابُ مَا جَاءَ فِي الْمُوضِحَةِ

### دموضحه بيان

١٣٩٠_ حَدَّثَنَا حُمَيْدُ بْنُ مَسْعَدَةَ، أَخْبَرَنَا يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ، أَخْبَرَنَا حُسَيْنٌ الْمُعَلِّمُ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: " فِي الْمَوَاضِحِ، خَمْسٌ خَمْسٌ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ وَهُوَ قَوْلُ: سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ، وَالشَّافِعِيِّ، وَأَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ، أَنَّ فِي الْمُوضِحَةِ خَمْسًا مِنَ الْإِبِلِ. (2)

---

1 _ تفرد به المؤلف، وانظر ما قبله (تحفة الأشراف: ١٩١٢٠)

2 _ ابي داود_ الديات ٢٠ (٤٥٦٦)، سنن النسائي_ القسامة ٤٣ (٤٨٥٦)، سنن ابن ماجه_ الديات ١٨ (٢٦٥٥) (تحفة الأشراف: ٨٦٨٠)، واحمد في المسند (٢_٢٠٧)

**ترجمه** دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما بيان دي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي په موضحه زخم كي پنځه اوښان دي (موضحه هغه زخم وي چي هډوكي ته رسيدلي وي او هډوكي ښكاري).
امام ترمذي وائي داحديث حسن دي او داهل علمو په همدي باندي عمل دي دسفيان ثوري، شافعي، احمد او اسحاق هم دا قول دي چي موضحه زخم كي پنځه اوښان دي

## د موضحه يعني سر دزخمونو اقسام

د سر او د مخ زخمونه شپږ قسمه دي:
(۱) حارصه: په دي كي صرف په څرمن كي ګريدل وي او بس.
(۲) دامعه: په دي كي وينه ښكارى خو بهيږي نه لكه څنګه چي په سترګو كي هر وخت اوښكي ښكارى خو بهيږي نه.
(۳) داميه: په كوم كي چي وينه اوبهيږي.
(۴) باضع: په كوم كي چي غوښه كټ شي.
(۵) متلاحمه: په كوم كي چي د باضعه نه زيات غوښه كي ورښخ شي.
(۶) اسمحاق: د غوښي او د سر د هډوكي په منځ كي يوه نرئ شان پرده وي. كله چي زخم دې پردې ته اورسيږي نو دې ته اسمحاق وائي.
فقهاؤ د سر د زخم څلور نور اقسام هم ذكر كړي دي.

****************

## ٤_ بَاب مَا جَاءَ فِي دِيَةِ الأَصَابِعِ

## دګوتو د ديت بيان

۱۳۹۱_ حَدَّثَنَا أَبُو عَمَّارٍ، حَدَّثَنَا الفَضْلُ بْنُ مُوسَى، عَنِ الحُسَيْنِ بْنِ وَاقِدٍ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ عَمْرٍو النَّحْوِيِّ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " فِي دِيَةِ الأَصَابِعِ، اليَدَيْنِ وَالرِّجْلَيْنِ سَوَاءٌ، عَشْرٌ مِنَ الإِبِلِ لِكُلِّ أُصْبُعٍ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَفِي البَاب، عَنْ أَبِي مُوسَى، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ عَبَّاسٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ مِنْ هَذَا الوَجْهِ، وَالعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ العِلْمِ وَبِهِ يَقُولُ سُفْيَانُ، وَالشَّافِعِيُّ، وَأَحْمَدُ، وَإِسْحَاقَ. ([1])

---

[1] _ ابي داود_ الديات ۲۰ (۴۵۶۱). (تحفة الأشراف: ۶۲۲۹)

**ترجمه** : دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم دګوتو د ديت باره کي فرمائيلي دي دواړه لاسونه او دواړه خپي په ديت کي يو برابر دي او دهري ګوتي په بدل کي لس اوښان دي.
امام ترمذي وائي ددي سند په اعتبار دابن عباس حديث حسن صحيح غريب دي او داهل علمو په همدي باندي عمل دي سفيان ثوري، شافعي، احمد، او اسحاق هم ددي قائل دي.
**تشريح:** په يولاس کي پنځه ګوتي دی او په دواړو لاسونو کي لس دی او دغه شان په دواړو خپو کي لس ګوتي دی او په دواړو لاسونو کي يا ددې په لسو ګوتو کي پوره ديت واجبيږی او هره ګوته د دواړو لاسونو کي د ټولو ګوتو عشر (لسمه) ده نو په هره ګوته کي به د پوره ديت عشر ۱۱۱۰ واجب وی.

***************

۱۳۹۲_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، وَمُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ، قَالَا: حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "هَذِهِ وَهَذِهِ سَوَاءٌ". يَعْنِي: الْخِنْصَرَ، وَالْإِبْهَامَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.[1]
**ترجمه** : دعبدالله بن عباس نه مروي دي نبي کريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي په ديت کي دا او دا برابر دي يعني مينځنۍ او کچي ګوته، امام ترمذي وائي داحديث حسن صحيح دي.

***************

## ٥_ باب مَا جَاءَ فِي الْعَفْوِ

### دمعافۍ کولو بيان

۱۳۹۳_ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ الْمُبَارَكِ، حَدَّثَنَا يُونُسُ بْنُ أَبِي إِسْحَاقَ، حَدَّثَنَا أَبُو السَّفَرِ، قَالَ: دَقَّ رَجُلٌ مِنْ قُرَيْشٍ سِنَّ رَجُلٍ مِنَ الْأَنْصَارِ، فَاسْتَعْدَى عَلَيْهِ مُعَاوِيَةَ، فَقَالَ لِمُعَاوِيَةَ: يَا أَمِيرَ الْمُؤْمِنِينَ، إِنَّ هَذَا دَقَّ سِنِّي، قَالَ مُعَاوِيَةُ: إِنَّا سَنُرْضِيكَ، وَأَلَحَّ الْآخَرُ عَلَى مُعَاوِيَةَ فَأَبْرَمَهُ، فَلَمْ يُرْضِهِ، فَقَالَ لَهُ مُعَاوِيَةُ: شَأْنَكَ بِصَاحِبِكَ، وَأَبُو الدَّرْدَاءِ جَالِسٌ عِنْدَهُ،

---

[1] _ البخاري_ الديات ٢٠ (٦٨٩٥). سنن ابي داود_ الديات ٢٠ (٤٥٥٨). سنن النسائي_ القسامة ٣٢ (٤٨٥٢). سنن ابن ماجه_ الديات ١٨ (٢٦٥٢). (تحفة الأشراف: ٦١٨٧). و احمد في المسند (١_ ٣٣٩). و سنن الدارمي_ الديات ١٥ (٢٣١٥)

فَقَالَ أَبُو الدَّرْدَاءِ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. قَالَ: " مَا مِنْ رَجُلٍ يُصَابُ بِشَيْءٍ فِي جَسَدِهِ، فَيَتَصَدَّقُ بِهِ، إِلَّا رَفَعَهُ اللَّهُ بِهِ دَرَجَةً، وَحَطَّ عَنْهُ بِهِ خَطِيئَةً". قَالَ الأَنْصَارِيُّ: أَأَنْتَ سَمِعْتَهُ مِنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ؟ قَالَ: سَمِعَتْهُ أُذُنَايَ، وَوَعَاهُ قَلْبِي، قَالَ: فَإِنِّي أَذَرُهَا لَهُ. قَالَ مُعَاوِيَةُ: لَا جَرَمَ لَا أُخَيِّبُكَ. فَأَمَرَ لَهُ بِمَالٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ هَذَا الْوَجْهِ، وَلَا أَعْرِفُ لِأَبِي السَّفَرِ سَمَاعًا مِنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ. وَأَبُو السَّفَرِ اسْمُهُ: سَعِيدُ بْنُ أَحْمَدَ، وَيُقَالُ: ابْنُ يُحْمِدَ الثَّوْرِيُّ. [1]

**ترجمه** : دابوسفر سعيد بن احمد بيان دي چي يو قريشي ديوانصاري غاښ مات کړو نو انصاري معاويه رضي الله عنه ته فرياد اوکړو او وئيل يي اي اميرالمؤمنين دي قريشي زما غاښ مات کړي دي، معاويه رضي الله عنه اوفرمائيل مونږ به تا ضرور راضي کوو دي بل کس يعني قريشي معاويه رضي الله عنه ته دير اصرار اوکړو او هغه يي تنګ کړو او معاويه رضي الله عنه ورنه مطمئن نشو چنانچي معاويه ورته اووئيل ستامعامله ستا دملګري په لاس کي ده او ابوالدرداء رضي الله عنه ورسره ناست وو ابودرداء اووئيل مادرسول الله صلي الله عليه وسلم نه اوريدلي دي او زما غوږونو اوريدلي دي او زما زړه محفوظ ساتلي دي چي فرمائيل يي دهر چا جسم چي زخمي شي او هغه دي لره صدقه (يعني معاف) کړي نوالله تعالي ددي په بدل کي دده يوه درجه لوړوي او يوه ګناه يي معاف کوي انصاري اووئيل ايا درسول الله صلي الله عليه وسلم نه تا دا اوريدلي دي، ابوالدرداء اووئيل هو زما دواړو غوږونو اوريدلي دي او زمازړه محفوظ ساتلي دي انصاري اووئيل زه ديت معاف کوم معاويه رضي الله عنه اووئيل ليکن زه تا محروم نه پريږدم چنانچي معاويه ده ته دځه مال ورکولو حکم اوکړو.

امام ترمذي وائي داحديث غريب دي او دا مونږ ته صرف په همدي سند رارسيدلي دي، او ماته معلومه نه ده چي دابوسفر سماع دابوالدرداء نه ثابت ده او کنه ده او دابوسفر نوم سعيد بن احمد دي او ده ته ابن يحمد ثوري هم وئيلي دي.

**تشريح**: که يوکس د يوسړی غاښ مات کړو نو په هر غاښ کي به پنځه اوښان واجب وی، څکه چي حديث کي هم دغه شان وارد دی،بيا غاښونه ټول برابر دی،که انياب وی او که اضرس يا طواحن وی او که نواجذ وی،د ټولو حکم يو دی، څکه چي د ابو موسی اشعری په حديث کي مطلق غاښ وارد دی:

((ألأسنان كلها سواء)) معلومه شوه چي ټول غاښونه برابر دی،بيا په اصل منفعت کي ټول برابر

[1] _ ابن ماجه_الديات ٣٥(٢٦٩٣). (تحفة الأشراف: ١٠٩٨١). واحمد في المسند(٦_٤٤٨)

دی نو لکه څنګه چي په لاسونو او ګوتو کي يو بل ته فضيلت ورنکړې شو.دغه شان به په غابونو کي هم تفاضل معتبر نه وی خو دا ټول تفصيل هغه وخت دې،کله چي دا ټول امور خطاء واقع شی.ګنی د عمد په صورت کي به قصاص واجب وی.(هدايه)

***************

## ٦ـ بَابُ مَا جَاءَ فِيمَنْ رُضِخَ رَأْسُهُ بِصَخْرَةٍ

## بيان د ديت د هغه چا چي سر يي په کانړي باندي اوچقولي شي

١٣٩٤ـ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، حَدَّثَنَا هَمَّامٌ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَنَسٍ، قَالَ: خَرَجَتْ جَارِيَةٌ عَلَيْهَا أَوْضَاحٌ، فَأَخَذَهَا يَهُودِيٌّ فَرَضَخَ رَأْسَهَا بِحَجَرٍ، وَأَخَذَ مَا عَلَيْهَا مِنَ الْحُلِيِّ، قَالَ: فَأُدْرِكَتْ وَبِهَا رَمَقٌ، فَأُتِيَ بِهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: "مَنْ قَتَلَكِ، أَفُلَانٌ؟" قَالَتْ بِرَأْسِهَا: لَا، قَالَ: "فَفُلَانٌ، حَتَّى سُمِّيَ الْيَهُودِيُّ". فَقَالَتْ بِرَأْسِهَا: أَيْ نَعَمْ، قَالَ: فَأُخِذَ فَاعْتَرَفَ، فَأَمَرَ بِهِ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَرُضِخَ رَأْسُهُ بَيْنَ حَجَرَيْنِ، قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ الْعِلْمِ، وَهُوَ قَوْلُ: أَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ، وقَالَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ: لَا قَوَدَ إِلَّا بِالسَّيْفِ.[1]

**ترجمه**: دانس رضي الله عنه بيان دي چي يوي جينۍ زيورات په غاړه کړي وو او چرته دتلو دپاره راوتلي وه چي يو يهودي اونيوله او په کانړو يي ددې سر اوچقولو او چي کوم زيورات ورسره وو هغه يي ورنه واخستل او بيا دا جينۍ په داسي حالت کي اوموندلي شوه چي څه قدري ساه پکي موجود وه چنانچي دانبي کريم صلي الله عليه وسلم ته راوړلي شوه نورسول الله ورنه تپوس اوکړو ته چا وهلي يي هغي اووئيل فلاني او هغي په سر اشاره اونکړه رسول الله ورنه تپوس اوکړو ايا فلاني تردي چي هغي دهغه يهودي نوم واخستلو چاچي په کانړي ددي سر چقولي وو او په سر يي اشاره اوکړه يعني هو نو يهودي اونيولی شو او هغه په جرم اعتراف وکړو بيارسول الله صلي الله عليه وسلم حکم اوکړو او دهغه سر د دوه کانړو په مينځ کي اوچقولي شو

---

[1] ـ البخاري ـ الوصايا ٥ (٢٧٤٦) ، والطلاق ٢٤ (تعليقاً) والديات ٤ (٦٨٧٦) ، و ٥ (٦٨٧٧) ، و ١٢ (٦٨٨٤) . صحيح مسلم ـ القسامة ٣ (١٦٧٢) . سنن ابي داود ـ الديات ١٠ (٤٥٢٧) . سنن النسائي ـ المحاربة ٩ (٤٠٥٥) . والقسامة ١٣ (٤٧٤٥) . سنن ابن ماجه ـ الديات ٢٤ (٢٦٦٥) . (تحفة الأشراف : ١٣٩١) . و احمد في المسند (٣ ـ ١٦٣ . ١٨٣ . ٢٠٣ . ٢٦٧) . سنن الدارمي ـ الديات ٤ (٢٤٠٠)

امام ترمذي وائي داحديث حسن صحيح دي او داهل علمو په همدي باندي عمل دي دامام احمد او اسحاق هم دا قول دي مګر بعضي اهل علم وائي چي قصاص به صرف په توره اخستلي شي.

**د قصاص متعلق دفقهاؤ اختلاف دي چي جزاء من جنس العمل پکارده او که صرف په توره قصاص اخستل پکار دي ؟**

د احنافو په نزدبه صرف وسلې سره قصاص اخستلې شی که په توره وی او که په ټوپک وی.

د امام شافعی مسلك دادې چي کوم فعل قاتل کړې دې که دا مشروع فعل وی نو قاتل سره به هم دغه شان کولې شی بیا که هغه په دې سره مړ شونو ټیك ده ګنی ددې نه پس به دده سټ کټ کولې شی ځکه چي د قصاص بنیاد مساوات باندې دې نو د مساوات هم دا طریقه ده او فعل مشروع دادې چي قاتل په دروند کانړی سره چقولې وی او مړ کړې ئې وی او که چري فعل غیر مشروع وی مثلاً قاتل د مقتول په مقعد(د غټ قضائې حاجت په ځائې) کي کونتې یا نیزه دننه کړې وی او مړ کړې ئې وی یا ئې د ښځې په شرمګاه کي نیزه داخل کړې وی او مړه کړې ئې وی نو امام شافعی رحمة الله علیه هم په دې صورت کي د مساوات قائل نه دې.

زمونږ دلیل د ابن ماجه حدیث دې چي قصاص به توري یعنی وسلې سره اخستلې شی.

او امام شافعي په دي مسئله کي د حديث الباب نه استدلال کړی دی.

***************

## ٧ـ بَاب مَا جَاءَ فِي تَشْدِيدِ قَتْلِ الْمُؤْمِنِ

## په ناحقه دمومن په قتل کولو دوعيد بيان

١٣٩٥ـ حَدَّثَنَا أَبُو سَلَمَةَ يَحْيَى بْنُ خَلَفٍ، وَمُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ بَزِيعٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عَدِيٍّ، عَنْ شُعْبَةَ، عَنْ يَعْلَى بْنِ عَطَاءٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: " لَزَوَالُ الدُّنْيَا أَهْوَنُ عَلَى اللَّهِ مِنْ قَتْلِ رَجُلٍ مُسْلِمٍ ". حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ يَعْلَى بْنِ عَطَاءٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، نَحْوَهُ وَلَمْ يَرْفَعْهُ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَهَذَا أَصَحُّ مِنْ حَدِيثِ ابْنِ أَبِي عَدِيٍّ، قَالَ: وَفِي الْبَاب، عَنْ سَعْدٍ، وَابْنِ عَبَّاسٍ، وَأَبِي سَعِيدٍ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَعُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ، وَابْنِ مَسْعُودٍ، وَبُرَيْدَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، هَكَذَا رَوَاهُ ابْنُ أَبِي عَدِيٍّ، عَنْ شُعْبَةَ، عَنْ يَعْلَى بْنِ عَطَاءٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو،

عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَرَوَى مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ، وَغَيْرُ وَاحِدٍ، عَنْ شُعْبَةَ، عَنْ يَعْلَى بْنِ عَطَاءٍ، فَلَمْ يَرْفَعْهُ، وَهَكَذَا رَوَى سُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ، عَنْ يَعْلَى بْنِ عَطَاءٍ مَوْقُوفًا، وَهَذَا أَصَحُّ مِنَ الحَدِيثِ المَرْفُوعِ. (1)

**ترجمه**: دعبدالله بن عمر رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي ددنيا بربادي دالله تعالي په نزد ديو مسلمان دقتل کولو نه کمه او اسانه ده.

امام ترمذي وائي مونږ ته محمد بن بشار په سند دمحمد بن جعفر حديث بيان کړي دي او هغه دشعبه نه او هغه ديعلي بن اعطاء نه او هغه دخپل پلار عبدالله بن عمرو نه او هغه دنبي کريم صلي الله عليه وسلم نه ددي هم معني روايت نقل کړي دي مګر محمد بن جعفر او دده نه علاوه نورو راويانو دشعبه نه په سند د يعلي بن عطاء روايت نقل کړي دي ليکن هغوئ مرفوع نه دي بيان کړي، دارنګي سفيان ثوري دا روايت ديعلي بن عطاء نه موقوف نقل کړي دي او ددي روايت موقوف بيانول دمرفوع نه زيات صحيح دي، او په دي باب کي دسعد، ابن عباس، ابوسعيد، ابوهريره، عقبه بن عامر، ابن مسعود، او بريده رضي الله عنه نه هم احاديث مروي دي.

## دعمدا قتل کونکي متعلق احاديث

دابن مسعود رضي الله عنه نه روايت دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمايلي دي دقيامت په ورځ به دهرڅه نه مخکي دباهمي خونو فيصله وکړي شي (متفق عليه).

دابن مسعود رضي الله عنه نه روايت دي چي يو کس عرض وکړو اي دالله رسوله په ټولو کښ ديره لويه ګناه کومه يوه ده؟ نبي عليه السلام اوفرمائيل: الله تعالي لره مثل مقررول باوجود ددي چي خاص الله تعالي ته پيدا کړي ني ، سائل بيا عرض وکړو چي ددينه پس بله کومه يوه ده نوهغوئ ورته اوفرمائيل خپل اولاد ددي ويري په وجه وژل چي ستا سره به په خوراك کي شريك شي الحديث رواه الشيخان

دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي داوه مهلکاتو نه خان بچ اوساتئ اونبي کريم صلي الله عليه وسلم په دي اوه مهلکاتو کي په ناحقه قتل کول هم وشميرل (متفق عليه).

دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه مروي دي چي مومن په حالت دايمان کي قتل نه کوي (رواه البخاري).

---

1 ـ النسائي ـ المحاربة ٢ (٣٩٩٢). (تحفة الأشراف: ٨٨٨٤)

دعبدالله بن عمرو بن العاص رضي الله عنه نه روايت دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دټولي دنيا زائله کيدل دالله تعالي په نزد ديومسلمان دقتل کولو په مقابله کې حقير دي (رواه الترمذي والنسائي)

ابن ماجه داحديث دبراء بن عازب رضي الله عنه په روايت سره بيان کړي دي . نسائي هم دابوهريره رضي الله عنه په روايت سره بيان کړي دي چي دالله تعالي په نزد دمومن قتل کول ددنيا زائله کيدو نه هم لويه خساره ده، دابوهريره او ابوسعيد خدري رضي الله عنهما په روايت سره درسول الله دافرمان مروي دي که چري دزمکي او اسمان والاديو مسلمان په قتل کې شريك شي نو الله تعالي به ئي نسکور په دوزخ کې زوړند کړي اوپړمخي به ئي ور واچوي. رواه الترمذي.

دعبدالله بن عمرو رضي الله عنه بيان دي فرمائي چي ما کتل چي رسول الله دکعبي طواف کولو اوفرمائيل ئي ته څومره پاك ئي ستاخوشبو څومره لطيفه ده ته څومره عالي قدر ئي ، او ستارحمت څومره عظيم الشان دي، ليکن زما دي قسم وي په هغه ذات دچاپه لاس کې چي زما روح دي دمومن دمال اوجان حرمت ستادحرمت نه لوي دي (رواه ابن ماجة)

دابو الدرداء رضي الله عنه نه روايت دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي مومن په هغه وخت کې ددوزخ نه ازاد اونيکو کار کيدي شي چي ترڅوئي دحرام قتل ارتکاب نه وي کړي خوکله چي دحرام قتل ارتکاب وکړي نوهلاك شي (رواه ابوداود)

دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چاچي دمومن په قتل کې دنيمي خبري هومره اعانت هم کړي وي نو کله چي دي دالله تعالي سره مخامخ کيږي نو دده ددواړو سترګوپه مينځ کې به ليکلي شوي وي چي دي دالله درحمت نه لري کړي شوي دي رواه ابن ماجة.

طبراني داحديث دابن عباس په روايت سره بيان کړي دي او ابن الجوزي هم دابو سعيد خدري په روايت سره بيان کړي دي او ابونعيم هم په حليه کې دعمر بن الخطاب رضي الله عنه په روايت سره موقوفا ذکرکړي دي. والله اعلم بالصواب.

بخاري ، ترمذي اوحاکم وغيره په حواله دعکرمه سره دابن عباس رضي الله عنهما قول بيان کړي دي چي دقبيلي بني سليم يوکس خپلي چيلۍ څرولي اودصحابه کرامو ديوي ډلي په خوا کې تير شو او دوئ ته ئي سلام وکړو ، صحابه کرامو ووئيل ده په مونږ باندي سلام صرف په دي غرض سره اچولي دي چي زمونږ دلاس نه بچ شي ، (په واقع کې دي مسلمان ندي) نو په دي ګمان سره ئي قتل کړو اودده چيلۍ يي واخستلي او درسول الله په خدمت کې حاضر شول نوپه دي باره کې الله تعالي په قران کې وحي نازله کړله. (مظهري)

****************

## ٨_ باب الحُكْمِ فِي الدِّمَاءِ

### دويني دفيصلي بيان

١٣٩٦_ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا وَهْبُ بْنُ جَرِيرٍ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي وَائِلٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ أَوَّلَ مَا يُحْكَمُ بَيْنَ الْعِبَادِ فِي الدِّمَاءِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عَبْدِ اللَّهِ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَهَكَذَا رَوَى غَيْرُ وَاحِدٍ، عَنِ الأَعْمَشِ مَرْفُوعًا، وَرَوَى بَعْضُهُمْ، عَنِ الأَعْمَشِ وَلَمْ يَرْفَعُوهُ.[1]

**ترجمه**: دعبدالله بن مسعود رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي په اخرت كي به دبندګانو په مينځ كي دهر څه نه مخكي دويني باره كي فيصله كولي شي.
امام ترمذي وائي دابن مسعود حديث حسن صحيح دي دارنګي ډيرو راويانو داحديث داعمش نه مرفوعا نقل كړي دي مګر بعضي راويانو داعمش نه موقوف نقل كړي دي او مرفوع يي نه دي نقل كړي.

*****************

١٣٩٧_ حَدَّثَنَا أَبُو كُرَيْبٍ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي وَائِلٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ أَوَّلَ مَا يُقْضَى بَيْنَ الْعِبَادِ فِي الدِّمَاءِ".[2]

**ترجمه**: دعبدالله بن مسعود رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي په اخرت كي به دبندګانو په مينځ كي دهر څه نه مخكي دويني باره كي فيصله كولي شي.

****************

١٣٩٨_ حَدَّثَنَا الْحُسَيْنُ بْنُ حُرَيْثٍ، حَدَّثَنَا الْفَضْلُ بْنُ مُوسَى، عَنِ الْحُسَيْنِ بْنِ وَاقِدٍ، عَنْ يَزِيدَ الرَّقَاشِيِّ، حَدَّثَنَا أَبُو الْحَكَمِ الْبَجَلِيُّ، قَالَ: سَمِعْتُ أَبَا سَعِيدٍ الْخُدْرِيَّ، وَأَبَا هُرَيْرَةَ، يَذْكُرَانِ عَنْ

---

[1] _ البخاري_ الرقاق ٤٨ (٦٥٣٣)، والديات ١ (٦٨٦٤)، صحيح مسلم_ القسامة ٨ (١٦٧٨)، سنن النسائي_ المحاربة ٢ (٣٩٩٧)، سنن ابن ماجه_ الديات ١ (٢٦١٧)، (تحفة الأشراف: ٩٢٤٦)، واحمد في المسند (١_ ٣٨٨، ٤٤١، ٤٤٢)

[2] _ البخاري_ الرقاق ٤٨ (٦٥٣٣)، والديات ١ (٦٨٦٤)، صحيح مسلم_ القسامة ٨ (١٦٧٨)، سنن النسائي_ المحاربة ٢ (٣٩٩٧)، سنن ابن ماجه_ الديات ١ (٢٦١٧)، (تحفة الأشراف: ٩٢٤٦)، واحمد في المسند (١_ ٣٨٨، ٤٤١، ٤٤٢)

رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: " لَوْ أَنَّ أَهْلَ السَّمَاءِ، وَأَهْلَ الأَرْضِ، اشْتَرَكُوا فِي دَمِ مُؤْمِنٍ، لأَكَبَّهُمُ اللَّهُ فِي النَّارِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ. (1)

**ترجمه** دابوسعيد خذري او ابوهريره رضي الله عنهما نه روايت دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي كه چري په زمكه او اسمان كي ټول موجود مخلوق ديو كس په قتل كي ملوث شي نوالله تعالي به ټول جهنم ته اوغورځوي.

امام ترمذي وائي داحديث غريب دي.

**************

## ٩_ باب مَا جَاءَ فِي الرَّجُلِ يَقْتُلُ ابْنَهُ يُقَادُ مِنْهُ أَمْ لاَ

### كه څوک خپل ځوي قتل كړي نو ايا قصاص به ورنه اخستلي شي؟

١٣٩٩_ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ عَيَّاشٍ، حَدَّثَنَا الْمُثَنَّى بْنُ الصَّبَّاحِ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، عَنْ سُرَاقَةَ بْنِ مَالِكِ بْنِ جُعْشُمٍ، قَالَ: " حَضَرْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُقِيدُ الأَبَ مِنَ ابْنِهِ، وَلاَ يُقِيدُ الابْنَ مِنْ أَبِيهِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ لاَ نَعْرِفُهُ مِنْ حَدِيثِ سُرَاقَةَ إِلاَّ مِنْ هَذَا الْوَجْهِ، وَلَيْسَ إِسْنَادُهُ بِصَحِيحٍ، رَوَاهُ إِسْمَاعِيلُ بْنُ عَيَّاشٍ، عَنِ الْمُثَنَّى بْنِ الصَّبَّاحِ، وَالْمُثَنَّى بْنُ الصَّبَّاحِ يُضَعَّفُ فِي الْحَدِيثِ، وَقَدْ رَوَى هَذَا الْحَدِيثَ، أَبُو خَالِدٍ الأَحْمَرُ، عَنِ الْحَجَّاجِ بْنِ أَرْطَاةَ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، عَنْ عُمَرَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَقَدْ رُوِيَ هَذَا الْحَدِيثُ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، مُرْسَلاً، وَهَذَا حَدِيثٌ فِيهِ اضْطِرَابٌ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ، أَنَّ الأَبَ إِذَا قَتَلَ ابْنَهُ لاَ يُقْتَلُ بِهِ، وَإِذَا قَذَفَ ابْنَهُ لاَ يُحَدُّ. (2)

**ترجمه** : دسراقه بن جعشم بيان دي فرمائي چي زه درسول الله صلي الله عليه وسلم په خدمت كي حاضر شوم نو اومي كتل چي رسول الله صلي الله عليه وسلم ديوځوي نه دپلار قصاص اخستلو او دځوي قصاص يې دپلار نه نه اخستلو.

امام ترمذي وائي دسراقه دا حديث مونږ ته صرف په همدي سند رارسيدلي دي او دا سند صحيح نه دي دا روايت اسماعيل بن عياش دمثني بن صباح نه نقل كړي دي او مثني بن

---

1 _ تفرد بذكره المؤلف (تحفة الأشراف: ٤٤١١ و ١٢٨٤٦)

2 _ تفرد بذكره المؤلف (تحفة الأشراف: ٣٨١٨)

صباح په باب دحديث کي ضعيف دي، او دا حديث ابوخالد احمر په سند د حجاج بن ارطاة عن عمرو بن شعيب عن ابيه عن جده عن عمر عن النبي صلي الله عليه وسلم سره نقل کړي دي، او دا حديث عمرو بن شعيب مرسل هم نقل کړي دي او په دي حديث کي اضطراب دي او داهل علمو په دي باندي عمل دي چي کله پلار خوي لره قتل کړي نو په بدل کي به ورنه قصاص نشي اخستلي او چي کله پلار په خوي باندي دزنا الزام اولګوي نو په هغه باندي به حد دقذف نه جاري کيږي.

***************

١٤٠٠_ حَدَّثَنَا أَبُو سَعِيدٍ الْأَشَجُّ، حَدَّثَنَا أَبُو خَالِدٍ الْأَحْمَرُ، عَنِ الْحَجَّاجِ بْنِ أَرْطَاةَ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، عَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "لَا يُقَادُ الْوَالِدُ بِالْوَلَدِ".[1]

**ترجمه** : دعمر رضي الله عنه بيان دي فرمائي چي ما درسول الله صلي الله عليه وسلم نه اوريدلي دي چي دپلار نه به دخوي قصاص نشي اخستلي.

***************

١٤٠١_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عَدِيٍّ، عَنْ إِسْمَاعِيلَ بْنِ مُسْلِمٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ دِينَارٍ، عَنْ طَاوُسٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَا تُقَامُ الْحُدُودُ فِي الْمَسَاجِدِ، وَلَا يُقْتَلُ الْوَالِدُ بِالْوَلَدِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ لَا نَعْرِفُهُ بِهَذَا الْإِسْنَادِ مَرْفُوعًا، إِلَّا مِنْ حَدِيثِ إِسْمَاعِيلَ بْنِ مُسْلِمٍ، وَإِسْمَاعِيلُ بْنُ مُسْلِمٍ الْمَكِّيُّ قَدْ تَكَلَّمَ فِيهِ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ قِبَلِ حِفْظِهِ.[2]

**ترجمه** : دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه روايت دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي په مسجدونو کي دي حدود قائم نکړي شي او د زوئ په بدل کي دي دپلار نه قصاص وانه خستلي شي.

امام ترمذي وائي داحديث مونږ ته صرف داسماعيل بن مسلم په سند مرفوع رارسيدلي دي او په اسماعيل بن مسلم مکي دحفظ په اعتبار بعضي محدثينو کلام کړي دي.

***************

[1] _ ابن ماجه_ الديات ٢٢ (٢٦٦٢). (تحفة الأشراف: ١٠٥٨٢). واحمد في المسند (١_ ١٦، ٢٢)

[2] _ ابن ماجه_ الحدود ٣١ (٢٥٩٩). والديات ٢٢ (٢٦٦١). (تحفة الأشراف: ٥٧٤٠)

## ١٠_ باب مَا جَاءَ لاَ يَحِلُّ دَمُ امْرِئٍ مُسْلِمٍ إِلاَّ بِإِحْدَى ثَلاَثٍ

### ديو مسلمان وينه تويول جائز نه دي مګر کله چي يوپه دري کارونو کي اوموندلي شي نو جائز کيږي

١٤٠٢_ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مُرَّةَ، عَنْ مَسْرُوقٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لاَ يَحِلُّ دَمُ امْرِئٍ مُسْلِمٍ يَشْهَدُ أَنْ لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللَّهُ وَأَنِّي رَسُولُ اللَّهِ إِلاَّ بِإِحْدَى ثَلاَثٍ: الثَّيِّبُ الزَّانِي، وَالنَّفْسُ بِالنَّفْسِ، وَالتَّارِكُ لِدِينِهِ، الْمُفَارِقُ لِلْجَمَاعَةِ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ عُثْمَانَ، وَعَائِشَةَ، وَابْنِ عَبَّاسٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ مَسْعُودٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.[1]

**ترجمه**: دعبدالله بن مسعود رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي ديو مسلمان وينه تويولو څوك چي ددي خبري ګواهي کوي چي دالله تعالي نه علاوه بل څوك لائق دبندګۍ نشته او زه دالله رسول دهغه وخته پوري جائز نه دي څوپوري چي په دري کارونو کي يو موجود شوي نه وي يا خو به دا شادي شده زناکار وي او يا به يي په ناحقه قتل کړي وي او يا به يي خپل دين پريخودلي وي او دمسلمانانو دجماعت نه به جدا شوي وي.

***************

## ١١_ باب مَا جَاءَ فِيمَنْ يَقْتُلُ نَفْسًا مُعَاهِدَةً

### دذمي او معاهد دقتل کولو باره کي وعيد

١٤٠٣_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا مَعْدِيُّ بْنُ سُلَيْمَانَ هُوَ الْبَصْرِيُّ، عَنِ ابْنِ عَجْلاَنَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "أَلاَ مَنْ قَتَلَ نَفْسًا مُعَاهِدًا لَهُ ذِمَّةُ اللَّهِ وَذِمَّةُ رَسُولِهِ فَقَدْ أَخْفَرَ بِذِمَّةِ اللَّهِ فَلاَ يُرَحْ رَائِحَةَ الْجَنَّةِ، وَإِنَّ رِيحَهَا لَيُوجَدُ مِنْ مَسِيرَةِ سَبْعِينَ

---

[1] _ البخاري_ الديات ٦ (٦٨٧٨). صحيح مسلم_ القسامة ٦ (١٦٧٦). سنن ابي داود_ الحدود ١ (٤٣٥١). سنن النسائي_ المحاربة ٥ (٤٠٢١). سنن ابن ماجه_ الحدود ١ (٢٥٣٤). (تحفة الأشراف: ٩٥٦٧). واحمد في المسند (١_ ٣٨٢، ٤٢٨، ٤٤٤، ٤٦٥)

خَرِيفًا ". قَالَ: وَفِي الْبَاب، عَنْ أَبِي بَكْرَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رُوِيَ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. (1)

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي خبردار ! كه چا داسي ذمي قتل كړو چاچي دالله او درسول پناه حاصله كړي وي نو ده دالله تعالي عهد مات كړو لهذا دي به دجنت خوشبو هم اونه ګوري او حال دادي چي دجنت خوشبو به داويا كالو دمساوي په مقدار لري نه محسوس كيږي.

امام ترمذي وائي دابوهريره حديث حسن صحيح دي او دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه دابوهريره په واسطه دا حديث په يو څو سندونو مروي دي.

*****************

## باب

## دمعاهد د قتل متعلق يوبل باب

١٤٠٤ـ حَدَّثَنَا أَبُو كُرَيْبٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ آدَمَ، عَنْ أَبِي بَكْرِ بْنِ عَيَّاشٍ، عَنْ أَبِي سَعْدٍ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، "أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَدَى الْعَامِرِيَّيْنِ بِدِيَةِ الْمُسْلِمِينَ، وَكَانَ لَهُمَا عَهْدٌ مِنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ، لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ هَذَا الْوَجْهِ، وَأَبُو سَعْدٍ الْبَقَّالُ اسْمُهُ: سَعِيدُ بْنُ الْمَرْزُبَانِ. (2)

**ترجمه** : دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه روايت دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم دبني عامر قبيلي دوه كسانو ته دمسلمانانو برابر ديت وركړو ځكه چي درسول الله صلي الله عليه وسلم سره ددوئ دوارو عهد وو.

امام ترمذي وائي دا حديث غريب دي او دا مونږ ته صرف په همدي سند رارسيدلي دي دحديث دراوي ابو سعد بقال نوم سعيد بن مرزبان دي.

*****************

## ١٢ـ بَاب مَا جَاءَ فِي حُكْمِ وَلِيِّ الْقَتِيلِ فِي الْقِصَاصِ وَالْعَفْوِ

## په قصاص او معافئ كولو كي دمقتول دولي دفيصلي بيان

---

[1] ـ ابن ماجه ـ الديات ٣٢ (٢٦٨٧). (تحفة الأشراف: ١٢١٣٠)

[2] ـ تفرد بذكره المؤلف (تحفة الأشراف: ٦٠٩٣)

١٤٠٥_ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، وَيَحْيَى بْنُ مُوسَى، قَالَا: حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ بْنُ مُسْلِمٍ، حَدَّثَنَا الأَوْزَاعِيُّ، حَدَّثَنِي يَحْيَى بْنُ أَبِي كَثِيرٍ، حَدَّثَنِي أَبُو سَلَمَةَ، حَدَّثَنِي أَبُو هُرَيْرَةَ، قَالَ: لَمَّا فَتَحَ اللَّهُ عَلَى رَسُولِهِ مَكَّةَ قَامَ فِي النَّاسِ، فَحَمِدَ اللَّهَ، وَأَثْنَى عَلَيْهِ، ثُمَّ قَالَ: " وَمَنْ قُتِلَ لَهُ قَتِيلٌ فَهُوَ بِخَيْرِ النَّظَرَيْنِ إِمَّا أَنْ يَعْفُوَ، وَإِمَّا أَنْ يَقْتُلَ ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ وَائِلِ بْنِ حُجْرٍ، وَأَنَسٍ، وَأَبِي شُرَيْحٍ خُوَيْلِدِ بْنِ عَمْرٍو. (١)

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي فرمائي كله چي الله تعالي خپل رسول ته مكه فتح كړه نورسول الله صلي الله عليه وسلم دخلقو مينځ كي اودريدو او دالله تعالي حمد او ثناء يي بيان كړه او بيا يي اوفرمائيل دچاچي كوم كس وژلي شوي وي هغه ته په دوه خبرو كي ديوي اختيار دي يا خو به معافي كوي او يا به په قصاص كي قاتل قتل كوي.

امام ترمذي وائي داحديث حسن صحيح دي، او په دي باب كي دوائل بن حجر، انس، ابوشريح، او خويلد بن عمرو رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي.

*****************

١٤٠٦_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي ذِئْبٍ، حَدَّثَنِي سَعِيدُ بْنُ أَبِي سَعِيدٍ الْمَقْبُرِيُّ، عَنْ أَبِي شُرَيْحٍ الْكَعْبِيِّ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: " إِنَّ اللَّهَ حَرَّمَ مَكَّةَ وَلَمْ يُحَرِّمْهَا النَّاسُ، مَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الآخِرِ فَلَا يَسْفِكَنَّ فِيهَا دَمًا، وَلَا يَعْضِدَنَّ فِيهَا شَجَرًا، فَإِنْ تَرَخَّصَ مُتَرَخِّصٌ ". فَقَالَ: " أُحِلَّتْ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَإِنَّ اللَّهَ أَحَلَّهَا لِي، وَلَمْ يُحِلَّهَا لِلنَّاسِ، وَإِنَّمَا أُحِلَّتْ لِي سَاعَةً مِنْ نَهَارٍ، ثُمَّ هِيَ حَرَامٌ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ، ثُمَّ إِنَّكُمْ مَعْشَرَ خُزَاعَةَ قَتَلْتُمْ هَذَا الرَّجُلَ مِنْ هُذَيْلٍ، وَإِنِّي عَاقِلُهُ، فَمَنْ قُتِلَ لَهُ قَتِيلٌ بَعْدَ الْيَوْمِ فَأَهْلُهُ بَيْنَ خِيرَتَيْنِ: إِمَّا أَنْ يَقْتُلُوا، أَوْ يَأْخُذُوا الْعَقْلَ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَرَوَاهُ شَيْبَانُ أَيْضًا، عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي كَثِيرٍ مِثْلَ هَذَا، وَرُوِيَ عَنْ أَبِي شُرَيْحٍ الْخُزَاعِيِّ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى

---

[1] _ البخاري_ العلم ٣٩ (١١٢) . واللقطة ٧ (٢٤٣٤) . والديات ٨ (٦٨٨٠) . مسلم_ الحج ٨٢ (١٣٥٥) . ابي داود_ الديات ٣ (٤٥٠٥) . سنن النسائي_ القسامة ٣٠ (٤٧٨٩) . ابن ماجه_ الديات ٣ (٢٦٢٤) . وفي العلم برقم ٢٦٦٧. (تحفة الأشراف : ١٥٣٨٣) . و احمد في المسند (٢_٢٣٨)

اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " مَنْ قُتِلَ لَهُ قَتِيلٌ، فَلَهُ أَنْ يَقْتُلَ، أَوْ يَعْفُوَ، أَوْ يَأْخُذَ الدِّيَةَ ". وَذَهَبَ إِلَى هَذَا بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ، وَهُوَ قَوْلُ: أَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ. [1]

**ترجمه** : دابوشريح عدي رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي: په مكه كي جنګ او جدال كول الله تعالي حرام كړي دي (خو افسوس دادي چه) خلقو حرام نكړل لهذا دهيچا دپاره ځوك چي په الله او په ورځ داخرت ايمان لري دا جائز نه دي چي هغه په مكه كي خون خرابه اوكړي او يا ددي كومه ونه پري كړي او كه ځوك په دي كي درسول الله صلي الله عليه وسلم دقتال كولو نه استدلال كوي او دقتال دپاره جواز پيدا كوي نو هغوئ ته اووائي الله تعالي خو خپل رسول ته ددي كار اجازت وركړي وو مګر تاسو ته يي نه دي دركړي چنانچي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چي ماته هم دورځي څه وخت دپاره اجازت راكړي شوي وو خو نن ددي حرمت واپس خپل خاي ته راغي لكه چي پرون ځنګه قائم وو اود قيامت پوري به دا حرمت قائم وي،او بيا تاسو ونيلي وو اي د خزاعه قبيلي خلقو چي فلاني قاتل زمونږ د قوم دى او مونږ دده ديت وركوو ، د نن نه پس چي هر چا ځوك مړ كړو نو وارثانو د مقتول ته به اختيار وي په دوه خبرو كي چي يا خو به يي وژني او يا به ورنه ديت اخلي.

امام ترمذي وائي دابوشريح حديث حسن صحيح دي.او دابوشريح خزاعي نوم خويلد بن عمرو دي او عدوي او كعبي هم دي، او په دي باب كي دابوهريره، ابن عباس رضي الله عنهم نه هم روايت مروي دي. او د "ولافارا بخربة" په خاي باندي "ولافارا بخزية" سره هم مروي دي او په "ولافارا بخربة" كي خربة په معني دګناه او جرم دي يعني ځوك كوم جرم اوكړي او يا قتل اوكړي او بيا په حرم كي پناه واخلي په هغه باندي به حد جاري كيږي

امام ترمذي وائي داحديث حسن صحيح دي او دابوهريره حديث هم حسن صحيح دي دا حديث شيبان هم ديحيٰ بن ابي كثير نه ددي حديث هم معني بيان كړي ده او دا حديث دابوشريح كعبي په خاي دابوشريح خزاعي نه هم مروي دي او دا دواړه نومونه ديو كس دي او هغوئ دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه نقل كړي دي چي فرمائيلي يي وو دچاچي كوم كس قتل كړي شي نو هغه ته په دي كي اختيار دي چي يا خو به قاتل په بدل كي قتل كوي او يا به

---

[1] ـ اخرجه البخاري في الصحيح في العلم ٣٧ (١٠٢) . وجزاء الصيد ٨ (١٨٣٢) . والمغازي ٥١ (٤٢٩٥) . صحيح مسلم في الحج ٨٢ (١٣٥٤) . سنن النسائي في الحج ١١١ (٢٨٧٩) . (تحفة الأشراف : ١٢٠٥٧) . مسند احمد (٤ في ٣١) . ويأتي عند المؤلف في الديات (برقم : ١٤٠٦) . واحمد في المسند (٦ في ٣٨٥)

ورته معافي کوي اويابه ديت وصول کوي بعضي اهل علمو دي طرف ته ذهاب کړي دي دامام احمد اواسحاق بن راهويه هم دا قول دي

***************

١٤٠٧ـ حَدَّثَنَا أَبُو كُرَيْبٍ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قُتِلَ رَجُلٌ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَدُفِعَ الْقَاتِلُ إِلَى وَلِيِّهِ. فَقَالَ الْقَاتِلُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، وَاللَّهِ مَا أَرَدْتُ قَتْلَهُ. فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَمَا إِنَّهُ إِنْ كَانَ قَوْلُهُ صَادِقًا فَقَتَلْتَهُ دَخَلْتَ النَّارَ". فَخَلَّى عَنْهُ الرَّجُلُ، قَالَ: وَكَانَ مَكْتُوفًا بِنِسْعَةٍ، قَالَ: فَخَرَجَ يَجُرُّ نِسْعَتَهُ، قَالَ: فَكَانَ يُسَمَّى: ذَا النِّسْعَةِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالنِّسْعَةُ حَبْلٌ.[1]

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه بيان دي چي دنبي کريم صلي الله عليه وسلم په زمانه کي يو کس قتل کړي شو نو قاتل دمقتول وارثانو ته اوسپارلي شو قاتل عرض اوکړو اي دالله رسوله په الله قسم ما دا کس قصدا نه دي قتل کړي رسول الله اوفرمائيل خبردار که قاتل پخپله خبره کي ريښتوني وي او بيايي هم تاسو قتل کړئ نو جهنم ته به لاړشئ چنانچي دمړي وارثانو دي پريخودو او دا کس په پړو تړلي شوي وو او ده رسئ راښکله او بهر راروان وو او په همدي وجه ورباندي ذوالنسعه نوم کيخودلي شو يعني رسئ والا.

امام ترمذي وائي داحديث حسن صحيح دي او نسعه رسئ ته وئيلي شي.

***************

## ١٣ـ باب مَا جَاءَ فِي النَّهْيِ عَنِ الْمُثْلَةِ

### دمړي دمثله کولو دممانعت بيان

١٤٠٨ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ عَلْقَمَةَ بْنِ مَرْثَدٍ، عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ بُرَيْدَةَ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا بَعَثَ أَمِيرًا عَلَى جَيْشٍ، أَوْصَاهُ فِي خَاصَّةِ نَفْسِهِ بِتَقْوَى اللَّهِ، وَمَنْ مَعَهُ مِنَ الْمُسْلِمِينَ خَيْرًا. فَقَالَ: "اغْزُوا بِسْمِ اللَّهِ، وَفِي سَبِيلِ اللَّهِ، قَاتِلُوا مَنْ كَفَرَ، اغْزُوا وَلَا تَغُلُّوا، وَلَا تَغْدِرُوا، وَلَا تُمَثِّلُوا، وَلَا تَقْتُلُوا وَلِيدًا". وَفِي الْحَدِيثِ قِصَّةٌ، قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ، وَشَدَّادِ بْنِ أَوْسٍ، وَعِمْرَانَ بْنِ

---

[1] ـ ابي داود ـ الديات ٣ (٤٤٩٨). سنن النسائي ـ القسامة ٥ (٤٧٢٦). سنن ابن ماجه ـ الديات ٣٢ (٢٦٩٠). (تحفة الأشراف: ١٢٥٠٧)

حُصَيْنٍ، وَأَنَسٍ، وَسَمُرَةَ، وَالْمُغِيرَةِ، وَيَعْلَى بْنِ مُرَّةَ، وَأَبِي أَيُّوبَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ بُرَيْدَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَكَرِهَ أَهْلُ الْعِلْمِ الْمُثْلَةَ. (١)

**ترجمه**: دبريده رضي الله عنه بيان دي چي كله به رسول الله صلي الله عليه وسلم په كوم لښكر امير مقرر كړو او بيا به يي ليږلو نو په خصوصي طور سره به يي هغه ته دالله تعالي نه د ويري كولو په باره كي وصيت كولو او چي كوم مسلمانان به ورسره وو ده ته به يي دهغوئ سره دښيگړي كولو وصيت كولو چنانچي يوځل رسول الله اوفرمائيل دالله تعالي دنوم په بركت په دي لاره كي جهاد كوئ او څوك چي كفر كوي هغوئ سره جنگيږئ او جهاد كوئ مګر دغنيمت په مال كي خيانت مه كوئ او بدعهدي به نه كوئ او كوم ماشوم به نه قتل كوئ په دي حديث كي نور تفصيل هم شته.

امام ترمذي وائي په دي باب كي دبريده حديث حسن صحيح دي اوپه دي باب كي دعبدالله بن مسعود، شداد بن اوس، عمران بن حصين، انس، سمره، مغيره، يعلي بن مره، او ابوايوب رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي اواهل علمو مثله حرام گنړلي ده.

***************

١٤٠٩_ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ، حَدَّثَنَا خَالِدٌ، عَنْ أَبِي قِلَابَةَ، عَنْ أَبِي الْأَشْعَثِ الصَّنْعَانِيِّ، عَنْ شَدَّادِ بْنِ أَوْسٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِنَّ اللَّهَ كَتَبَ الْإِحْسَانَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ، فَإِذَا قَتَلْتُمْ فَأَحْسِنُوا الْقِتْلَةَ، وَإِذَا ذَبَحْتُمْ فَأَحْسِنُوا الذِّبْحَةَ، وَلْيُحِدَّ أَحَدُكُمْ شَفْرَتَهُ، وَلْيُرِحْ ذَبِيحَتَهُ". قَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. أَبُو الْأَشْعَثِ الصَّنْعَانِيُّ اسْمُهُ: شَرَاحِيلُ بْنُ آدَةَ. (٢)

**ترجمه**: ابويعلي شداد بن اوس رضي الله عنه نه روايت دى چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي الله تعالي په هر كار كي احسان ريه ښه طريقه كول، ضروري كړى دى نو كله چي تاسو څه شى قتل كوئ نوپه ښه طريقي يى قتل كوئ اوكه څه څاروى ذبح كوئ نو چاړه ښه

---

[1] _ مسلم_ الجهاد ٢ (١٧٣١). سنن ابي داود_ الجهاد ٩٠ (٢٦١٣). سنن ابن ماجه_ الجهاد ٣٨ (٢٨٥٨). (تحفة الأشراف: ١٩٢٩). و احمد في المسند (٥_ ٣٥٢، ٣٥٨). وسنن الدارمي_ السير (٢٤٨٣)

[2] _ مسلم_ الصيد ١١ (١٩٥٥). سنن ابي داود_ الضحايا ١٢ (٢٨١٥). سنن النسائي _الضحايا ٢٢ (٤٤١٠). و ٢٧ (٤٤١٩). سنن ابن ماجه_ الذبائح ٣ (٣١٧٠). (تحفة الأشراف : ٤٨١٨). و احمد في المسند (٤_ ١٢٣، ١٢٤، ١٢٥). و سنن الدارمي_ الأضاحي ١٠ (٢٠١٣)

تيره ساتئ چي ځاروي ته تکليف نه وي (زر ذبح شي).
امام ترمذي وائي داحديث حسن صحيح دي.
**لغات**: القتلة د سمع نه په معني دقتل کولو دي ، ليحدّ ، حدّ يحدّ حدا وحدودا ، معني چاړه دي تيره کړي، شفرته، معني خپله لويه چاړه.
**تشريح**: "فاذا قتلتم فاحسنوا القتلة" يعني کله چي قتل کوئ نو په ښه طريقه يي کوئ ددي مطلب دادی چي کله تاسو کوم قاتل وژنئ يادجنګ په ميدان کې کوم دشمن قتل کوئ نو په داسي وخت کې به هم دعدل نه کار اخلئ داسي به نه کوئ چي ددشمنئ په جذبه کې راشئ او ضرر ورته اورسوئ او يا ورنه غوږ پوزه پري کړئ په ښي طريقي دقتل کولو مطلب دادی چي دتوري په يووار سره يي سر دتني نه جدا کړئ.
"فاذا ذبحتم الذبيحة فاحسنوا الذبحة: يعني کله چي ځاروی ذبح کوئ نو په ښه طريقه يي ذبح کړئ، ددي جملي مطلب دادی چي کله دکوم ځاروي ذبح کولو ته ضرورت پيښ شي نو چاړه به ښه تيره کړئ ددي دپاره چي ځاروی په جلتئ سره ذبح شي او روح ورنه لاړ شي مګر که چاړه تيره نه وي نو په ذبح کيدو کې تاخير کيږي او بيا ددي په وجه ځاروي ته تکليف رسيږي

***************

## ١٤ـ باب مَا جَاءَ فِي دِيَةِ الْجَنِينِ

### دجنين (دمورپه خيټه کي دموجود بچي) دديت بيان

١٤١٠ـ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ سَعِيدٍ الْكِنْدِيُّ الْكُوفِيُّ. حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي زَائِدَةَ. عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرٍو. عَنْ أَبِي سَلَمَةَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ. قَالَ: قَضَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْجَنِينِ بِغُرَّةٍ عَبْدٍ أَوْ أَمَةٍ. فَقَالَ الَّذِي قُضِيَ عَلَيْهِ. أَيُعْطَى مَنْ لا شَرِبَ، وَلا أَكَلَ. وَلا صَاحَ. فَاسْتَهَلَّ. فَمِثْلُ ذَلِكَ يُطَلُّ. فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِنَّ هَذَا لَيَقُولُ بِقَوْلِ شَاعِرٍ: بَلْ فِيهِ غُرَّةٌ عَبْدٌ. أَوْ أَمَةٌ». وَفِي الْبَابِ. عَنْ حَمَلِ بْنِ مَالِكِ بْنِ النَّابِغَةِ. وَالْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ. وقَالَ بَعْضُهُمْ: الْغُرَّةُ عَبْدٌ أَوْ أَمَةٌ. أَوْ خَمْسُ مِائَةِ دِرْهَمٍ. وقَالَ بَعْضُهُمْ: أَوْ فَرَسٌ أَوْ بَغْلٌ. (1)

---

[1] ـ البخاري ـ الطب ٣٦ (٥٧٥٨) . والفرائض ١١ (٥٧٥٩) . والديات ٢٥ (٦٩٠٤) . و ٦٩٠٩ ، ٦٩١٠ ، ٦٩١٠) . صحيح مسلم ـ القسامة ١١ (١٦٨١) . سنن ابي داود ـ الديات ٢١ (٤٥٧٦) . القسامة ٣٩ (٤٨٢٢) . سنن ابن ماجه ـ الديات ١١ (٢٦٣٩) . (تحفة الأشراف: ٥١٠٦) . و موطا امام مالك ـ العقول ٧ (٥) . و احمد في المسند (٢ـ ٢٣٦ ، ٢٧٤ ، ٤٣٨ ، ٤٩٨ ، ٥٣٥ ، ٥٣٩)

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه بيان دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم دجنين په ديت كي دغره يعني دغلام يا وينځي وركولو فيصله كړي ده دكومي په خلاف چي فيصله شوي ده هغوئ اوونيل ايا دداسي مړي ديت وركولي شي چاچي نه خوړل كړي وي اونه څكل او نه يي ژړلي وي او نه يي اواز ويستلي وي دداسي قسم مړي وينه خو ضايع او باطل وي ددي په اوريدو سره رسول الله اوفرمائيل تاسو دشاعرانو پشان خبري كوئ دجنين په ديت كي غره يعني غلام ياوينځه وركول لازم دي.

امام ترمذي وائي دابوهريره حديث حسن صحيح دي، او په دي باب كي د حمل بن مالك بن نابغه، اومغيره بن شعبه رضي الله عنهما نه هم احاديث مروي دي او داهل علمو هم په دي باندي عمل دي، دغره په تفسير كي بعضي اهل علمو غلام يا وينځه يا پنځه سوه درهم ذكر كړي دي او بعضي اهل علم وائي دغره نه مراد اس يا قچر دي.

***************

١٤١١_ حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ الْخَلَّالُ، حَدَّثَنَا وَهْبُ بْنُ جَرِيرٍ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ مَنْصُورٍ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ عُبَيْدِ بْنِ نَضْلَةَ، عَنِ الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ، أَنَّ امْرَأَتَيْنِ كَانَتَا ضَرَّتَيْنِ، فَرَمَتْ إِحْدَاهُمَا الأُخْرَى بِحَجَرٍ، أَوْ عَمُودِ فُسْطَاطٍ، فَأَلْقَتْ جَنِينَهَا "فَقَضَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْجَنِينِ غُرَّةٌ عَبْدٌ، أَوْ أَمَةٌ، وَجَعَلَهُ عَلَى عَصَبَةِ الْمَرْأَةِ". قَالَ الْحَسَنُ، وَأَخْبَرَنَا زَيْدُ بْنُ حُبَابٍ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ مَنْصُورٍ، بِهَذَا الْحَدِيثِ نَحْوَهُ، وقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.[1]

**ترجمه** : دمغيره بن شعبه رضي الله عنه بيان دي فرمائي چي په دوه بنو كي يوي بلي لره په كانړي يا دخيمي په موړي اووهله نو دهغي حمل ساقط شو رسول الله صلي الله عليه وسلم ددي حمل په ديت كي په غره يعني غلام يا وينځي په وركولو فيصله اوكړه او ديت وركول يي ددي ښځي په غصبه لازم كړل، حسن بصري وائي زيد بن حباب دسفيان ثوري نه روايت كړي دي او سفيان ثوري دمنصور نه ددي حديث هم معني روايت نقل كړي دي امام ترمذي وائي داحديث حسن صحيح دي.

***************

[1] _ البخاري_ الديات ٢٥ (٦٩٠٣ ٦٩٠٨) . مسلم_ القسامة (الحدود) . ١١ (١٦٨٢) . سنن ابي داود_ الديات ٢١ (٤٥٦٨) . سنن النسائي_ القسامة ٣٩ (٤٨٢٥) . ابن ماجه_ الديات ٧ (٢٦٤٠) . (تحفة الأشراف : ١١٥١٠) . و احمد في المسند (٤_ ٢٢٤، ٢٢٥، ٢٤٦، ٢٤٩) . و الدارمي_ الديات ٢٠ (٢٢٢٥)

## ١٥_ بَابُ مَا جَاءَ لاَ يُقْتَلُ مُسْلِمٌ بِكَافِرٍ

## مسلمان به دكافر په بدل كي نشي قتل كـ كولي

١٤١٢_ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ. حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ. أَنْبَأَنَا مُطَرِّفٌ. عَنِ الشَّعْبِيِّ. حَدَّثَنَا أَبُو جُحَيْفَةَ. قَالَ: قُلْتُ لِعَلِيٍّ: يَا أَمِيرَ الْمُؤْمِنِينَ هَلْ عِنْدَكُمْ سَوْدَاءُ فِي بَيْضَاءَ لَيْسَ فِي كِتَابِ اللَّهِ. قَالَ: " لاَ. وَالَّذِي فَلَقَ الْحَبَّةَ. وَبَرَأَ النَّسَمَةَ. مَا عَلِمْتُهُ إِلاَّ فَهْمًا يُعْطِيهِ اللَّهُ رَجُلاً فِي الْقُرْآنِ وَمَا فِي الصَّحِيفَةِ ". قُلْتُ: وَمَا فِي الصَّحِيفَةِ ؟ قَالَ: " الْعَقْلُ. وَفِكَاكُ الأَسِيرِ. وَأَنْ لاَ يُقْتَلَ مُؤْمِنٌ بِكَافِرٍ ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ. عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو . قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عَلِيٍّ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ الْعِلْمِ. وَهُوَ قَوْلُ: سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ. وَمَالِكِ بْنِ أَنَسٍ. وَالشَّافِعِيِّ. وَأَحْمَدَ. وَإِسْحَاقَ. قَالُوا: لاَ يُقْتَلُ مُؤْمِنٌ بِكَافِرٍ . وقَالَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ: يُقْتَلُ الْمُسْلِمُ بِالْمُعَاهِدِ. وَالْقَوْلُ الأَوَّلُ أَصَحُّ. [1]

**ترجمه** : دابوجحيفه رضي الله عنه بيان دي چي ما دعلي رضي الله عنه نه تپوس اوكړو اي اميرالمؤمنين ايا تاسره په كاغذ ليكلي كوم داسي تحرير شته كوم چي په قران كي مذكور نه وي هغه اوونيل نشته زما دي په هغه ذات قسم وي چاچي دانه شنه كړي ده او نفس يي پيداكړي دي داسي كوم تحرير ماته معلوم نه دي مگر هغه پوهه ده كومه چي الله تعالي يو سړي ته په قران كي وركوي هغه اوونيل په صحيفه كي څه دي ما اوونيل په دي كي ديت او دقيديانو دازادولو ذكر دي او دا ارشاد نبوي دي چي دكافر بدل كي به مومن نشي قتل كولي
امام ترمذي وائي دعلي رضي الله عنه حديث حسن صحيح دي . او په دي باب كي دعبدالله بن عمرو رضي الله عنهما نه هم روايت وارد دي او دبعضي اهل علمو په همدي باندي عمل دي او دسفيان ثوري، مالك بن انس، شافعي، احمد ، او اسحاق هم دا قول دي دوئ وائي چي مومن به دكافر په بدل كي نشي قتل كولي مگربعضي اهل علم وائي دذمي په بدل كي به په طور دقصاص مسلمان قتل كولي شي ليكن اولني قول زيات صحيح دي

*****************

[1] _ البخاري_ العلم ٣٩ (١١١) . والجهاد ١٧١ (٣٠٤٧) . والديات ٢٤ (٦٩٠٣) . و ٣١ (٦٩١٥) . سنن النسائي_ القسامة ١٣. ١٤ (٤٧٤٨) . سنن ابن ماجه_ الديات ٢١ (٢٦٥٨) . (تحفة الأشراف : ١٠٣١١) . و احمد في المسند (١_ ٧٩) . وسنن الدارمي_ الديات ٥ (٢٤٠١) (وانظر ما يأتي برقم ٢١٢٧)

## ١٦_ باب مَا جَاءَ فِي دِيَةِ الْكُفَّارِ

## دكافر د ديت بيان

١٤١٣_ حَدَّثَنَا عِيسَى بْنُ أَحْمَدَ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، عَنْ أُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَا يُقْتَلُ مُسْلِمٌ بِكَافِرٍ". وَبِهَذَا الإِسْنَادِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "دِيَةُ عَقْلِ الكَافِرِ، نِصْفُ دِيَةِ عَقْلِ المُؤْمِنِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو فِي هَذَا البَابِ حَدِيثٌ حَسَنٌ، وَاخْتَلَفَ أَهْلُ العِلْمِ فِي دِيَةِ اليَهُودِيِّ، وَالنَّصْرَانِيِّ، فَذَهَبَ بَعْضُ أَهْلِ العِلْمِ فِي دِيَةِ اليَهُودِيِّ، وَالنَّصْرَانِيِّ إِلَى مَا رُوِيَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وقَالَ عُمَرُ بْنُ عَبْدِ العَزِيزِ: دِيَةُ اليَهُودِيِّ، وَالنَّصْرَانِيِّ، نِصْفُ دِيَةِ المُسْلِمِ، وَبِهَذَا يَقُولُ أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ. ([1])

**ترجمه** : دعبدالله بن عمرو رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي مسلمان به دكافر په بدل كي نشي قتل كولي اوپه همدي سند مروي دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دكافر ديت دمسلمان د ديت په نيمه دي.

امام ترمذي وائي په دي باب كي دعبدالله بن عمرو حديث حسن دي ، ديهودي او نصراني په ديت كي داهل علمو اختلاف دي په دي باره كي دبعضي اهل علمو مسلك دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه دمروي حديث موافق دي، غمربن عبدالعزيز وائي ديهودي او نصراني ديت دمسلمان دديت په نيمه دي او امام احمد بن حنبل هم ددي قائل دي.

**تخريج**: تفرد بذكره المؤلف (تحفة الأشراف : ٨٦٦١)

***************

وَرُوِيَ عَنْ عُمَرَ بْنِ الخَطَّابِ، أَنَّهُ قَالَ: دِيَةُ اليَهُودِيِّ، وَالنَّصْرَانِيِّ: أَرْبَعَةُ آلَافِ دِرْهَمٍ، وَدِيَةُ المَجُوسِيِّ: ثَمَانُ مِائَةِ دِرْهَمٍ، وَبِهَذَا يَقُولُ مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ، وَالشَّافِعِيُّ، وَإِسْحَاق، وقَالَ بَعْضُ أَهْلِ العِلْمِ: دِيَةُ اليَهُودِيِّ، وَالنَّصْرَانِيِّ، مِثْلُ دِيَةِ المُسْلِمِ، وَهُوَ قَوْلُ: سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ، وَأَهْلِ الكُوفَةِ. ([2])

---

[1] _ النسائي_ القسامة ٣٤ (٤٨١٠) . سنن ابن ماجه_ الديات ١٣ (٢٦٤٣) . (تحفة الأشراف : ) . و احمد في المسند (٢_ ١٨٣، ٢٢٤)

[2] _ ابي داود_ الديات ٧ (٤٥١٥) . سنن النسائي_ القسامة ١٠ (٤٧٥١) ، و ١١ (٤٧٥٢) ، و ١٤ (٤٧٦٤) ، و١٧ (٤٧٦٨) . سنن ابن ماجه_ الديات ٢٢ (٢٦٦٣) . (تحفة الأشراف : ٢٥٨٦) . و احمد في المسند (٥_ ١٠، ١١، ١٢، ١٨)

**ترجمه** مروي دي چي عمر بن خطاب رضي الله عنه فرمائيلي دي ديهودي او نصراني ديت څلور زره درهم دي او دمجوسي ديت اته زره درهم دي او په دي باندي امام مالك هم قول كړي دي مګر امام شافعي او اسحاق او بعضي اهل علم وائي ديهودي او نصراني ديت دمسلمان د ديت پشان دي اهل كوفه او سفيان ثوري هم په دي باندي قول كړي دي.

***************

## ١٧_ باب مَا جَاءَ فِي الرَّجُلِ يَقْتُلُ عَبْدَهُ

## بيان دهغه چاچي قتل كړي خپل غلام

١٤١٤_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنِ الحَسَنِ، عَنْ سَمُرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " مَنْ قَتَلَ عَبْدَهُ قَتَلْنَاهُ، وَمَنْ جَدَعَ عَبْدَهُ جَدَعْنَاهُ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ، وَقَدْ ذَهَبَ بَعْضُ أَهْلِ العِلْمِ مِنَ التَّابِعِينَ، مِنْهُمْ إِبْرَاهِيمُ النَّخَعِيُّ إِلَى هَذَا، وقَالَ بَعْضُ أَهْلِ العِلْمِ مِنْهُمُ الحَسَنُ البَصْرِيُّ، وَعَطَاءُ بْنُ أَبِي رَبَاحٍ: لَيْسَ بَيْنَ الحُرِّ وَالعَبْدِ قِصَاصٌ فِي النَّفْسِ، وَلَا فِيمَا دُونَ النَّفْسِ، وَهُوَ قَوْلُ: أَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ، وقَالَ بَعْضُهُمْ: إِذَا قَتَلَ عَبْدَهُ لَا يُقْتَلُ بِهِ، وَإِذَا قَتَلَ عَبْدَ غَيْرِهِ قُتِلَ بِهِ، وَهُوَ قَوْلُ: سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ، وَأَهْلِ الكُوفَةِ. (١)

**ترجمه**: دسمره رضي الله عنه نه روايت دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي څوك چي خپل غلام قتل كړي مونږ به هغه لره قتل كوو او كه څوك دخپل غلام غوږ يا پوزه كټ كړي نو مونږ به دده غوږ يا پوزه كټ كوو.

امام ترمذي وائي دا حديث حسن غريب دي او په تابعينو كي دبعضي اهل علمو همدا مسلك دي ابراهيم نخعي هم ددي قائل دي ليكن بعضي اهل علم لكه حسن بصري او عطاء بن ابي رباح وغيره وائي دازاد او غلام په مينځ كي قصاص نشته (نه په قتل كولو كي او نه دقتل نه په كم يعني په زخمي كولو كي) داامام احمد او اسحاق هم دا قول دي بعضي اهل علم وائي كه څوك خپل غلام قتل كړي دده په بدل كي به مالك نشي قتل كيدي او كله چي دبل چاغلام قتل كړي نو دي به دهغي په بدل كي قتل كولي شي دسفيان ثوري او اهل كوفه هم دا قول دي.

***************

## ١٨_ باب مَا جَاءَ فِي المَرْأَةِ هَلْ تَرِثُ مِنْ دِيَةِ زَوْجِهَا

## دښځي دپاره دخاوند په ديت کې دميراث موندلو بيان

١٤١٥ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، وَأَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، وَأَبُو عَمَّارٍ، وَغَيْرُ وَاحِدٍ، قَالُوا: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ، أَنَّ عُمَرَ كَانَ يَقُولُ: الدِّيَةُ عَلَى الْعَاقِلَةِ، وَلَا تَرِثُ الْمَرْأَةُ مِنْ دِيَةِ زَوْجِهَا شَيْئًا، حَتَّى أَخْبَرَهُ الضَّحَّاكُ بْنُ سُفْيَانَ الْكِلَابِيُّ، "أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَتَبَ إِلَيْهِ أَنْ وَرِّثْ امْرَأَةَ أَشْيَمَ الضِّبَابِيِّ مِنْ دِيَةِ زَوْجِهَا". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ. (١)

**ترجمه** دسعيد بن المسيب نه روايت دي چي عمر رضي الله عنه به ونيل دديت اداء کول په عاقله دي او ښځه دخاوند د ديت نه په ميراث کې هيڅ نشي اخستلي تردي پورې چي ضحاك بن سفيان ورته اووئيل رسول الله صلي الله عليه وسلم ماته په يوفرمان کې ليکلي وو چي داشيم ضبابي ښځي ته دهغې دخاوند په ديت کې ميراث ورکړئ.
امام ترمذي وائي داحديث حسن صحيح دي او داهل علمو په همدې باندې عمل دي

******************

## ١٩ـ بَابُ مَا جَاءَ فِي الْقِصَاصِ

### دقصاص بيان

١٤١٦ـ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ خَشْرَمٍ، أَنْبَأَنَا عِيسَى بْنُ يُونُسَ، عَنْ شُعْبَةَ، عَنْ قَتَادَةَ، قَالَ: سَمِعْتُ زُرَارَةَ بْنَ أَوْفَى يُحَدِّثُ، عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ، أَنَّ رَجُلًا عَضَّ يَدَ رَجُلٍ، فَنَزَعَ يَدَهُ، فَوَقَعَتْ ثَنِيَّتَاهُ، فَاخْتَصَمَا إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: "يَعَضُّ أَحَدُكُمْ أَخَاهُ، كَمَا يَعَضُّ الْفَحْلُ، لَا دِيَةَ لَكَ". فَأَنْزَلَ اللَّهُ: وَالْجُرُوحَ قِصَاصٌ (المائدة) قَالَ: وَفِي الْبَابِ: عَنْ يَعْلَى بْنِ أُمَيَّةَ، وَسَلَمَةَ بْنِ أُمَيَّةَ وَهُمَا أَخَوَانِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (٢)

**ترجمه** : دعمران بن حصين رضي الله عنه نه روايت دي چي يو کس دچا لاس چيچلو نو هغه چي ورنه راښکلو دده دوه غاښونه پريوتل او دوئ دواړو خپله مقدمه نبي کريم صلي الله عليه

---

[1] ـ ابي داود ـ الفرائض ١٨ (٢٩٢٧) . سنن ابن ماجه ـ الديات ١٢ (٢٦٤٢) . (تحفة الأشراف : ٤٩٧٣) . و احمد في المسند (٣ـ ٤٥٢)

[2] ـ البخاري ـ الديات ١٨ (٦٨٩٢) . صحيح مسلم ـ القسامة (الحدود) ٤ (١٦٧٣) . سنن النسائي ـ القسامة ١٨ (٤٧٦٣ـ ٤٧٦٦) . سنن ابن ماجه ـ الديات ٢٠ (٢٦٥٧) . (تحفة الأشراف : ١٠٨٢٣) . و احمد في المسند (٤ـ ٤٢٧، ٤٣٠، ٤٣٥)

وسلم ته پيش کړه نو ورته يي اوفرمائيل ايا داوبښ دچيچلو پشان څوك خپل ورور چيچي او ستاسو دپاره هيڅ ديت نشته او بيا الله تعالي دا ايت كريمه "والجروح قصاص" نازل كړو امام ترمذي وائي دعمران بن حصين حديث حسن صحيح دي او په دي باب کي ديعلي بن اميه او سلمه بن اميه رضي الله عنهما نه هم احاديث مروي دي او دوئ دواړه رونړه دي

***************

## ٢٠ـ بابُ مَا جَاءَ فِي الْحَبْسِ فِي التُّهْمَةِ

### په چا باندي دتهمت او الزام لګولو په صورت کي دقيد کولو بيان

١٤١٧ـ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ سَعِيدٍ الْكِنْدِيُّ، حَدَّثَنَا ابْنُ الْمُبَارَكِ، عَنْ مَعْمَرٍ، عَنْ بَهْزِ بْنِ حَكِيمٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "حَبَسَ رَجُلًا فِي تُهْمَةٍ، ثُمَّ خَلَّى عَنْهُ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ بَهْزٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ حَدِيثٌ حَسَنٌ، وَقَدْ رَوَى إِسْمَاعِيلُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ بَهْزِ بْنِ حَكِيمٍ، هَذَا الْحَدِيثَ أَتَمَّ مِنْ هَذَا وَأَطْوَلَ. (1)

**ترجمه** دمعاويه بن حيده قشيري بيان دي نبي كريم صلي الله عليه وسلم يو كس دتهمت په وجه په قيد کي اچولي وو او بيا چي ورباندي الزام ثابت نشو نو پريي خودلو.

امام ترمذي وائي په دي باب کي دابوهريره رضي الله عنه نه هم حديث مروي دي، دبهز بن حكيم بن معاويه بن حيده قريشي کوم حديث چي هغه دخپل پلارنه او هغه دده دنيکه نه نقل کوي حسن دي. اسماعيل بن ابراهيم بن عليه دبهز بن حكيم نه داحديث ددينه زيات مكمل او مطول بيان کړي دي.

***************

## ٢١ـ بابُ مَا جَاءَ فِيمَنْ قُتِلَ دُونَ مَالِهِ فَهُوَ شَهِيدٌ

### څوك چي د خپل مال په حفاظت کي قتل کړي شي نو دا شهيد دي

١٤١٨ـ حَدَّثَنَا سَلَمَةُ بْنُ شَبِيبٍ، وَحَاتِمُ بْنُ سِيَاهٍ الْمَرْوَزِيُّ، وَغَيْرُ وَاحِدٍ، قَالُوا: حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، عَنْ مَعْمَرٍ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ طَلْحَةَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَوْفٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَمْرِو بْنِ سَهْلٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ زَيْدِ بْنِ عَمْرِو بْنِ نُفَيْلٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: ""مَنْ قُتِلَ دُونَ مَالِهِ فَهُوَ شَهِيدٌ، وَمَنْ سَرَقَ مِنَ الْأَرْضِ شِبْرًا طُوِّقَهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ مِنْ سَبْعِ أَرَضِينَ""، وَزَادَ

---

[1] ـ ابي داود ـ الأقضية ٢٩ (٣٦٣٠). سنن النسائي ـ قطع السارق ٢ (٤٨٩٠). (تحفة الأشراف: ١١٣٨٢)

حَاتِمُ بْنُ سِيَاهٍ الْمَرْوَزِيُّ، فِي هَذَا الْحَدِيثِ قَالَ مَعْمَرٌ: بَلَغَنِي عَنِ الزُّهْرِيِّ، وَلَمْ أَسْمَعْ مِنْهُ، زَادَ فِي هَذَا الْحَدِيثِ: " " مَنْ قُتِلَ دُونَ مَالِهِ فَهُوَ شَهِيدٌ. " ". وَهَكَذَا رَوَى شُعَيْبُ بْنُ أَبِي حَمْزَةَ هَذَا الْحَدِيثَ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ طَلْحَةَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَمْرِو بْنِ سَهْلٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ زَيْدٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. وَرَوَى سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ طَلْحَةَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ زَيْدٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. وَلَمْ يَذْكُرْ فِيهِ سُفْيَانُ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَمْرِو بْنِ سَهْلٍ، وَهَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [1]

**ترجمه** : دابولاعور سعيد بن زيد بن عمرو بن نفيل (چي دهغو لسو كسانو نه دى چاته چي دجنت خوشخبري وركړى شوى ده ) نه روايت دى چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي ځوك چي دخپل مال په حفاظت كې قتل كړى شو هغه شهيد دى ، او چاچي ديو بالښت په مقدار دبل چا زمكه اونيوله نو دقيامت په ورځ به دده په غاړه كي داوه زمكو طوقونه واچولي شي .

امام ترمذي وائي داحديث حسن صحيح دي او په دي حديث كي حاتم بن سياه مروزي اضافه كړي ده، معمرو وائي دزهري نه ماتد حديث رسيدلي دي ليكن ما ورنه اوريدلي نه دي چي هغه دا حديث "من قتل دون ماله فهو شهيد" داضافي سره نقل كړي وي، دارنګي شعيب بن ابو حمزه داحديث په سند د زهري عن طلحه بن عبيد الله عن عبدالرحمن بن عمرو بن سهل عن سعيد بن زيد عن النبي صلي الله عليه وسلم سره نقل كړي دي، دارنګي سفيان بن عيينه داحديث په سند د زهري عن طلحه بن عبيدالله عن سعيد بن زيد عن النبي صلي الله عليه وسلم سره نقل كړي دي او په دي كي سفيان دعبدالرحمن بن سهل واسطه نه ده ذكر كړي.

**لغات** : دم: روح يا وينه جمع يي دماء او دموء راځي ، دينه: دين معني مذهب يامسلك جمع يي اديان راځي دان يدين دينا دضرب نه قرض وركولو ته هم ويلي شي.

**تشريح**: سعيد بن زيد بن عمرو بن نفيل رضي الله عنه دهغه لسو صحابه كرامو دجملي نه دى چاته چي په دنيا كې دجنت زيرى وركړى شوى دى، دعشره مبشره صحابه كرامو نومونه دادي اول، ابوبكر صديق، دويم عمر بن الخطاب، دريم عثمان بن عفان، څلورم علي بن ابي طالب، پنځم طلحه بن عبيدالله، شپږم زبير بن عوام، اوم عبدالرحمان بن عوف، ، اتم سعد بن ابي وقاص، نهم ابو عبيده بن جراح، لسم سعيد بن زيد رضي الله عنهم.

---

[1] ـ ابي داود_ السنة ٣٢ (٤٧٧٢) . النسائي_ المحاربة ٢٢ (٤٠٩٥) . ابن ماجه_ الحدود ٢١ (٢٥٨٠) . (تحفة الأشراف : ٤٤٦١) . و احمد في المسند (ل_ ١٨٧، ١٨٨، ١٨٩، ١٩٠) و برقم: ١٣٢١

دوئ ته عشره مبشره څکه وئيلی شي چې دي لسو واړو ته په يو مجلس کې رسول الله صلي الله عليه وسلم دجنت زيری ورکړی وو ورنه ددوئ نه علاوه نور هم بعضي کسان شته دچا باره کې چې نبي کريم صلي الله عليه وسلم دجنتي کيدو بشارت ورکړی دی

"من قتل دون ماله فهو شهيد" ددي حديث مطلب دادی که چري څوك دچا په مال ياجان يا اهل او عيال ته لاس واچوي او دا کس مدافعت اوکړي يايي په نرم انداز کې پوهه کړي ليکن هغه جنګيدو ته تيار شي او دی هم ورسره اوجنګيږي او په دي جنګ کې دی مړ شي نو داکثرو علماؤ په نزد به په ده باندي تاوان نه وي او که دی يي مړ کړو نو شهيد به وي.

مطلب دادی چې څوك دخپل مال او اسبابو حفاظت کوي او بيا ددي په وجه قتل کړی شي نو شهيد به وي په دي حديث کې علماؤ هغه کس هم داخل کړی دی څوك چې دخپل مال اوعيال په حفاظت کې مړ کړی شي.

"دون ماله" قرطبي وائي په دي حديث کې دون لفظ استعمال شوی دی او دون په معني دلالتدي دی مطلب دادی چې کله څوك دچا مال تختوي نو هغه اول خپل مال دځان نه مخکې ياشاته کړي او بيا جنګ کوي.

## دابولاعورسعيد بن زيد بن عمروبن نفيل حالات

نوم سعيد کنيه ابو الاعور دپلار نوم زيد دمور نوم يي فاطمه بنت لعجه وو. داسلام راوړو واقعه يي داده چې دی دحق په تلاش کې يو يهودي عالم ته ورغلو او ورته يي اووئيل که چري ته دالله په غضب ګرفتاريدل غواړي نو زمونږ مذهب حاضر دی هغه ورته اووئيل ددين حنيف اتباع اوکړه همدا رنګي يو بل يهودي عالم هم اووئيل بيا دی ددينه پس دخپلي ښځي سره په اسلام کې داخل شو دده ښځه په عمر رضي الله عنه حقيقي خور وه چې نوم يي فاطمه وو.

دغزوه بدر نه علاوه يي په تمامو غزواتو کې خپل شجاعت خودلی دی سعيد رضي الله عنه ددنيوي جاه او جلال نه مستغني وو صرف دعقيق مقام په جائيداد يي ګذاره کوله په اخره کې ورته عثمان رضي الله عنه په عراق کې څه جائيداد ورکړی وو، دی په عشره مبشره کې هم شامل وو چاته چې رسول الله صلي الله عليه وسلم په دنيا کې دجنت زيری ورکړی وو دجاهليت په زمانه کې چې به په عربو کې چا خپله لور ژوندي خښوله نو ده به دهغي په بچ کولو کې مدد کولو او چې کله به کوم ظالم دخپل بي ګناه بچي په مرئ چاړه راښکله نو ده به يي کفالت کولو او دخوانيدو نه پس به يي دهغه پلار ته وئيل اوس که دي زړه غواړي نو دځان سره يي بوځه او يايي زما سره پريږده دهجرت په پنځوسم يا يوپنځوسم کال دمديني په عقيق مقام کې دجمعي په ورځ داويا کالو په عمر کې ددنيا نه رخصت شو سعد بن ابي وقاص رضي الله عنه ورته غسل ورکړو او عبدالله بن عمر رضي الله عنهما ورباندي جنازه اوکړه او په مدينه کې يي

خاورو ته اوسپارلو ۴۸روايات ورنه منقول دي چي دوه په دي کې متفق عليه دي او نور په نورو کتابونو کې مذکور دي.

***************

۱۴۱۹ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا أَبُو عَامِرٍ الْعَقَدِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ الْمُطَّلِبِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الْحَسَنِ، عَنْ ابْرَاهِيمَ بْنِ مُحَمَّدِ بْنِ طَلْحَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "مَنْ قُتِلَ دُونَ مَالِهِ فَهُوَ شَهِيدٌ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ عَلِيٍّ، وَسَعِيدِ بْنِ زَيْدٍ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَابْنِ عُمَرَ، وَابْنِ عَبَّاسٍ، وَجَابِرٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو حَدِيثٌ حَسَنٌ، وَقَدْ رُوِيَ عَنْهُ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ، وَقَدْ رَخَّصَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ لِلرَّجُلِ أَنْ يُقَاتِلَ عَنْ نَفْسِهِ وَمَالِهِ، وقَالَ ابْنُ الْمُبَارَكِ: يُقَاتِلُ عَنْ مَالِهِ وَلَوْ دِرْهَمَيْنِ. [1]

**ترجمه** : دعبدالله بن عمرو رضي الله عنهما نه روايت دي نبي کريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي څوك چي دخپل مال په حفاظت کي قتل کړي شي هغه شهيد دي.

امام ترمذي وائي دعبدالله بن عمرو حديث حسن دي داحديث په نورو سندونو هم مروي دي، بعضي اهل علمو مسلمانانو ته دخپل مال او نفس ددفاع کولو اجازت ورکړي دي، او په دي باب کي دعلي، سعيد بن زيد، ابوهريره، ابن عمر، ابن عباس او جابر رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي عبدالله بن مبارك وائي دخپل مال دحفاظت دپاره دفاع کول جائز دي اگر که دده مال ددوه درهمو ولي نه وي.

***************

۱۴۲۰ـ حَدَّثَنَا هَارُونُ بْنُ إِسْحَاقَ الْهَمْدَانِيُّ، قَالَ: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الْوَهَّابِ الْكُوفِيُّ شَيْخٌ ثِقَةٌ، عَنْ سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الْحَسَنِ بْنِ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ، حَدَّثَنِي إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ طَلْحَةَ، قَالَ سُفْيَانُ، وَأَثْنَى عَلَيْهِ خَيْرًا، قَالَ: سَمِعْتُ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عَمْرٍو، يَقُولُ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ أُرِيدَ مَالُهُ بِغَيْرِ حَقٍّ فَقَاتَلَ فَقُتِلَ فَهُوَ شَهِيدٌ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ عَبْدِ

---

[1] ـ البخاري_ المظالم ٣٣ (٢٤٨٠) . صحيح مسلم_ الإيمان ٦٢ (٢٢٥) . ابي داود_ السنة ٣٢ (٤٧٧١) . النسائي_ المحاربة ٢٢ (٤٠٩٣) . (تحفة الأشراف: ٨٦٠٣) . مسند احمد (٢_ ١٦٣، ١٩٣، ١٩٤، ٢٠٥، ٢٠٦، ٢١٠، ٢١٥، ٢١٦، ٢٢١، ٢٢٢)

اللهِ بْنِ الْحَسَنِ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ بْنِ مُحَمَّدِ بْنِ طَلْحَةَ، عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَهُ. [1]

**ترجمه** عبدالله بن عمرو رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دچانه چي دچا مال په زبردستئ او په ناحقه واخستلي شي او دي دخپل مال دحفاظت دپاره دفاع كولو كي قتل كړي شي نو داسي كس شهيد دي.

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي او په همدي سند عبدالله بن عمرو بن العاص رضي الله عنهما دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه ددي هم معني روايت نقل كړي دي.

***************

١٤٢١ـ حَدَّثَنَا عَبْدُ بْنُ حُمَيْدٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِي يَعْقُوبُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ بْنِ سَعْدٍ، حَدَّثَنَا أَبِي، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي عُبَيْدَةَ بْنِ مُحَمَّدِ بْنِ عَمَّارِ بْنِ يَاسِرٍ، عَنْ طَلْحَةَ بْنِ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَوْفٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ زَيْدٍ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: " مَنْ قُتِلَ دُونَ مَالِهِ فَهُوَ شَهِيدٌ، وَمَنْ قُتِلَ دُونَ دِينِهِ فَهُوَ شَهِيدٌ، وَمَنْ قُتِلَ دُونَ دَمِهِ فَهُوَ شَهِيدٌ، وَمَنْ قُتِلَ دُونَ أَهْلِهِ فَهُوَ شَهِيدٌ ". قَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَهَكَذَا رَوَى غَيْرُ وَاحِدٍ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ بْنِ سَعْدٍ نَحْوَ هَذَا، وَيَعْقُوبُ هُوَ: ابْنُ إِبْرَاهِيمَ بْنِ سَعْدِ بْنِ إِبْرَاهِيمَ بْنِ عَبْدِ الرحمنِ بْنِ عَوْفٍ الزُّهْرِيُّ. [2]

**ترجمه** . دابولاعور سعيد بن زيد بن عمرو بن نفيل (چي دهغو لسو كسانو نه دی چاته چي دجنت خوشخبري وركړى شوى ده ) نه روايت دى چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي څوك چي دخپل مال په حفاظت كي قتل كړى شو هغه شهيد دى، اوڅوك چي دخپل دين په حفاظت كي قتل كړى شو هغه شهيد دى اوڅوك چي دخپل خان په حفاظت كي قتل كړى شو هغه شهيد دى اوڅوك چي دخپل بال بچ په حفاظت كي قتل كړى شو هغه شهيد دى.

امام ترمذي وائي داحديث حسن صحيح دي ، دابراهيم بن سعد نه يو څو راويانو ددي هم معني روايت هم نقل كړي دي.

**لغات** : دم: روح يا وينه جمع يي دماء او دموء راخي ، دينه: دين معني مذهب يامسلك جمع

[1] ـ البخارى ـ المظالم ٣٣ (٢٤٨٠) . صحيح مسلم ـ الإيمان ٦٢ (٢٢٥) . ابى داود ـ السنة ٣٢ (٤٧٧١) . النسائي ـ المحاربة ٢٢ (٤٠٩٣) . (تحفة الأشراف : ٨٦٠٣) . مسند احمد (٢ ـ ١٦٣، ١٩٣، ١٩٤، ٢٠٥، ٢٠٦، ٢١٠، ٢١٥، ٢١٧، ٢٢١، ٢٢٣)

[2] ـ ابى داود ـ السنة ٣٢ (٤٧٧٢) . النسائي ـ المحاربة ٢٢ (٤٠٩٥) . ابن ماجه ـ الحدود ٢١ (٢٥٨٠) . (تحفة الأشراف : ٤٤٦١) . و احمد في المسند (١ ـ ١٨٧، ١٨٨، ١٨٩، ١٩٠) و برقم: ١٤٢١

يي اديان راخي دان يدين دينا دضرب نه قرض وركولو ته هم ويلي شي.

**تشريح**: سعيد بن زيد بن عمرو بن نفيل رضي الله عنه دهغه لسو صحابه كرامو دجملي نه دى چاته چي په دنيا كې دجنت زيرى وركړى شوى دى، دعشره مبشره صحابه كرامو نومونه دادي اول، ابوبكر صديق، دويم عمر بن الخطاب، دريم عثمان بن عفان، څلورم علي بن ابي طالب، پنځم طلحه بن عبيدالله، شپږم زبير بن عوام، اوم عبدالرحمان بن عوف، ، اتم سعد بن ابي وقاص، نهم ابو عبيده بن جراح، لسم سعيد بن زيد رضي الله عنهم.

دوئ ته عشره مبشره ځكه وئيلى شي چي دي لسو واړو ته په يو مجلس كې رسول الله صلي الله عليه وسلم دجنت زيرى وركړى وو ورنه ددوئ نه علاوه نور هم بعضي كسان شته دچا باره كې چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم دجنتي كيدو بشارت وركړى دى.

"من قتل دون ماله فهو شهيد" ددي حديث مطلب دادى كه چري څوك دچا په مال ياجان يا اهل او عيال ته لاس واچوي او دا كس مدافعت اوكړي يا يي په نرم انداز كې پوهه كړي ليكن هغه جنګيدو ته تيار شي او دى هم ورسره اوجنګيږي او په دي جنګ كې دى مړ شي نو داكثرو علماؤ په نزد به په ده باندي تاوان نه وي او كه دى يې مړ كړو نو شهيد به وي.

***************

## ٢٢_ باب مَا جَاءَ فِي الْقَسَامَةِ

## دقسامت بيان

١٤٢٢_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ بْنُ سَعْدٍ، عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ، عَنْ بُشَيْرِ بْنِ يَسَارٍ، عَنْ سَهْلِ بْنِ أَبِي حَثْمَةَ. قَالَ يَحْيَى: وَحَسِبْتُ عَنْ رَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ، أَنَّهُمَا قَالَا: خَرَجَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ سَهْلِ بْنِ زَيْدٍ، وَمُحَيِّصَةُ بْنُ مَسْعُودِ بْنِ زَيْدٍ، حَتَّى إِذَا كَانَا بِخَيْبَرَ تَفَرَّقَا فِي بَعْضِ مَا هُنَاكَ. ثُمَّ إِنَّ مُحَيِّصَةَ وَجَدَ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ سَهْلٍ قَتِيلًا قَدْ قُتِلَ فَدَفَنَهُ. ثُمَّ أَقْبَلَ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هُوَ وَحُوَيِّصَةُ بْنُ مَسْعُودٍ، وَعَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ سَهْلٍ، وَكَانَ أَصْغَرَ الْقَوْمِ ذَهَبَ عَبْدُ الرَّحْمَنِ لِيَتَكَلَّمَ قَبْلَ صَاحِبَيْهِ. قَالَ لَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "كَبِّرْ لِلْكُبْرِ". فَصَمَتَ وَتَكَلَّمَ صَاحِبَاهُ. ثُمَّ تَكَلَّمَ مَعَهُمَا. فَذَكَرُوا لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَقْتَلَ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ سَهْلٍ، فَقَالَ لَهُمْ: "أَتَحْلِفُونَ خَمْسِينَ يَمِينًا فَتَسْتَحِقُّونَ صَاحِبَكُمْ، أَوْ قَاتِلَكُمْ". قَالُوا: وَكَيْفَ نَحْلِفُ وَلَمْ نَشْهَدْ. قَالَ: "فَتُبْرِئُكُمْ يَهُودُ بِخَمْسِينَ يَمِينًا" قَالُوا: وَكَيْفَ نَقْبَلُ أَيْمَانَ قَوْمٍ كُفَّارٍ. فَلَمَّا رَأَى ذَلِكَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَعْطَى عَقْلَهُ. حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ الْخَلَّالُ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ،

أَخْبَرَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، عَنْ بُشَيْرِ بْنِ يَسَارٍ، عَنْ سَهْلِ بْنِ أَبِي حَثْمَةَ، وَرَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ، نَحْوَ هَذَا الحَدِيثِ بِمَعْنَاهُ، قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالعَمَلُ عَلَى هَذَا الحَدِيثِ عِنْدَ أَهْلِ العِلْمِ فِي القَسَامَةِ، وَقَدْ رَأَى بَعْضُ فُقَهَاءِ المَدِينَةِ القَوَدَ بِالقَسَامَةِ، وقَالَ بَعْضُ أَهْلِ العِلْمِ مِنْ أَهْلِ الكُوفَةِ وَغَيْرِهِمْ: إِنَّ القَسَامَةَ لَا تُوجِبُ القَوَدَ، وَإِنَّمَا تُوجِبُ الدِّيَةَ. [1]

**ترجمه** : دسهل بن ابوحثمه اورافع بن خديج رضي الله عنهما بيان دي چي عبدالله بن سهل بن زيد او محيثه بن مسعود بن زيد رضي الله عنهما چرته دتلو دپاره دكور نه راووتل او روان شول كله چي خيبر ته ورسيدل نو په جدا جدا لارو روان شول نوبيا محيثه عبدالله بن سهل بن زيد قتل كړي شوي اوموندلو چي چا قتل كړي وو نو محيثه ده لره دفن كړو او بيا ددينه پس حويثه بن مسعود او عبدالرحمن بن سهل درسول الله صلي الله عليه وسلم په خدمت كي حاضر شول او عبدالرحمن بن سهل په دوئ كي كشر وو هغه دخپلو دواړو ملګرو نه مخكي په دي معامله كي درسول الله سره خبري كول غوښتل رسول الله صلي الله عليه وسلم ورته اوفرمائيل دمشرانو لحاظ اوكړه لهذا هغه خاموش شو او دده دواړو ملګرو خبري شروع كړي بيا دي هم ددوئ دواړو سره په خبرو كي شريك شو او رسول الله صلي الله عليه وسلم ته يي دعبدالله بن سهل دقتل واقعه بيان كړه رسول الله اوفرمائيل ايا تاسو به پنځوس قسمونه اوخورئ (چي دا كس فلاني قتل كړي دي) تردي پوري چي تاسو دخپل ملګري د ديت مستحق اوګرځئ (او كه داسي يي اوفرمائيل دقاتل دويني مستحق اوګرځئ) دوئ عرض اوكړو مونږ څنګه قسمونه اوخورو مونږ خو حاضر نه وو؟ رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل بيا به يهوديان پنځوس قسمونه اوخوري او ستاسو نه به ځان خلاص كړي دوئ اووئيل مونږ څنګه ديو كافر قوم قسمونه قبول كړو؟ بيا رسول الله صلي الله عليه وسلم چي كله دا معامله اوليدله نو دوئ ته يي ديت پخپله وركړو په همدي سند دسهل بن ابوحثمه او رافع بن خديج نه ددي يو بل هم معني روايت هم مروي دي.

امام ترمذي وائي داحديث حسن صحيح دي، او دقسامت په سلسله كي دبعضي اهل علمو په دي حديث عمل دي، دمديني بعض فقهاء دقسامت په بناء قصاص درست ګنړي، او دكوفي

---

[1] ـ البخارى في الصح ٧ (٢٧٠٢). والجزية ١٢ (٣١٧٣). والأدب ٨٩ (٦١٨٣). والديات ٢٢ (٦٨٩٨). والأحكام ٣٨ (٧١٩٢). مسلم ـ القسامة (الحدود) ١ (١٦٦٩). ابى داود ـ الديات ٨ (٤٥٢٠). النسائى ـ القسامة ٣ (٤٧١٢). ابن ماجه ـ الديات ٢٨ (٢٦٧٧). (تحفة الأشراف: ٤٦٤٤). المؤطاء ـ القسامة ١ (٢٠١). واحمد في المسند (٤ ـ ٢. ٣). وسنن الدارمى ـ الديات ٢

بعضي اهل علم او بعضي نور علماء دقسامت په بناء قصاص واجب نه ګڼړي او صرف ديت لازموي.

**تشريح**: د قسامت لغوی او شرعی معنی: ايمان تقسم بها اهل محلة او دار وجد فيها قتيل به جراحة او اثر ضرب ولا يعلم من قتله. يعني قسامت په لغت کي په معنی د قسم سره دي، او په شريعت کي قسم خوړل دی په الله تعالی ،د مخصوص سبب په وجه، مخصوص عدد سره،په سړی باندي مخصوص طريقه،

يعني که يو سړې مقتول په يوه محله کي اوموندي شو او د قتل آثار په ده باندې موجود وی او د هغه د قاتل معلومات نه وی او د مقتول ولی په ټوله محله باندې يا په بعضو غير معين باندې يا په بعضو معين باندې د قتل دعوه اوکړی نو زمونږ په نزدبه ولی ته حق وی چي په محله کي پنځوس کسان منتخب کړی،کوم چي دده خوښ وی او د هغوی نه دې قسم واخستلې شی،هغوی به داسې قسم خوری چه" په الله قسم نه مونږ دا قتل کړې دې او نه مونږ ته دده د قاتل معلومات شته او که چرې هغوی قسم اوخوړلو نو قصاص به ددوی نه ساقط شي، ليکن ددوی په عاقله به ديت واجب وی،که ولی د قتل عمد دعوه کوی او که د قتل خطاء دعوه کوی، زمونږ په نزدقصاص صرف هغه وخت ثابتيږی،که چي د محلې خلق د قسم نه انکار اوکړی او قتل اقرار کوی،يا په شاهدانو سره قتل عمد ثابت شی.

امام شافعی وايي،کله چي هلته څه قرينه وی نو د اوليـاء نه پنځوس قسمونه اخستلې شـی او اولياء دپاره به مدعی عليه باندې د ديت فيصله ورکولې شی،دعوه که د (قتل) عمد وی او که چرې د خطاء وی.

د قريني نه مراد دادي چي څه داسې قرينه ملاو شی چي په دې سره زړه کي خبره مضبوطه شی چي هم دا خلق دده قاتلان دی دلته د ددې متعلق يو څو قرائن ذکر کوو مثلاً:

(۱) په دوی کي د يوکس توره په وينه لړلې وی.

(۲) يا د مقتول او په دوی کي د چا په منځ کي دښمنی راروانه وه.

(۳) يو عادل سړی ګواهی ورکړله چي د محلې خلق دده قاتلان دی خو ددې شاهد دپاره ضروری ده چي دا ددې محلې نه وی.

(۴) يا يو جماعت ګواهی وکړي خوچي دا جماعت د عادلانو وی

او که داسې قرائن نه وي نو بيا د امام شافعی په نزدبه هم د محلې دخلقو نه قسم اخستلې شی،صرف يو فرق دې،که د محلې خلق دپنځوسو نه کم وی نو زمونږ په نزدبه ددوی نه مکرر قسم اخستلې شی او د امام شافعی په نزدبه اوس د محلې د خلقو په ځائې د محلې دخلقو د ولی نه قسم اخستلې شی،بهرحال د محلې د خلقو نه د قسم اخستلو په صورت کي چي کله هغوی قسم اوخوړلو نو د امام شافعی په نزدبه اوس د محلې په خلقو باندي ديت

واجب نه وی او زمونږ په نزدواجب دي.
امام مالك وايي چي د قصاص فيصله به كولې شی، كله چي د قتل عمد دعوه وی او هم دا د امام شافعی د دوو قولو نه يو قول هم دي.

**************

# كتاب الحدود عن رسول الله صلى الله عليه وسلم

## د حدود او تعذيراتو متعلق احكامو بيان

دمجرم دپاره دارتكاب جرم په صورت كې سزا په دوه قسمه ده يو قسم ته حد اوبل قسم ته تعزير وئيلي شي حدود دحد جمع ده ممنوع ته وئيلي شي اوهمدارنګي ددوه څيزونو په مينځ كې حائل ته هم حد وئيلي شي، اوحد دشرع په اصطلاح كې دهغه عقوباتو نوم دي كوم چي دمجرم دپاره دارتكاب جرم په صورت كې د قران اوسنت نه ثابت اومقدر دي، مثلا دغلا اوزنا اوشراب څكلوسزاګاني شوي، اوهرچي تعزيردي تعزيرپه لغت كې ادب وركولوته وئيلې شي اوددي لغوي وضاحت په تاج العروس(١٣_ ٢٣)كې داسي ذكرشوي دي: التَعْزِير : من الأضداد ، يكونُ بمَعنَى التَعْظِيم وبمَعْنَى الإذْلال للتاديب ، اوتعزيرپه اصلاح دشرع كې دهغه عقوباتو نوم دي كوم چي دمجرم دپاره دارتكاب جرم په صورت كې دشارع دطرف نه مقدر نوي ، اودسزا تعين حاكم اوقاضي ته سپارلي شوي وي ، يادساتل پكاردي چي په حدودوكې دقاضي اودحاكم هيڅ قسم عمل دخل نه وي څكه چي حد دالله تعالي حق دي بندګان ئې چاته نه معاف كولي شي اونه ئې كمولي زياتولي شي پخلاف دتعزيرنه څكه چي پدي كې حاكم اوقاضي هرقسم مصلحت ملحوظ ساتلي شي، برابره خبره ده چي دسزا تعين وي اوكه دمقدار اودكيفيت تعين وي، څكه چي داد بنده حق دي قاضي پكې دمصلحت په بناء باندي تصرف كولي شي په تعزير كې داضروري نده چي دادي ضرور دحدنه كم وي كله كله تعزير بالموت هم وي كوم چي دحد نه بالاتر دي اوكله كله حاكم اوقاضي دكوم خاص مصلحت په وجه مجرم ته تعزير معاف كولي هم شي يعني حاكم ياقاضي به مصلحت ته ګوري چي څنګه ورته مناسب اومفيدبنكاره شي هم هغسي به كوي، پخلاف دحد څكه چي پدي كې قاضي اوحاكم دخپل طرف نه هيڅ قسم ردوبدل اوكمي زياتي نشي كولي ، اوقصاص هم دبنده حق دي لهذا پدي كې هم بنده ته اختيارشته كه چري مجرم ته معافي كوي نومعافي ورته كولي شي، وغيره وغيره،

دلته بعضي جاهلانوڅوك چي دفقاهت نه عاري اوضد اوعناد په سرباندي اخستلي دي په احنافو اهل علموباندي اعتراض كوي چي احناف لواطت ګناه نه ګنړي اودليل ورله داپيش كوي چي په هدايه كې ليكلي دي چي څوك دلواطت ارتكاب وكړي نوپه هغه باندي حد نشته

بدقسمتي داده چي دوي ښه پوهيږي خو ضد دوجي نه تجاهل کوي اوياخو دهدايه دعبارت نه صحيح تعبيرنشي کولي اوپه مطلب ئې نه پوهيږي ، دفقهاؤ دعبارتونومطلب دادي چي حد ورله نشته يعني من عند الشارع ورله عقوبة مقدره معينه نشته بلکه تعزير دي ددي خو هرګز دامطلب ندي چي دابلکل ګناه نده اوکه څوك ئې په فقه کې ښودلي شي نوودي ښايي دفقهي په کوم کتاب کي ليکلي دي چي لواطت جرم ندي؟؟؟ دا يوه افتراء اوبهتان دي

****************

## ١ـ باب مَا جَاءَ فِيمَنْ لاَ يَجِبُ عَلَيْهِ الْحَدُّ

## بيان دهغه چا په چاچي حد نه لازميږي

١٤٢٣ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى الْقُطَعِيُّ الْبَصْرِيُّ، حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ عُمَرَ، حَدَّثَنَا هَمَّامٌ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنِ الْحَسَنِ الْبَصْرِيِّ، عَنْ عَلِيٍّ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: " رُفِعَ الْقَلَمُ عَنْ ثَلاَثَةٍ: عَنِ النَّائِمِ حَتَّى يَسْتَيْقِظَ، وَعَنِ الصَّبِيِّ حَتَّى يَشِبَّ، وَعَنِ الْمَعْتُوهِ حَتَّى يَعْقِلَ ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ عَائِشَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عَلِيٍّ حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ مِنْ هَذَا الْوَجْهِ، وَقَدْ رُوِيَ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ، عَنْ عَلِيٍّ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَذَكَرَ بَعْضُهُمْ: وَعَنِ الْغُلاَمِ حَتَّى يَحْتَلِمَ. وَلاَ نَعْرِفُ لِلْحَسَنِ سَمَاعًا مِنْ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ، وَقَدْ رُوِيَ هَذَا الْحَدِيثُ عَنْ عَطَاءِ بْنِ السَّائِبِ، عَنْ أَبِي ظَبْيَانَ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَ هَذَا الْحَدِيثِ. وَرَوَاهُ الأَعْمَشُ، عَنْ أَبِي ظَبْيَانَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنْ عَلِيٍّ، مَوْقُوفًا وَلَمْ يَرْفَعْهُ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا الْحَدِيثِ عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: قَدْ كَانَ الْحَسَنُ فِي زَمَانِ عَلِيٍّ وَقَدْ أَدْرَكَهُ، وَلَكِنَّا لاَ نَعْرِفُ لَهُ سَمَاعًا مِنْهُ. وَأَبُو ظَبْيَانَ اسْمُهُ: حُصَيْنُ بْنُ جُنْدَبٍ. [1]

**ترجمه:** دعلي رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله سلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دري قسمه خلق مرفوع القلم دي (يعني قابل دمواخذي نه دي) يو اوده دي چي څو پوري دخوب نه بيدار شوي نه وي، او يو ماشوم دي چي څو پوري بلوغ ته رسيدلي نه وي، او يو ليوني دي، چي څو پوري روغ شوي نه وي.

[1] ــ تفرد بذكره المؤلف (أخرجه النسائي في الكبرى) (تحفة الأشراف: ١٠٠٩٧) . وراجع: سنن ابي داود ـ الحدود ـ ١٦ (٤٣٩٩ ٤٤٠٣) . سنن ابن ماجه ـ الطلاق ١٥ (٢٠٤٢) . واحمد في المسند (١ ـ ١١٦، ١٤٠، ١٥٥، ١٥٨)

امام ترمذي وائي ددي سند په اعتبار دا حديث حسن غريب دي او دا حديث په يو څو نورو سندونو هم دعلي رضي الله عنه نه مروي دي او هغه دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه روايت نقل كړي دي بعضي راويانو په دي حديث كي دا الفاظ "وعن الغلام حتي يحتلم" نقل كړي دي يعني ماشوم چي څو پوري بالغ شوي نه وي تر هغه وخته پوري مرفوع القلم دي، دعلي رضي الله عنه په زمانه كي حسن بصري موجود وو او حسن بصري دهغه زمانه موندلي ده ليكن دعلي رضي الله عنه نه دهغه دسماع په باره كي مونږ ته علم نشته، دا حديث دعطاء بن سائب نه هم مروي دي او هغه په سند د ابوظبيان عن علي بن ابي طالب عن النبي صلي الله عليه وسلم سره نقل كړي دي او اعمش په سند د ابوضبيان عن ابن عباس عن علي موقوفا نقل كړي دي او مرفوع يي نه دي بيان كړي په دي باب كي دعائشه رضي الله عنها نه هم روايت وارد دي او داهل علمو په دي باندي عمل دي او دابوضبيان اصل نوم حصين بن جندب دي.

**تشريح**: په حدودو قائمولو كي د مجرم سره نرمي كول دفساد خورلو باعث جوړيږي لكه چي الله تعالي فرمائيلي دي:

الزَّانِيَةُ وَالزَّانِي فَاجْلِدُوا كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا مِئَةَ جَلْدَةٍ وَلَا تَأْخُذْكُمْ بِهِمَا رَأْفَةٌ فِي دِينِ اللَّهِ إِنْ كُنْتُمْ تُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ﴾ [النور: ٢].

[بيانوو مونږ حكم د زناكاري زنانه اوزناكاره سړي ، پس تاسو هريو لره اووهئ سل سل ګذارونه اونه دي نيسي تاسولره په دي دواړوباندي ترس كول په باره دجاري كولودين دالله تعالي كې كه چري ئي تاسو چي ايمان لري په الله تعالي اوپه ورځ داخرت باندي].

په پورتني ايت كې ددي خبري وضاحت دی كه نا واده شوی سړی او ښځه زنا اوكړي نو دوئ به سل سل كوړي وهلی شي علامه ابن كثير وائي ارشاد نبوي دی.

خذوا عني خذوا عني قد جعل الله لهن سبيلا البكر بالبكر جلد مئة وتغريب عام والثيب بالثيب وجلد مئة والرجم:

كه غواړئ چي تاسو زمانه علم حاصل كړئ تاسو غواړي چي زما نه علم حاصل كړئ الله تعالي چي دزناكار سړي او ښځي باره كې كوم حكم كړی دی هغه دادی چي ناواده شوي سړي او ښځي دپاره سل سل كوړي وهل او يو كال دوطن نه شړلو سزا ده او دواده شوي سړي او ښځي دپاره سل كوړي او رجم دی.

ولا تأخذكم بهما رأفة في دين الله: دزنا سزا په ظاهري طور سخته ده نو په دي وجه دا احتمال دی چي چرته دسزا وركونكو رحم ورباندي رانشي او سزا پرينږدي او يايي كمه نكړي نو په دي وجه دلته ذاتبيانيږي چي دسزا په وركولو كې په مجرمانو ترس مه كوئ په دوئ رحم كول دتمام

مخلوق دپاره بې رحمي ده نو په دې وجه دې په دې مجرمانو هيڅ كله رحم اونكړى شي.

***************

## ٢_ باب مَا جَاءَ فِي دَرْءِ الْحُدُودِ

### دحد دفع كولو بيان

١٤٢٤_ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ الأَسْوَدِ أَبُو عَمْرٍو الْبَصْرِيُّ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ رَبِيعَةَ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ زِيَادٍ الدِّمَشْقِيُّ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " ادْرَءُوا الْحُدُودَ عَنِ الْمُسْلِمِينَ مَا اسْتَطَعْتُمْ، فَإِنْ كَانَ لَهُ مَخْرَجٌ فَخَلُّوا سَبِيلَهُ، فَإِنَّ الإِمَامَ أَنْ يُخْطِئَ فِي الْعَفْوِ خَيْرٌ مِنْ أَنْ يُخْطِئَ فِي الْعُقُوبَةِ ". حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ زِيَادٍ، نَحْوَ حَدِيثِ مُحَمَّدِ بْنِ رَبِيعَةَ، وَلَمْ يَرْفَعْهُ، قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عَائِشَةَ لَا نَعْرِفُهُ مَرْفُوعًا إِلَّا مِنْ حَدِيثِ مُحَمَّدِ بْنِ رَبِيعَةَ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ زِيَادٍ الدِّمَشْقِيِّ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَرَوَاهُ وَكِيعٌ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ زِيَادٍ، نَحْوَهُ وَلَمْ يَرْفَعْهُ، وَرِوَايَةُ وَكِيعٍ أَصَحُّ، وَقَدْ رُوِيَ نَحْوُ هَذَا عَنْ غَيْرِ وَاحِدٍ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهُمْ قَالُوا مِثْلَ ذَلِكَ، وَيَزِيدُ بْنُ زِيَادٍ الدِّمَشْقِيُّ ضَعِيفٌ فِي الْحَدِيثِ، وَيَزِيدُ بْنُ أَبِي زِيَادٍ الْكُوفِيُّ، أَثْبَتُ مِنْ هَذَا وَأَقْدَمُ. (1)

**ترجمه:** دام المؤمنين عائشه رضي الله عنها بيان دې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي څو پورې چې ستاسو نه كيدې شي دمسلمانانو نه حدود دفع كړئ، او كه دمجرم دبچ كيدو كوم صورت پيدا كيدې شي نو پرې يې ايږدئ ځكه چې دمجرم په معاف كولو كې دامام غلطي كول هغه ته په سزا وركولو كې دغلطئ كولو نه زيات بهتر دي، په دې سند وكيع بن يزيد بن زياد نه دمحمد بن ربيعه دحديث پشان روايت مروي دې ليكن هغوئ دا مرفوع نه دې بيان كړې.

امام ترمذي وائي دعائشه رضي الله عنها دا حديث مونږ ته صرف په سند د محمد بن ربيعه عن يزيد بن زياد الدمشقي عن الزهري عن عروه عن عائشه عن النبي صلي الله عليه وسلم سره رارسيدلي دې او دا روايت وكيع هم ديزيد بن زياد نه ددې هم معني نقل كړې دې ليكن دا

1_ تفرد بذكره المؤلف (تحفة الأشراف: ١٦٦٨٩)

مرفوع نه دي او د وكيع روايت زيات صحيح دي، او ديزيد بن زياد دمشقي په حديث بيانولو كي ضعف دي ، يزيد بن زياد كوفي دده نه زيات اثبت او اقدم دي، دنبي كريم صلي الله عليه وسلم دمتعددو صحابه كرامو نه هم ددي هم معني روايات مروي دي او دوئ ټول داسي وائي.
په دي باب كي دابوهريره او عبدالله بن عمرو رضي الله عنهما نه هم احاديث مروي دي.

****************

## ٣ـ باب مَا جَاءَ فِي السَّتْرِ عَلَى الْمُسْلِمِ

### ديو مسلمان په عيب باندي دپردي اچولو بيان

١٤٢٥ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ نَفَّسَ عَنْ مُؤْمِنٍ كُرْبَةً مِنْ كُرَبِ الدُّنْيَا، نَفَّسَ اللهُ عَنْهُ كُرْبَةً مِنْ كُرَبِ الآخِرَةِ، وَمَنْ سَتَرَ عَلَى مُسْلِمٍ، سَتَرَهُ اللهُ فِي الدُّنْيَا وَالآخِرَةِ، وَاللهُ فِي عَوْنِ الْعَبْدِ مَا كَانَ الْعَبْدُ فِي عَوْنِ أَخِيهِ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ، وَابْنِ عُمَرَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ، هَكَذَا رَوَى غَيْرُ وَاحِدٍ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَ رِوَايَةِ أَبِي عَوَانَةَ، وَرَوَى أَسْبَاطُ بْنُ مُحَمَّدٍ، عَنِ الأَعْمَشِ، قَالَ: حُدِّثْتُ عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَهُ، وَكَأَنَّ هَذَا أَصَحُّ مِنَ الْحَدِيثِ الأَوَّلِ، حَدَّثَنَا بِذَلِكَ عُبَيْدُ بْنُ أَسْبَاطَ بْنِ مُحَمَّدٍ، قَالَ: حَدَّثَنِي أَبِي، عَنِ الأَعْمَشِ، بِهَذَا الْحَدِيثِ.[1]

دابوهريره رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چاچي دكوم مومن نه ددنيا په تكليفونو كي كوم تكليف لري كړو الله تعالي به دده نه داخرت په تكليفونو كي كوم تكليف لري كړي او چاچي په كوم مسلمان باندي پرده واچوله نو الله تعالي به په دنيا او اخرت كي دده پرده پوشي اوكړي او الله تعالي دهغه وخته پوري دخپل بنده په مدد كي وي څو پوري چي دا بنده دخپل ورور په مدد كي مشغول وي.
امام ترمذي وائي دا حديث دماقبل حديث نه زيات صحيح دي او دابوهريره رضي الله عنه حديث په يو څو نورو سندونو داعمش نه او هغه دابوصالح نه او هغه دابوهريره نه او هغه دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه نقل كړي دي او اسباط بن محمد داعمش نه روايت نقل كړي دي

---

[1] ـ صحيح مسلم ـ الذكر ١١ (٢٢٩٩). سنن ابي داود ـ الأدب ٦٨ (٤٩٤٦). سنن ابن ماجه ـ المقدمة ١٧ (٢٢٥). والحدود ٥ (٢٥٤٤). ويأتي عند المؤلف في البر والصلة ١٩ (١٩٣٠). (تحفة الأشراف: ١٢٥٠٠). و احمد في المسند (٢ـ ٢٥٢). سنن الدارمي ـ المقدمة ٣٢ (٣٦٠)

دي وائي ماته ابو صالح په واسطه باندي بيان شوي دي او هغه دابوهريره نه او هغه دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه ددي هم معني روايت نقل كړي دي مونږ ته دا روايت عبيد بن اسباط بن محمد بيان كړي دي دي وائي چي ماته زما دپلار اعمش په واسطه داحديث بيان شوي دي ، او په دي باب كي دعقبه بن عامر او ابن عمر رضي الله عنهما نه هم احاديث مروي دي

**تشريح** : "من نفس عن مومن كربة من كرب الدنيا" يعني څوك چي ديومسلمان نه ددنيا په تكليفونو كي يو تكليف لري كړي نو الله تعالي به په قيامت كي دده نه داخرت په تكليفونو كي يو لوي تكليف لري كړي ، دمشكوة په يو روايت كي دا مضمون په زيات وضاحت سره راغلى دى چي څوك دمصيبت وهلو ښخو امداد كوي او يا دغريب امداد كوي نو دى داسي دى لكه څوك چي په جهاد كي كوشش كوي او كه داسي يي اوفرمائيل چي تمامه شپه نفلونه كوي او يوه ذره سستي نه كوي او داسي دى لكه څوك چي هميشه روژي نيسي او افطار نه كوي.

وَمَنْ سَتَرَ مُسْلِماً سَتَرَهُ اللهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ. يعني چاكه ديومسلمان پرده اوساتله نودقيامت په ورځ به الله تعالي په ده باندي پرده واچوي يعني دده نقصانونه به دمحشر په ورځ ښكاره نكړي اونه به ورسره حساب اوكړي اوعمل نامه به ورته دپيشي په وخت كي پټه وركړي . ليكن دحديث دراويانو اودګواهانو تحقيق اوداهل علمو خيالات ظاهرول صرف جائز نه بلكه واجب دي څكه چي په دي طريقي سره ددين اوعلم حفاظت او دخلقو دحقوقو نګهباني كيږي .

**************

١٤٢٦_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ. حَدَّثَنَا اللَّيْثُ. عَنْ عُقَيْلٍ. عَنِ الزُّهْرِيِّ. عَنْ سَالِمٍ. عَنْ أَبِيهِ. أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. قَالَ: " الْمُسْلِمُ أَخُو الْمُسْلِمِ لَا يَظْلِمُهُ وَلَا يُسْلِمُهُ. وَمَنْ كَانَ فِي حَاجَةِ أَخِيهِ. كَانَ اللهُ فِي حَاجَتِهِ. وَمَنْ فَرَّجَ عَنْ مُسْلِمٍ كُرْبَةً. فَرَّجَ اللهُ عَنْهُ كُرْبَةً مِنْ كُرَبِ يَوْمِ الْقِيَامَةِ. وَمَنْ سَتَرَ مُسْلِمًا. سَتَرَهُ اللهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ. [1]

**ترجمه**: دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي يو مسلمان دبل مسلمان ورور وي نه به په ده باندي ظلم كوي او نه به دده مدد پريږدي او څوك چي دخپل ورور په حاجت پوره كولو كي مشغول وي نو الله تعالي دده حاجتونه پوره كوي او څوك چي دخپل كوم مسلمان ورور پريشاني ختموي الله تعالي به ددي په وجه دده

---

[1] _ اخرجه البخاري في الصحيح_ المظالم ٣ (٢٤٤٢) . والإكراه ٧ (٦٩٥١) . صحيح مسلم_ البر والصلة ١٥ (٢٥٨٠) .

(تحفة الأشراف : ٦٨٨٧)

نه دقيامت په پريشانو کي کومه پريشاني ختمه کړي او څوك چي دکوم مسلمان په عيب باندي پرده اچوي الله تعالي به دقيامت په ورځ دده په عيبونو پرده واچوي
امام ترمذي وائي داحديث حسن صحيح غريب دي

**تشريح** : "المسلم اخولمسلم" يعني مسلمان دبل مسلمان رور دی مطلب دادی چي مسلمانان پخپل مينځ کي ديوخاندان دافرادوپشان دي لکه څنګه چي يوبلاريارور په مصيبت کي دخپل رور او خوي امداد کوي او بي مدده يي نه پريږدي اوظلم ورباندي نه کوي نوداسي معامله دتمامو مسلمانانو سره کول پکار دي که چري په دي حديث باندي عمل اوکړی شي نو دادنيه به دجنت يوه نمونه جوړه شي

وَمَنْ فَرَّجَ عَنْ مُسْلِمٍ كُرْبَةً . فَرَّجَ اللهُ عَنهُ بها كُرْبَةً مِن كُرَبِ يَومِ القِيَامَةِ . يعني څوك چي ديومسلمان نه څه تکليف لري کړي نوددي په وجه به الله تعالي دده نه په قيامت کي تکليف لري کړي که په دنيا کي څوك دچانه دتکليف لري کولو کوشش وکړي نو الله تعالي به دده لره په هغه سخته ورځ کي بي مدده پري نه ږدي اودده پريشانياني به ختمي کړي.

وَمَنْ سَتَرَ مُسْلِماً سَتَرَهُ اللهُ يَومَ القِيَامَةِ. يعني چاکه ديومسلمان پرده اوساتله نودقيامت په ورځ به الله تعالي په دده باندي پرده واچوي يعني دده نقصانونه به دمحشر په ورځ ښکاره نکړي اونه به ورسره حساب اوکړي اوعمل نامه به ورته دپيشي په وخت کي پټه ورکړي . ليکن دحديث دراويانو اودګواهانو تحقيق اوداهل علمو خيالات ظاهرول صرف جائز نه بلکه واجب دي څکه چي په دي طريقي سره ددين اوعلم حفاظت او دخلقو دحقوقو نګهباني کيږي .

*****************

## ٤ـ باب مَا جَاءَ فِي التَّلْقِينِ فِي الحَدِّ

### دحد لائق جرم په تحقيق کي دتلقين کولو بيان

١٤٢٧ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، عَنْ سِمَاكِ بْنِ حَرْبٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لِمَاعِزِ بْنِ مَالِكٍ: "أَحَقٌّ مَا بَلَغَنِي عَنْكَ؟" قَالَ: وَمَا بَلَغَكَ عَنِّي، قَالَ: "بَلَغَنِي أَنَّكَ وَقَعْتَ عَلَى جَارِيَةِ آلِ فُلَانٍ". قَالَ: نَعَمْ. فَشَهِدَ أَرْبَعَ شَهَادَاتٍ، فَأَمَرَ بِهِ فَرُجِمَ. قَالَ: وَفِي البَاب، عَنِ السَّائِبِ بْنِ يَزِيدَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ عَبَّاسٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ.

وَرَوَى شُعْبَةُ، هَذَا الْحَدِيثَ، عَنْ سِمَاكِ بْنِ حَرْبٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ مُرْسَلًا. وَلَمْ يَذْكُرْ فِيهِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ.(١)

**ترجمه:** دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه روايت دي نبي كريم صلي الله عليه وسلم ماعز بن مالك رضي الله عنه ته اوفرمائيل ستا په باره كي چي ماته كوم خبر رارسيدلي دي ايا دا صحيح دي؟ ماعز رضي الله عنه عرض اوكړو زما باره كي تاته څه خبر رارسيدلي دي رسول الله اوفرمائيل ماته دا خبر رارسيدلي دي چي تا دفلانئ قبيلي ديوي وينځي سره زنا كړي ده؟ ماعز عرض اوكړو هو او څلور پيري يي اقراراوكړو نورسول الله دده درجم كولو حكم اوكړو او بيا رجم كړي شو.

امام ترمذي وائي دابن عباس حديث حسن دي او داحديث شعبه دسماك بن حرب نه او هغه دسعيد بن جبير نه مرسل نقل كړي دي او هغوئ په دي سند كي دابن عباس ذكر نه دي كړي، او په دي باب كي دسائب بن يزيد نه هم روايت وارد دي.

***************

## ٥_ بَاب مَا جَاءَ فِي دَرْءِ الْحَدِّ عَنِ الْمُعْتَرِفِ إِذَا رَجَعَ

### دمجرم داقرار نه رجوع كولو سره دحد ساقطيدلو بيان

١٤٢٨_ حَدَّثَنَا أَبُو كُرَيْبٍ، حَدَّثَنَا عَبْدَةُ بْنُ سُلَيْمَانَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرٍو، حَدَّثَنَا أَبُو سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: جَاءَ مَاعِزٌ الأَسْلَمِيُّ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. فَقَالَ: إِنَّهُ قَدْ زَنَى فَأَعْرَضَ عَنْهُ. ثُمَّ جَاءَ مِنْ شِقِّهِ الآخَرِ. فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ. إِنَّهُ قَدْ زَنَى. فَأَعْرَضَ عَنْهُ. ثُمَّ جَاءَ مِنْ شِقِّهِ الآخَرِ. فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ. إِنَّهُ قَدْ زَنَى. فَأَمَرَ بِهِ فِي الرَّابِعَةِ فَأُخْرِجَ إِلَى الْحَرَّةِ. فَرُجِمَ بِالْحِجَارَةِ. فَلَمَّا وَجَدَ مَسَّ الْحِجَارَةِ فَرَّ يَشْتَدُّ. حَتَّى مَرَّ بِرَجُلٍ مَعَهُ لَحْيُ جَمَلٍ فَضَرَبَهُ بِهِ. وَضَرَبَهُ النَّاسُ حَتَّى مَاتَ. فَذَكَرُوا ذَلِكَ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. أَنَّهُ فَرَّ حِينَ وَجَدَ مَسَّ الْحِجَارَةِ وَمَسَّ الْمَوْتِ. فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "هَلَّا تَرَكْتُمُوهُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ

---

1 _ صحيح مسلم_ الحدود ٥ (١٦٩٣). سنن ابي داود_ الحدود ٢٤ (٤٤٢٥). (تحفة الأشراف: ٥٥١٩). و احمد في المسند (١_ ٢٤٥، ٣١٤، ٣٢٨)

حَسَنٌ. وَقَدْ رُوِيَ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ. عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ. وَرُوِيَ هَذَا الحَدِيثُ عَنِ الزُّهْرِيِّ. عَنْ أَبِي سَلَمَةَ. عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ. عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَ هَذَا. [1]

**ترجمه**: دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي چي ماعز اسلمي رضي الله عنه نبي كريم صلي الله عليه وسلم ته راغلو او دزنا كولو اعتراف يي اوكړو رسول الله صلي الله عليه وسلم ورنه مخ واړولو، بيا په دويم ځل دوباره راغي او ونيل يي اي دالله رسوله ما زنا كړي ده نو رسول الله ورنه په دويم ځل هم مخ واړولو نو بيا ماعز دبل طرف نه راتاؤ شو او ونيل يي دالله رسوله ما زنا كړي ده ترديچي په څلورم ځل اعتراف كولو سره يي دده درجم كولو حكم اوكړو چنانچې ماعز يوي كاڼرجنړي زمكي ته بوتلي شو او هم هلته رجم كړي شو كله چي ورباندي كانړي اولګيدل نو منډه يي كړل ترديچي ديوداسي كس په خوا كي تير شو دچا په لاس كي چي داوښ دجامي هډوكي وو نو هغه په همدي باندي ماعز اوويشتلو او خلقو هم اوويشتلو ترديچي پوري چي مړ شو دده دمرګ نه پس خلقو رسول الله صلي الله عليه وسلم ته ددي ذكر اوكړو چي كله يي دكانړو دويشتلو او دمرګ تكليف محسوس كړو نو منډه يي واخستله رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل نو تاسو ولي نه پريخودلو.

امام ترمذي وائي داحديث حسن دي اودابوهريره نه په يو څو نورو سندونو هم مروي دي دا حديث دزهري نه هم مروي دي او هغه دا په سند د ابي سلمه. عن جابر بن عبدالله عن النبي صلي الله عليه وسلم سره نقل كړي دي (او ددي هم معني روايت وروستو هم راروان دي)

***************

١٤٢٩ـ حَدَّثَنَا بِذَلِكَ الحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ الخَلَّالُ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَنْبَأَنَا مَعْمَرٌ. عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ. عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، أَنَّ رَجُلًا مِنْ أَسْلَمَ جَاءَ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاعْتَرَفَ بِالزِّنَا، فَأَعْرَضَ عَنْهُ، ثُمَّ اعْتَرَفَ. فَأَعْرَضَ عَنْهُ. حَتَّى شَهِدَ عَلَى نَفْسِهِ أَرْبَعَ شَهَادَاتٍ. فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَبِكَ جُنُونٌ؟". قَالَ: لَا. قَالَ: "أُحْصِنْتَ". قَالَ: نَعَمْ. قَالَ: فَأَمَرَ بِهِ. فَرُجِمَ بِالمُصَلَّى. فَلَمَّا أَذْلَقَتْهُ الحِجَارَةُ. فَرَّ فَأُدْرِكَ فَرُجِمَ حَتَّى مَاتَ. فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "خَيْرًا". وَلَمْ يُصَلِّ عَلَيْهِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالعَمَلُ عَلَى هَذَا الحَدِيثِ عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ العِلْمِ: أَنَّ المُعْتَرِفَ بِالزِّنَا إِذَا أَقَرَّ عَلَى نَفْسِهِ أَرْبَعَ مَرَّاتٍ،

---

[1] ـ اخرجه البخاري في الصحيح ـ الحدود ٢٢ (٦٨١٥). والأحكام ١٩ (٧١٦٧). صحيح مسلم ـ الحدود ٥ (١٦). سنن ابن ماجه ـ الحدود ٩ (٢٥٥٤). (تحفة الأشراف: ١٥٠٦١). واحمد في المسند (٢ـ٢٨٦، ٢٨٧، ٤٥٠، ٤٥٣)

أُقِيمَ عَلَيْهِ الحَدُّ، وَهُوَ قَوْلُ: أَحْمَدَ، وَإِسْحَاق، وقَالَ بَعْضُ أَهْلِ العِلْمِ: إِذَا أَقَرَّ عَلَى نَفْسِهِ مَرَّةً، أُقِيمَ عَلَيْهِ الحَدُّ، وَهُوَ قَوْلُ مَالِكِ بْنِ أَنَسٍ، وَالشَّافِعِيِّ، وَحُجَّةُ مَنْ قَالَ هَذَا القَوْلَ، حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ، وَزَيْدِ بْنِ خَالِدٍ، أَنَّ رَجُلَيْنِ اخْتَصَمَا إِلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ أَحَدُهُمَا: يَا رَسُولَ اللهِ، إِنَّ ابْنِي زَنَى بِامْرَأَةِ. هَذَا الحَدِيثُ بِطُولِهِ، وَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "اغْدُ يَا أُنَيْسُ عَلَى امْرَأَةِ هَذَا، فَإِنِ اعْتَرَفَتْ فَارْجُمْهَا"، وَلَمْ يَقُلْ فَإِنِ اعْتَرَفَتْ أَرْبَعَ مَرَّاتٍ. (١)

**ترجمه** : دجابر بن عبدالله رضي الله عنهما نه روايت دي فرمائي چي دبني اسلم قبيلي يو كس دنبي كريم صلي الله عليه وسلم په خدمت كي حاضر شو او دزنا اقرار يي اوكړو نو رسول الله ورنه مخ واړولو، نو ده بيا اقرار اوكړو رسول الله ورنه بيا هم مخ واړولو تردي چي څلور پيري اقرار يي په ځان اوكړو نبي كريم صلي الله عليه وسلم وزته اوفرمائيل ايا ته ليوني شوي يي؟ هغه اووئيل نه رسول الله صلي الله عليه وسلم ورنه تپوس اوكړو ايا ته شادي شده يي؟ هغه اووئيل هو، نو بيا رسول الله دده درجم كولو حكم اوكړو چنانچي دي په عيدګاه كي رجم كړي شو كله چي وربانديي كاڼړي وريدل نو منډه يي كړه مګر بيا اونيولي شو او رجم كړي شو تردي پوري چي مړ شو، رسول الله صلي الله عليه وسلم دده په حق كي دخير كلمات اووئيل ليكن پخپله يي وربانديي جنازه اونكړه.

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي او دبعضي اهل علمو په دي بانديي عمل دي چي دزنا اقرار كونكي كله پخپل ځان بانديي څلور پيري ګواهي اوكړي نو په ده به حد قائمولي شي امام اسحاق بن راهويه هم په دي بانديي قول كړي دي، بعضي اهل علم وائي كه څوك يو ځل هم دزنا اقرار اوكړي په هغه بانديي به حد قائمولي شي دامام مالك او امام شافعي قول دي او ددوئ دليل دابوهريره رضي الله عنه او زيد بن خالد دا حديث دي چي دوه كسانو رسول الله ته خپله مقدمه دفيصلي كولو دپاره پيش كړه او وئيل يي اي دالله رسوله زما خوي دده دښځي سره زنا كړي ده، دا يو اوږد حديث دي (ددي په اخر كي داسي دي) نبي كريم صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل اي انيس! دده ښځي ته ورشه كه هغه دزنا اقرار اوكړي نو رجم يي كړه رسول الله په دي حديث كي دا نه دي فرمائيلي چي كله څلور پيري اقرار پوره كړي.

****************

---

[1] _ البخاري في الصحيح_ الطلاق ١١ (٥٢٧٠) . والحدود ٢١ (٦٨١٤) . و٢٥ (٦٨٢٠) . صحيح مسلم_ الحدود ٥ (١٦) . سنن ابي داود_ الحدود ٢٤ (٤٤٣٠) . سنن النسائي_ الجنائز ٦٣ (١٩٥٨) . (تحفة الأشراف : ٣١٤٩) . و احمد في المسند (٣_ ٣٢٣) . وسنن الدارمي_ الحدود ١٢ (٢٣٦١) .

## ٦ـ باب مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ أَنْ يُشْفَعَ فِي الْحُدُودِ

## په حد كې سفارش كول مكروه دي

١٤٣٠ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، أَنَّ قُرَيْشًا أَهَمَّهُمْ شَأْنُ الْمَرْأَةِ الْمَخْزُومِيَّةِ الَّتِي سَرَقَتْ، فَقَالُوا: مَنْ يُكَلِّمُ فِيهَا رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالُوا: مَنْ يَجْتَرِئُ عَلَيْهِ إِلَّا أُسَامَةُ بْنُ زَيْدٍ، حِبُّ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَكَلَّمَهُ أُسَامَةُ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَتَشْفَعُ فِي حَدٍّ مِنْ حُدُودِ اللَّهِ". ثُمَّ قَامَ فَاخْتَطَبَ، فَقَالَ: "إِنَّمَا أَهْلَكَ الَّذِينَ مِنْ قَبْلِكُمْ، أَنَّهُمْ كَانُوا إِذَا سَرَقَ فِيهِمُ الشَّرِيفُ تَرَكُوهُ، وَإِذَا سَرَقَ فِيهِمُ الضَّعِيفُ أَقَامُوا عَلَيْهِ الْحَدَّ، وَايْمُ اللَّهِ، لَوْ أَنَّ فَاطِمَةَ بِنْتَ مُحَمَّدٍ سَرَقَتْ لَقَطَعْتُ يَدَهَا". قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ مَسْعُودِ ابْنِ الْعَجْمَاءِ، وَابْنِ عُمَرَ، وَجَابِرٍ، قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عَائِشَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَيُقَالُ: مَسْعُودُ بْنُ الْأَعْجَمِ، وَلَهُ هَذَا الْحَدِيثُ. [1]

**ترجمه** : دام المؤمنين عائشه رضي الله عنها بيان دي چي قريش دقبيله بني محذوم ديوي ښځي په معامله كي چي غلا يي كړي وه فكر مند وو او دا خبره يي كوله چي ددي په باره كي به درسول الله سره څوك ګفتګو اوكړي خلقو اووئيل داسامه بن زيد چي درسول الله خاص دوست دي نه علاوه بل څوك دا جرئت نشي كولي چنانچي اسامه ورسره په دي باره كي خبري اوكړي نو رسول الله اوفرمائيل ايا ته دالله تعالي په حدودو كي ديو حد باره كي سفارش كول غواړي او بيا رسول الله صلي الله عليه وسلم ودريد او خطبه يي شروع كړه او دا يي اوفرمائيل اي خلقو ستاسو نه مخكي تير شوي خلق ددي عمل په وجه هلاك شوي دي چي كله به دكوم اعلي خاندان والا انسان غلا اوكړه نو هغه به يي پريخودو او چي كله به كمزوري انسان غلا اوكړه نو په هغه به يي حد جاري كولو زما دي دالله په ذات قسم وي كه دمحمد لور فاطمه غلا اوكړي نو زه به دهغي لاس پري كړم.

---

[1] ـ اخرجه البخاري في الصحيح ـ الشهادات ٨ (٢٦٤٨) . والأنبياء ٥٤ (٣٤٧٥) . وفضائل الصحابة ١٨ (٣٧٣٢) . والمغازي ٥٣ (٤٣٠٤) . والحدود ١١ (٦٧٨٧) . و ١٢ (٦٧٨٨) و ١٤ (٦٨٠٠) . صحيح مسلم ـ الحدود ٢ (١٦٨٨) . سنن ابي داود ـ الحدود ٤ (٤٣٧٣) . سنن النسائي ـ قطع السارق ٦ (٤٩٠٦) . سنن ابن ماجه ـ الحدود ٦ (٢٥٤٧) . (تحفة الأشراف : ١٦٥٧٨) . و احمد في المسند (٦ ـ ١٦٢) . وسنن الدارمي ـ الحدود ٥ (٢٣٤٨)

امام ترمذي وائي دعائشه حديث حسن صحيح دي، او په دي باب کي مسعود عجماء، ابن عمر، او جابر رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي، مسعود بن عجماء ته مسعود بن اعجم هم وئيلي شي او دهغه نه صرف همدا يو حديث مروي دي.

**لغات**: يجترئ: اجترء يجترئ اجتراءً ، ډير بهادر کيدل ، سرق سرق يسرق سرقا وسرِقا وسرقة وسرِقة وسرقانا کوم څيز لره پټول.

**تشريح**: "شان المرائة المخزومية" يعني ديوي مخزومي ښځي په باره کې فکرمند وو علماء وائي دا ښځه دابو سلمه وريره وه او نوم يي فاطمه بنت اسود ابن عبدالاسود وو "اتشفع في حدودالله" رسول الله اوفرمائيل ايا ته دالله په حدودو کې سفارش کوې.

د اهل علمو قول دی چي دحد دثابتيدو نه پس په دي کې سفارش کول حرام دي او کله چي مقدمه قاضي ته ورسيږي نو هم سفارش کول حرام دي مګر که رسيدلي نه وي نو بيا اکثرو علماؤ دسفارش اجازت ورکړی دی مګر په دي کې شرط دادی چي خلقو ته به ضرر نه رسوي او که دا مسئله دتعذير دقبيلي نه وي نو بيا په دي کې په هر صورت کې سفارش جائز دی برابره خبره ده چي معامله عدالت ته رسيدلي وي او که نه وي.

## په چا حد جاري کيدل دهغه دپاره د ګناه نه د پاکيدو سبب دي او کنه

کوم کس چي جرم اوکړلو.اوهغه باندې حد جاری شو.نوزمونږ په نزد حد دې کس لره د ګناه نه پاکونکې نه دې.بلکه پاکيدل په توبې سره کيږی.دعالمانو اجماع ده.چي په توبه ويستلوسره دنيوی سزا نه ساقطيږی.

که دا اووئيلی شی.چي پاکيدل خو د حديث نه ثابتيږی.نوجواب دا دې.چي په کومو کسانو باندې حدجاری شوې وو.هغوی توبه ويستلې وه.د نبیؑ ارشاد دې.((لقدتاب توبة)) يعنی هغه لويه توبه اوويستله.په دې باب کې صريحی حديث دې.خلاصه دا چي هم دا مذهب قوی دې.

دګواهئ ورکولو صورت به دا وی.چي په ګواهانوکي څلورکسان په يوسړی اوښځه باندې د زنا ګواهی ورکړی.دالله تعالی ددې فرمان د وجې چي ((فاستشهدوا عليهن أربعة منكم)) يعنی په داسې ښځوباندې دخپلو سړو نه څلورګواهان اولټوئ.اوالله تعالی دا هم فرمائيلی دی.((ثم لم يأتوا بأربعة شهداء)) بيا که دغه خلقو څلورګواهان قائم نکړل. اورسول اللهﷺ هغه سړی ته چا چي په خپله ښځه باندې د زنا تهمت لګولې وو.داسې فرمائيلی وو.ته داسې څلورسړی راوله.څوک چي ستا په خبره باندې ګواهی ورکړی.اودا هم دليل دې چي دڅلوروسړو په شرطيت کې د پرده پوشئ معنی پرته ده.اوپرده اچول يوداسې کاردې.چي ددې

ترغيب ورکړې شوې دې.اوفحش اودبې حيائې خبرې ته شهرت ورکول ددې پرده پوشۍ دعمل نه خلاف دې.
دابوهريره اوابن عمر ﷺ نه نقل دې.چې کوم مسلمان دبل مسلمان پرده واخستله.نوالله تعالى به په دنيا اوآخرت کې دده پرده واخلي.ترمذي ابوداود اونسائي ددې روايت کړې دې.
اوکه دغه ګواهان په زنا باندې ګواهي ورکړي.نوبيا به امام دهغوی نه د زنا په باره کې تپوس کوي.چې زنا څه څيزدې.اوپه کومه طريقه کيږي.اوپه کوم محل کې کيږي.اوده زنا په کوم ځائې کې کړې ده.اوکله ئې کړې ده.اوچا سره ئې کړې ده.ځکه چې رسول الله ﷺ د حضرت ماعزبن مالك ﷺ نه د زنا کيفيت ،اودکومې ښځې سره چې ئې زنا کړې وه.ددې ټولوخبروپه باره کې تپوسونه کړي وو.لکه څنګه چې ابوداود ددې روايت کړې دې.په داسې قسم سوالونوکې احتياط ددې وجې واجب دې.چې کيدې شي.دې کس په فرج کې دځه کولوپه ځائې څه بل څيز مراد اخستې وي.مثلاً نظربازي(کتل راکتل) کوکئ اخستل.ئې زنا ګنړلې وي.يا ده په دارالحرب کې زنا کړي وي.يا په پخوا زمانه کې ئې کړې وي.يا دکومې ښځې سره چې ئې زنا کړې وي.هلته داسې څه شبه وي.چې دهغې دوجې حد ساقط کيدې شي.حالانکه هغه په خپله دا نه پيژني.(چې په دې باندې حد ساقطيږي) مثلاً چې يوکس دخپل خوئي د وينځې سره وطي اوکړله.(نوپه دې صورت کې حد نه جاري کيږي) خلاصه دا چې ددې ټولو خبروپه باره کې به امام ښه تحقيق اومعلومات اوکړي.کيدې شي.چې په دې طريقه د حد ساقط کيدو څه موقع په لاس راشي.
نوښه به معلومات حاصل کړي.چې دحدنه جاري کولوڅه امکان باقي پاتې نشي.ددې وضاحت دا دې.چې په کوم سړي باندې ګواهانود زنا ګواهي ورکړې وي.کيدې شي.چې هغوی ته دزنا پوره معنی معلومه نه وي.يوسړي يوه پردئ ښځه ښکل کړله.اوبيا دير وارخطا د نبي ﷺ په مجلس کې حاضرشو.اوعرض ئې اوکړلو.يارسول الله ﷺ په ماباندې حد جاري کړه.نو رسول الله ﷺ پرې حد جاري نکړلو.او ورته ئې اوفرمائيل.تا مونږ سره مونځ ا وکړو.هغه ورته عرض اوکړو.آو.نو نبي ﷺ ورته اوفرمائيل.مونځ او اودس واړه ګناهونه معاف کوي.اوحد ئې پرې جاري نکړلو.
دغه شان که په دارالحرب کې زنا اوکړي.نوپه هغه باندې حد نه جاري کيږي.دغه شان که ګواهانوپه يوکس باندې د زنا کولوګواهي ورکړله.اودا معلوميدله.چې په زنا باندې کافی موده تيره شوې ده ، نوپه دې باندې زنا نه ثابتيږي.ځکه چې ګواهانودومره اوږده مودهٔ په ګواهئ کولوکې روستوالې اوکړلو.اودشريعت حاکم ته ئې خبرورنکړلو.نوداکسان په خپله فاسقان شول.اوددې په وجه دوی دګواهئ ورکولوقابل پاتې نشو.يادغه شان که د يوې ښځې سره داسې حرکت اوکړي.اوهغه دده د خوی منکوحه وي.يا دده مملوکه وي.تردې چې هغه

ګواه بلکه هغه سړې په خپله په دې باندې د زنا ګمان کوي.حالانکه د شريعت په نظرکي په دې کښې داسې څه خبره موجود نه ده.چي په هغې باندې حد ساقط شي.نوځکه دټولو خبرو معلومات کول پکار دی.چي په غلطه طريقه حدجاري نشي.

بيا چي کله دغه ټول ګواهان ددې سړی د زنا کيفيت بيان کړی.اودا اووائي.چي مونږ فلانې سړي په داسې حالت کي ليدلې وو.چي هغه خپله شرمګاه دفلانئ ښځې په شرمګاه کي داسې وردننه کړې وو.لکه څنګه چي په نجلومه کي سلايئ ورداخلولې شي.بيا به قاضی ددغه ګواهان دحال په باره کي معلومات اوکړی.نوچي په پټه اوپه ښکاره په هرحالت کي ددوی عدالت معلوم شي.نوبيا به قاضی دهغوی په ګواهئ باندې فيصله اوکړی.يعنی د زنا اوحدودو په ګواهئ کي به قاضی ددوی ظاهری عدالت (ظاهری شکل اوشباهت اودهغوی په اسلام باندې اکتفاء کوی.چي دحدنه جاری کيدو حيله پيدا شي.يعنی چي د ثابتيدو نه بچ شي.په خلاف د نوروحقوقوځکه چي په هغې کي دامام ابوحنيفه(رح) په نيزد دغه ګواهانوپه ظاهری عدالت باندې اکتفا کولې شي.خوپه دې شرط چي دويم فريق په دغه ګواهانوځه اعتراض نه کوی).

اودګواهانود پټ اوښکاره عدالت په باره کي به انشاء الله مونږ په کتاب الشهادات کي بيان اوکړو.امام محمد(رح)فرمائيلی دی.چي قاضی به هغه سړې دکوم ګواهی چي پيش شوې وی.هغه به په جيلخانه کي بند کړی.تردې چي دګواهئ اصلی حالت معلوم شي.ځکه چي په ده باندې د جرم (يعنی دعيب لګولو) تهمت موجود دې.اورسول اللهﷺ هم يوکس د تهمت په وجه په جيلخانه کي اچولې وو.(رواه ابوداود) په خلاف د قرض ځکه چي په هغې کي چي ترڅوعدالت نه وی ښکاره شوې.مقروض به په قيد کي نشی اچولې.

******************

## ٧_ بَاب مَا جَاءَ فِي تَحْقِيقِ الرَّجْمِ

### درجم دثبوت بيان

١٤٣١_ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ يُوسُفَ الأَزْرَقُ، عَنْ دَاوُدَ بْنِ أَبِي هِنْدٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ، عَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ، قَالَ: " رَجَمَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَرَجَمَ أَبُو بَكْرٍ، وَرَجَمْتُ، وَلَوْلَا أَنِّي أَكْرَهُ أَنْ أَزِيدَ فِي كِتَابِ اللَّهِ، لَكَتَبْتُهُ فِي الْمُصْحَفِ، فَإِنِّي قَدْ خَشِيتُ أَنْ تَجِيءَ أَقْوَامٌ

فَلَا يَجِدُونَهُ فِي كِتَابِ اللَّهِ، فَيَكْفُرُونَ بِهِ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ عَلِيٍّ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عُمَرَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَرُوِيَ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ، عَنْ عُمَرَ. (1)

**ترجمه**. عمر بن الخطاب رضي الله عنه بيان دی رسول الله صلي الله عليه وسلم رجم کړي دي او ابوبکر رضي الله عنه رجم کړي دي او ما هم رجم اوکړو که چرې ما دالله په کتاب کې زیادت کول حرام نه ګڼرلي نو دا به مې په مصحف کې ليکلي وو خکه چې زما سره دا ويره ده چې داسې قومونه به راشي چې دالله په کتاب کې به درجم حکم بيا نه مومي او ددينه به انکار اوکړي.

امام ترمذي وايي دعمر رضي الله عنه حديث حسن صحيح دی او په نورو سندونو هم دا حديث مروي دی او په دې کې دعلي رضي الله عنه نه هم روايت وارد دی.

**تشريح**: په حدودو قائمولو کې د مجرم سره نرمي کول دفساد خورلو باعث جوړيږي لکه چې الله تعالي فرمانيلي دي: الزَّانِيَةُ وَالزَّانِي فَاجْلِدُوا كُلَّ وَاحِدٍ مِّنْهُمَا مِائَةَ جَلْدَةٍ وَلَا تَأْخُذْكُم بِهِمَا رَأْفَةٌ فِي دِينِ اللَّهِ إِن كُنتُمْ تُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ﴾ [النور: ٢].

ابيانوو مونږ حکم د زناکاري زنانه اوزناکاره سړي ، پس تاسو هريو لره اوهئ سل سل ګذارونه اونه دې نيسي تاسولره په دې دواړوباندې ترس کول په باره دجاري کولودين دالله تعالي کې که چرې ئې تاسو چې ايمان لرئ په الله تعالي اوپه ورځ داخرت باندې!.

په پورتني ايت کې ددې خبرې وضاحت دی که نا واده شوی سړی او ښځه زنا اوکړي نو دوئ به سل سل کوړې وهلی شي علامه ابن کثير واني ارشاد نبوي دی.

خذوا عني خذوا عني قد جعل الله لهن سبيلا البكر بالبكر جلد مئة وتغريب عام والثيب بالثيب وجلد مئة والرجم:

که غواړئ چې تاسو زمانه علم حاصل کړئ تاسو غواړي چې زما نه علم حاصل کړئ الله تعالي چې دزناکار سړي او ښځي باره کې کوم حکم کړی دی هغه دادی چې ناواده شوي سړي او ښځي دپاره سل سل کوړې وهل او يو کال دوطن نه شړلو سزا ده او دواده شوي سړي او ښځي دپاره سل کوړې او رجم دی.

ولا تاخذكم بهما رافة في دين الله: دزنا سزا په ظاهري طور سخته ده نو په دې وجه دا احتمال دی چې چرته دسزا ورکونکو رحم ورباندې رانشي او سزا پرينږدي او يايې کمه نکړي نو په دې وجه دلته دا بيانيږي چې دسزا په ورکولو کې په مجرمانو ترس مه کوئ په دوئ رحم کول دتمام

---

1 _ تفرد بہ کره المؤلف (تحفة الأشراف: ١٠٣٥١). وانظر مسند احمد (١_٢٦، ٣٣)

مخلوق دپاره بي رحمي ده نو په دي وجه دي په دي مجرمانو هيڅ كله رحم اونكړی شي.

****************

١٤٣٢ـ حَدَّثَنَا سَلَمَةُ بْنُ شَبِيبٍ، وَإِسْحَاقُ بْنُ مَنْصُورٍ، وَالْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ الْخَلَّالُ، وَغَيْرُ وَاحِدٍ، قَالُوا: حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، عَنْ مَعْمَرٍ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُتْبَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ، قَالَ: "إِنَّ اللَّهَ بَعَثَ مُحَمَّدًا صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْحَقِّ، وَأَنْزَلَ عَلَيْهِ الْكِتَابَ، فَكَانَ فِيمَا أَنْزَلَ عَلَيْهِ آيَةُ "الرَّجْمِ". فَرَجَمَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَرَجَمْنَا بَعْدَهُ، وَإِنِّي خَائِفٌ أَنْ يَطُولَ بِالنَّاسِ زَمَانٌ، فَيَقُولَ قَائِلٌ: لَا نَجِدُ الرَّجْمَ فِي كِتَابِ اللَّهِ، فَيَضِلُّوا بِتَرْكِ فَرِيضَةٍ أَنْزَلَهَا اللَّهُ، أَلَا وَإِنَّ الرَّجْمَ حَقٌّ عَلَى مَنْ زَنَى، إِذَا أُحْصِنَ وَقَامَتِ الْبَيِّنَةُ، أَوْ كَانَ حَبَلٌ أَوِ اعْتِرَافٌ". وَفِي الْبَابِ، عَنْ عَلِيٍّ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَرُوِيَ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ، عَنْ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ: [1]

**ترجمه** : دعمررضي الله عنه بيان دي الله تعالي محمد صلي الله عليه وسلم دحق سره راليږلي دي او په رښتيا يي راليږلي دي او الله تعالي ورباندي كتاب نازل كړي دي په هغه باندي چي كوم كلام نازل شوي دي په هغي كي درجم ايات دي چنانچي رسول الله صلي الله عليه وسلم په رجم عمل كړي دي او دهغه نه پس مونږ هم په رجم عمل اوكړو ليكن زما سره دا ويره ده چي كله په خلقو اوږده زمانه تيره شي نو بعضي ويونكي به اووائي چي مونږ دالله په كتاب كي درجم كولو حكم اونه مونډلو نو داسي خلق به دالله تعالي دنازل كړي فريضي دپريخودو په وجه ګمراه شي خبردار كله چي شادي شده زاني او ګواهان موجود وي يا چي دكومي ښځي سره زنا شوي وي هغه حامله شي او يا پخپله په خان اقرار اوكړي نو رجم كول واجب دي.
امام ترمذي وايي دا حديث حسن صحيح دي او دا په نورو سندونو هم دعمر رضي الله عنه نه مروي دي، او په دي باب كي دعلي رضي الله عنه نه هم روايت وارد دي.

****************

## ٨ـ بَابُ مَا جَاءَ فِي الرَّجْمِ عَلَى الثَّيِّبِ

[1] ـ اخرجه البخاري في الصحيح ـ الحدود ٣٠ (٦٨٢٩) . صحيح مسلم ـ الحدود ٤ (١٦٩١) . سنن ابي داود ـ الحدود ٢٣ (٤٤١٨) . سنن ابن ماجه ـ الحدود ٨ (٢٥٥٣) . (تحفة الأشراف : ١٠٥٠٨) . و احمد في المسند (١ـ ٢٩، ٤٠، ٤٧، ٥٠، ٥٥) . سنن الدارمي ـ الحدود ١٦ (٢٣٦٨)

## دواده شوي دسنكسارولو بيان

١٤٣٣_ حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ، وَغَيْرُ وَاحِدٍ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُبَيْدِ اللهِ بْنِ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُتْبَةَ، سَمِعَهُ مِنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، وَزَيْدِ بْنِ خَالِدٍ، وَشِبْلٍ، أَنَّهُمْ كَانُوا عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَأَتَاهُ رَجُلَانِ يَخْتَصِمَانِ، فَقَامَ إِلَيْهِ أَحَدُهُمَا، وَقَالَ: أَنْشُدُكَ اللهَ يَا رَسُولَ اللهِ، لَمَا قَضَيْتَ بَيْنَنَا بِكِتَابِ اللهِ، فَقَالَ خَصْمُهُ وَكَانَ أَفْقَهَ مِنْهُ: أَجَلْ يَا رَسُولَ اللهِ، اقْضِ بَيْنَنَا بِكِتَابِ اللهِ، وَائْذَنْ لِي فَأَتَكَلَّمَ، إِنَّ ابْنِي كَانَ عَسِيفًا عَلَى هَذَا، فَزَنَى بِامْرَأَتِهِ، فَأَخْبَرُونِي أَنَّ عَلَى ابْنِي الرَّجْمَ، فَفَدَيْتُ مِنْهُ بِمِائَةِ شَاةٍ وَخَادِمٍ، ثُمَّ لَقِيتُ نَاسًا مِنْ أَهْلِ الْعِلْمِ، فَزَعَمُوا أَنَّ عَلَى ابْنِي جَلْدَ مِائَةٍ، وَتَغْرِيبَ عَامٍ، وَإِنَّمَا الرَّجْمُ عَلَى امْرَأَةِ هَذَا، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ، لَأَقْضِيَنَّ بَيْنَكُمَا بِكِتَابِ اللهِ، الْمِائَةُ شَاةٍ وَالْخَادِمُ رَدٌّ عَلَيْكَ، وَعَلَى ابْنِكَ جَلْدُ مِائَةٍ، وَتَغْرِيبُ عَامٍ، وَاغْدُ يَا أُنَيْسُ عَلَى امْرَأَةِ هَذَا، فَإِنِ اعْتَرَفَتْ، فَارْجُمْهَا". فَغَدَا عَلَيْهَا، فَاعْتَرَفَتْ، فَرَجَمَهَا.
حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ مُوسَى الْأَنْصَارِيُّ، حَدَّثَنَا مَعْنٌ، حَدَّثَنَا مَالِكٌ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ عُبَيْدِ اللهِ بْنِ عَبْدِ اللهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، وَزَيْدِ بْنِ خَالِدٍ الْجُهَنِيِّ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَهُ بِمَعْنَاهُ.
حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، بِإِسْنَادِهِ نَحْوَ حَدِيثِ مَالِكٍ بِمَعْنَاهُ، قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ أَبِي بَكْرَةَ، وَعُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَأَبِي سَعِيدٍ، وَابْنِ عَبَّاسٍ، وَجَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ، وَهَزَّالٍ، وَبُرَيْدَةَ، وَسَلَمَةَ بْنِ الْمُحَبِّقِ، وَأَبِي بَرْزَةَ، وَعِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ،
قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ، وَزَيْدِ بْنِ خَالِدٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَهَكَذَا رَوَى مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ، وَمَعْمَرٌ، وَغَيْرُ وَاحِدٍ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُبَيْدِ اللهِ بْنِ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُتْبَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، وَزَيْدِ بْنِ خَالِدٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَرَوَوْا بِهَذَا الْإِسْنَادِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهُ قَالَ: "إِذَا زَنَتِ الْأَمَةُ فَاجْلِدُوهَا، فَإِنْ زَنَتْ فِي الرَّابِعَةِ فَبِيعُوهَا وَلَوْ بِضَفِيرٍ"، وَرَوَى سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُبَيْدِ اللهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، وَزَيْدِ بْنِ خَالِدٍ، وَشِبْلٍ، قَالُوا: كُنَّا عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَكَذَا رَوَى ابْنُ عُيَيْنَةَ الْحَدِيثَيْنِ جَمِيعًا، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، وَزَيْدِ بْنِ خَالِدٍ، وَشِبْلٍ، وَحَدِيثُ ابْنِ عُيَيْنَةَ، وَهِمَ فِيهِ سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، أَدْخَلَ حَدِيثًا فِي حَدِيثٍ، وَالصَّحِيحُ مَا رَوَى مُحَمَّدُ بْنُ الْوَلِيدِ الزُّبَيْدِيُّ، وَيُونُسُ بْنُ عُبَيْدٍ، وَابْنُ أَخِي الزُّهْرِيِّ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُبَيْدِ اللهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، وَزَيْدِ بْنِ خَالِدٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِذَا زَنَتِ

الْأَمَةُ فَاجْلِدُوهَا". وَالزُّهْرِيُّ، عَنْ عُبَيْدِ اللهِ، عَنْ شِبْلِ بْنِ خَالِدٍ، عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَالِكٍ الْأَوْسِيِّ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِذَا زَنَتِ الْأَمَةُ". وَهَذَا الصَّحِيحُ عِنْدَ أَهْلِ الْحَدِيثِ. وَشِبْلُ بْنُ خَالِدٍ، لَمْ يُدْرِكِ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، إِنَّمَا رَوَى شِبْلٌ عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَالِكٍ الْأَوْسِيِّ. عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهَذَا الصَّحِيحُ، وَحَدِيثُ ابْنِ عُيَيْنَةَ غَيْرُ مَحْفُوظٍ. وَرُوِيَ عَنْهُ أَنَّهُ قَالَ: شِبْلُ بْنُ حَامِدٍ، وَهُوَ خَطَأٌ إِنَّمَا هُوَ: شِبْلُ بْنُ خَالِدٍ وَيُقَالُ أَيْضًا: شِبْلُ بْنُ خُلَيْدٍ. ([1])

**ترجمه**: دابوهريره او زيد بن خالد او شبل رضي الله عنهم بيان دي فرماني چي مونږ دنبي كريم صلي الله عليه وسلم سره موجود وو او په دي دوران كي رسول الله ته دوه كسان دجګړي كولو په حال كي راغلل په دوئ كي يو اووئيل اي دالله رسوله زه تاته په الله قسم دركوم چي زمونږ په مينځ كي دالله دكتاب موافق فيصله اوكړه ددي خبري په اوريدو مدعي عليه اووئيل خو هغه دده نه زيات پوهه وو هو اي دالله رسوله زمونږ په مينځ كي دالله دكتاب موافق فيصله اوكړه او ماته د دعوي دبيانولو اجازت راكړه هغه اووئيل زما خوي دده سره مزدور وو چنانچي هغه دده دښځي سره زنا اوكړه خلقو راته اووئيل چي زما په خوي رجم واجب شوي دي لهذا ما دهغه دطرفه ده ته سل چيلئ او يو خادم په هديه كي وركړو بيا ددينه پس دعلماؤ سره زما ملاقات اوشو نو هغوئ اووئيل زما په خوي سل كوړي دي او يو كال دوطن نه بهر تيرول دي او دده په ښځي رجم واجب دي ددي خبري په اوريدو نبي كريم صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل زما دي په هغه ذات قسم وي دچا په اختياركي چي زماروح دي زه به بالكل ستاسو په مينځ كي دالله دكتاب موافق فيصله كوم سل چيلئ او خادم به تاته واپس شي او خوي به دي سل كوړي اووهلي شي او ديو كال دپاره به دخپل ښار نه اوشړلي شي. او اي انيس ته دده دښځي خواله ورشه كه هغه دزنا اقرار اوكړي نو رجم يي كړئ چنانچي انيس ورغلو او هغي دجرم اقرار اوكړو لهذا صحابه كرامو هغه رجم كړه په همدي سند ابوهريره او زيد بن خالد جهني نه ددي هم معني روايت دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه مروي دي او په همدي سند دمالك دسابقه حديث پشان ددي هم معني روايت هم مروي دي.

---

[1] _ اخرجه البخاري في الصحيح_ الوكالة ١٣ (٢٣١٣) . والصلح ٥ (٢٦٥٥) . والشروط ٩ (٢٧٢٢) . والأيمان والنذور ٣ (٦٦٣٣) . والحدود ٢٠ (٦٨٢٧) . و ٣٤ (٦٨٣٥) . و٣٦ (٦٨٦٠) . والأحكام ٣٢ (٧١٩٣) . وخبر الآحاد ١ (٧٢٥٨) . صحيح مسلم_ الحدود ٥ (١٦٩٧) . سنن ابي داود_ الحدود ٢٥ (٤٤٤٥) . سنن النسائي_ آداب القضاة ٢٢ (٥٤١٢) . سنن ابن ماجه_ الحدود ٧ (٢٥٤٩) . (تحفة الأشراف : ٣٧٥٥، و ٤٨١٤، ١٢١٠٦) . الموطاء_ الحدود ١ (٦) . و احمد في المسند (٤/ ١١٥، ١١٦) . سنن الدارمي_ الحدود ١٢ (٢٣٦٣)

امام ترمذي وائي دابوهريره او زيد بن خالد او شبل حديث حسن صحيح دي، او دا رنګي مالك بن انس او معمرو او بعضي نورو راويانو په سند دزهري عن عبدالله بن عتبه عن ابي هريره وزيد بن خالد عن النبي صلي الله عليه وسلم سره نقل کړي دي او بعضي نورو راويانو هم په همدي سند دا حديث دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه نقل کړي دي په دي روايت کي دي کله چي وينځه زنا اوکړي نو دا به سل کوړي وهلي کيږي بيا که چري په څلورم ځل زنا اوکړي نو خرخول يي پکاردي اګر که دوړئ په يو رسئ ولي نه وي، او سفيان بن عيينه دزهري نه او هغه دعبيدالله نه او هغه دابوهريره او زيد بن خالد او شبل رضي الله عنهم نه روايت نقل کړي دي دوئ وائي چي مونږ دنبي كريم صلي الله عليه وسلم سره موجود وو، او ابن عيينه په دي طريقه دوه حديثونه دابوهريره او زيد بن خالد او شبل رضي الله عنهم په واسطه نقل کړي دي دابن عيينه په حديث کي سفيان بن عينه ته وهم شوي دي هغه يو حديث دبل سره ګډوډ کړي دي صحيح هغه حديث دي کوم چي محمد بن وليد زبيدي ديونس بن عبيدالله نه او دزهري وړاره دزهري نه او زهري دعبيدالله نه او عبيدالله دابوهريره او زيد بن خالد نه او دوئ دواړو دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه روايت نقل کړي دي فرمائيلي يي کله چي وينځه زنا اوکړي نو په کوړو يي اووهي، او زهري دعبيدالله نه او هغه دشبل نه همداسي روايت نقل کړي دي، دمحدثينو په نزد دشبل روايت په واسطه دعبدالله بن مالك صحيح دي ځکه چي شبل بن خالد دنبي كريم صلي الله عليه وسلم سره ملاقات نه دي کړي بلکه شبل، عبدالله بن مالك، اوسي، او رسول الله صلي الله عليه وسلم نه روايت نقل کوي همداصحيح دي او دابن عيينه حديث غير محفوظ دي ځکه چي هغه پخپل روايت کي شبل بن حامد ذکر کړي دي او دا غلط دي صحيح شبل بن خالد دي او هغه ته به شبل بن خليد هم وئيلي کيدل، او په دي باب کي دابوبکره، عباده بن الصامت، ابوهريره، ابوسعيد، ابن عباس، جابر بن سمره، هزال، بريده، سلمه بن محبق، ابوبرزه، او عمران بن حصين رضي الله عنهم نه هم روايات وارد دي

***************

١٤٣٤ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ، عَنْ مَنْصُورِ بْنِ زَاذَانَ، عَنِ الحَسَنِ، عَنْ حِطَّانَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "خُذُوا عَنِّي فَقَدْ جَعَلَ اللَّهُ لَهُنَّ سَبِيلًا، الثَّيِّبُ بِالثَّيِّبِ جَلْدُ مِائَةٍ، ثُمَّ الرَّجْمُ، وَالبِكْرُ بِالبِكْرِ جَلْدُ مِائَةٍ، وَنَفْيُ سَنَةٍ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَالعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ العِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْهُمْ، عَلِيُّ بْنُ أَبِي طَالِبٍ، وَأُبَيُّ بْنُ كَعْبٍ، وَعَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْعُودٍ، وَغَيْرُهُمْ قَالُوا: الثَّيِّبُ تُجْلَدُ وَتُرْجَمُ، وَإِلَى هَذَا ذَهَبَ بَعْضُ أَهْلِ العِلْمِ وَهُوَ قَوْلُ: إِسْحَاقَ، وقَالَ بَعْضُ أَهْلِ العِلْمِ

مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْهُمْ، أَبُو بَكْرٍ، وَعُمَرُ، وَغَيْرُهُمَا، الثَّيِّبُ إِنَّمَا عَلَيْهِ الرَّجْمُ، وَلَا يُجْلَدُ، وَقَدْ رُوِيَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِثْلُ هَذَا فِي غَيْرِ حَدِيثٍ فِي قِصَّةِ مَاعِزٍ وَغَيْرِهِ، أَنَّهُ أَمَرَ بِالرَّجْمِ، وَلَمْ يَأْمُرْ أَنْ يُجْلَدَ قَبْلَ أَنْ يُرْجَمَ، وَالعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ العِلْمِ، وَهُوَ قَوْلُ: سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ، وَابْنِ المُبَارَكِ، وَالشَّافِعِيِّ، وَأَحْمَدَ. (1)

**ترجمه** : دعباده بن الصامت رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي ددين احكام (او خاصكر دزنا احكام) زما نه زده كړئ او الله تعالي ددي دپاره لاره ويستلي ده كله چي واده شوي سړي په واده شوي ښځي بدنام شي نو دسلو كوړو اورجم سزا ده او لونډان چي يو بل باندي دزنا بدنام شي نو دسلو كوړو او ديوكال بهر تيرولو سزاده .

امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي دنبي كريم صلي الله عليه وسلم دبعضي صحابه كرامو په همدي باندي عمل دي چي په دوئ كي علي بن ابي طالب ، ابئ بن كعب، او عبدالله بن مسعود رضي الله عنهم وغيره هم شامل دي دوئ وائي چي شادي شده زاني به په كوړو وهلي كيږي او رجم كولي به شي دبعضي اهل علمو همدا مسلك دي داسحاق بن راهويه همدا قول دي، مګر بعضي صحابه كرام چي ابوبكر او عمر وغيره هم په دوئ كي شامل دي وائي كه شادي شده دزنا ارتكاب اوكړي نو رجم به واجب وي او په كوړو به نه وهلي كيږي او دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه دا رنګي په بل حديث كي دماعز وغيره په قصه كي مروي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم صرف درجم حكم كړي وو او درجم نه مخكي يي په كوړو وهلو حكم نه وو كړي دبعضي اهل علمو په همدي باندي عمل دي، دسفيان ثوري، ابن مبارك، شافعي او امام احمد همدا قول دي.

***************

## ٩ــ بَابُ تَرَبُّصِ الرَّجْمِ بِالْحُبْلَى حَتَّى تَضَعَ

### دولادت نه پس دحاملي درجم كولو بيان

١٤٣٥ــ حَدَّثَنَا الحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، حَدَّثَنَا مَعْمَرٌ، عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي كَثِيرٍ، عَنْ أَبِي قِلَابَةَ، عَنْ أَبِي المُهَلَّبِ عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ، أَنَّ امْرَأَةً مِنْ جُهَيْنَةَ اعْتَرَفَتْ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالزِّنَا، فَقَالَتْ: إِنِّي حُبْلَى فَدَعَا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلِيَّهَا، فَقَالَ: " أَحْسِنْ إِلَيْهَا،

---

1 ــ صحيح مسلم ــ الحدود ٣ (١٦٩٠) . سنن ابي داود ــ الحدود ٢٣ (٤٤١٥) . سنن ابن ماجه ــ الحدود ٧ (٢٥٥٠) . (تحفة الأشراف : ٥٠٨٣) . واحمد في المسند (٣ ــ ٤٧٥) . سنن الدارمي ــ الحدود ١٩ (٢٣٤٢)

فَإِذَا وَضَعَتْ حَمْلَهَا، فَأَخْبِرْنِي". فَفَعَلَ، فَأَمَرَ بِهَا فَشُدَّتْ عَلَيْهَا ثِيَابُهَا، ثُمَّ أَمَرَ بِرَجْمِهَا، فَرُجِمَتْ، ثُمَّ صَلَّى عَلَيْهَا، فَقَالَ لَهُ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، رَجَمْتَهَا ثُمَّ تُصَلِّي عَلَيْهَا، فَقَالَ: "لَقَدْ تَابَتْ تَوْبَةً لَوْ قُسِمَتْ بَيْنَ سَبْعِينَ مِنْ أَهْلِ الْمَدِينَةِ لَوَسِعَتْهُمْ، وَهَلْ وَجَدْتَ شَيْئًا أَفْضَلَ مِنْ أَنْ جَادَتْ بِنَفْسِهَا لِلَّهِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. ([1])

**ترجمه**: دعمران بن حصين رضي الله عنه بيان دي چي دجهينه قبيلي يوي ښځي دنبي كريم صلي الله عليه وسلم په وړاندي دزنا اقرار اوكړو او عرض يي اوكړو چي زه حامله يم نبي كريم صلي الله عليه وسلم ددي ولي راوغوښتلو او ويي فرمائيل ددي سره ښه سلوك كوئ او چي ولادت يي كله اوشي نو ماته خبر راكړئ چنانچي هغه همداسي اوكړل او بيا رسول الله حكم اوكړو نو په هغي پوري جامي اوتړلي شوي او بيا رسول الله ددي درجم كولو حكم اوكړو نو رجم كړي شوه او بيا وربانديرسول الله صلي الله عليه وسلم جنازه اوكړه ، عمر رضي الله عنه عرض اوكړو اي دالله رسوله تاسو دا رجم كړي ده او بياوربانديجنازه هم كوئ؟ رسول الله اوفرمائيل دي ښځي داسي توبه ويستلي ده كه چري دا دمديني په اويا كسانو تقسيم كړي شي نو ټولو ته به شامل شي او اي عمر ايا ددينه كوم ښه څيز ستا په نظر كي شته چي دي دالله تعالي دپاره دخپل ځان قرباني وركړه.
امام ترمذي وايي دا حديث حسن صحيح دي.

****************

## ١٠_ بَاب مَا جَاءَ فِي رَجْمِ أَهْلِ الْكِتَابِ

### داهل كتابو درجم كولو بيان

١٤٣٦_ حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ مُوسَى الْأَنْصَارِيُّ، حَدَّثَنَا مَعْنٌ، حَدَّثَنَا مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، "أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجَمَ يَهُودِيًّا وَيَهُودِيَّةً". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَفِي الْحَدِيثِ قِصَّةٌ، وَهَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. ([2])

---

[1] _ صحيح مسلم_ الحدود ٥ (١٦٩٦) . سنن ابي داود_ الحدود ٢٥ (٤٤٤٠) . سنن النسائي_ الجنائز ٦٤ (١٩٥٩) . سنن ابن ماجه_ الحدود ٩ (٢٥٥٥) . (تحفة الأشراف : ١٠٨٨١) . و احمد في المسند (٤_ ٤٢٠، ٤٣٥، ٤٣٧، ٤٤٠) . سنن الدارمي_ الحدود ١٨ (٢٣٧١)

[2] _ سنن ابن ماجه_ الحدود ١٠ (٢٥٥٦) . (تحفة الأشراف : ٨١٤٥)

دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما بيان دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم يو يهودي سړي او يوه يهوديه ښځه رجم کړه.
امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي او په دي حديث کي يوه قصه هم مذکور دي.

١٤٣٧_ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا شَرِيكٌ، عَنْ سِمَاكِ بْنِ حَرْبٍ، عَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ، " أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجَمَ يَهُودِيًّا وَيَهُودِيَّةً ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، وَالْبَرَاءِ، وَجَابِرٍ، وَابْنِ أَبِي أَوْفَى، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ الْحَارِثِ بْنِ جَزْءٍ، وَابْنِ عَبَّاسٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَكْثَرِ أَهْلِ الْعِلْمِ، قَالُوا: إِذَا اخْتَصَمَ أَهْلُ الْكِتَابِ، وَتَرَافَعُوا إِلَى حُكَّامِ الْمُسْلِمِينَ، حَكَمُوا بَيْنَهُمْ بِالْكِتَابِ وَالسُّنَّةِ وَبِأَحْكَامِ الْمُسْلِمِينَ، وَهُوَ قَوْلُ: أَحْمَدَ، وَإِسْحَاق، وقَالَ بَعْضُهُمْ: لَا يُقَامُ عَلَيْهِمُ الْحَدُّ فِي الزِّنَا، وَالْقَوْلُ الْأَوَّلُ أَصَحُّ. (١)

**ترجمه** : دجابر بن سمره رضي الله عنه نه روايت دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم يو يهودي سړي او يوه يهوديه ښځه رجم کړل.
امام ترمذي وايي دجابر بن سمره حديث حسن غريب دي، او په دي باب کي دابن عمر، براء، جابر ابن ابي اوفي، عبدالله بن حارث بن جزء، او ابن عباس رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي او داکثرو اهل علمو په همدي باندي عمل دي دوئ وائي کله چي اهل کتاب پخپل مينځ کي اوجنګيږي او مسلمان حاکم ته خپله مقدمه راوړي نو په هغه باندي لازم دي چي دالله دکتاب او دسنت او دمسلمانانو داحکامو موافق فيصله اوکړي، دامام احمد او اسحاق هم دا قول دي، بعضي علماء وائي په اهل کتابو به دزنا حد نشي قائمولي ليکن اولني قول زيات صحيح دي.

***************

## ١١_ باب مَا جَاءَ فِي النَّفْيِ

### زناکارلره ديوکال دپاره دخپل ښار نه دشړلوبيان

١٤٣٨_ حَدَّثَنَا أَبُو كُرَيْبٍ، وَيَحْيَى بْنُ أَكْثَمَ، قَالَا: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ إِدْرِيسَ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، " أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ضَرَبَ، وَغَرَّبَ "، وَأَنَّ أَبَا بَكْرٍ: ضَرَبَ وَغَرَّبَ، وَأَنَّ عُمَرَ: ضَرَبَ وَغَرَّبَ. قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، وَزَيْدِ بْنِ خَالِدٍ، وَعُبَادَةَ بْنِ

---
١_

الصَّامِتِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ عُمَرَ حَدِيثٌ غَرِيبٌ. رَوَاهُ غَيْرُ وَاحِدٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ إِدْرِيسَ، فَرَفَعُوهُ، وَرَوَى بَعْضُهُمْ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ إِدْرِيسَ، هَذَا الْحَدِيثَ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّ أَبَا بَكْرٍ: ضَرَبَ وَغَرَّبَ، وَأَنَّ عُمَرَ: ضَرَبَ وَغَرَّبَ. حَدَّثَنَا بِذَلِكَ أَبُو سَعِيدٍ الأَشَجُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ إِدْرِيسَ. وَهَكَذَا رُوِيَ هَذَا الْحَدِيثُ مِنْ غَيْرِ رِوَايَةِ ابْنِ إِدْرِيسَ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ نَحْوَ هَذَا، وَهَكَذَا رَوَاهُ مُحَمَّدُ بْنُ إِسْحَاقَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّ أَبَا بَكْرٍ: ضَرَبَ وَغَرَّبَ، وَأَنَّ عُمَرَ: ضَرَبَ وَغَرَّبَ، وَلَمْ يَذْكُرُوا فِيهِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. وَقَدْ صَحَّ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ النَّفْيُ، رَوَاهُ أَبُو هُرَيْرَةَ، وَزَيْدُ بْنُ خَالِدٍ، وعبادة بن الصامت، وغيرهم، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، مِنْهُمْ أَبُو بَكْرٍ، وَعُمَرُ، وَعَلِيٌّ، وَأُبَيُّ بْنُ كَعْبٍ، وَعَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْعُودٍ، وَأَبُو ذَرٍّ، وَغَيْرُهُمْ، وَكَذَلِكَ رُوِيَ عَنْ غَيْرِ وَاحِدٍ مِنْ فُقَهَاءِ التَّابِعِينَ، وَهُوَ قَوْلُ: سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ، وَمَالِكِ بْنِ أَنَسٍ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ الْمُبَارَكِ، وَالشَّافِعِيِّ، وَأَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ. (1)

**ترجمه** : دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت دي نبي كريم صلي الله عليه وسلم غير شادي شده زاني او زانيه په كوړو اووهل او دښار نه يي اوشړل او ابوبكر رضي الله عنه هم داسي مجرمان په كوړو وهلي دي او دښار نه يي شړلي دي او عمر رضي الله عنه هم ددوئ عمل اختيار كړي دي.

امام ترمذي وايي دابن عمر حديث غريب دي دا روايت بعضي راويانو دعبدالله بن ادريس نه نقل كړي دي او هغوئ مرفوع بيان كړي دي مګر بعضي راويانو دا په سند د عبدالله بن ادريس عن عبيدالله عن نافع عن ابن عمر سره موقوفا نقل كړي دي چي ابوبكر رضي الله عنه غير شادي شده زاني په كوړو وهلي دي او دښار نه يي شړلي دي او عمر رضي الله عنه هم غير شادي شده زاني په كوړو وهلي دي او دښار نه يي شړلي دي، په دي باب كي دابو هريره، زيد بن خالد، او عباده بن الصامت رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي مونږ ته داروايت ابوسعيد اشج بيان كړي دي دي وائي ماته عبدالله بن ادريس بيان كړي دي، او دا رنګي دا حديث دعبيدالله بن ادريس نه علاوه يو كس نيم دعبيدالله بن عمر نه نقل كړي دي، او دارنګي دا روايت محمد بن اسحاق دنافع نه او هغه دابن عمر نه موقوفا نقل كړي دي چي ابوبكر رضي الله عنه دكوړو حكم جاري كړي وو او دخپل وطن نه يي غير شادي شده زاني.

1 _ تفرد بذكره المؤلف (أخرجه النسائي في الكبرى). (تحفة الأشراف: ٧٩٢٣)

ويستلي وو او عمر رضي الله عنه هم دا عمل کړي وو ليکن دوی په دي روايت کي دا نه دي ذکر کړي چي دا حديث درسول الله صلي الله عليه وسلم نه مروي دي او حال دادي چي درسول الله نه دنبار نه دشرلو روايت صحيح دي دا ابوهريره، زيد بن خالد، او عباده بن الصامت رضي الله عنهم دنبي کريم صلي الله عليه وسلم نه نقل کړي دي درسول الله په صحابه کرامو کي دبعضو په همدي باندي عمل دي چي په دوی کي ابوبکر، عمر، علي، ابي بن کعب، عبدالله بن مسعود، ابوذر وغيره هم شامل دي دارنګي دا حديث ډېرو تابعينو فقهاؤ نه هم مروي دي، دسفيان ثوري، مالك بن انس، عبدالله بن مبارك، شافعي، احمد، او اسحاق بن راهويه رحمهم الله هم دا قول دي.

***************

## ۱۲_ بَاب مَا جَاءَ أَنَّ الْحُدُودَ كَفَّارَةٌ لِأَهْلِهَا

### دحدودو نافذول دسزاوار مجرما نو کفاره ده

۱٤۳۹_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ أَبِي إِدْرِيسَ الْخَوْلَانِيِّ، عَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ، قَالَ: كُنَّا عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي مَجْلِسٍ، فَقَالَ: "تُبَايِعُونِي عَلَى أَنْ لَا تُشْرِكُوا بِاللَّهِ شَيْئًا، وَلَا تَسْرِقُوا، وَلَا تَزْنُوا". قَرَأَ عَلَيْهِمُ الْآيَةَ، فَمَنْ وَفَى مِنْكُمْ فَأَجْرُهُ عَلَى اللَّهِ، وَمَنْ أَصَابَ مِنْ ذَلِكَ شَيْئًا فَعُوقِبَ عَلَيْهِ فَهُوَ كَفَّارَةٌ لَهُ، وَمَنْ أَصَابَ مِنْ ذَلِكَ شَيْئًا فَسَتَرَهُ اللَّهُ عَلَيْهِ فَهُوَ إِلَى اللَّهِ إِنْ شَاءَ عَذَّبَهُ وَإِنْ شَاءَ غَفَرَ لَهُ. قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ عَلِيٍّ، وَجَرِيرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، وَخُزَيْمَةَ بْنِ ثَابِتٍ قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: لَمْ أَسْمَعْ فِي هَذَا الْبَابِ أَنَّ الْحُدُودَ تَكُونُ كَفَّارَةً لِأَهْلِهَا شَيْئًا أَحْسَنَ مِنْ هَذَا الْحَدِيثِ. قَالَ الشَّافِعِيُّ: وَأُحِبُّ لِمَنْ أَصَابَ ذَنْبًا فَسَتَرَهُ اللَّهُ عَلَيْهِ، أَنْ يَسْتُرَ عَلَى نَفْسِهِ، وَيَتُوبَ فِيمَا بَيْنَهُ وَبَيْنَ رَبِّهِ. وَكَذَلِكَ رُوِيَ عَنْ أَبِي بَكْرٍ، وَعُمَرَ، أَنَّهُمَا أَمَرَا رَجُلًا أَنْ يَسْتُرَ عَلَى نَفْسِهِ. [1]

[1] _ اخرجه البخاري في الصحيح_ الإيمان ۱۱ (۱۸)، ومناقب الأنصار ۴۳ (۳۸۹۲)، وتفسير الممتحنة ۳ (۴۸۹۴)، والحدود ۸ (٦٧٨٤)، و۱۴ (٦٨٠١)، والديات ۲ (٦٨٧٣)، والأحكام ۴۹ (٧٢١٣)، والتوحيد ۳۱ (٧٤٦٨)، صحيح مسلم_ الحدود ۱۰ (۱٧٠٩)، سنن النسائي_ البيعة ۹ (۴۱٦٦)، و۱٧ (۴۱۸۳)، و۳۸ (۴۲۱۵)، والإيمان ۱۴ (۵۰۰۵)، (تحفة الأشراف: ۵۰۹۴)، واحمد في المسند (۵_ ۳۱۴، ۳۲۱، ۳۲۴)

**ترجمه**: دعباده بن الصامت رضي الله عنه بيان دي چي مونږ دنبي كريم صلي الله عليه وسلم سره په يو مجلس كي موجود وو چي ويي فرمائيل ماسره په دي خبره بيعت اوكړئ چي دالله سره به شريك نه مقرروئ، او غلا او زنا به نه كوئ او بيا رسول الله ددوئ په وړاندي ايت تلاوت كړو او ويي فرمائيل څوك چي دا اقرار پوره كړي دهغه دپاره اجر دالله په ذمه دي او څوك چي په دوئ كي دكومي ګناه ارتكاب اوكړي او بيا ورباندي حد قائم شي نو دا حد به دده دګناهونو دپاره كفاره شي او چاچي كومه ګناه اوكړه او الله ورباندي پرده واچوله نو دي دالله تعالي په اختيار كي پاتي شو كه خوښه يي وي عذاب به ورته وركړي او كه اوغواړي مغفرت به ورته اوكړي.

امام ترمذي وايي دعباده بن الصامت حديث حسن صحيح دي دامام شافعي قول دي ما په دي باب كي ددي حديث نه كوم بهتر څيز بل نه دي اوريدلي چي حدود داهل حدود دپاره كفاره ده، امام شافعي وائي زه غواړم چي كله څوك كومه ګناه اوكړي او الله تعالي ورباندي پرده واچوي نو دي دي په ځان باندي دالله اچولي پرده پريږدي او دخپلي ګناه نه دي توبه اوباسي چي دده او دده درب نه علاوه بل چاته په دي باره كي علم نشته، دابوبكررضي الله عنه نه هم ددي هم معني روايت مروي دي چي هغوئ يو كس ته حكم اوكړو چي په ځان باندي پرده پريږده، په دي باب كي دعلي بن ابي طالب، جرير بن عبدالله، او خزيمه بن ثابت رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي.

*****************

## ١٣ـ بَاب مَا جَاءَ فِي إِقَامَةِ الْحَدِّ عَلَى الإِمَاءِ

### دوينځو(اوغلامانو) دحد جاري كولو بيان

١٤٤٠ـ حَدَّثَنَا أَبُو سَعِيدٍ الأَشَجُّ، حَدَّثَنَا أَبُو خَالِدٍ الأَحْمَرُ، حَدَّثَنَا الأَعْمَشُ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا زَنَتْ أَمَةُ أَحَدِكُمْ فَلْيَجْلِدْهَا ثَلاَثًا بِكِتَابِ اللَّهِ، فَإِنْ عَادَتْ فَلْيَبِعْهَا وَلَوْ بِحَبْلٍ مِنْ شَعَرٍ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ عَلِيٍّ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَزَيْدِ بْنِ خَالِدٍ، وَشِبْلٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَالِكٍ الأَوْسِيِّ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رُوِيَ عَنْهُ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَغَيْرِهِمْ رَأَوْا أَنْ يُقِيمَ الرَّجُلُ الْحَدَّ عَلَى مَمْلُوكِهِ دُونَ السُّلْطَانِ، وَهُوَ قَوْلُ:

أَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ، قَالَ بَعْضُهُمْ: يُرْفَعُ إِلَى السُّلْطَانِ، وَلَا يُقِيمُ الحَدَّ هُوَ بِنَفْسِهِ، وَالقَوْلُ الأَوَّلُ أَصَحُّ. (1)

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي كله چي په تاسو كي دچا وينځه زنا اوكړي نو دالله دكتاب مطابق يې دري پيري په كوړو اووهئ اوكه بيا دوئ په څلورم ځل بيا زنا اوكړي نو خرڅه يې كړه اگر كه دوړئ په يو پړي ولي نه وي.

امام ترمذي وايي ابوهريره رضي الله عنه حديث حسن صحيح دي اودابوهريره نه دا حديث په يو څو سندونو مروي دي، او په دي باب كي دعلي بن ابي طالب ، ابوهريره، زيد بن خالد رضي الله عنهم او دشبل نه په واسطه دعبدالله بن مالك اوسي سره هم مروي دي. په صحابه كرامو كي دبعضي اهل علمو او ددوئ نه پس په نورو خلقو كي داهل علمو هم په دي باندي عمل دي دوئ وائي دسلطان په ځاي مالك پخپله پخپل مملوك حد نافذولي شي امام احمد او اسحاق هم په دي باندي قول كړي دي، بعضي اهل علم وائي حاكم ته به مقدمه پيش كولي شي او پخپله به هيڅوك حد نه جاري كوي ليكن اولني قول زيات صحيح دي.

**لغات**: فليجلدها: جلد جلدا دضرب نه معني په كوړو وهلو.

**تشريح**: : اذا زنت امة احدكم فليجلدها ، يعني كله چي وينځه زنا اوكړي او زنا يې ثابته شي نو حد به ورباندي جاري كولى شي.

### ايامولي پخپل غلام حد جاري كولى شي

په دي كي دوه مذهبونه دي اول مذهب دائمه ثلاثه يعني امام مالك امام شافعي امام احمد رحمهم الله وائي چي مولي پخپله پخپل غلام حد جاري كولى شي ليكن دويم مذهب داحنافو دى دوئ وائي چي مولي پخپله پخپل غلام حد نشي جاري كولى.

دائمه ثلاثه استدلال دپورتني حديث نه دى او هغه داسي دى چي كله زنا ثابته شي نو حد دي ورباندي جاري كړى شي ليكن داحنافو استدلال او دډيرو صحابه كرامو او تابعينو حصول دادي چي حد جاري كول صرف دسلطان حق دى اودسلطان نه علاوه بل چاته دا اجازت نشته، دائمه ثلاثه داستدلال جواب دادى چي دلته مولي ته وئيلى شي چي ته خپله مسئله قاضي او حاكم ته پيش كړه او دحد جاري كولو مطالبه ورنه اوكړه نو په دي بنا مولي سبب جوړيږي بنا په دي دحد نسبت مولي ته مجازا شوى دى.

---

[1] ـ تفرد بہ كره المؤلف (أخرجه النسائي في الكبرى) (تحفة الأشراف: ١٣٢٩٤)

ولايثرب عليها علماء دتثريب دوه معني كوي اول دا چي حد وربانديِ جاري کړی شوی وي نو مزيد رټل يې نه دي پکار ، زنا دمشروعيت نه مخکې به په رټلو باندي اکتفاء کولی شوه نو اوس دلته وائي چي په رټلو دي اکتفاء اونکړی شي بلکه حد به هم جاري کولی شي او که په دريم ځل زنا اوکړي نو خرڅه يې کړئ لکه چي ارشاد نبوي دی اذا ذنت الثالثة فاليبعها ولو بحبل من شعر ، يعني که په دريمه پيره بيا زنا اوکړي نو خرڅه يې کړئ اګر چي دويښتو او دوړئ په يو پړي ولي نه وي.
په دي باره کې دوه مذاهب دي اول داهل ظواهرو دی هغوئ وائي چي د دريم ځل زنا کولو نه پس ددي خرڅول واجب دي ليکن ائمه اربعه وائي چي دا حکم استحبابي دی.
په خرڅولو کې يو څو حکمتونه دي مثلا که بل ملك ته لاړه شي ممکن ده چي ددي بد عمل نه منع شي او که چرته دډيري پيري زنا کولو باوجود مولي داسي وينځه په ملکيت کې اوساتي نو شبهه پيدا کيږي چي ګويا کې مولي هم په زنا باندي راضي دی نو ددي تهمت دختمولو په وجه به يې خرڅوي.

***************

١٤٤١_ حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ الْخَلَّالُ، حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ الطَّيَالِسِيُّ، حَدَّثَنَا زَائِدَةُ بْنُ قُدَامَةَ، عَنِ السُّدِّيِّ، عَنْ سَعْدِ بْنِ عُبَيْدَةَ، عَنْ أَبِي عَبْدِ الرَّحْمَنِ السُّلَمِيِّ، قَالَ: خَطَبَ عَلِيٌّ، فَقَالَ " يَا أَيُّهَا النَّاسُ، أَقِيمُوا الْحُدُودَ عَلَى أَرِقَّائِكُمْ مَنْ أَحْصَنَ مِنْهُمْ، وَمَنْ لَمْ يُحْصِنْ، وَإِنَّ أَمَةً لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زَنَتْ، فَأَمَرَنِي أَنْ أَجْلِدَهَا، فَأَتَيْتُهَا فَإِذَا هِيَ حَدِيثَةُ عَهْدٍ بِنِفَاسٍ، فَخَشِيتُ إِنْ أَنَا جَلَدْتُهَا أَنْ أَقْتُلَهَا، أَوْ قَالَ: تَمُوتَ، فَأَتَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَكَرْتُ ذَلِكَ لَهُ، فَقَالَ: " أَحْسَنْتَ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالسُّدِّيُّ اسْمُهُ: إِسْمَاعِيل بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ وَهُوَ مِنَ التَّابِعِينَ، قَدْ سَمِعَ مِنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، وَرَأَى حُسَيْنَ بْنَ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ. ([1])

**ترجمه** : دعبدالرحمن سلمي بيان دي چي علي رضي الله عنه دخطبي په دوران کي اوفرمائيل اي خلقو پخپلو غلامانو او وينځو حد قائموئ دچاچي واده شوي وي په هغوئ هم او دچاچي نه وي شوي په هغوئ هم رسول الله صلي الله عليه وسلم په وينځو کي يوي وينځي زنا کړي وه او رسول الله ماته دهغي په کوړو وهلو حکم کړي دي زه چي ورغلم نو ماته معلومه شوه چي په

---

[1] _ صحيح مسلم_ الحدود ٧ (١٧٠٥) . (تحفة الأشراف : ١٠١٧٠)

نږدو ورځو کي د دې نفاس تير شوي وو لهذا ماسره ويره پيدا شوه چي که زه يي په کوړو اووهم چي چرته مړه نشي او که داسي يي اوونيل پخپله مړه نشي چنانچي زه د رسول الله په دربار کي حاضر شوم او خپل بيان مي ورته اوکړو راته يي اوفرمائيل ښه کار دي کړي دی
امام ترمذي وايي دا حديث حسن صحيح دی.

****************

## ١٤ـ بَاب مَا جَاءَ فِي حَدِّ السَّكْرَانِ

### دشرابي دحد بيان

١٤٤٢ـ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ وَكِيعٍ، حَدَّثَنَا أَبِي، عَنْ مِسْعَرٍ، عَنْ زَيْدٍ الْعَمِّيِّ، عَنْ أَبِي الصِّدِّيقِ النَّاجِيِّ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، "أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ضَرَبَ الْحَدَّ بِنَعْلَيْنِ أَرْبَعِينَ". قَالَ مِسْعَرٌ: أَظُنُّهُ فِي الْخَمْرِ. قَالَ: وَفِي الْبَاب، عَنْ عَلِيٍّ، وَعَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَزْهَرَ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَالسَّائِبِ، وَابْنِ عَبَّاسٍ، وَعُقْبَةَ بْنِ الْحَارِثِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي سَعِيدٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ، وَأَبُو الصِّدِّيقِ النَّاجِيُّ اسْمُهُ: بَكْرُ بْنُ عَمْرٍو، وَيُقَالُ: بَكْرُ بْنُ قَيْسٍ. (1)

**ترجمه** : دابوسعيد خدري رضي الله عنه نه مروي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم دحد جاري کولو په حال کي (په يو مجرم) دڅلوېښت کوړو سزا جاري کړي وه، مسعر راوي وائي زما خيال دي چي دشرابو په حد کي رسول الله څلوېښت کوړي سزا جاري کړي وه
امام ترمذي وايي ابوسعيد خدري رضي الله عنه حديث حسن دي او په دي باب کي دعلي بن ابي طالب، عبدالرحمن بن ازهر، ابوهريره، سائب، ابن عباس، او عقبه بن حارث رضي الله عنه نه هم احاديث مروي دي.

****************

١٤٤٣ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، قَال: سَمِعْتُ قَتَادَةَ يُحَدِّثُ، عَنْ أَنَسٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَنَّهُ أُتِيَ بِرَجُلٍ قَدْ شَرِبَ الْخَمْرَ، فَضَرَبَهُ بِجَرِيدَتَيْنِ نَحْوَ الْأَرْبَعِينَ". وَفَعَلَهُ أَبُو بَكْرٍ، فَلَمَّا كَانَ عُمَرُ، اسْتَشَارَ النَّاسَ، فَقَالَ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ عَوْفٍ: كَأَخَفِّ

---

1 ـ تفرد بذكره المؤلف (أخرجه النسائي في الكبرى) (تحفة الأشراف: ٣٩٧٥)

الْحُدُودِ ثَمَانِينَ. فَأَمَرَ بِهِ عُمَرُ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَنَسٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ. أَنَّ حَدَّ السَّكْرَانِ ثَمَانُونَ. [1]

**ترجمه** : دانس رضي الله عنه نه مروي دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم ته يو داسي كس راوستلي شو چاچي شراب څكلي وو نو رسول الله ورته دكجورو په دوه لختو تقريبا څلوېښت خله وهلو سزا وركړه ابوبكر رضي الله عنه هم دخپل خلافت په زمانه كي همداسي كړي دي او بيا چي عمر فاروق رضي الله عنه خليفه شو نو هغه په دي سلسله كي دخلقو سره مشوره اوكړه چنانچي عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه اووئيل په حدودو كي دټولو نه كم حد اتيا كوړي دي چنانچي عمررضي الله عنه په همدي باندي حكم اوكړو.

امام ترمذي وايي دانس حديث حسن صحيح دي، په صحابه كرامو كي داهل علمو او دبعضي نورو خلقو په دي باندي عمل دي چي دشرابي سزا اتيا كوړي دي.

***************

## ١٥_ باب مَا جَاءَ مَنْ شَرِبَ الْخَمْرَ فَاجْلِدُوهُ وَمَنْ عَادَ فِي الرَّابِعَةِ فَاقْتُلُوهُ

### شرابي ته دكوړو وركولو او په څلورم ځل دشراب څكلو په سزا كي دده دقتل كولو بيان

١٤٤٤_ حَدَّثَنَا أَبُو كُرَيْبٍ، حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرِ بْنُ عَيَّاشٍ، عَنْ عَاصِمِ بْنِ بَهْدَلَةَ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ مُعَاوِيَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ شَرِبَ الْخَمْرَ فَاجْلِدُوهُ، فَإِنْ عَادَ فِي الرَّابِعَةِ فَاقْتُلُوهُ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، وَالشَّرِيدِ، وَشُرَحْبِيلَ بْنِ أَوْسٍ، وَجَرِيرٍ، وَأَبِي الرَّمَدِ الْبَلَوِيِّ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ مُعَاوِيَةَ هَكَذَا رَوَى الثَّوْرِيُّ أَيْضًا، عَنْ عَاصِمٍ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ مُعَاوِيَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. وَرَوَى ابْنُ جُرَيْجٍ، وَمَعْمَرٌ، عَنْ سُهَيْلِ بْنِ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. قَالَ: سَمِعْت مُحَمَّدًا يَقُولُ: حَدِيثُ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ مُعَاوِيَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي هَذَا أَصَحُّ مِنْ حَدِيثِ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. وَإِنَّمَا كَانَ هَذَا فِي أَوَّلِ الْأَمْرِ ثُمَّ نُسِخَ بَعْدُ. هَكَذَا رَوَى مُحَمَّدُ بْنُ إِسْحَاقَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْكَدِرِ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ

[1] _ اخرجه البخاري في الصحيح_ الحدود ٢ (٦٧٧١). (بدون قصة الاستشارة). صحيح مسلم_ الحدود ٨ (١٧٠٦) سنن ابي داود_ الحدود ٣٦ (٤٤٧٩). سنن ابن ماجه_ الحدود ١٦ (٢٥٧٠). (تحفة الأشراف: ١٢٥٣). و احمد في المسند (٣_ ١١٥، ١٨٠، ٢٤٧، ٢٧٢، ٢٧٣). سنن الدارمي_ الحدود ٩ (٢٣٥٧)

وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِنَّ مَنْ شَرِبَ الْخَمْرَ فَاجْلِدُوهُ، فَإِنْ عَادَ فِي الرَّابِعَةِ فَاقْتُلُوهُ". قَالَ: ثُمَّ أُتِيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعْدَ ذَلِكَ بِرَجُلٍ قَدْ شَرِبَ الْخَمْرَ فِي الرَّابِعَةِ، فَضَرَبَهُ، وَلَمْ يَقْتُلْهُ، وَكَذَلِكَ رَوَى الزُّهْرِيُّ، عَنْ قَبِيصَةَ بْنِ ذُؤَيْبٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَ هَذَا، قَالَ: فَرُفِعَ الْقَتْلُ، وَكَانَتْ رُخْصَةً، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا الْحَدِيثِ عِنْدَ عَامَّةِ أَهْلِ الْعِلْمِ، لَا نَعْلَمُ بَيْنَهُمْ اخْتِلَافًا فِي ذَلِكَ فِي الْقَدِيمِ وَالْحَدِيثِ، وَمِمَّا يُقَوِّي هَذَا مَا رُوِيَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ أَوْجُهٍ كَثِيرَةٍ، أَنَّهُ قَالَ: "لَا يَحِلُّ دَمُ امْرِئٍ مُسْلِمٍ يَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ، وَأَنِّي رَسُولُ اللهِ، إِلَّا بِإِحْدَى ثَلَاثٍ، النَّفْسُ بِالنَّفْسِ، وَالثَّيِّبُ الزَّانِي، وَالتَّارِكُ لِدِينِهِ".[1]

**ترجمه** : دمعاويه رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي څوك چي شراب اوڅکي اتيا کوړي يي اووهئ او که بيا يي په څلورم ځل اوڅکي نو قتل يي کړئ.

امام ترمذي وايي سفيان ثوري دمعاويه رضي الله عنه دا حديث په سند د عاصم عن ابي صالح عن معاويه عن النبي صلي الله عليه وسلم سره نقل کړي دي او ابن جريج او معمرو په سند دسهيل بن ابي صالح عن ابيه عن ابي هريرة عن النبي صلي الله عليه وسلم سره نقل کړي دي، ما دامام بخاري نه اوريدلي دي چي دابوصالح حديث کوم چي په واسطه دمعاويه دنبي کريم صلي الله عليه وسلم نه په دي سلسله کي وارد دي دا دابوصالح دهغه حديث نه زيات صحيح دي کوم چي په واسطه دابوهريره درسول الله نه مروي دي ، او په دي باب کي دابوهريره، شريد ، شرحبيل بن اوس ، جرير، ابورمد بلوي او عبدالله بن عمرو رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي دا حکم داسلام په ابتداء کي وو او بيا وروسته منسوخ شو، دارنګي محمد بن اسحاق د محمد بن المنکدر عن جابر بن عبدالله په سند روايت نقل کړي دي چي نبي کريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي څوك چي شراب اوڅکي اتيا کوړي يي اووهئ او که په څلورم ځل يي بيا اوڅکي نو قتل يي کړئ او بيا ددينه پس رسول الله ته يو داسي کس راوستلي شو چاچي په څلورم ځل شراب څکلي وو رسول الله وربانددي اتياکوړي سزا جاري کړه مګر قتل يي نکړو، دارنګي زهري د قبيصه بن ذويب نه او هغه درسول الله نه هم ددي هم معني روايت نقل کړي دي، چنانچي دقتل حکم منسوخ شو اول ددي رخصت وو دعامو محدثينو په دي باندي عمل دي زما په خيال په دي مسئله کي دهغوئ په مينځ کي نه مخکي

---

[1] - سنن ابي داود_ الحدود ٣٧ (٤٤٨٢) . سنن ابن ماجه_ الحدود ١٧ (٢٥٧٣) . (تحفة الأشراف : ١١٤١٣) . و احمد في المسند (٤/٩٦)

اختلاف وو او نه اوس په دي كي دچا اختلاف شته او ددي تائيد په هغه روايت هم كيږي كوم چي دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه په بي شميره سندونو مروي دي چي فرمائيلي يې دي هر يو مسلمان چي ددي خبري گواهي وركوي چي دالله تعالي نه علاوه بل هيڅوك لائق دبندگۍ نشته اوزه دالله رسول يم نو دده وينه په دري كارونو كي ديو په وجه حلاليدي شي اول په ناحقه چالره قتل كول، دويم شادي شده زاني او يا داسلام دين پريخودونكي مرتد.

***************

## ١٦ـ بَابُ مَا جَاءَ فِي كَمْ تُقْطَعُ يَدُ السَّارِقِ

### دڅومره مال په غلا كولو به دغل لاس كټ كولي شي

**١٤٤٥ـ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، أَخْبَرَتْهُ عَمْرَةُ، عَنْ عَائِشَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ: "يَقْطَعُ فِي رُبُعِ دِينَارٍ فَصَاعِدًا". قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عَائِشَةَ، حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رُوِيَ هَذَا الحَدِيثُ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ، عَنْ عَمْرَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، مَرْفُوعًا.**[1]

**ترجمه**: دام المؤمنين عائشه رضي الله عنها نه مروي دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم به د دينار دڅلورمي حصي او ددينه دزيات څيز په پټولو دغل لاس كټ كولو.

امام ترمذي وايي دعائشه رضي الله عنها حديث حسن صحيح دي او دا حديث په نورو سندونو هم دعمره په واسطه دعائشه رضي الله عنها نه مرفوعا مروي دي مگر بعضي راويانو دا حديث دعمري په واسطه دعائشي نه موقوفا نقل كړي دي.

**تشريح**: د سرقه لغوى معنى ده دبل چا نه په پټه اوغلا باندې يوڅيزاخستل اوپه دې معنى كي دالله تعالى دا قول هم استعمال شوې دې چه: د الا من استرق السمع ، (يعنى د زمكې نه شيطانان دا طاقت نه لرى چي آسمان ته اوخيژى اود فرشتو خبرو ته غوږ كيږى اوهغه بيا خپلو كاهنانوته بيان كړى خكه چي دوى ددې نه منع شوى دى البته چي څوك په پټه خبرې اوريدو ته غوږ كيږدى نوپه هغه پسې يوه ښكاره سكروټكه شى دلته هم استرق په پټه خبرې اوريدوپاره استعمال شوې دې)

صاحب د هدايه فرمائى كله چي غلا كړى (١)عاقل (٢)بالغ سړى (٣)لس روپۍ يا هغه څيزچي دهغه قيمت د سيكي لسو روپو ته رسى (۴)دمحفوظ ځائې نه (۵) چي په هغې كي

---

[1] ـ اخرجه البخاري في الصحيح ـ الحدود ١٣ (٦٧٨٩) . صحيح مسلم ـ الحدود ١ (١٦٨٤) . سنن ابي داود ـ الحدود ١١ (٤٣٨٣) . سنن النسائي ـ قطع السارق ٩ (٤٩٢٢) . سنن ابن ماجه ـ الحدود ٢٢ (٢٥٨٥) . (تحفة الأشراف : ١٦٧٢٠) . والمؤطام الحدود ٧ (٢٤) . واحمد في المسند (٦ـ ٣٦، ٨٠، ٨١، ١٠٤، ١٦٣، ٢٤٩، ٢٥٢) . سنن الدارمي ـ الحدو ٤ (٢٣٤٦)

شبه نه وی واجب شوه په ده (سارق) باندې کټ کول (د لاس) اودليل په دې (قطع د يد کښې) دالله قول دې { وَالسَّارِقُ وَالسَّارِقَةُ فَاقْطَعُوا أَيْدِيَهُمَا } الآية يعنى غل سړې اوغله ښځه کټ کړئ لاسونه ددې دواړو.

په لسو روپو پورې (دغلا شوی مال) اندازه کول زمونږ(داحنافو) مذهب دې.

اوامام شافعي په نزد اندازه کولې به شي په څلورمه حصه د دينار پورې.

اوامام مالك په نزد (اندازه کولې به شي ) درې روپو پورې ددې دواړو،امام مالك او شافعي د خپلې دعوې دثابتولو دپاره د متصل راتلونکې حديث نه استدلال کړی دی اوددلائلو تفصيلات شارحينو د هدايه کړي دي.

***************

١٤٤٦ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: "قَطَعَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي مِجَنٍّ قِيمَتُهُ ثَلَاثَةُ دَرَاهِمَ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ سَعْدٍ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، وَابْنِ عَبَّاسٍ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَأَيْمَنَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ عُمَرَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْهُمْ، أَبُو بَكْرٍ الصِّدِّيقُ: قَطَعَ فِي خَمْسَةِ دَرَاهِمَ، وَرُوِيَ عَنْ عُثْمَانَ، وَعَلِيٍّ، أَنَّهُمَا: قَطَعَا فِي رُبْعِ دِينَارٍ، وَرُوِيَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، وَأَبِي سَعِيدٍ، أَنَّهُمَا قَالَا: تُقْطَعُ الْيَدُ فِي خَمْسَةِ دَرَاهِمَ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ بَعْضِ فُقَهَاءِ التَّابِعِينَ، وَهُوَ قَوْلُ مَالِكِ بْنِ أَنَسٍ، وَالشَّافِعِيِّ، وَأَحْمَدَ، وَإِسْحَاق، رَأَوْا الْقَطْعَ فِي رُبْعِ دِينَارٍ فَصَاعِدًا، وَقَدْ رُوِيَ عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ، أَنَّهُ قَالَ: لَا قَطْعَ إِلَّا فِي دِينَارٍ، أَوْ عَشَرَةِ دَرَاهِمَ، وَهُوَ حَدِيثٌ مُرْسَلٌ، رَوَاهُ الْقَاسِمُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ، وَالْقَاسِمُ لَمْ يَسْمَعْ مِنَ ابْنِ مَسْعُودٍ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ الْعِلْمِ، وَهُوَ قَوْلُ سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ، وَأَهْلِ الْكُوفَةِ، قَالُوا: لَا قَطْعَ فِي أَقَلَّ مِنْ عَشَرَةِ دَرَاهِمَ، وَرُوِيَ عَنْ عَلِيٍّ، أَنَّهُ قَالَ: لَا قَطْعَ فِي أَقَلَّ مِنْ عَشَرَةِ دَرَاهِمَ، وَلَيْسَ إِسْنَادُهُ بِمُتَّصِلٍ. ([1])

**ترجمه** : دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما بيان دې چې رسول الله صلي الله عليه وسلم ديو ډال په پتهولو دغل لاس کټ کړو چې قيمت يې درې درهمه وو.

[1] ـ اخرجه البخاري في الصحيح_ الحدود ١٣ (٦٧٩٥) . صحيح مسلم_ الحدود ١ (١٦٨٦) . سنن ابي داود_ الحدود ١١ (٤٣٨٥) . سنن النسائي_ قطع السارق ٨ (٤٩١٢) . سنن ابن ماجه_ الحدود ٢٢ (٢٥٨٤) . التحفة: ٨٢٤٨) . موطا امام مالک_ الحدود ٧ (٢١) . واحمد في المسند (٢_ ٦، ٥٤، ٦٣، ٨٠، ١٤٣) . سنن الدارمي_ الحدود ٤ (٢٣٤٧)

امام ترمذي وايي دابن عمر حديث حسن صحيح دي او په دي باب كي دسعد، عبدالله بن عمرو، ابن عباس، ابوهريره او ام ايمن رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي او په صحابه كرامو كي دبعضي اهل علمو په دي باندي عمل هم دي چي يو په دوئ كي ابوبكر رضي الله عنه هم شامل دي، هغوئ دپنځه درهمه څيز په پټولو دغل لاس كټ كړي وو، دعثمان رضي الله عنه نه مروي دي چي هغوئ ددينار دڅلورمي حصي څيز په پټولو دغل كټ لاس كړي وو، ابوهريره او ابوسعيد خدري رضي الله عنهما وائي چي دپنځه درهمه څيز په پټولو به دغل لاس كټ كولي شي دبعضي تابعينو فقهاؤ په دي باندي عمل دي امام مالك بن انس، شافعي، احمد، او اسحاق هم په دي باندي قول كړي دي ليكن بعضي علماء وائي د دينار دڅلورمي حصي په مقدار څيز په پټولو به دغل لاس كټ كولي شي او ابن مسعود رضي الله عنه وائي چي ديو دينار برابر څيز يا دلسو دراهمو برابر څيز په پټولو به دغل لاس كټ كيږي ليكن داروايت مرسل دي او دا قاسم بن عبدالرحمن دابن مسعود رضي الله عنه نه نقل كړي دي او حال دادي چي دابن مسعود نه دقاسم سماع ثابت نه ده دبعضي اهل علمو په دي باندي عمل دي چنانچي دسفيان ثوري او اهل كوفه هم دا قول دي دوئ وائي دلس درهمو نه دكم څيز په پټولو به دغل لاس نشي كټ كولي، دعلي رضي الله عنه قول دي چي دلس درهمو نه دكم څيز په پټولو به دغل لاس نه كټ كيږي ليكن ددي روايت سند متصل نه دي.

******************

## ١٧_ بَاب مَا جَاءَ فِي تَعْلِيقِ يَدِ السَّارِقِ

### دغل په غاړه كي دكټ شوي لاس زوړندولو بيان

١٤٤٧_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ عَلِيٍّ الْمُقَدَّمِيُّ، حَدَّثَنَا الْحَجَّاجُ، عَنْ مَكْحُولٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ مُحَيْرِيزٍ، قَالَ: سَأَلْتُ فَضَالَةَ بْنَ عُبَيْدٍ، عَنْ تَعْلِيقِ الْيَدِ فِي عُنُقِ السَّارِقِ، أَمِنَ السُّنَّةِ هُوَ؟ قَالَ: "أُتِيَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِسَارِقٍ، فَقُطِعَتْ يَدُهُ، ثُمَّ أَمَرَ بِهَا فَعُلِّقَتْ فِي عُنُقِهِ".
قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ عُمَرَ بْنِ عَلِيٍّ الْمُقَدَّمِيِّ، عَنِ الْحَجَّاجِ بْنِ أَرْطَاةَ، وَعَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مُحَيْرِيزٍ: هُوَ أَخُو عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مُحَيْرِيزٍ شَامِيٌّ.[1]

**ترجمه**: دعبدالرحمن بن محيريز بيان دي چي دفضاله بن عبيد رضي الله عنه نه مي تپوس اوكړو ايا دغل لاس دكټ كولو نه پس دهغه په غاړه كي زوړندول سنت دي نو هغوي اووئيل هو،

---

[1] _ سنن ابي داود_ الحدود ٢١ (٤٤١١). سنن النسائي_ قطع السارق ١٩ (٤٩٨٥). سنن ابن ماجه_ الحدود ٢٣ (٢٥٨٧). (تحفة الأشراف: ١١٠٢٩)، واحمد في المسند (٦_١٩)

رسول الله صلي الله عليه وسلم ته يو غل راوستلي شو او لاس يي كټ كړي شو او بيا يي حكم اوكړو چي دده لاس دده په غاړه كي زوړند كړئ.
امام ترمذي وايي دا حديث حسن غريب دي او دا مونږ ته دمحمد بن علي مقدمي په سند رارسيدلئ دي او هغه دا دحجاج بن ارطاة نه نقل كړي دي.

**دابومحمد فضاله بن عبيد انصاري رضي الله عنه حالات**

نوم فضاله كنيه ابو محمد دپلار نوم عبيد بن نافذ او دمور نوم عقبه بنت محمد بن عقبه وو مديني ته دراتلونكو سره مسلمان شوى وو چي دغزوه بدر نه علاوه په تمامو غزواتو كې شريك شوى دى او په بيعة الرضوان كې هم شامل وو (اصابه).

دوفات نبوي نه پس شام ته لاړو او هلته يي كور جوړ كړو احمد في المسند.

ابوالدرداء رضي الله عنه د دمشق قاضي وودوفات كيدو نه مخكې يي اوفرمائيل چي زمانه پس به فضاله بن عبيد قاضي مقرروئ خلق به ورته دډير لري لري نه درسول الله داحاديثو داوريدلو دپاره راتلل يو سړى ورته ددي دپاره راغلى وو چي احاديث ورنه واوري هغه چي اوكتل چي ويخته يي ګډ وډ او په خپو بربنډ دى نو په تعجب سره يي تپوس اوكړو چي ته ددي ښار قاضي يي او حالت دي دادى فضاله رضي الله عنه اوفرمائيل چي رسول الله صلي الله عليه وسلم مونږ داسانئ او ډول او سنګار خوښولو نه منع كړي يو او كله كله به يي راته په بربنډو خپو دګرځيدو حكم كولو (مسند احمد).

وفات: دهجرت په ۵۳كال دامير معاويه په دور كې وفات شو او په دمشق ښار كې يي تراوسه پوري قبر موجود دى چي پنځوس روايات ورنه منقول دي چي دوه ددينه په مسلم كې دي.

***************

## ١٨_ باب مَا جَاءَ فِي الْخَائِنِ وَالْمُخْتَلِسِ وَالْمُنْتَهِبِ

**دخائن او تختونكي غل دسزا بيان**

١٤٤٨_ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ خَشْرَمٍ، حَدَّثَنَا عِيسَى بْنُ يُونُسَ، عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "لَيْسَ عَلَى خَائِنٍ، وَلَا مُنْتَهِبٍ، وَلَا مُخْتَلِسٍ، قَطْعٌ".
قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ العِلْمِ، وَقَدْ رَوَاهُ مُغِيرَةُ بْنُ

مُسْلِمٍ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، نَحْوَ حَدِيثِ ابْنِ جُرَيْجٍ، وَمُغِيرَةُ بْنُ مُسْلِمٍ هُوَ: بَصْرِيٌّ أَخُو عَبْدِ الْعَزِيزِ الْقَسْمَلِيِّ، كَذَا قَالَ عَلِيُّ بْنُ الْمَدِينِيِّ. (1)

**ترجمه** دجابر رضي الله عنه نه مروي دي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دخيانت كونكي ډاكو او تختونكي سزا لاس پريكول نه دي.

امام ترمذي وايي دا حديث حسن صحيح دي او داهل علمو په دي باندي عمل دي او بعضي راويانو دا حديث دمغيره بن مسلم نه او هغه دابوالزبير نه او هغه دجابر نه او هغه دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه دابن جريج دحديث پشان نقل كړي دي او مغيره بن مسلم بصري دي او دعبدالعزيز القسملي ورور دي او علي بن مديني هم داسي وئيلي دي.

****************

## ١٩ـ بَابُ مَا جَاءَ لَا قَطْعَ فِي ثَمَرٍ وَلَا كَثَرٍ

## دكجورو دغونچك په پټولوكي دلاس نه كټ كولو بيان

١٤٤٩ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ يَحْيَى بْنِ حَبَّانَ، عَنْ عَمِّهِ وَاسِعِ بْنِ حَبَّانَ، أَنَّ رَافِعَ بْنَ خَدِيجٍ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: "لَا قَطْعَ فِي ثَمَرٍ، وَلَا كَثَرٍ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَكَذَا رَوَى بَعْضُهُمْ، عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ يَحْيَى بْنِ حَبَّانَ، عَنْ عَمِّهِ وَاسِعِ بْنِ حَبَّانَ، عَنْ رَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، نَحْوَ رِوَايَةِ اللَّيْثِ بْنِ سَعْدٍ، وَرَوَى مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ، وَغَيْرُ وَاحِدٍ، هَذَا الْحَدِيثَ عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ يَحْيَى بْنِ حَبَّانَ، عَنْ رَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَلَمْ يَذْكُرُوا فِيهِ عَنْ وَاسِعِ بْنِ حَبَّانَ. (2)

**ترجمه** درافع بن خديج رضي الله عنه نه مروي دي فرمائي چي درسول الله صلي الله عليه وسلم نه مي اوريدلي دي چي دكجورو دغونچك په پټولو كي دلاس كټ كول نشته.

---

[1] ـ سنن ابي داود ـ الحدود ١٣ (٤٣٩١). سنن النسائي ـ قطع السارق ١٣ (٤٩٨٣). سنن ابن ماجه ـ الحدود ٢٦ (٢٥٩١). (تحفة الأشراف: ٢٨٠٠). و احمد في المسند (٣ـ ٣٨٠). سنن الدارمي ـ الحدود ٨ (٢٣٥٦)

[2] ـ سنن ابي داود ـ الحدود ١٣ (٤٣٨٨). سنن النسائي ـ قطع السارق ١٣ (٤٩٩٣). سنن ابن ماجه ـ الحدود ٢٧ (٢٥٩٣). (تحفة الأشراف: ٣٥٨٨). والموطاء الحدود ١١ (٣٢). و احمد في المسند (٣ـ ٤٦٣، ٤٦٤) و (٥ـ ١٤٠، ١٤٢). سنن الدارمي ـ الحدود ٧ (٢٣٥٠)

امام ترمذي وايي دارنګې بعضي راويانو هم دا حديث دسعد دروايت پشان په سند ديحیٰ بن سعيد عن محمد بن يحیٰ بن حبان عن عمه واسع بن حبان عن رافع بن خديج عن النبي صلي الله عليه وسلم سره نقل کړي دي، او مالك بن انس او بعضي نورو راويانو دا حديث په سند د يحیٰ بن سعيد عن محمد بن يحیٰ بن حبان عن رافع بن خديج عن النبي صلي الله عليه وسلم سره نقل کړي دي او دوئ ددي حديث په سند کي دواسع بن حبان واسطه نه ده ذکر کړي.

***************

## ٢٠_ باب مَا جَاءَ أَنْ لاَ تُقْطَعَ الأَيْدِي فِي الْغَزْوِ

## دجنګ په دوران کي دغل دلاس نه کټ کولو بيان

١٤٥٠_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا ابْنُ لَهِيعَةَ، عَنْ عَيَّاشِ بْنِ عَبَّاسٍ، عَنْ شُيَيْمِ بْنِ بَيْتَانَ، عَنْ جُنَادَةَ بْنِ أَبِي أُمَيَّةَ، عَنْ بُسْرِ بْنِ أَرْطَاةَ، قَالَ: سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: "لاَ تُقْطَعُ الأَيْدِي فِي الْغَزْوِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ، وَقَدْ رَوَى غَيْرُ ابْنِ لَهِيعَةَ بِهَذَا الإِسْنَادِ نَحْوَ هَذَا، وَيُقَالُ بُسْرُ بْنُ أَبِي أَرْطَاةَ أَيْضًا، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ الْعِلْمِ، مِنْهُمُ الأَوْزَاعِيُّ، لاَ يَرَوْنَ أَنْ يُقَامَ الْحَدُّ فِي الْغَزْوِ بِحَضْرَةِ الْعَدُوِّ، مَخَافَةَ أَنْ يَلْحَقَ مَنْ يُقَامُ عَلَيْهِ الْحَدُّ بِالْعَدُوِّ، فَإِذَا خَرَجَ الإِمَامُ مِنْ أَرْضِ الْحَرْبِ، وَرَجَعَ إِلَى دَارِ الإِسْلاَمِ، أَقَامَ الْحَدَّ عَلَى مَنْ أَصَابَهُ، كَذَلِكَ قَالَ الأَوْزَاعِيُّ.
([1])

**ترجمه** : دبسر بن ارطاة رضي الله عنه بيان دي چي ما درسول الله صلي الله عليه وسلم نه اوريدلي دي دجنګ په دوران کي به دغل لاس نشي کټ کولي.

امام ترمذي وايي دا حديث غريب دي ابن لهيعه نه علاوه بعضي نورو راويانو په همدي سند ددي هم معني روايت نقل کړي دي او دبعضي اهل علمو په همدي باندي عمل دي او يو په دوئ کي اوزاعي هم شامل دي دوئ وائي ددشمن په موجودګئ کي دجهاد په دوران کي دغلا کولو په صورت کي حد نشي قائميدي څکه چي دي وخت کي دا خطره ده چي په چا باندي حد قائم شي هغه چرته ددشمن سره يوځاي نشي البته که امام د دارحرب نه لاړ شي او دارالاسلام ته واپس راشي نو بيا دي په غل باندي حد قائم کړي.

***************

---

[1] _ سنن ابي داود_ الحدود ١٨ (٤٤٠٨) . سنن النسائي_ قطع السارق ١٧ (٤٩٨٢) . (تحفة الأشراف : ٢٠١٥) . و احمد في المسند (٤_١٨١)

## ٢١_ باب مَا جَاءَ فِي الرَّجُلِ يَقَعُ عَلَى جَارِيَةِ امْرَأَتِهِ

### دښځې دوينځې سره د زنا کولو دحکم بيان

١٤٥١_ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ، حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي عَرُوبَةَ، وَأَيُّوبَ بْنِ مِسْكِينٍ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ حَبِيبِ بْنِ سَالِمٍ، قَالَ: رُفِعَ إِلَى النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيرٍ، رَجُلٌ وَقَعَ عَلَى جَارِيَةِ امْرَأَتِهِ، فَقَالَ: لَأَقْضِيَنَّ فِيهَا بِقَضَاءِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَئِنْ كَانَتْ أَحَلَّتْهَا لَهُ لَأَجْلِدَنَّهُ مِائَةً، وَإِنْ لَمْ تَكُنْ أَحَلَّتْهَا لَهُ رَجَمْتُهُ".[1]

**ترجمه** : دحبيب بن سالم بيان دي نعمان بن بشير رضي الله عنه ته ديو داسي کس مقدمه پيش کړي شوه چاچي دخپلي ښځي دوينځي سره زنا کړي وه نعمان بن بشير اووئيل زه به ددي مقدمي فيصله درسول الله صلي الله عليه وسلم دفيصلي مطابق کوم که چري دده ښځي ده ته دي وينځي سره دمجامعت اجازت کړي دي نو دتاديب په طور به دي سل کوړي وهم او که اجازت يي نه وي کړي نو په طور دحد به يي رجم کوم.

### د نعمان بن بشير رضي الله عنه حالات

نوم نعمان کنيه ابو عبدالله او دپلار نوم يي بشير وو نعمان بلند پايه صحابي وو دده مور دعبدالله بن رواحه خور وه دهجرت نه پس په انصارو کي دټولو نه مخکي دده پيدائش شوی وو او بيا شپږمياشتي پس عبدالله بن زبير پيدا شو چي لږ هوښيار شو نو دمنبر نبوي سره به نزديي کيناستو او وعظ نصيحت به يي اوريدلو(مسند احمد)

دهجرت په ۵۹ کال کي امير معايه دکوفي حاکم مقرر کړو او بيا دحمص امير مقرر شو دده په باره کي صاحب دفحري ليکلي دي کان حليما ناسکا يحب العافية، يعني دی ډير صبرناک عابد او عافيت پسند انسان وو.

وفات: دهجرت په ۶۵ کال دحمص علاقه بيران نومي کلي کي وفات شو او پدغه وخت کي دابن زبير او مروان جنګ جاري وو په کوم کي چي ده دزبير ملګرتياکړي وه نو په دي وجه دمروان کسانو دی قتل کړو او دده سر يي کټ کړو دده ښځي دده سر پخپله غيږ کي کيخودو او پدغه وخت کي دده عمر ۶۴ کلونه وو (استيعاب).

دده دمروياتو شمير ۱۲۴ دی چي پنځه متفق عليه دي يو په بخاري کي او څلور په مسلم کي.

****************

[1] _ سنن ابي داود_ الحدود ٢٨ (٤٤٥٨). سنن النسائي_ النكاح ٧٠ (٣٣٦٢). سنن ابن ماجه_ الحدود (٢٥٥١). (تحفة الأشراف: ١١٦١٣). واحمد في المسند (٦_ ٢٧٣، ٢٧٦، ٢٧٦، ٢٧٧). سنن الدارمي_ الحدود ٢٠ (٢٣٧٤)

١٤٥٢ـ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ، حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ، عَنْ أَبِي بِشْرٍ، عَنْ حَبِيبِ بْنِ سَالِمٍ، عَنِ النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيرٍ نَحْوَهُ. قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ سَلَمَةَ بْنِ الْمُحَبِّقِ. قَالَ: أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ النُّعْمَانِ فِي إِسْنَادِهِ اضْطِرَابٌ. قَالَ: سَمِعْت مُحَمَّدًا، يَقُولُ: لَمْ يَسْمَعْ قَتَادَةُ مِنْ حَبِيبِ بْنِ سَالِمٍ هَذَا الْحَدِيثَ. إِنَّمَا رَوَاهُ عَنْ خَالِدِ بْنِ عُرْفُطَةَ. وَيُرْوَى عَنْ قَتَادَةَ. أَنَّهُ قَالَ: كُتِبَ بِهِ إِلَى حَبِيبِ بْنِ سَالِمٍ. وَأَبُو بِشْرٍ لَمْ يَسْمَعْ مِنْ حَبِيبِ بْنِ سَالِمٍ هَذَا أَيْضًا. إنما قَالَ أَبُو عِيسَى: وَقَدِ اخْتَلَفَ أَهْلُ الْعِلْمِ. فِي الرَّجُلِ يَقَعُ عَلَى جَارِيَةِ امْرَأَتِهِ. فَرُوِيَ عَنْ غَيْرِ وَاحِدٍ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. مِنْهُمْ عَلِيٌّ. وَابْنُ عُمَرَ. أَنَّ عَلَيْهِ الرَّجْمَ. وقَالَ ابْنُ مَسْعُودٍ: لَيْسَ عَلَيْهِ حَدٌّ. وَلَكِنْ يُعَزَّرُ. وَذَهَبَ أَحْمَدُ. وَإِسْحَاقُ. إِلَى مَا رَوَى النُّعْمَانُ بْنُ بَشِيرٍ. عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. [1]

**ترجمه** : په دي سند سره هم دنعمان بن بشير نه دماقبل هم معني روايت مروي دي، قتاده وائي ما حبيب بن سالم ته دا مسئله ليکلي اوليږله، او ابوبشر هم دا حديث دحبيب بن سالم نه نه دي اوريدلي او هغه دا روايت دخالد بن عرفطه نه نقل کړي دي

امام ترمذي وايي دنعمان بن بشير په حديث کي اضطراب دي ما دامام بخاري نه اوريدلي دي قتاده دا حديث دحبيب بن سالم نه نه دي اوريدلي هغه دا د خالد بن عرفطة نه نقل کړي دي، او په دي باب کي د سلمه بن محبق نه هم روايت مروي دي، دښځي دوينځي سره دزنا کولو په سلسله کي داهل علمو اختلاف دي چنانچي دنبي کريم صلي الله عليه وسلم دمتعددو صحابه کرامو نه مروي دي په کومو کي چي علي او ابن عمر رضي الله عنهما هم شامل دي په ده باندي رجم واجب دي مګر ابن مسعود رضي الله عنه وائي په ده باندي هيڅ حد نشته البته ده ته به تعزيري سزا ورکولي شي، دامام احمد او اسحاق مسلك هم دهغه حديث مطابق دي کوم چي دنبي کريم صلي الله عليه وسلم نه دنعمان بن بشير په واسطه مروي دي.

***************

## ٢٢ـ بَابُ مَا جَاءَ فِي الْمَرْأَةِ إِذَا اسْتُكْرِهَتْ عَلَى الزِّنَا

**بيان دهغه ښځي څوک چي په زنا کولو مجبوره کړي شي**

---

[1] ـ سنن ابي داود ـ الحدود ٢٨ (٤٤٥٨) . سنن النسائي ـ النكاح ٧٠ (٣٣٦٢) . سنن ابن ماجه ـ الحدود (٢٥٥١) . (تحفة الأشراف : ١١٦١٣) . و احمد في المسند (٦ ـ ٢٧٢، ٢٧٦، ٢٧٦، ٢٧٧) . سنن الدارمي ـ الحدود ٢٠ (٢٣٣٢)

١٤٥٣_ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ، حَدَّثَنَا مُعَمَّرُ بْنُ سُلَيْمَانَ الرَّقِّيُّ، عَنِ الحَجَّاجِ بْنِ أَرْطَاةَ، عَنْ عَبْدِ الْجَبَّارِ بْنِ وَائِلِ بْنِ حُجْرٍ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: " اسْتُكْرِهَتِ امْرَأَةٌ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَدَرَأَ عَنْهَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الحَدَّ، وَأَقَامَهُ عَلَى الَّذِي أَصَابَهَا، وَلَمْ يُذْكَرْ أَنَّهُ جَعَلَ لَهَا مَهْرًا "، قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ، وَلَيْسَ إِسْنَادُهُ بِمُتَّصِلٍ، وَقَدْ رُوِيَ هَذَا الحَدِيثُ مِنْ غَيْرِ هَذَا الوَجْهِ، قَالَ: سَمِعْت مُحَمَّدًا، يَقُولُ: عَبْدُ الجَبَّارِ بْنُ وَائِلِ بْنِ حُجْرٍ، لَمْ يَسْمَعْ مِنْ أَبِيهِ، وَلَا أَدْرَكَهُ، يُقَالُ: إِنَّهُ وُلِدَ بَعْدَ مَوْتِ أَبِيهِ بِأَشْهُرٍ، وَالعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ العِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ، أَنْ لَيْسَ عَلَى المُسْتَكْرَهَةِ حَدٌّ. (1)

**ترجمه** : دوائل بن حجر رضي الله عنه بيان دي فرمائي چي دنبي كريم صلي الله عليه وسلم په زمانه كي ديوي ښځي سره په زبردستئ زنا شوي وه نو رسول الله صلي الله عليه وسلم وربانديحد جاري نكړو او په زناكار يي حد جاري كړو راوي ددي خبري ذكر نه دي كړي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم دي ښځي ته څه مهر وغيره وركړي وي.

امام ترمذي وايي دا حديث غريب دي او سند يي متصل نه دي او دا حديث په نورو سندونو هم مروي دي ، مادامام بخاري نه اوريدلي دي چي دعبدالجبار بن وائل سماع دخپل پلار نه ثابت نه ده او هغه دخپل پلار زمانه نه ده موندلي، ونيلي شوي دي چي عبد الجبار دخپل پلار دمرګ نه يو څو مياشتي وروسته پيدا شوي دي، صحابه كرامو كي دبعضو او ددوئ نه پس په اهل علمو كي دبعضو په دي باندي عمل دي چي چا سره په زبردستئ زنا شوي وي په هغي باندي حد واجب نه دي.

## دابوهنيد وائل بن حجر رضي الله عنه مختصر حالات:

نوم وائل كنيه ابو هنيد دپلار نوم حجر چي تعلق يي د حضرموت دشاهي خاندان سره وو او پخپله هم سردار وو دفتح مكي نه پس مديني ته داسلام قبلولو په نيت راغى او رسول الله صلي الله عليه وسلم يي پخپله استقبال اوكړو او څادر يي ورته خور كړو او په هغي يي كينولو او دده داولاد دپاره يي دبركت دعا هم اوغوښتله (استيعاب).

كله چي داسلام قبلولو نه پس واپس روان شو نو رسول الله صلي الله عليه وسلم ورته دحضرموت په زمكو كي يوه ټوټه زمكه وركړه او درخصتئ په وخت كې ورسره دډيره لري پوري روان وو دكوفي داباديدونه پس په كوفه كې اوسيدو اوپه جنګ صفين كې دعلي رضي الله عنه سره وو چي دحضرموت قبيلي جهنده يي په لاس كې وه او د اميرمعاويه رضي الله عنه

---

1 _ سنن ابن ماجه_ الحدود ٣٠ (٢٥٩٨)

په زمانه کې وفات شو (اصابه).
دده دمروياتو شمير ۱۷۱ دی بخاري ورنه نقل دروايت نه دی کړی او مسلم ورنه شپږ روايات نقل کړي دي.

***************

۱٤٥٤ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى النَّيْسَابُورِيُّ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوسُفَ، عَنْ إِسْرَائِيلَ، حَدَّثَنَا سِمَاكُ بْنُ حَرْبٍ، عَنْ عَلْقَمَةَ بْنِ وَائِلٍ الْكِنْدِيِّ، عَنْ أَبِيهِ "أَنَّ امْرَأَةً خَرَجَتْ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تُرِيدُ الصَّلَاةَ، فَتَلَقَّاهَا رَجُلٌ فَتَجَلَّلَهَا، فَقَضَى حَاجَتَهُ مِنْهَا، فَصَاحَتْ، فَانْطَلَقَ، وَمَرَّ عَلَيْهَا رَجُلٌ، فَقَالَتْ: إِنَّ ذَاكَ الرَّجُلَ فَعَلَ بِي كَذَا وَكَذَا، وَمَرَّتْ بِعِصَابَةٍ مِنَ الْمُهَاجِرِينَ، فَقَالَتْ: إِنَّ ذَاكَ الرَّجُلَ فَعَلَ بِي كَذَا وَكَذَا، فَانْطَلَقُوا، فَأَخَذُوا الرَّجُلَ الَّذِي ظَنَّتْ أَنَّهُ وَقَعَ عَلَيْهَا وَأَتَوْهَا، فَقَالَتْ: نَعَمْ هُوَ هَذَا، فَأَتَوْا بِهِ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَلَمَّا أَمَرَ بِهِ لِيُرْجَمَ، قَامَ صَاحِبُهَا الَّذِي وَقَعَ عَلَيْهَا، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، أَنَا صَاحِبُهَا، فَقَالَ لَهَا: اذْهَبِي فَقَدْ غَفَرَ اللَّهُ لَكِ وَقَالَ لِلرَّجُلِ قَوْلًا حَسَنًا، وَقَالَ لِلرَّجُلِ الَّذِي وَقَعَ عَلَيْهَا: ارْجُمُوهُ، وَقَالَ: لَقَدْ تَابَ تَوْبَةً لَوْ تَابَهَا أَهْلُ الْمَدِينَةِ لَقُبِلَ مِنْهُمْ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ صَحِيحٌ، وَعَلْقَمَةُ بْنُ وَائِلِ بْنِ حُجْرٍ، سَمِعَ مِنْ أَبِيهِ، وَهُوَ أَكْبَرُ مِنْ عَبْدِ الْجَبَّارِ بْنِ وَائِلٍ، وَعَبْدُ الْجَبَّارِ لَمْ يَسْمَعْ مِنْ أَبِيهِ.[1]

**ترجمه**: دوائل بن حجر رضي الله عنه بيان دي فرمائي چي دنبي کريم صلي الله عليه وسلم په زمانه کي يوه ښځه دمونځ دپاره دکورنه اووتله او يو کس په دي پسي ورپسي شو او هغه دا ښځه اونيوله او ددي بي عزتي يي اوکړه دي وخت کي دي ښځي چغي وهلي او دا کس ورنه اوتختيدو. بيا څه وخت پس دي سره يو بل کس تير شو نو دي ښځي په دي دويم کس دعوي اوکړه چي ده زما بي عزتي کړي ده .او دي وخت کي ددي په خوا کي دمهاجرينو يو جماعت تيريدو، ددي خبري په کولو دوئ دا کس اونيولو او هغه کس يي دي ښځي ته راوستلو نو دي ښځي اوونيل بالکل همدا کس دي او بيا دوئ دا کس رسول الله صلي الله عليه وسلم ته پيش کړو چنانچي کله رسول الله دده متعلق درجم کولو حکم اوکړو نو دي ښځي سره چي کوم کس زنا کړي ده اودريدو او عرض يي اوکړو اي دالله رسوله دي سره خو زنا ما کړي وه بيا رسول الله صلي الله عليه وسلم ښځي ته اوفرمائيل ته لاړه شه او الله تعالي تاته مغفرت کړي دي او رسول الله هغه کس ته څوك چي ګنهګار نه وو نيکي خبري اوکړي او چي کوم کس زنا کړي وه دهغه

[1] ـ سنن ابي داود ـ الحدود ٧ (٤٣٧٩). (تحفة الأشراف: ١١٧٧٧)، و احمد في المسند (٦ـ٣٩٩)

متعلق يي اوفرمائيل دي رجم كړئ او دا يي هم اوفرمائيل دي زناكار داسي توبه ويستلي ده كه چري اهل مدينه داسي توبه اوباسي نو ټولو توبه به قبوله شي
امام ترمذي وايي دا حديث حسن غريب دي، دعلقمه بن وائل بن حجر سماع دخپل پلار نه ثابت ده دي دعبدالجبار بن وائل نه مشر دي مگر دعبدالجبار سماع دخپل پلار نه ثابت نه ده.

**************

## ٢٣_ باب مَا جَاءَ فِيمَنْ يَقَعُ عَلَى الْبَهِيمَةِ

### د ځاروي سره دجماع كونكي د سزا بيان

١٤٥٥_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَمْرٍو السَّوَّاقُ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ مُحَمَّدٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ أَبِي عَمْرٍو، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " مَنْ وَجَدْتُمُوهُ وَقَعَ عَلَى بَهِيمَةٍ فَاقْتُلُوهُ وَاقْتُلُوا الْبَهِيمَةَ "، فَقِيلَ لِابْنِ عَبَّاسٍ: مَا شَأْنُ الْبَهِيمَةِ ؟ قَالَ: مَا سَمِعْتُ مِنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي ذَلِكَ شَيْئًا، وَلَكِنْ: "أَرَى رَسُولَ اللَّهِ كَرِهَ أَنْ يُؤْكَلَ مِنْ لَحْمِهَا، أَوْ يُنْتَفَعَ بِهَا، وَقَدْ عُمِلَ بِهَا ذَلِكَ الْعَمَلُ "، قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ عَمْرِو بْنِ أَبِي عَمْرٍو، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. (١)

**ترجمه** : دابن عباس رضي الله عنهما دا روايت دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي كله چي مو داسي كس وموندلو چي د ځاروي سره يي زنا كړي وي نو قتل يي كړئ او ځاروي هم قتل كړئ، دابن عباس رضي الله عنهمانه تپوس وكړي شو چي د ځاروي دقتل كولو څه وجه ده، هغه ووئيل ماد رسول الله صلي الله عليه وسلم نه څه اوريدلي نه وو، زماخيال دي د كوم ځاروي سره چي جماع وشي دهغه ځاروي غوښه خوړل او فائده ورنه اخستل رسول الله نه خوښول.

امام ترمذي وايي : د عمرو بن ابي عروبه حديث كوم چي هغه په سند د عكرمه عن ابن عباس عن النبي سره نقل كوي هغه مونږ ته صرف په همدي سند رارسيدلي دی.

دځناورو سره وطی كول ډير قبيح عمل دې نودې په كونكى باندې حد خو نشی جاری كولې البته مناسب سزا به وركولې شی اوپه بعضې رواياتوكي دی چي داسې ځناوردې ذبح كړې

---

[1] _ سنن ابي داود_الحدود ٢٩ (٣٠٦٢). سنن ابن ماجه_الحدود ١٣ (٢٥٦٤). (تحفة الأشراف : ٦١٧٦). و احمد في المسند (١_٢٦٩، ٣٠٠)

شي اواودې سوزولې شي خوداسې كول واجب نه دی (دا خبره دې ياده وی چي ځناورو سره وطی كول په اجماع سره حرامه ده خوپه دې مسئله كي اختلاف دې چي په دې كس به حد زنا جاری كولې شی كه نه ؟
د مذاهب اربعه د فقهاؤ په نزد به په ده باندې حد نشی جاری كولې البته ده ته به تعزيری سزا وركولې شی اوپه دې تعزيركي امام ته دا اختياردې كه مصلحت ګڼری دې قتل كولې هم شي.
د ابن عباس‌ﷺ نه روايت دې چي په دې باره كي ما د رسول اللهﷺ نه څه نه دی اوريدلې البته زما دا خيال دې چي رسول اللهﷺ دا خبره ډيره ناخوښه كړې ده چي دداسې ځناور غوښه اوخوړلې شی يا دهغې پۍ اوڅكلی شی (رواه الترمذی)
اودويمه وجه دا ده چي په يوبل حديث كي په صراحت سره راغلی دی چي څوك د ځناور سره دا حركت اوكړی نوهغه ملعون دي اوهغه قتل كړئ اوهغه ځناورهم قتل كړئ چي څوك دا نه وانی چي دا هغه ځناور دې چا سره چي داسې داسې شوی وو (رواه احمدوابوداود والنسائی والحاكم) اودامام بيهقی ددې حديث صحت ته ميلان دې.

***************

وَقَدْ رَوَى سُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ، عَنْ عَاصِمٍ، عَنْ أَبِي رَزِينٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّهُ قَالَ: "مَنْ أَتَى بَهِيمَةً فَلَا حَدَّ عَلَيْهِ". حَدَّثَنَا بِذَلِكَ مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ، وَهَذَا أَصَحُّ مِنَ الحَدِيثِ الأَوَّلِ، وَالعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ العِلْمِ، وَهُوَ قَوْلُ أَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ.(1)

**ترجمه** : دابن عباس رضي الله عنه نه موقوفا مروي دي چي څوك د څاروي سره جماع وكړي هغه باندي حد نشته.
امام ترمذي وايي : دا حديث د اولني حديث نه زيات صحيح دی او په همدي د اهل علمو عمل دی او داد امام احمد او اسحاق قول هم دی.

***************

## ٢٤_ باب مَا جَاءَ فِي حَدِّ اللُّوطِيِّ

### دلواطت دسزا بيان

---

1 _ سنن ابي داود_ الحدود ٢٩ (٣٠٦٢). سنن ابن ماجه_ الحدود ١٣ (٢٥٦٣). (تحفة الأشراف : ٦١٤٦). و احمد في المسند(١/ ٢٦٩، ٣٠٠

١٤٥٦_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَمْرٍو السَّوَّاقُ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ مُحَمَّدٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ أَبِي عَمْرٍو، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. " مَنْ وَجَدْتُمُوهُ يَعْمَلُ عَمَلَ قَوْمِ لُوطٍ، فَاقْتُلُوا الْفَاعِلَ، وَالْمَفْعُولَ بِهِ ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ جَابِرٍ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ أَبُو عِيسَى: وَإِنَّمَا يُعْرَفُ هَذَا الْحَدِيثُ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ هَذَا الْوَجْهِ، وَرَوَى مُحَمَّدُ بْنُ إِسْحَاقَ هَذَا الْحَدِيثَ، عَنْ عَمْرِو بْنِ أَبِي عَمْرٍو، فَقَالَ: مَلْعُونٌ مَنْ عَمِلَ عَمَلَ قَوْمِ لُوطٍ، وَلَمْ يَذْكُرْ فِيهِ الْقَتْلَ، وَذَكَرَ فِيهِ مَلْعُونٌ مَنْ أَتَى بَهِيمَةً، وَقَدْ رُوِيَ هَذَا الْحَدِيثُ عَنْ عَاصِمِ بْنِ عُمَرَ، عَنْ سُهَيْلِ بْنِ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " اقْتُلُوا الْفَاعِلَ وَالْمَفْعُولَ بِهِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ فِي إِسْنَادِهِ مَقَالٌ، وَلَا نَعْرِفُ أَحَدًا رَوَاهُ عَنْ سُهَيْلِ بْنِ أَبِي صَالِحٍ، غَيْرَ عَاصِمِ بْنِ عُمَرَ الْعُمَرِيِّ، وَعَاصِمُ بْنُ عُمَرَ يُضَعَّفُ فِي الْحَدِيثِ مِنْ قِبَلِ حِفْظِهِ، وَاخْتَلَفَ أَهْلُ الْعِلْمِ فِي حَدِّ اللُّوطِيِّ، فَرَأَى بَعْضُهُمْ أَنَّ عَلَيْهِ الرَّجْمَ أَحْصَنَ أَوْ لَمْ يُحْصِنْ، وَهَذَا قَوْلُ مَالِكٍ، وَالشَّافِعِيِّ، وَأَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ، وَقَالَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ فُقَهَاءِ التَّابِعِينَ مِنْهُمُ الْحَسَنُ الْبَصْرِيُّ، وَإِبْرَاهِيمُ النَّخَعِيُّ، وَعَطَاءُ بْنُ أَبِي رَبَاحٍ، وَغَيْرُهُمْ قَالُوا: حَدُّ اللُّوطِيِّ حَدُّ الزَّانِي، وَهُوَ قَوْلُ الثَّوْرِيِّ، وَأَهْلِ الْكُوفَةِ. (1)

**ترجمه** : دابن عباس رضي الله عنهما دا روايت دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چالره چي تاسو دقوم لوط دعمل په كولوباندي بيامومندو نوفاعل او مفعول دواړو لره قتل كړئ.

امام ترمذي وايي داحديث په واسطه دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما په همدي سند مروي دي، محمد بن اسحاق هم داحديث دعمران بن ابي عمرو نه نقل كړي دي ليكن په دي روايت كي دا الفاظ وارد دي رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل دقوم لوط دعمل والا عمل كونكي ملعون دي راوي په دي حديث كي دقتل ذكر نه دي كړي البته په دي كي دا بيان دي چي څاروو سره جماع كولو والا ملعون دي، او داحديث په سند دعاصم بن عمر عن سهيل بن ابي صالح عن ابي هريرة عن النبي صلي الله عليه وسلم سره منقول دي او دا حديث په عاصم بن عمر منقول دي په دي كي دا الفاظ وارد دي رسول الله اوفرمائيل فاعل او مفعول دواړه

---

1 _ سنن ابي داود_الحدود ٢٩ (٤٤٦٢). سنن ابن ماجه_الحدود ١٢ (٢٥٦١) (تحفة الأشراف: ٦١٧٦). و احمد في المسند (١_٢٦٩، ٣٠٠)

قتل کړئ لیکن ددي روایت په سند باندي محدثینو کلام کړي دي او مونږ ته دابوصالح نه علاوه بل څوك معلوم نه دي چي دا يي دعاصم بن عمر العمري نه نقل کړي وي او دعاصم بن عمر حال دادي چي هغه دحفظ په اعتبار په حديث بيانولو کي ضعيف دي، او په دي باب کي دجابر او ابوهريره رضي الله عنهما نه هم روايات وارد دي دلواطت دحد په سلسله کي داهل علمو اختلاف دي دبعضوقول دي بد فعلي کونکي که شادي شده وي او که غير شادي شده وي خو سزا دهغه رجم دي دامام مالك ، شافعي، او احمد او اسحاق رحمهم الله هم دا قول دي په تابعينو فقهاو کي بعضي اهل علم چي حسن بصري او ابراهيم نخعي او عطاء بن ابي رباح رحمهم الله پکي هم شامل دي دوئ هم ددي قائل دي چي دلواطت سزا دزنا دسزا پشان ده دسفيان ثوري او اهل كوفه هم دا قول دي.

**تشريح**: د لواطت د مرتکبينو متعلق الله تعالي دا سزا مقرر کړي ده چي "فأذوهما" يعني ايذاء او تکليف ورته ورسوئ، او د اذوهما په تشريح کي عطاء او قتاده ونيلي دي چي دوئ ته زباني درد اورسوئ سختي خبري او بد رد ورته اووائي چي تاسو دالله نه نه شرميږئ ، تاسودالله نه نه ويريږئ ، اوددي پشان نور سخت الفاظ، ابن عباس رضي الله عنهما نه روايت دي فرماني چي پيغور ورته ورکړئ اوپه لاس سره يي هم اودردوئ اوپه پيزارونو يي اوولئ .
او ددينه هغه دوه کسان مراد دي څوك چي دلواطت جرم اوکړي اودا قول دمجاهد هم دي په شريعت کي دايذا کوم مقرر حد نشته ددي مقدار او کيفيت امام او حاکم ته سپارلي شوي دي.
او همدا قول دامام ابوحنيفه رحمة الله عليه دي چي حاکم څنګه مناسب اوګنړي دهغي مطابق دي دوئ ته تعزير ورکړي، که چري دبار بار سزا ورکولو نه پس هم مجرم منع نه شي نوحاکم دواړو لره قتل کولي هم شي په دي سزا کي دشادي شده او غير شادي شده په مينځ کي څه فرق نشته دسياست چي څنګه تقاضا وي هم هغسي دي اوکړي شي ، ابن همام ليکلي دي چي دامام صاحب په نزد باندي ددي دپاره مقرر حد نشته بلکه تعزير به ورکولي شي اوترمرګه پوري به په قيد کي ساتلي شي اوکه چري څوك دلواطت سره عادي وي نو امام دي ده لره قتل کړي .
امام مالك ، امام شافعي ،امام احمد، امام ابويوسف رحمهم الله او د امام محمد په نزد باندي لواطت موجب دحد شرعي دي .
دامام احمد په قوي قول کي اود امام شافعي په يو قول کي اود امام مالك په نزد دلواطت سزا سنګسارول دي شادي شده وي اوکه لونډ وي.
دامام شافعي په دويم قول کي راغلي دي چي په توره دي قتل کړي شي.

دصاحبينو اود امام احمد يو قول اود شافعي قوي ترين قول دادي چي دلواطت سزا دزنا پشان ده ، غير شادي شده دي په كوړو ووهلي شي اوشادي شده دي سنگسار كړي شي دحقيقت په اعتبار سره لواطت هم يوه زنا ده داهم كامله شهوت راني ده بلكه دزنا نه زياته سخته ده ځكه چي دزنا حرمت په نكاح سره ختميږي (اودلواطت حرمت هيڅ كله نه ختميږي) پس په دلالت النص سره لواطت دزنا په حكم كې داخل دي.

ددينه علاوه بيهقي دابوموسي رضي الله عنه نه مرفوع روايت نقل كړي دي چي كله نارينه دنارينه سره ددي فعل ارتكاب وكړي نودواړه زنا كار دي ليكن ددي حديث په سند كې يو راوي محمد بن عبد الرحمن قشيري دي چالره چي ابوحاتم كذاب گڼلي دي او ابو الفتح ازدي ده لره په ضعفاؤ كې شميرلي دي طبراني دي حديث لره په بل سند سره دابو موسي رضي الله عنه نه بيان كړي دي مگر پدي سلسله دسند كې يو راوي بشربن فضل بجلي مجهول دي، داحديث ابوداود پخپل سنن كې هم نقل كړي دي.

دامام ابوحنيفه وينا ده چي لغتا لواطت دزنا هم معني نه دي په دي وجه باندي دصحابه كرامو ددي په موجب حد كيدو كې اختلاف دي اودزنا په نسبت ددي جرم وقوع هم كمه وي ځكه چي ددواړو جانبونه ددي فعل دارتكاب جذبه خو كارفرما نه وي (صرف دفاعل اقتضا وي) نولهذا لواطت دزنا هم معني نه دي .

كوم علماء چي لواطت لره موجب دحد شرعي گڼړي دهغوئ دليل دابن عباس رضي الله عنهما دا روايت دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چالره چي تاسو دقوم لوط دعمل په كولوباندي بيامونده نوفاعل او مفعول دواړو لره قتل كړئ (رواه احمد وابو داود والترمذي وابن ماجه والحاكم والبيهقي عن عكرمة عن ابن عباس).

ترمذي وئيلي دي دابن عباس رضي الله عنهما دا روايت صرف دعكرمه په سند سره مروي دي، اوحاكم دا روايت صحيح الاسناد گڼلي دي ، بخاري وئيلي دي چي دعكرمه شاگرد عمرو بن ابي عمرو خو رښتوني دي مگر عكرمه ته يي په منسوب كولو سره ډير منكرات نقل كړي دي ، اونسائي هم ده لره منكر گرځولي دي او وئيلي يي دي چي قوي نه دي ، ابن معين ده لره ثقه گڼلي دي مگر كوم حديث چي د په واسطي دعكرمه عن ابن عباس بيان كړي دي ديته يي منكر وئيلي دي يوجماعت دده نه روايت كړي دي ، حاكم په نورو سندونوسره دا حديث نقل كړي دي اودجرح اوتعديل په باره كې يي خاموشي اختيار كړي ده ، البته ذهبي مواخذه كړي ده چي عبدالرحمن عمري ساقط الاعتبار دي ، ابن ماجه او حاكم دابوهريره رضي الله عنه په روايت سره دا حديث نقل كړي دي مگر ددي سند دمخكني اسناد نه هم زيات كمزوري دي ، حافظ وئيلي دي دابوهريره رضي الله عنه نه چي دا حديث نقل شوي دي صحيح نه دي .

بزار دعاصم بن عمرو عمري په روايت سره دا روايت بيان کړي دي مګر عاصم متروك دي ابن ماجه پخپل سند سره په دي الفاظو روايت نقل کړي دي چي دپورتني اوښکتني د سنګسارولو دحکم ثبوت درسول الله نه نشته مګردومره دنبي عليه السلام نه ثابته ده چي فرمائيلي يې دي فاعل او مفعول دواړولره قتل کړئ.

ابن ابي شيبه په مصنف کې اوبيهقي دابن عباس رضي الله عنهما قول نقل کړي دي چي داسي مجرم دي دټول کلي داوچتي ابادئ نه لاندي راوغورځولي شي او دبره نه دي ورباندي کانړي اوورولي شي اوددي قول ماخذ دا دي چي قوم لوط هم په دي طريقي سره هلاك شوي وو ددوئ کلي پورته کړي شوي وو او اولټه راغورځولي شوي وو اويقينا کله چي لاندي راوغورځولي شول نودبره نه په دوئ باندي نسکور شوي عمارتونه راوغورځيدل. دابن زبير رضي الله عنه قول دي چي په انتهائي بدبوداره کور کې دي بند کړي شي تردي چي دواړه مړه شي، بيهقي په يو څو طريقو سره نقل کړي دي چي علي کرم الله وجهه يو لوطي لره سنګسار کړي وو ، دابن عباس رضي الله عنه دمرفوع حديث اوددي تمامو اقوالو په وجه جامع صورت دا دي چي څوك ددي بدفعل عادي وي او بار بار ورنه دا حرکت صادريږي او په تعذير باندي هم منع نه شي نودي دي قتل کړي شي برابره خبره ده چي په هره طريقه وي ، په عادي کيدو باندي دحديث دا لفظ "يعمل" دلالت کوي نبي کريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي : من وجدتم عمل عمل قوم لوط ، يې نه دي فرمائيلي، اوهمدا قول دامام ابو حنيفه رحمة الله عليه دي.

*****************

١٤٥٧ـ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، حَدَّثَنَا هَمَّامٌ، عَنِ القَاسِمِ بْنِ عَبْدِ الوَاحِدِ المَكِّيِّ، عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مُحَمَّدِ بْنِ عَقِيلٍ، أَنَّهُ سَمِعَ جَابِرًا، يَقُولُ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " إِنَّ أَخْوَفَ مَا أَخَافُ عَلَى أُمَّتِي عَمَلُ قَوْمِ لُوطٍ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ، إِنَّمَا نَعْرِفُهُ مِنْ هَذَا الوَجْهِ عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مُحَمَّدِ بْنِ عَقِيلِ بْنِ أَبِي طَالِبٍ، عَنْ جَابِرٍ. [1]

**ترجمه** : دجابر رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي ما سره چي دخپل امت باره کې دکوم څيز نه دټولو نه زياته ويره ده هغه عمل دقوم لوط دي.

امام ترمذي وايي دا حديث حسن غريب دي او دا مونږ ته صرف په همدي سند د عبدالله بن محمد بن عقيل بن ابي طالب عن جابر په واسطه رارسيدلي دي.

*****************

---

١ـ

## ٢٥_ باب مَا جَاءَ فِي الْمُرْتَدِّ

## داسلام نه دواپس اوړيدونکي دسزا بيان

١٤٥٨_ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ عَبْدَةَ الضَّبِّيُّ الْبَصْرِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ الثَّقَفِيُّ، حَدَّثَنَا أَيُّوبُ، عَنْ عِكْرِمَةَ، أَنَّ عَلِيًّا حَرَّقَ قَوْمًا ارْتَدُّوا عَنِ الإِسْلَامِ، فَبَلَغَ ذَلِكَ ابْنَ عَبَّاسٍ، فَقَالَ: لَوْ كُنْتُ أَنَا لَقَتَلْتُهُمْ، لِقَوْلِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ بَدَّلَ دِينَهُ فَاقْتُلُوهُ". وَلَمْ أَكُنْ لِأُحَرِّقَهُمْ، لِقَوْلِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا تُعَذِّبُوا بِعَذَابِ اللَّهِ". فَبَلَغَ ذَلِكَ عَلِيًّا، فَقَالَ: صَدَقَ ابْنُ عَبَّاسٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ صَحِيحٌ حَسَنٌ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ فِي الْمُرْتَدِّ، وَاخْتَلَفُوا فِي الْمَرْأَةِ إِذَا ارْتَدَّتْ عَنِ الإِسْلَامِ، فَقَالَتْ طَائِفَةٌ مِنْ أَهْلِ الْعِلْمِ: تُقْتَلُ، وَهُوَ قَوْلُ الأَوْزَاعِيِّ، وَأَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ، وَقَالَتْ طَائِفَةٌ مِنْهُمْ: تُحْبَسُ، وَلَا تُقْتَلُ، وَهُوَ قَوْلُ سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ، وَغَيْرِهِ مِنْ أَهْلِ الْكُوفَةِ.[1]

**ترجمه** : دعکرمه نه روايت دي فرمائي چي علي رضي الله عنه بعضي داسي خلق ژوندي اوسوزول څوك چي داسلام نه مرتد شوي وو كله چي عبدالله بن عباس رضي الله عنهما په دي باندي خبر شو نو هغوئ اووئيل كه دعلي رضي الله عنه په ځاي باندي زه وي نو دوئ به مي قتل كړي وو ځكه چي درسول الله صلي الله عليه وسلم فرمان دي څوك چي خپل دين پريږدي هغه لره قتل كړئ او ما هغوئ نه سوزول ځكه چي رسول الله صلي الله عليه وسلم ارشاد دي دالله تعالي دخاص عذاب پشان عذاب تاسو خلقو ته مه وركوئ ، بيا ددي خبري خبر علي رضي الله عنه ته ورسيدو نو ويي فرمائيل ابن عباس رښتيا وئيلي دي.

امام ترمذي وايي دا حديث حسن صحيح دي او دمرتد په باره كي داهل علمو په همدي باندي عمل دي. كله چي كومه ښځه اسلام پريږدي مرتده شي دهغي په باره كي دفقهاؤ اختلاف دي داهل علمو يو جماعت ددي قائل دي چي دا به قتل كولي شي بلكه بل جماعت وائي دا به نه قتل كوي بلكه په قيد كي به يي اچوي، سفيان ثوري او دده نه علاوه بعضي اهل كوفه هم ددي قائل دي.

---

[1] _ سنن ابن ماجه_ الحدود ١٢(٢٥٦٣) . (تحفة الأشراف : ٢٣٦٤)

اخرجه البخاري في الصحيح_ الجهاد ١٤٩ (٣٠١٧) . والمرتدين ٢ (٦٩٢٢) . سنن ابي داود_ الحدود ١ (٤٣٥١) . سنن النسائي_ المحاربة ١٢(٤٠٦٥) . سنن ابن ماجه_ الحدود ٢(٢٥٣٥) (تحفة الأشراف : ٥٩٨٤) . و احمد في المسند(١_ ٢٨٢. ٢٨٣. ٣٢٣)

## د مرتدینو دسره د ابوبکر رضي الله عنه د جهاد کولو اعلان

په حدیث کې راغلي ابوبکر صدیق رضي الله عنه وایي: امر ان اقاتل الناس، ماته حکم شوی دی چې د خلقو سره به جنګ کوم مطلب دادی لکه څنګه چې دمونځ نه منکر کافر او مرتد دی او په پوهولو سره نه پوهیږي نو قتل کولی به شي نو دارنګې که دزکات منکر هم په پوهولو پوهه نشي نو دی به هم قتل کولی شي او دده خلاف به جنګ کولی شي څکه چې مونځ بدني عبادت دی او زکات مالي عبادت دی.

د شاانورشاه کشمیري قول دی چې عمر رضي الله عنه ددي معاملي په ابتداء کې متردد وو ددي تردد منشاء دواقعي دصورت په تشخیص کې اختلاف وو عمر رضي الله عنه دا ګڼړل چې مانعین دزکات صرف دیو عمل نه دبغاوت جرم کوي او دحالاتو دتقاضت تقاضا داده چې په دي وخت کې دباغیانو سره جنګ اونکړی شي لیکن دابوبکر تحقیق دا وو چې دزکاة نه منکر دمونځ نه دمنکر پشان دی لکه څرنګه چې دمونځ نه منکر مرتد وي نو دارنګې دزکاة نه منکر هم مرتد دی.

دصدیق اکبر د خلافت په زمانه کې دعربو بعضي قبیلي کافري شوي علماؤ لیکلي دي چې د وفات نبوي نه پس څلور قسمه ارتداد شروع شو، اول بت پرستي شروع شوه، دویم دتوحید داقرار قائل پاتي شول لیکن درسالت نه منکر شول او دمتنبیانو نبوت یې اومنلو، دریم صرف دزکواة دفرضیت نه یې انکار اوکړو چې دا په نبي پوري مخصوص وو او زکات اخستل او دزکات حکم اوس ختم شو، څلورم خلیفه ته یې دزکات ورکولو نه انکار اوکړو او ونیل به یې زمونږ خپله خوښه ده چې چاته یې ورکوو په هغوی به یې پخپله تقسیموو.

دابن حجر بیان دی چې کفر من کفر من العرب مجازا فرمائیلی شوي دي ورنه هغوی ټول کافران شوي نه وو اولني طبقه حقیقتا کفر کړی وو لیکن نوري دوه طبقي کفر ته نږدي شوي وي.

څوك چې د دار الاسلام نه اوتختي او د دارالاسلام نه دارحرب ته لاړ شي او مرتد شي نو دده نه به داسلام ذمه داري ختمه شي کوم چې ده ته دمسلمانیدو په وجه حاصله وه او دده دجان او مال چې کوم حفاظت کیدو هغه به ختم شي او قتل کول به یې جائز شي او که غلام مرتد شوی نه وي او دار حرب ته تلی نه وي نوقتل کول به یې ناجائز وي بلکه که دمسلمانانو بل ښار ته تلی وي نو په دي صورت کې به ددي جملي مطلب دا وي چې دحکومت ذمه واري به دده نه ختمه وي.

****************

## ٢٦_ باب مَا جَاءَ فِيمَنْ شَهَرَ السِّلاَحَ

## دمسلمان خلاف داسلحي پورته کولو بیان

١٤٥٩_ حَدَّثَنَا أَبُو كُرَيْبٍ، وَأَبُو السَّائِبِ سَلْمُ بْنُ جُنَادَةَ قَالَا: حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ، عَنْ بُرَيْدِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي بُرْدَةَ، عَنْ جَدِّهِ أَبِي بُرْدَةَ، عَنْ أَبِي مُوسَى، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "مَنْ حَمَلَ عَلَيْنَا السِّلَاحَ فَلَيْسَ مِنَّا". قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، وَابْنِ الزُّبَيْرِ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَسَلَمَةَ بْنِ الْأَكْوَعِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي مُوسَى، حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [1]

**ترجمه** : دابوموسي اشعري رضي الله عنه نه روايت دي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي څوك چي زمونږ په خلاف اسلحه پورته کړي هغه زمونږ نه نه دي.

امام ترمذي وايي په دي باب كي دابن عمر، او ابن زبير، او ابوهريره او سلمه بن الاكوع رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي. امام ترمذي وائي دابوموسي اشعري رضي الله عنه حديث حسن صحيح دي.

**لغات** : السلاح: معني اسلحه د مذكر او موئث دواړو دپاره جمع يې اسلحه او سلح او سلحان راځي.

**تشريح** : داسلحي اوچتولو نه مراد دمسلمانانو خلاف بغاوت كول دي اوبغير د څه وجي نه دچا وژل هم په دي كې داخل دي.

"فليس منا " يعني دا كس زمونږ د جماعت سره تعلق نه لري، او زمونږ هم دده سره هيڅ قسم تعلق نشته.(داد انتهايي بيزارئ كلمات دي).

****************

## ٢٧_ بَابُ مَا جَاءَ فِي حَدِّ السَّاحِرِ

### دجادوګر دسزا بيان

١٤٦٠_ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنْ إِسْمَاعِيلَ بْنِ مُسْلِمٍ، عَنِ الْحَسَنِ، عَنْ جُنْدُبٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "حَدُّ السَّاحِرِ ضَرْبَةٌ بِالسَّيْفِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ لَا نَعْرِفُهُ مَرْفُوعًا، إِلَّا مِنْ هَذَا الْوَجْهِ، وَإِسْمَاعِيلُ بْنُ مُسْلِمٍ الْمَكِّيُّ، يُضَعَّفُ فِي الْحَدِيثِ مِنْ قِبَلِ حِفْظِهِ، وَإِسْمَاعِيلُ بْنُ مُسْلِمٍ الْعَبْدِيُّ الْبَصْرِيُّ، قَالَ وَكِيعٌ: هُوَ ثِقَةٌ، وَيُرْوَى عَنِ

---

[1] _ اخرجه البخاري في الصحيح_ الفتن ٧ (٧٠٧١). صحيح مسلم_ الإيمان ٤٢ (١٠٠). سنن ابن ماجه_ الحدود ١٩ (٢٥٧٧). (تحفة الأشراف: ٩٠٤٢)



الحَسَنِ أَيضًا. وَالصَّحِيحُ عَنْ جُنْدَبٍ مَوْقُوفٌ. وَالعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ العِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ، وَهُوَ قَوْلُ مَالِكِ بْنِ أَنَسٍ. وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: إِنَّمَا يُقْتَلُ السَّاحِرُ إِذَا كَانَ يَعْمَلُ فِي سِحْرِهِ مَا يَبْلُغُ بِهِ الكُفْرَ. فَإِذَا عَمِلَ عَمَلًا دُونَ الكُفْرِ. فَلَمْ نَرَ عَلَيْهِ قَتْلًا. (1)

**ترجمه** دجندب رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دجادوګر سزا په توره ختې وهل دي

امام ترمذي وايي دا حديث دحسن نه هم مروي دي او صحيح خبره داده چي دجندب نه موقوفا مروي دي دا حديث مونږ ته صرف په همدي سند مرفوع رارسيدلي دي. او اسماعيل بن مسلم مکي دحفظ په اعتبار په حديث بيانولو کي ضعيف دي او اسماعيل بن مسلم عبدي او بصري دوکيع په نزد ثقه دي ، په صحابه کرامو کي دبعضي اهل علمو او ددوی نه وروسته دبعضي فقهاؤ په دي باندي عمل دي او دمالك بن انس هم دا قول دي. امام شافعي واني کله چي دجادوګر جادو دکفر حد ته ورسيږي نو دي به قتل کولي شي او کله چي دکفر حد ته نه وي رسيدلي نو مونږ په دي پوهيږو چي دده قتل کول پکار نه دي

**تشريح: دسحر دحرمت دتغليظ بيان**

قَالَ اللهُ تَعَالَى: ﴿وَمَا كَفَرَ سُلَيْمَانُ وَلَكِنَّ الشَّيَاطِينَ كَفَرُوا يُعَلِّمُونَ النَّاسَ السِّحْرَ﴾ [البقرة:١٠٢].

اوکفر نه وو کړي سليمان عليه السلام (يعني سليمان عليه السلام سحر نه وو کړي چي ورباندي کافر شوي وي) ليکن شيطانانو کفر کړي ووچي ښودلو به يي خلقوته جادو.

يهوديانو به دا وئيل چي سليمان عليه السلام دجادو په زور حکومت کوي يعني دالله رسول نه دی نو ددي په جواب کې الله تعالي اوفرمائيل سليمان عليه السلام جادو نه کولو ځکه چي جادو کول کفر دی او دالله يو نبي کفر نشي کولی جادو هغه کار ته وئيلی شي په کوم کې چي شيطانان خوشحاله کړی شي او دهغوی مدد حاصل کړی شي. دشيطان دخوشحالولو مختلف صورتونه دي کله کله پکې داسي دمونه وئيلی شي چي په هغي کې دکفر او شرك کلمات وي او کله پکې دشيطانانو تعريف وي يا هر هغه غلط کار وي په کوم چي شيطان خوشحاليږي او دا ټول کارونه هرګز يو نبي نشي کولی او په هر جادو کې چي دايمان خلاف اقوال او اعمال اختيار کړی شوي وي هغه کفر دی نو داسي جادو زده کول او چاته کول حرام هم دي او په دي عمل کول هم حرام دي او که دمسلمان نه دضرر لري کولو دپاره په قدر دضرورت زده کړی شي نو ددي بعضي علماؤ اجازت ورکړی دی.

---

1 _ تفرد بهٖ کره المؤلف (تحفة الأشراف: ٣٢٦٩)

دسحر وجود داهل سنت په نزد باندي حق دي ليکن پدي باندي عمل کول کفر دي اوشيخ ابومنصور فرمائي چي مطلقا داسي وئيل سحر کفر دي درسته خبره نده بلکه ديته کتل پکاردي چي ددي حقيقت څه دي که چري پدي کې داسي خبره وي چي دهغي په وجه دکومي شرعي خبري ترديد کيږي نوبياخامخا کفر دي اوکه داسي نوي نو کفرندي ، علامه بغوي وئيلي دي چي دامام شافعي نه منقول دي چي دسحر تاثيرات عجيبه دي خلاف واقع لره مختل کوي تندرست لره مريض کوي اوډير کرته ددي اثر ترمرګه پوري رسيږي ترڅو چي که څوک چالره ددي په ذريعه قتل کړي نوقصاص به ورباندي واجب وي ، دامام شافعي ددي قول نه داهم معلوميږي چي دسحر بعضي حصه کفردي اوبعضي ندي او په مدارك کې دي کوم سحر چي کفردي که چري څوك سړي يي ازده کړي نوداحنافوپه نزد باندي واجب القتل دي اوکه ښځه يي ازده کړي نو نه به شي قتل کولي اودمرتد په باره کې هم داحکم دي . اوکوم سحر چي کفر ندي ليکن داسي وي چي پدي باندي څوك هلاکيدي شي نودداسي ساحرانوحکم د قطاع الطريق دي پدي کې ښځه اوسړي برابر دي دواړوته دي سزا ورکړي شي اوکه چري ساحر توبه وباسي نوتوبه به يي قبول وي برابره خبره ده چي سحر يي دکفر والاوي اوکه نه وي ، اوچاچي وئيلي دي چي دساحر توبه مقبول نده نوهغوئ غلط شوي دي اوګورئ دفرعون دساحرانو توبه قبول شوه اوحال دادي چي هغوئ کافران وو .

***************

## ٢٨_ باب مَا جَاءَ فِي الْغَالِّ مَا يُصْنَعُ بِهِ

### په غنيمت کي دخيانت کونکي سره څه کول پکاردي

١٤٦١_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَمْرٍو السَّوَّاقُ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ مُحَمَّدٍ، عَنْ صَالِحِ بْنِ مُحَمَّدِ بْنِ زَائِدَةَ، عَنْ سَالِمِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، عَنْ عُمَرَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " مَنْ وَجَدْتُمُوهُ غَلَّ فِي سَبِيلِ اللَّهِ، فَاحْرِقُوا مَتَاعَهُ ". قَالَ صَالِحٌ: فَدَخَلْتُ عَلَى مَسْلَمَةَ، وَمَعَهُ سَالِمُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، فَوَجَدَ رَجُلًا قَدْ غَلَّ، فَحَدَّثَ سَالِمٌ بِهَذَا الْحَدِيثِ، فَأَمَرَ بِهِ فَأُحْرِقَ مَتَاعُهُ، فَوُجِدَ فِي مَتَاعِهِ مُصْحَفٌ، فَقَالَ سَالِمٌ: بِعْ هَذَا وَتَصَدَّقْ بِثَمَنِهِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا الْحَدِيثُ غَرِيبٌ، لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ هَذَا الْوَجْهِ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ الْعِلْمِ، وَهُوَ قَوْلُ الْأَوْزَاعِيِّ، وَأَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ، قَالَ: وَسَأَلْتُ مُحَمَّدًا عَنْ هَذَا الْحَدِيثِ، فَقَالَ: إِنَّمَا رَوَى هَذَا صَالِحُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ

زَائِدَةَ وَهُوَ: أَبُو وَاقِدٍ اللَّيْثِيُّ، وَهُوَ مُنْكَرُ الحَدِيثِ، قَالَ مُحَمَّدٌ: وَقَدْ رُوِيَ فِي غَيْرِ حَدِيثٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الغَالِّ، فَلَمْ يَأْمُرْ فِيهِ بِحَرْقِ مَتَاعِهِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ. (1)

**ترجمه**: دعمر رضي الله عنه نه روايت دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي كوم كس چي دالله په لاره كي په څه مال كي دخيانت كولو په حال كي اووينى نو دده سامانونه اوسوزوئ، صالح وائي زه مسلمه ته ورغلم او دهغه سره سالم بن عبدالله ناست وو دي وخت كي مسلمه يو داسي كس اوموندلو چاچي دغنيمت په مال كي خيانت كړي وو چنانچي سالم هغه ته دا حديث بيان كړو نو مسلمه حكم اوكړو او بيا دهغه خائن سامانونه اوسوزولي شول. او په دي سامان كي يو مصحف هم اوموندلي شو سالم اووئيل دا خو بچ كړئ او قيمت يي صدقه كړئ.

امام ترمذي وايي داحديث غريب دي دا مونږ ته صرف په همدي سند رارسيدلي دي ما دامام بخاري نه ددي حديث په باره كي تپوس اوكړو نو هغه اووئيل دا حديث صالح بن محمد بن زائده نقل كړي دي او همدا ابوواقد ليثي دي كوم چي منكر الحديث دي، امام بخاري وائي غنيمت په مال كي دخيانت كولو په سلسله كي دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه نور احاديث هم مروي دي او رسول الله په دي احاديثو كي دخائن دسامان سوزولوحكم نه دي كړي. دبعضي اهل علمو په همدي باندي عمل دي ، اوزواعي، احمد ، اسحاق هم ددي قائل دي.

ابن مسعود او ابن عمر او انس رضي الله عنهم نه روايت دى چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دقيامت په ورځ به دهر وعده خلاف سره جنډه وي ويلى به شي چي دا دفلاني دغدارئ جنډه ده (يعني پوره تشهير به يى كولى شي) اوشرمولى به شي چي دا غدارذى.

د "غادر" نه مراد عهد لره دكولو نه پس ماتول دي دحديث خلاصه داده چي دقيامت په ورځ به دوكه باز ته يو جهنډه وركړى شي ددي دپاره چي مزيد نور هم رسوا شي او دده دمعاملي نقصانات هر چاته ښكاره شي او خلق يي په مجمع عام كي په دوكه باز اوپيژني.

***************

## ٢٩_ بَاب مَا جَاءَ فِيمَنْ يَقُولُ لآخَرَ يَا مُخَنَّثُ

### چاته دهيجرا وئيلو څه حكم دي

١٤٦٢_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ رَافِعٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي فُدَيْكٍ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ بْنِ إِسْمَاعِيلَ بْنِ أَبِي حَبِيبَةَ، عَنْ دَاوُدَ بْنِ الحُصَيْنِ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "إِذَا قَالَ

---

1 _ سنن ابي داود_ الجهاد ١٣٥ (٢٧١٣) . (تحفة الأشراف : ٦٧٦٣) . سنن الدارمي_ السير ٢٩ (٢٥٣٧)

الرَّجُلُ لِلرَّجُلِ: يَا يَهُودِيُّ، فَاضْرِبُوهُ عِشْرِينَ، وَإِذَا قَالَ: يَا مُخَنَّثُ، فَاضْرِبُوهُ عِشْرِينَ، وَمَنْ وَقَعَ عَلَى ذَاتِ مَحْرَمٍ، فَاقْتُلُوهُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ هَذَا الْوَجْهِ، وَإِبْرَاهِيمُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ يُضَعَّفُ فِي الْحَدِيثِ، وَقَدْ رُوِيَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ رَوَاهُ الْبَرَاءُ بْنُ عَازِبٍ، وَقُرَّةُ بْنُ إِيَاسٍ الْمُزَنِيُّ، أَنَّ رَجُلًا تَزَوَّجَ امْرَأَةَ أَبِيهِ، فَأَمَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِقَتْلِهِ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَصْحَابِنَا، قَالُوا: مَنْ أَتَى ذَاتَ مَحْرَمٍ وَهُوَ يَعْلَمُ فَعَلَيْهِ الْقَتْلُ، وَقَالَ أَحْمَدُ: مَنْ تَزَوَّجَ أُمَّهُ قُتِلَ، وَقَالَ إِسْحَاقُ: مَنْ وَقَعَ عَلَى ذَاتِ مَحْرَمٍ قُتِلَ. [1]

**ترجمه** : دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه روايت دي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي كله چي يو كس بل كس ته اي يهودي اووائي او په دي اواز يي راوبلي نو داسي كس شل كوړي اووهئ او كله چي څاته دهيجړا په نوم اواز اوكړي نو دي هم شل كوړي اووهئ او څوك چي دكومي محرمي سره زنا اوكړي هغه لره قتل كړئ.

امام ترمذي وايي داحديث صرف په همدي سند رارسيدلي دي، ابراهيم بن اسماعيل په روايت دحديث كي ضعيف دي او داحديث دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه په يو څو نورو سندونو هم مروي دي، دبراء بن عازب او قره بن اياس مزني نه روايت دي چي يو خل يو كس دخپل پلار دښځي سره نكاح كړي وه نو نبي كريم صلي الله عليه وسلم دهغه دقتل كولو حكم اوكړو زمونږ دفقهاؤ په همدي باندي عمل دي دوئ وائي څوك چي دپوهيدوباوجود دكومي محرمي سره زنا اوكړي نو دهغه قتل واجب دي امام احمد وائي څوك چي دمور سره نكاح اوكړي هغه به قتل كولي شي او اسحاق بن راهويه وائي څوك چي دكوم محرم سره زنا اوكړي هغه به قتل كولي شي.

**تشريح:** **دمسلمانانو دسپكاوي كولو دحرمت بيان**

قَالَ اللهُ تَعَالَى: ﴿ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا يَسْخَرْ قَوْمٌ مِنْ قَوْمٍ عَسَى أَنْ يَكُونُوا خَيْرًا مِنْهُمْ وَلَا نِسَاءٌ مِنْ نِسَاءٍ عَسَى أَنْ يَكُنَّ خَيْرًا مِنْهُنَّ وَلَا تَلْمِزُوا أَنْفُسَكُمْ وَلَا تَنَابَزُوا بِالْأَلْقَابِ بِئْسَ الِاسْمُ الْفُسُوقُ بَعْدَ الْإِيمَانِ وَمَنْ لَمْ يَتُبْ فَأُولَئِكَ هُمُ الظَّالِمُونَ ﴾ [الحجرات: ١١].

اي مومنانو مسخري دي نه كوي يوقوم په بل قوم پوري كيدي شي چي دوئ دهغوئ نه بهتر وي اونه دي زنانه په نورو زنانوو پوري مسخري كوي كيدي شي چي دوئ دهغوئ نه غوره وي اواشاري مه كوئ خپلو نفسونو ته اونه به ويشتل كوئ په لقبونو سره ډير بد دي نوم دگناه پس دايمان نه اوكه څوك ددي عمل نه توبه نه اوباسي يقينا چي دوئ به ظالمان وي.

---

[1] ـ سنن ابن ماجه ـ الحدود ١٥ (٢٥٦٨). (تحفة الأشراف: ٦٠٨٥)

په پورتني ايت کې د دري کارونونه منع راغلي ده:

اول: لايسخر قوم من قوم: په چا پوري خاندل منع دي علامه قرطبي وائي چي دچا دتحقير او توهين دپاره دهغه عيوب ذکرکول چي خلق ورپوري اوخاندي ديته استهزاء وئيلى شي دا دژبي نه علاوه په لاس او خپو دهغه دنقل کولويا اشاري کولو سره هم کيدى شي دا ټول حرام دي همدارنګي دچا په وړاندي دچا تذکره کول په داسي شان سره چي خلق ورپوري اوخاندي دا هم حرام دي.

دډير اهتمام په وجه سري دأستهزاء کولو نه منع کړى شوي دي اګر چي ښځي هم په دي کې داخل دي خو ددي باوجود يي ښځي جدا بيان کړي او علت په دواړو کې دا بيان شوى دى چي په چا پوري ټوقي کيږي ممکن ده چي دا دالله په نظر کې بهتر وي.

د ابن مسعود رضي الله عنه بيان دى که چري زه په کوم سپي پوري استهزاء اوکړم نو ماسره دا يره شته چي چرته زه سپى جوړ نشم.

دويم: ولاتلمزوا انفسکم . يعني په چاکې عيب لټول يا طعن کول انفسکم يي اوفرمائيل مطلب دادى چي تاسو عيبونه مه لټوئ ځکه چي دعيب نه هيڅوك خالي نه دي که چري تاسو په چا کې عيب پيدا کړئ نو هغه به په تاسو کې عيب لټول شروع کړي دويمه خبره داده چي خپل ورور ذليل کولو کې دخپل ځان تذليل او تحقير مضمر دى.

دريم: ولا تنابزوا بالالقاب: يعني چاته په بد لقب اواز مه ورکوئ داسي لقب په کوم چي هغه خفه کيږي اګر چي هغه عيب په هغه کې موجود ولي نه وي مثلا چاته داسي اواز کول اى ګوډا.

دابن عباس رضي الله عنهما بيان دى دپورتني ايت مطلب دادى چي کوم کس دکومي ګناه ارتکاب اوکړي او بيا ورنه توبه اوباسي او بيا هغه دبد عمل په نوم ياد کړى شي مثلا اى غله اى زناکاره اى شرابي اګر چي ده دا کار کړى وو خو بيايي توبه ويستلي ده.

***************

## ۳۰_ باب مَا جَاءَ فِي التَّعْزِيرِ

### دتعذير (دتاديبي سزا ورکولو) بيان

۱٤٦٣_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي حَبِيبٍ، عَنْ بُكَيْرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الأَشَجِّ، عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ يَسَارٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ أَبِي بُرْدَةَ بْنِ نِيَارٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا يُجْلَدُ فَوْقَ عَشْرِ جَلَدَاتٍ، إِلَّا فِي حَدٍّ مِنْ حُدُودِ اللَّهِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ، لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ بُكَيْرِ بْنِ الأَشَجِّ، وَقَدِ اخْتَلَفَ أَهْلُ

الْعِلْمِ فِي التَّعْزِيرِ، وَأَحْسَنُ شَيْءٍ رُوِيَ فِي التَّعْزِيرِ، هَذَا الْحَدِيثُ، قَالَ: وَقَدْ رَوَى هَذَا الْحَدِيثَ ابْنُ لَهِيعَةَ، عَنْ بُكَيْرٍ، فَأَخْطَأَ فِيهِ، وَقَالَ: عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَهُوَ خَطَأٌ، وَالصَّحِيحُ حَدِيثُ اللَّيْثِ بْنِ سَعْدٍ، إِنَّمَا هُوَ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ أَبِي بُرْدَةَ بْنِ نِيَارٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. [1]

**ترجمه** : دابو برده بن نيار بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي يو كس ته دلسو كوړو نه زياته سزا وركول نه دي پكار مګر په هغه وخت كي پكار دي كله چي په هغه باندي دالله تعالي په حدودو كي يو حد جاري كوي.

امام ترمذي وايي دا حديث حسن غريب دي دا مونږ ته صرف دبكير بن اشج په سند رارسيدلي دي دتعذير په سلسله كي داهل علمو اختلاف دي او دتعذير په باب كي دا حديث دټولو نه بهتر دي، داحديث ابن لهيعه دبكير نه نقل كړي دي ليكن دهغه نه په دي سند كي غلطي شوي ده او سند يي داسي بيان كړي دي عن عبدالرحمن بن جابر بن عبدالله عن ابيه عن النبي صلي الله عليه وسلم او حال دادي چي دا سند غلط دي صحيح سند دليث بن سعد دي او دهغه سند داسي دي عبدالرحمن بن جابر بن عبدالله عن ابي بردة بن نيار عن النبي صلي الله عليه وسلم.

***************

# كتاب الصيد والذبائح عن رسول الله صلى الله عليه وسلم

## دښكار احكام او مسائل

### دښكار تعريف او شرعي حيثيت

د "صيد" لفظدوه معاني دی:

(۱) ښكار كول.

(۲) هغه ځاروي كوم چي ښكار كړي شي.

ښكار كول جائز فعل دي خو شرط دا دي چي ښكار كونكي د احرام په حالت كي نه وي او په حرم كي ښكار اونكړي.

---

[1] _ اخرجه البخاري في الصحيح_ الحدود ۴۲ (۶۸۴۸) . صحيح مسلم_ الحدود ۹ (۱۷۰۸) . سنن ابي داود_ الحدود ۳۹ (۴۴۹۱) . سنن ابن ماجه_ الحدود ۳۲ (۲۶۰۱) . (تحفة الأشراف : ۱۱۷۲۰) . و احمد في المسند (۳_ ۴۶۶) . سنن الدارمي_ الحدود ۱۱ (۲۳۶۰)

د ښکار په اباحت باندې اجماع منعقد شوې ده، او ښکار کول د مزدورئ کولو يوه طريقه هم ده او جائز دي.
دښکار د جواز پنځلس شرطونه دی،په دې کي پنځه هغه دی چي دهغې تعلق ښکار کونکی سره دې، او پنځه شرطونه هغه دی چي د هغې تعلق سپی سره دې ، او پنځه شرطونه هغه دی کوم چي په ښکار کي دي
دکومو پنځه شرطونو تعلق چي د ښکار کونکي سره دی هغه دا دی:
(۱) د ذکاة (ذبح) اهل وی.
(۲)دده د طرفه ليګل اومونډې شی.
(۳) دده سره په ليګلو کي داسې کس شريك نه وی چي د هغه ښکار حلال نه دې.
(۴) په قصد سره ئې تسميه (بسم الله) نه وی پريخودې.
(۵) د ليګلو او نيولو په منځ کي بل څه کار کي نه وی مشغول شوې.
دکومو پنځه شرطونو تعلق چي د سپي سره دی هغه دا دی:
(۱) سپې معلم وی.
(۲)سپې ئې چي په کومه طريقه (او رفتار) باندې پريخودې وی،هم په هغه طريقه باندې روان شی.
(۳) په ښکار نيولو کې دده سره داسې سپې نه وی شريك شوې .
(۴) سپې ښکار زخمی کړی،داسې نه چي پخپل بوج سره ئې مړ کړی.
(۵) سپې ددې نه هيڅ او نخوری.
دکومو پنځه شرطونو تعلق چي د ښکار سره دی هغه دا دی:
(۱) ښکار به د حشرات الارض دقبيلي نه نه وی.
(۲) د کب (ماهي) نه علاوه بل څه دريابی څناور نه وی.
(۳) دا ښکار داسې وی چي هغه پخپلو لاسو نو او پنجويا ښکرو (وغيره) سره د خپل ځان حفاظت کونکې وی.
(۴) داسې څناور نه وی چي هغه پخپلو غاښو نو سره شلول کوي او خوری،يا پخپلو پنجو سره راشوکه وي او خوری لکه باښه، باز او لکه شرمخ، زمرې.
(۵) دا د ذبح کولو پورې په لاس نه وی راغلې بلکه د ښکاری څناور په زخمی کولو سره مړ شوې وی نوهله په لاس راغلې وی نوکه دا په لاس راغې نواوس د ذبح نه بغير حلال نه دې.
خلاصه د کلام دا ده چي اصل کي پخپل لاس سره ذبح کول لازم دي او کله چي اختياری ذبح ممکن نه وی نواضطراری ذبيحه به په ذريعه د غشي او ښکاری څاروی هلاکولو سره حلال وی نوکله چي ده ښکاری څناور پريخودواو ده اونيولواو مالك ورته اورسيدو حالانکه اوسه

پورې ښکار ژوندي دې نواوس په ده باندې اختياری ذبح کول واجب دی،تردې که دا مړ شواو ده ذبح نکړو نومردار شو.(عنايه شرح هدايه وغيره)

## ١_ بَاب مَا جَاءَ مَا يُؤْكَلُ مِنْ صَيْدِ الْكَلْبِ وَمَا لَا يُؤْكَلُ

## دسپي دکوم ښکار خوړل درست دي او دکوم درست نه دي

١٤٦٤_ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، حَدَّثَنَا الْحَجَّاجُ، عَنْ مَكْحُولٍ، عَنْ أَبِي ثَعْلَبَةَ. ح وَالْحَجَّاجُ، عَنِ الْوَلِيدِ بْنِ أَبِي مَالِكٍ، عَنْ عَائِذِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، أَنَّهُ سَمِعَ أَبَا ثَعْلَبَةَ الْخُشَنِيَّ، قَالَ: قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنَّا أَهْلُ صَيْدٍ، قَالَ: "إِذَا أَرْسَلْتَ كَلْبَكَ، وَذَكَرْتَ اسْمَ اللَّهِ عَلَيْهِ، فَأَمْسَكَ عَلَيْكَ فَكُلْ"، قُلْتُ: وَإِنْ قَتَلَ، قَالَ: "وَإِنْ قَتَلَ"، قُلْتُ: إِنَّا أَهْلُ رَمْيٍ قَالَ: "مَا رَدَّتْ عَلَيْكَ قَوْسُكَ فَكُلْ". قَالَ: قُلْتُ: إِنَّا أَهْلُ سَفَرٍ نَمُرُّ بِالْيَهُودِ، وَالنَّصَارَى، وَالْمَجُوسِ، فَلَا نَجِدُ غَيْرَ آنِيَتِهِمْ، قَالَ: "فَإِنْ لَمْ تَجِدُوا غَيْرَهَا، فَاغْسِلُوهَا بِالْمَاءِ، ثُمَّ كُلُوا فِيهَا، وَاشْرَبُوا". قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ عَدِيِّ بْنِ حَاتِمٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَعَائِذُ اللَّهِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ هُوَ: أَبُو إِدْرِيسَ الْخَوْلَانِيُّ، وَاسْمُ أَبِي ثَعْلَبَةَ الْخُشَنِيِّ: جُرْثُومٌ، وَيُقَالُ: جُرْثُمُ بْنُ نَاشِبٍ، وَيُقَالُ: ابْنُ قَيْسٍ. [1]

**ترجمه** : دابوثعلبه خشني بيان دي چې ما عرض اوکړو اې دالله رسوله مونږ ښکاريان خلق يو دښکار احکام راته اوښايه رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل کله چې په ښکار پسې سپي پرېږدې او دالله نوم يعني بسم الله اووائي او بيا سپي ستاسو دپاره ښکار اونيسي نو دا خوړلي شې ما اووئيل اګر که ښکار يې وژلي وي؟ رسول الله اوفرمائيل هو، اګر که ښکار يې وژلي وي ما عرض اوکړو مونږ خو تيراندازان يو اکثر ښکار ته غشي اولو (ددې څه حکم دي) رسول الله اوفرمائيل کوم ښکار چې تاسو په غشي ويشتلي دي دا هم خوړلي شې ما عرض اوکړو مونږ سفرونه کوو او ديهودو او نصاري او مجوسيانو په کلو تيرېږو او ددوی دلوښو نه علاوه زمونږ سره نور لوښي نه وي نو ايا مونږ ددوی په لوښو کې خوراك کولي شو رسول الله اوفرمائيل که چرې تاسو ددېنه علاوه نور لوښي موندلي نشی نو دا په اوبو اووينځئ او بيا پکې خورئ او څکئ

[1] _ اخرجه البخاري في الصحيح_ الصيد ۴ (۵۴۷۸) . و ۱۰ (۵۴۸۸) . و ۱۴ (۵۴۹۶) . صحيح مسلم_ الصيد ۱ (۱۹۳۰) . و ۲ (۱۹۳۱) . سنن ابي داود_ الصيد ۲ (۲۸۵۵) . سنن النسائي_ الصيد ۴ (۴۲۷۱) . سنن ابن ماجه_ الصيد ۳ (۳۲۰۷) . (تحفة الأشراف : ۱۱۸۷۵) . واحمد في المسند (۴_ ۱۹۳، ۱۹۴، ۱۹۵) ويأتي في السير ۱۱ (۱۵۶۰) . وفي الأطعمة ۷ (۱۷۹۶)

امام ترمذي وايي دا حديث حسن صحيح دي په دي روايت کي دعدي بن حاتم رضي الله عنه نه هم روايت وارد دي او دابوثعلبه خشني نوم جرثوم دي هغه ته جرثم بن ناشب او جرثم بن قيس ورته هم وئيلي شي.
د سپی د معلم کيدو علامه داده چي دا درې خله ښکار او نخوری او دا د صاحبينو مذهب دې.
او د امام ابوحنيفه (رحمه الله) په دې کي دوه قوله دی يو هم دادې کوم چي د صاحبينو دې.
دويم قول يي دادې چي ددې هيڅ مقدار مقرر نه دي بلکه دا په رائې د مبتلا به باندې موقوف دې.
بهرحال د اولني مذهب دليل دادې که ده يو خل يا دوه خله خوراك پريخودلې وی نو په دې کي اوس هم ډير احتمالات دی چي کيدې شی د ګيډې د ډکوالی په وجه نې نه وی خوړلې البته کله چي ده درې خله پورې اونخوړله نو دا د عادت کيدو دليل دې او درېو ته په عادت معلومولو کي او په نورو عذرونو کي کافی دخل دې.
د درې خله خوراك پريخودو بل دليل فرمائی چي د يو علم علامت قليل نه کيدل بلکه کثير کيدل دی او جمع کثير ده قليل نه ده نود جمعې اقل افراد درې واخستلې شواو دا د علم علامت مقرر کړې شوې دې په مبسوط کي ذکر دی چي د امام صاحب مذهب دادې چي په دې کي د درېو خلو هيڅ حد نشته بلکه دا خو په رائې د مبتلا به باندې پريخودلې شوې دې ځکه چي مقاديرو کي قياسی حد بندياني کار نه ورکوی بلکه دلته کي نص ضروری دې او نص موجود نه دې نو دا به د امام صاحب د اصول مطابق په رائې د مبتلا به باندې پريخودې شی .(فتح القدير وغيره).

**دابوثعلبه خشني رضي الله عنه حالات**

دده په نوم کې اختلاف دی ليکن اکثرو علماؤ جرثوم ليکلی دی ابو ثعلبه يي کنيه ده داسلام په شروع کې مسلمان شوی وو او په صلح حديبيه کې درسول الله صلي الله عليه وسلم سره ملګری وو او په بيعت الرضوان کې هم شريك شوی وو رسول الله صلي الله عليه وسلم دی خپلې قبيلې ته ددعوت ورکولو دپاره ليږلی وو دده په کوشش سره ټوله قبيله مسلمانان اوګرځيدل او دشام فتح کيدو نه پس يي هلته اوسيدل شروع کړل په ژوند کې به يي اکثر وئيل چي ما خو دي الله ستاسو پشان په پوندو اونه وهي همداسي اوشول چي يوه شپه په مونځ ولاړ وو او دده يوي لور په خوب کې داسي اوليدل چي پلار يي وفات شوی دی نو هغه ديريدو په وجه راپاڅيده او اواز يي اوکړو ورته معلومه شوه چي هغه په مونځ ولاړ دی بيا يي يوه شيبه پس اواز اوکړو خو څه جواب ملاؤ نشو ګوري چي دسجدي په حالت کې ورنه روح ختلی دی دمروياتو تعداد يي ۴۰ دی چي درې په دي کې متفق عليه دي.

***************

١٤٦٥_ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا قَبِيصَةُ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ مَنْصُورٍ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ هَمَّامِ بْنِ الْحَارِثِ، عَنْ عَدِيِّ بْنِ حَاتِمٍ، قَالَ: قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنَّا نُرْسِلُ كِلَابًا لَنَا مُعَلَّمَةً، قَالَ: " كُلْ مَا أَمْسَكْنَ عَلَيْكَ ". قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، وَإِنْ قَتَلْنَ، قَالَ: " وَإِنْ قَتَلْنَ، مَا لَمْ يَشْرَكْهَا كَلْبٌ غَيْرُهَا ". قَالَ: قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنَّا نَرْمِي بِالْمِعْرَاضِ، قَالَ: " مَا خَزَقَ فَكُلْ، وَمَا أَصَابَ بِعَرْضِهِ فَلَا تَأْكُلْ ". حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوسُفَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ مَنْصُورٍ، نَحْوَهُ. إِلَّا أَنَّهُ قَالَ: وَسُئِلَ عَنِ الْمِعْرَاضِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [1]

**ترجمه** : دعدي بن حاتم بيان دي چي ما عرض اوکړو اي دالله رسوله مونږ اکثر په ښکار پسي تربيت يافته سپي بوځو او بيا يي په ښکار پسي پريږدو (ددي څه حکم دي) رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل کوم ښکار چي دي سپو ستاسو دپاره نيولي وي دا خورئ ما عرض اوکړو اي دالله رسوله اګر که دا ښکار يي وژلي وي رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل که دا يي وژلي وي نو هم حلال دي خو چي څو پوري ورسره دويم سپي شريك شوي نه وي عدي بن حاتم وائي ما عرض اوکړو اي دالله رسوله مونږ کله کله دڅړي په پلنوالي طرف ښکار کوو ددي څه حکم دي رسول الله اوفرمائيل کوم چي په تيره طرف اولګي هغه خورئ او کوم چي په پلنوالي طرف مړ شي دا مه خورئ په همدي سند ددي هم معني حديث مروي دي مګر په دي حديث کي "وسال عن المعراض" الفاظو ذکر راغلي دي.

امام ترمذي وايي دا حديث حسن صحيح دي.

## دعدي بن حاتم رضي الله عنه حالات

نوم عدي کنيه ابو طريق او دپلار نوم حاتم طايي وو چي دعدي په قبيله طئ يي حکم راني کوله داسلام دظهور په وخت کي عدي حکمران وو کله چي داسلام دائره وسيع کيدل شروع شول نو دی پريشان شو او داسلامي سيلاب دمخنيوي توان يي نه لرلو بل طرف ته دحکمرانئ

[1] _ اخرجه البخاري في الصحيح_ الوضوء ٣٣ (١٧٥) . والبيوع ٣ (٢٠٥٤) . والصيد ١ (٥٤٧٥) . و ٣ (٥٤٧٦) . و ٣ (٥٤٧٧) . و ٧ (٥٤٨٣) . و ٨ (٥٤٨٤) . و ٩ (٥٤٨٦) . و ١٠ (٥٤٨٧) . صحيح مسلم_ الصيد ١ (١٩٢٩) . سنن ابي داود_ الصيد ٢ (٢٨٤٧) . سنن النسائي_ الصيد ١ (٤٢٦٨) . و ٢ (٤٢٦٩) . و ٣ (٤٢٧٠) . و ٨ (٤٢٧٩) . و ٢١ (٤٣١٠) . سنن ابن ماجه_ الصيد ٣ (٣٢٠٨) . و ٥ (٣٢١٢) . و ٦ ٣٢١٣) . و ٧ (٣٢١٥) . (تحفة الأشراف : ٩٨٧٨) . و احمد في المسند (٤_ ٢٥٦) . ٢٥٧. ٢٥٨. ٣٧٧. ٣٨٠) . سنن الدارمي_ الصيد ١ (٢٠٤٥) ويأتي بأرقام (١٤٧١، ١٤٦٧)

په وجه داسلام په وړاندي يې سر ټيټول هم نه غوښتل خو بهر حال اسلامي فوځونه طئ قبيلې
طرف ته روان شول نو عدي په دغه وخت کې خپل تمام خاندان شام ته بوتلو (سيرت ابن هشام).
اتفاق دا وو چې صرف يوه رشته داره ورنه پاتې شوې وه او هغه ګرفتاره شوې وه. دې زنانه
رسول الله صلي الله عليه وسلم ته عرض اوکړو چې زما دخاوند راخلاصونکی هيڅوك نشته په
ماباندې احسان اوکړه او الله تعالي به په تا باندې احسان اوکړي رسول الله تپوس اوکړو
خلاصونکی څوك دی هغې اووئيل عدي رسول الله اوفرمائيل ايا هغه څوك يادوې څوك چې
دالله او درسول نه تختيدلی دی همدا مکالمه په دويمه ورځ بيا هم اوشوه او بيايې دعلي رضي
الله عنه د درخواست په بنا ازاد کړو او دډير اعزاز سره يې رخصت کړو نو په دې وجه عدي
متاثر شو او درسول الله په خدمت کې حاضر شو دراتلو نه پس رسول الله په يوه ګدئ کينولو او
پخپله په زمکه کيناستو او بيا ددينه پس عدي مسلمان شو او رسول الله صلي الله عليه وسلم
دوباره دخپلې قبيلې بنو طئ امير مقرر کړو (سيرت ابن هشام).
درسول الله صلي الله عليه وسلم دوفات نه پس چې کله خلق مرتد شول او د زکات ورکولو نه
يې انکار اوکړو نو دعدي قبيلې په کوشش سره زکات ادا کولو (استيعاب).
عدي به هميشه په اودس کې اوسيدلو او هيڅ کله ورته داقامت په وخت کې اودس ته ضرورت
نه دی پيښ شوی (الاصابه).
وفات. دوفات په وخت کې په کوفه کې موجود وو او هم دلته دهجرت په ۶۷ کال وفات شو
دمروياتو شمير يې ۶۶ دی چې شپږ متفق عليه دي دري صرف په بخاري کې دي او دوه په
مسلم کې دي (تهذيب الکمال).

**************

## ۲_ بَابُ مَا جَاءَ فِي صَيْدِ كَلْبِ الْمَجُوسِ

### دمجوسيانو دسپي دښکار بيان

۱٤٦٦_ حَدَّثَنَا يُوسُفُ بْنُ عِيسَى، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، حَدَّثَنَا شَرِيكٌ، عَنِ الحَجَّاجِ، عَنِ القَاسِمِ بْنِ أَبِي بَزَّةَ، عَنْ سُلَيْمَانَ اليَشْكُرِيِّ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: " نُهِينَا عَنْ صَيْدِ كَلْبِ المَجُوسِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ، لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ هَذَا الوَجْهِ، وَالعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَكْثَرِ أَهْلِ العِلْمِ، لَا يُرَخِّصُونَ فِي صَيْدِ كَلْبِ المَجُوسِ، وَالقَاسِمُ بْنُ أَبِي بَزَّةَ هُوَ: القَاسِمُ بْنُ نَافِعٍ المَكِّيُّ. [1]

---

[1] _ سنن ابن ماجه_ الصيد ۳ (۳۲۰۹)، (تحفة الأشراف: ۳۲۷۱)

**ترجمه** : دجابر بن عبدالله رضي الله عنه بيان دي فرمائي چي مونږ دمجوسيانو د سپي دښکار نه منع کړې شوي يو.

امام ترمذي وايي دا حديث حسن غريب دي او دا مونږ ته صرف په همدي سند رارسيدلي دي داکثر اهل علمو په همدي باندي عمل دي او دوئ دمجوسي دسپي دښکار اجازت نه ورکوي.

*******************

## ٣_ باب مَا جَاءَ فِي صَيْدِ الْبُزَاةِ

### دباز دښکار بيان

١٤٦٧_ حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ، وَهَنَّادٌ، وَأَبُو عَمَّارٍ، قَالُوا: حَدَّثَنَا عِيسَى بْنُ يُونُسَ، عَنْ مُجَالِدٍ، عَنِ الشَّعْبِيِّ، عَنْ عَدِيِّ بْنِ حَاتِمٍ، قَالَ: سَأَلْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ صَيْدِ الْبَازِي، فَقَالَ: "مَا أَمْسَكَ عَلَيْكَ فَكُلْ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ مُجَالِدٍ، عَنِ الشَّعْبِيِّ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ، لَا يَرَوْنَ بِصَيْدِ الْبُزَاةِ وَالصُّقُورِ بَأْسًا، وقَالَ مُجَاهِدٌ: الْبُزَاةُ هُوَ: الطَّيْرُ الَّذِي يُصَادُ بِهِ مِنَ الْجَوَارِحِ الَّتِي قَالَ اللهُ تَعَالَى وَمَا عَلَّمْتُمْ مِنَ الْجَوَارِحِ سورة المائدة آية ٤ فَسَّرَ الْكِلَابَ وَالطَّيْرَ الَّذِي يُصَادُ بِهِ، وَقَدْ رَخَّصَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ فِي صَيْدِ الْبَازِي، وَإِنْ أَكَلَ مِنْهُ، وَقَالُوا: إِنَّمَا تَعْلِيمُهُ إِجَابَتُهُ، وَكَرِهَهُ بَعْضُهُمْ، وَالْفُقَهَاءُ أَكْثَرُهُمْ قَالُوا: يَأْكُلُ وَإِنْ أَكَلَ مِنْهُ.[1]

**ترجمه** : دعدي بن حاتم رضي الله عنه نه مروي دي چي درسول الله صلي الله عليه وسلم نه مي دباز دښکار متعلق تپوس اوکړو وېي فرمائيل باز چي ستاسو دپاره کوم ښکار نيولي وي دا خوړلي شئ.

امام ترمذي وايي دا حديث مونږ ته صرف په همدي سند "عن مجالد عن الشعبي" رارسيدلي دي او داهل علمو په همدي باندي عمل دي او ددوئ په نزد دباز په ښکار کي څه خرج نشته دمجاهد قول دي باز هغه مرغئ ده په کومي چي ښکارکولي شي، او دا په هغه جوارح کي داخل دي دکوم ذکر چي الله تعالي په دي ايت کريمه "وماعلمتم من الجوارح" کي کړي دي مجاهد دجوارح تفسير په سپي او مرغئ کړي دي په کوم چي ښکار کولي شي، بعضي اهل علمو دباز دښکار دجواز اجازت ورکړي دي اګر که هغه دښکار نه خوراك هم کړي وي دوئ وائي چي دده دتعليم مطلب دادي چي دي کله ښکار پسي پريخودي شي نو دي حکم قبول

---

[1] _ سنن ابي داود_الصيد ٢ (٢٨٥١). (تحفة الأشراف: ٩٨٦٥)

کړي، مګر بعضي خلقودا مکروه ګڼلي دي ليکن اکثر فقهاء وائي باز چي دښکار نه خوراك اوکړي اګر که دهر ځاي نه يي خوراك کړي وي په دي کي څه حرج نشته.

**تشريح** کله چي ښکاری بسم الله اووئيله او خپل معلم سپی يا باز ئې پريخودواو سپی يا باز ښکار اونيولواو دا ئې زخمی کړواو ښکار مړ شونو ددې خوراك حلال دې څکه چي په دې باندې دعدی رضي الله عنه حديث دلالت کوی.

لکه څنګه چي چاړه وغيره د ذبح آله ده دغه شان سپی او باز هم د ذبح آله ده او ښکاره ده چي چاړه د استعمال نه بغير ذبح کول نه کوی تردې که چاړه پرته وی او چيلۍ په دې دپاسه پريوتله او ددې مرۍ کټ شوه نو دا ذبح نشوه څکه چي استعمال او نه موندې شودغه شان سپی او باز هم د ښکاری دپاره د ذبح آلې دی او آله د استعمال نه بغير کار نه کوی او په سپی او باز کي استعمال دادې چي دا په ښکار پسې پرېږدی نو ددې په ښکار پسې پريخودل داسې دی لکه غشي ويشتل او چاړه چلول نو لکه څنګه چي د چاړې چلولو په وخت او د غشي ويشتو په وخت تسميه ضروری ده دغه شان د سپی او باز پريخودو په وخت هم تسميه ضروری ده،که په وخت د ليګلو تسميه هيره شوه نو ښکار حلال دې او که په قصد سره ئې تسميه پريخودې وی نو ښکارحرام دې چي ددې تفصيل په کتاب الذبائح کي تير شوې دې.

***************

## ٤_ بَاب مَا جَاءَ فِي الرَّجُلِ يَرْمِي الصَّيْدَ فَيَغِيبُ عَنْهُ

### چي څوک ښکارپه غشي اوولي او بيا ښکارغائب شي نو ددي څه حکم دي

١٤٦٨_ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ، أَخْبَرَنَا شُعْبَةُ، عَنْ أَبِي بِشْرٍ، قَالَ: سَمِعْتُ سَعِيدَ بْنَ جُبَيْرٍ يُحَدِّثُ، عَنْ عَدِيِّ بْنِ حَاتِمٍ، قَالَ: قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللهِ، أَرْمِي الصَّيْدَ فَأَجِدُ فِيهِ مِنَ الْغَدِ سَهْمِي، قَالَ: " إِذَا عَلِمْتَ أَنَّ سَهْمَكَ قَتَلَهُ وَلَمْ تَرَ فِيهِ أَثَرَ سَبُعٍ فَكُلْ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ، وَرَوَى شُعْبَةُ هَذَا الْحَدِيثَ، عَنْ أَبِي بِشْرٍ، وَعَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ مَيْسَرَةَ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنْ عَدِيِّ بْنِ حَاتِمٍ مِثْلَهُ، وَكِلَا الْحَدِيثَيْنِ صَحِيحٌ، وَفِي الْبَاب، عَنْ أَبِي ثَعْلَبَةَ الْخُشَنِيِّ. (١)

---

[1] _ اخرجه البخاري في الصحيح_ الوضوء ٣٣ (١٧٥) . والبيوع ٣ (٢٠٥٤) . والصيد ١ (٥٤٧٥) . و ٣ (٥٤٧٦) . و ٣ (٥٤٧٧) . و ٤ (٥٤٨٣) . و ٨ (٥٤٨٤) . و ٩ (٥٤٨٦) . و ١٠ (٥٤٨٧) . صحيح مسلم_ الصيد ١ (١٩٢٩) . سنن ابي داود_ الصيد ٢ (٢٨٤٧)

**ترجمه** : دعدي بن حاتم رضي الله عنه بيان دي فرمائي چي ما عرض اوکړو اي دالله رسوله زه ښکار په غشي اوولم او بيا بله ورځ په ده کي خپل غشي بياموم (نو ددي څه حکم دي) رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل کله چي تاته معلومه شي چي ستا غشي ښکار ويشتلي دي او تاته په ښکار کي دکوم څناور دزخم اثر ښکاره نشي نو دا خوړلي شئ.

امام ترمذي وايي او دا حديث حسن صحيح دي، شعبه دا حديث دابويشر نه او عبدالملك بن ميسره دسعيد بن جبير نه او هغوئ دعدي بن حاتم نه روايت نقل کړي دي او دواړه روايتونه صحيح دي. او په دي باب کي دابوثعلبه خشني رضي الله عنه نه هم روايت وارد دي او داهل علمو په همدي باندي عمل دي.

## دعدي بن حاتم رضي الله عنه حالات

نوم عدي کنيه ابو طريق او دپلار نوم حاتم طايي وو چي دعدي په قبيله طئ يي حکم راني کوله داسلام دظهور په وخت کي عدي حکمران وو کله چي داسلام دائره وسيع کيدل شروع شول نو دی پريشان شو او داسلامي سيلاب دمخنيوي توان يي نه لرلو بل طرف ته دحکمرانئ په وجه داسلام په وړاندي يي سر ټيټول هم نه غوښتل خو بهر حال اسلامي فوجونه طئ قبيلي طرف ته روان شول نو عدي په دغه وخت کي خپل تمام خاندان شام ته بوتلو (سيرت ابن هشام).

اتفاق دا وو چي صرف يوه رشته داره ورنه پاتي شوي وه او هغه ګرفتاره شوي وه، دي زنانه رسول الله صلي الله عليه وسلم ته عرض اوکړو چي زما دخاوند راخلاصونکی هيڅوك نشته په ماباندي احسان اوکړه او الله تعالي به په تا باندي احسان اوکړي رسول الله تپوس اوکړو خلاصونکی څوك دی هغي اووئيل عدي رسول الله اوفرمائيل ايا هغه څوك يادوي څوك چي دالله او درسول نه تختيدلی دی همدا مکالمه په دويمه ورځ بيا هم اوشوه او بيايي دعلي رضي الله عنه د درخواست په بنا ازاد کړو او ددير اعزاز سره يي رخصت کړو نو په دي وجه عدي متاثر شو او درسول الله په خدمت کي حاضر شو دراتلو نه پس رسول الله په يوه ګدئ کينولو او پخپله په زمکه کيناستو او بيا ددينه پس عدي مسلمان شو او رسول الله صلي الله عليه وسلم دوباره دخپلي قبيلي بنو طئ امير مقرر کړو (سيرت ابن هشام).

درسول الله صلي الله عليه وسلم دوفات نه پس چي کله خلق مرتد شول او دزکواة ورکولو نه يي انکار اوکړو نو دعدي قبيلي په کوشش سره زکات ادا کولو (استيعاد).

---

سنن النسائي_الصيد ۱ (۴۲۶۸)، و۲ (۴۲۶۹)، و ۳ (۴۲۷۰)، و ۸ (۴۲۷۹)، و۲۱ (۴۳۱۰). سنن ابن ماجه_الصيد ۳ (۳۲۰۸)، و ۵ (۳۲۱۲)، و ٦ ۳۲۱۳)، و ۷ (۳۲۱۵). (تحفة الأشراف : ۹۸۷۸)، و احمد في المسند (۴_۲۵٦)، ۲۵۷، ۲۵۸، ۳۷۷، ۳۸۰). سنن الدارمي_الصيد ۱ (۲۰۴۵) ويأتي بأرقام (۱۴۷۱، ۱۴٦۷)

عدي به همیشه په اودس کې اوسیدلو او هیڅ کله ورته داقامت په وخت کې اودس ته ضرورت نه دی پیښ شوی (الاصابه).
وفات، دوفات په وخت کې په کوفه کې موجود وو او هم دلته دهجرت په ۶۷ کال وفات شو دمرویاتو شمیر یې ۶۶ دی چې شپږ متفق علیه دي دري صرف په بخاري کې دي او دوه په مسلم کې دي (تهذیب الکمال).

***************

## ٥ـ بَاب مَا جَاءَ فِيمَنْ يَرْمِي الصَّيْدَ فَيَجِدُهُ مَيِّتًا فِي الْمَاءِ

### کله چې څوک ښکار په غشي اوولي او بیا یې په اوبو کې مړ بیامومي (نو ددي څه حکم دي)

١٤٦٩ـ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ الْمُبَارَكِ، أَخْبَرَنِي عَاصِمٌ الأَحْوَلُ، عَنِ الشَّعْبِيِّ، عَنْ عَدِيِّ بْنِ حَاتِمٍ، قَالَ: سَأَلْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الصَّيْدِ، فَقَالَ: "إِذَا رَمَيْتَ بِسَهْمِكَ فَاذْكُرِ اسْمَ اللَّهِ، فَإِنْ وَجَدْتَهُ قَدْ قُتِلَ فَكُلْ، إِلاَّ أَنْ تَجِدَهُ قَدْ وَقَعَ فِي مَاءٍ، فَلاَ تَأْكُلْ، فَإِنَّكَ لاَ تَدْرِي الْمَاءُ قَتَلَهُ أَوْ سَهْمُكَ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.[1]

**ترجمه**: دعدي بن حاتم رضي الله عنه نه روایت دي فرمائي چې ما درسول الله صلی الله علیه وسلم نه دښکار متعلق تپوس اوکړو نو ویې فرمائیل ته پخپل غشي باندي په ښکار پسې دویشتلو په وخت کي دالله نوم (بسم الله) وایه بیا که ته دا مړ بیامومي نو خوړلی یې شي علاوه دهغه نه چې ته دا په اوبو کي بیامومي نو بیا یې مه خوره ځکه چې تاته معلومه نه ده چې دا اوبو وژلی دي او که ستا غشي وژلی دي.
امام ترمذي وايي دا حدیث حسن صحیح دي.

***************

## ٦ـ بَاب مَا جَاءَ فِي الْكَلْبِ يَأْكُلُ مِنَ الصَّيْدِ

### بیان دهغه ښکار چې سپي ورنه خوړل کړي وي

---

[1] ـ اخرجه البخاري في الصحيح ـ الوضوء ٣٣ (١٧٥)، والبيوع ٣ (٢٠٥٣)، والصيد ١ (٥٤٧٥)، و٣ (٥٤٧٦)، و٣ (٥٤٧٧)، و٧ (٥٤٨٣)، و ٨ (٥٤٨٤)، و ٩ (٥٤٨٦)، و ١٠ (٥٤٨٧)، صحيح مسلم ـ الصيد ١ (١٩٢٩)، سنن ابي داود ـ الصيد ٢ (٢٨٤٧)، سنن النسائي ـ الصيد ١ (٤٢٦٨)، و٢ (٤٢٦٩)، و ٣ (٤٢٧٠)، و ٨ (٤٢٧٩)، و ٢١ (٤٣١٠)، سنن ابن ماجه ـ الصيد ٣ (٣٢٠٨)، و ٥ (٣٢١٢)، و ٦ (٣٢١٣)، و ٧ (٣٢١٥)، (تحفة الأشراف: ٩٨٧٨)، و احمد في المسند (٤ـ ٢٥٦، ٢٥٧، ٢٥٨، ٣٧٧، ٣٨٠)، سنن الدارمي ـ الصيد ١ (٢٠٢٥) ويأتي بأرقام (١٤٧١ـ١٣٦٧)

۱۴۷۰_ حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ مُجَالِدٍ، عَنِ الشَّعْبِيِّ، عَنْ عَدِيِّ بْنِ حَاتِمٍ، قَالَ: سَأَلْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ صَيْدِ الكَلْبِ المُعَلَّمِ، قَالَ: " إِذَا أَرْسَلْتَ كَلْبَكَ المُعَلَّمَ، وَذَكَرْتَ اسْمَ اللَّهِ، فَكُلْ مَا أَمْسَكَ عَلَيْكَ، فَإِنْ أَكَلَ فَلَا تَأْكُلْ فَإِنَّمَا أَمْسَكَ عَلَى نَفْسِهِ ". قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، أَرَأَيْتَ إِنْ خَالَطَتْ كِلَابَنَا كِلَابٌ أُخَرُ، قَالَ: " إِنَّمَا ذَكَرْتَ اسْمَ اللَّهِ عَلَى كَلْبِكَ، وَلَمْ تَذْكُرْ عَلَى غَيْرِهِ ". قَالَ سُفْيَانُ: أَكْرَهُ لَهُ أَكْلَهُ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَالعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ العِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ، فِي الصَّيْدِ وَالذَّبِيحَةِ، إِذَا وَقَعَا فِي المَاءِ أَنْ لَا يَأْكُلَ. فَقَالَ بَعْضُهُمْ فِي الذَّبِيحَةِ: إِذَا قُطِعَ الحُلْقُومُ، فَوَقَعَ فِي المَاءِ فَمَاتَ فِيهِ، فَإِنَّهُ يُؤْكَلُ، وَهُوَ قَوْلُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ المُبَارَكِ، وَقَدِ اخْتَلَفَ أَهْلُ العِلْمِ فِي الكَلْبِ إِذَا أَكَلَ مِنَ الصَّيْدِ، فَقَالَ أَكْثَرُ أَهْلِ العِلْمِ: إِذَا أَكَلَ الكَلْبُ مِنْهُ فَلَا تَأْكُلْ، وَهُوَ قَوْلُ سُفْيَانَ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ المُبَارَكِ، وَالشَّافِعِيِّ، وَأَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ، وَرَخَّصَ بَعْضُ أَهْلِ العِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ، فِي الأَكْلِ مِنْهُ، وَإِنْ أَكَلَ الكَلْبُ مِنْهُ. ([1])

**ترجمه** دعدي بن حاتم رضي الله عنه نه مروي دي چي ما درسول الله صلي الله عليه وسلم نه د روزلي شوي ښكاري سپي په باره كي تپوس اوكړو نو ويي فرمائيل كله چي ته خپل روزلي شوي سپي په ښكار پسي ليږي نو ددي د ليږلو په وخت كي دالله نوم (بسم الله) اخله بيا چي دا سپي تاته هر يو ښكار راوړي هغه خوره او كه سپي ورنه خوراك كړي وي نو بيا به يي نه خوري خكه چي ده دا ښكار دخان دپاره نيولي دي ما عرض اوكړو اي دالله رسوله ستا څه خيال دي كه چري زمونږ دسپي سره بل سپي شريك شي رسول الله اوفرمائيل تا خو پخپل سپي دالله نوم (بسم الله) ونيلي ده او په بل سپي خو دي نه ده ونيلي، سفيان ثوري وائي نو په دي وجه رسول الله صلي الله عليه وسلم دداسي ښكار خوړل درست اونه ګڼړل

امام ترمذي وايي دذبيحه او ښكار په سلسله كي دبعضي صحابه كرامو او بعضي نورو اهل علمو په همدي باندي عمل دي چي كله ښكار په اوبو كي پريوخي نو ددينه به نه خوري او

[1] _ اخرجه البخاري في الصحيح_ الوضوء ۳۳(۱۷۵) . والبيوع ۳(۲۰۵۴) . والصيد ۱(۵۴۷۵) . و ۲(۵۴۷۶) . و ۳(۵۴۷۷) . و ۷(۵۴۸۳) . و ۸(۵۴۸۴) . و ۹(۵۴۸۶) . و ۱۰(۵۴۸۷) . صحيح مسلم_ الصيد ۱(۱۹۲۹) . سنن ابي داود _ الصيد ۲(۲۸۴۷) . سنن النسائي_ الصيد ۱(۴۲۶۸) . و ۲(۴۲۶۹) . و ۳(۴۲۷۰) . و ۸(۴۲۷۹) . و ۲۱(۴۳۱۰) . سنن ابن ماجه_ الصيد ۳(۳۲۰۸) . و ۵(۳۲۱۲) و ۶ (۳۲۱۳) . و ۷(۳۲۱۵) . (تحفة الأشراف : ۹۸۷۸) . و احمد في المسند(۴_۲۵۶) . ۲۵۷. ۲۵۸. ۳۷۷. ۳۸۰) . سنن الدارمي_ الصيد ۱(۲۰۴۵) ويأتي بأرقام (۱۴۷۱،۱۴۶۷)

بعضي اهل علم دذبيحه باره كي وائي كله چي ددي ځنې پري كړي شي او بيا په اوبو كي پريوځي او مړ شي نو ددي خوړل به جائز وي دعبدالله بن مبارك هم دا قول دي او داهل علمو په دي مسئله كي چي كله سپي دښكار نه خوراك كړي وي اختلاف دي اكثر اهل علم وائي كله چي سپي دښكار نه خوراك كړي وي نو تاسو به يي نه خورئ سفيان ثوري، عبدالله بن مبارك، شافعي، احمد، او اسحاق بن راهويه رحمهم الله هم په دي باندي قول كړي دي، مگر په صحابه كرامو كي بعضي اهل علمو او ددوئ نه پس بعضي نورا اهل علمو ددي دخوړلو اجازت وركړي دي اگر كه سپي ورنه خوړل كړي وي.

****************

## ٧_ بَابُ مَا جَاءَ فِي صَيْدِ الْمِعْرَاضِ

### دغشي په پلنو دښكار لګيدلو بيان

١٤٧١_ حَدَّثَنَا يُوسُفُ بْنُ عِيسَى، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، حَدَّثَنَا زَكَرِيَّا، عَنِ الشَّعْبِيِّ، عَنْ عَدِيِّ بْنِ حَاتِمٍ، قَالَ: سَأَلْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ صَيْدِ الْمِعْرَاضِ، فَقَالَ: " مَا أَصَبْتَ بِحَدِّهِ فَكُلْ، وَمَا أَصَبْتَ بِعَرْضِهِ فَهُوَ وَقِيذٌ ". حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ زَكَرِيَّا، عَنِ الشَّعْبِيِّ، عَنْ عَدِيِّ بْنِ حَاتِمٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَهُ، قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ صَحِيحٌ، وَالْعَمَلُ عَلَيْهِ عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ. [1]

**ترجمه** : دعدي بن حاتم رضي الله عنه نه مروي دي فرمائي چي ما دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه د بغير وزرو والا ښكار باره كي تپوس اوكړو نو ويې فرمائيل كوم چي تاسو په تيرو وژلي وي ددينه به خورئ او كوم چي تاسو په پلنو وژلي وي ددينه به نه خورئ او دا "وقيذ" دي په دي سند باندي ددي يو هم معني بل روايت هم مروي دي، امام ترمذي وائي دا حديث صحيح دي او داهل علمو په همدي باندي عمل دي.

****************

[1] _ اخرجه البخاري في الصحيح_ الوضوء ٣٣ (١٧٥) ، والبيوع ٣ (٢٠٥٤) ، والصيد ١ (٥٤٧٥) ، و ٢ (٦-٥٤) ، و ٣ (٥٤٧٧) ، و ٧ (٥٤٨٣) ، و ٨ (٥٤٨٣) ، و ٩ (٥٤٨٦) ، و ١٠ (٥٤٨٧) . صحيح مسلم_ الصيد ١ (١٩٢٩) . سنن ابي داود_ الصيد ٢ (٢٨٤٧) . سنن النسائي_ الصيد ١ (٤٢٦٨) ، و ٢ (٤٢٦٩) ، و ٣ (٤٢٧٠) ، و ٨ (٤٢٧٩) ، و ٢١ (٤٣١٠) . سنن ابن ماجه_ الصيد ٣ (٣٢٠٨) ، و ٥ (٣٢١٣) ، و ٦ (٣٢١٣) ، و ٧ (٣٢١٥) . (تحفة الأشراف : ٩٨٧٨) . و احمد في المسند (٤_ ٢٥٦) ، ٢٥٧، ٢٥٨، ٣٧٧، ٣٨٠) . سنن الدارمي_ الصيد ١ (٢٠٤٥) ويأتي بأرقام (١٤٧١، ١٤٦٧)

## ٨_ باب مَا جَاءَ فِي الذَّبِيحَةِ بِالْمَرْوَةِ

## په كانړي دذبحه شوي څاروي دخوړلو بيان

١٤٧٢_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى الْقُطَعِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الأَعْلَى، عَنْ سَعِيدٍ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنِ الشَّعْبِيِّ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ " أَنَّ رَجُلًا مِنْ قَوْمِهِ صَادَ أَرْنَبًا أَوِ اثْنَيْنِ فَذَبَحَهُمَا بِمَرْوَةٍ، فَعَلَّقَهُمَا حَتَّى لَقِيَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَأَلَهُ، فَأَمَرَهُ بِأَكْلِهِمَا ". قَالَ: وَفِي الْبَاب، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ صَفْوَانَ، وَرَافِعٍ، وَعَدِيِّ بْنِ حَاتِمٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَقَدْ رَخَّصَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ أَنْ يُذَكِّيَ بِمَرْوَةٍ، وَلَمْ يَرَوْا بِأَكْلِ الأَرْنَبِ بَأْسًا، وَهُوَ قَوْلُ أَكْثَرِ أَهْلِ الْعِلْمِ، وَقَدْ كَرِهَ بَعْضُهُمْ أَكْلَ الأَرْنَبِ، وَقَدِ اخْتَلَفَ أَصْحَابُ الشَّعْبِيِّ فِي رِوَايَةِ هَذَا الْحَدِيثِ، فَرَوَى دَاوُدُ بْنُ أَبِي هِنْدٍ، عَنِ الشَّعْبِيِّ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ صَفْوَانَ، وَرَوَى عَاصِمٌ الأَحْوَلُ، عَنِ الشَّعْبِيِّ، عَنْ صَفْوَانَ بْنِ مُحَمَّدٍ أَوْ مُحَمَّدِ بْنِ صَفْوَانَ، وَمُحَمَّدُ بْنُ صَفْوَانَ أَصَحُّ، وَرَوَى جَابِرٌ الْجُعْفِيُّ، عَنِ الشَّعْبِيِّ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، نَحْوَ حَدِيثِ قَتَادَةَ، عَنِ الشَّعْبِيِّ، وَيُحْتَمَلُ أَنَّ رِوَايَةَ الشَّعْبِيِّ عَنْهُمَا، قَالَ مُحَمَّدٌ: حَدِيثُ الشَّعْبِيِّ، عَنْ جَابِرٍ، غَيْرُ مَحْفُوظٍ. ([1])

**ترجمه** : دجابر بن عبدالله رضي الله عنهما نه روايت دي چي دده دقوم يو كس يوه يا دوه هسۍ ښكار كړي او په تيره كانړي يي ذبح كړي او زوړنده يي كړي تردي چي درسول الله صلي الله عيه وسلم سره يي ملاقات اوشو نو په دي باره كي يي ورنه تپوس اوكړو نو رسول الله صلي الله عليه وسلم ورته ددي په خوړلو حكم اوكړو.

امام ترمذي وايي ددي حديث په سند كي دشعبي دشاګردانو اختلاف دي دا حديث داود بن ابي هند په سند دشعبي عن محمد بن صفوان سره نقل كوي او عاصم الاحول يي په سند دشعبي عن صفوان بن محمد يا په سند د محمد بن صفوان سره نقل كوي (دصفوان بن محمد په ځاي محمد بن صفوان زيات صحيح دي) جابر جعفي هم دا روايت په سند دشعبي عن جابر بن عبدالله دقتاده دحديث هم معني نقل كوي ، ددي خبري احتمال دي چي دشعبي روايت د دواړو نه وي . امام بخاري واني دشعبي نه دجابر روايت غير محفوظ دي . او په دي باب كي دمحمد بن صفوان . رافع، او عدي بن حاتم نه هم روايت مروي دي، او بعضي اهل علمو په كانړي دځاروي ذبح كولو اجازت وركړي دي دوی واني دهسۍ په خوړلو كي څه حرج نشته او داكثرو اهل علمو هم دا قول دي مګر بعضي علماء دهسۍ خوړل مكروه ګڼړي.

---

[1] _ تفرد بذكره المؤلف (تحفة الأشراف: ٢٢٥٠)

****************

## ٩ـ باب مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ أَكْلِ الْمَصْبُورَةِ

### دتړلوپه حال کې په غشي وژلي شوي ځاروي خوړل حرام دي

١٤٧٣ـ حَدَّثَنَا أَبُو كُرَيْبٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحِيمِ بْنُ سُلَيْمَانَ، عَنْ أَبِي أَيُّوبَ الأَفْرِيقِيِّ، عَنْ صَفْوَانَ بْنِ سُلَيْمٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ، عَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ، قَالَ: " نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ أَكْلِ الْمُجَثَّمَةِ: وَهِيَ الَّتِي تُصْبَرُ بِالنَّبْلِ "، قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ عِرْبَاضِ بْنِ سَارِيَةَ، وَأَنَسٍ، وَابْنِ عُمَرَ، وَابْنِ عَبَّاسٍ، وَجَابِرٍ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي الدَّرْدَاءِ حَدِيثٌ غَرِيبٌ.[1]

**ترجمه** : دابوالدرداء رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم د "مجثمه" دخوړلو نه منع فرمائيلي ده، مجثمه هغه ځاروي يا مرغۍ ته وئيلي شي چي اوتړلي شي او بيا په غشي اوويشتلي شي تردي چي بيا مړه شي.

امام ترمذي وايي دابو الدرداء حديث غريب دي او په دي باب کي دعرباض بن ساريه، انس، ابن عمر، ابن عباس، جابر، او ابوهريره رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي.

****************

١٤٧٤ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى، غَيْرُ وَاحِدٍ، قَالُوا: حَدَّثَنَا أَبُو عَاصِمٍ، عَنْ وَهْبٍ أَبِي خَالِدٍ، قَالَ: حَدَّثَتْنِي أُمُّ حَبِيبَةَ بِنْتُ الْعِرْبَاضِ بْنِ سَارِيَةَ، عَنْ أَبِيهَا، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " نَهَى يَوْمَ خَيْبَرَ عَنْ لُحُومِ كُلِّ ذِي نَابٍ مِنَ السَّبُعِ، وَعَنْ كُلِّ ذِي مِخْلَبٍ مِنَ الطَّيْرِ، وَعَنْ لُحُومِ الْحُمُرِ الأَهْلِيَّةِ، وَعَنِ الْمُجَثَّمَةِ، وَعَنِ الْخَلِيسَةِ، وَأَنْ تُوطَأَ الْحَبَالَى حَتَّى يَضَعْنَ مَا فِي بُطُونِهِنَّ "، قَالَ مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى: سُئِلَ أَبُو عَاصِمٍ عَنِ الْمُجَثَّمَةِ، قَالَ: أَنْ يُنْصَبَ الطَّيْرُ، أَوِ الشَّيْءُ فَيُرْمَى، وَسُئِلَ عَنِ الْخَلِيسَةِ، فَقَالَ: الذِّئْبُ، أَوِ السَّبُعُ يُدْرِكُهُ الرَّجُلُ فَيَأْخُذُهُ مِنْهُ فَيَمُوتُ فِي يَدِهِ قَبْلَ أَنْ يُذَكِّيَهَا.[2]

**ترجمه** دعرباض بن ساريه رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم دخيبر دفتح په ورځ دهر داړو والاځناور چي دليوانو نه وي، او دپنجو والامرغو، او دکورنو خرو، او دمجثمه. او دخليسه دخوړلو نه منع فرمائيلي ده او رسول الله دحامله وينځي (کومه چي تازه دمسلمانانو په قيد کي راغلي وي) سره دهغه وخته پوري دجماع کولو نه منع فرمائيلي ده چي

---

[1] ـ تفرد بن كره المؤلف (تحفة الأشراف: ٢٣٥٠)

[2] ـ تفرد بن كره المؤلف ويأتي عنده برقم ١٥٦٣ (تحفة الأشراف: ٩٨٩٢). وانظر مسند احمد (٣ـ ١٢٧)

څو پوري دهغي ولادت نه وي شوي محمد بن يحیٰ وائي دابوعاصم نه دمجثمه په باره کي تپوس اوکړي شو نو ونيل يي چي يوه مرغۍ او يا يو بل څيز اوتړلي شي او بيا اوويستلي شي او بيا ورنه دخليفه باره کي تپوس اوکړي شو نو ونيل خليڅه هغه څاروي ته وائي کوم چي شرمخ يا کوم درنده اونيسي او بيا يي ورنه څوک سړي اوتختوي او بيا ددغه ځناور دذبح کولو نه مخکي هغه دده په لاس کي مړ شي.

## دعرباض بن ساريه رضي الله عنه حالات:

نوم عرباض کنيه ابو نجيح ده او دپلار نوم يي ساريه وو داصحاب صفه نه شميرلی شي دی پخپله وائي چي زه څلورم نمبر مسلمان يم او زما نه مخکې دري کسان په اسلام کې داخل شوي دي.

وفات: شام ته لاړو او بياحمس ته لاړو او هلته يي دژوند اخري ورځي تيري کړي چي دشاګردانو تعداد يي کافي ډير دی او ۷۵ روايات ورنه منقول دي ليکن ابن حزم ۳۱ ليکلي دي.

***************

١٤٧٥ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الْأَعْلَى، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، عَنِ الثَّوْرِيِّ، عَنْ سِمَاكٍ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يُتَّخَذَ شَيْءٌ فِيهِ الرُّوحُ غَرَضًا". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالْعَمَلُ عَلَيْهِ عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ.[1]

**ترجمه** : دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم ژوندي څيز لره دويشتلو دپاره دنخي جوړولو نه منع فرمائيلي ده.

امام ترمذي وايي دا حديث حسن صحيح دي او داهل علمو په همدي باندي عمل دي.

**لغات** : غرض: د "غ" او "ر" دواړو زور د نښه هغه شی کوم چي نښه ويشتو دپاره کيښودی شي، الاناء : لوخي، اعترض الشيء ، کوم شي خپل غرض ګرځول ، اغترض فلان : دځوان مړکيدل.

**تشريح** : يعني ځناور او مرغۍ دتړلونه پس نشانه کول او يشتل جائز نه دي او دا ممانعت په ډيرو احاديثو کې راغلی دی په پورتني حديث کې هم راغلي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم په داسي کس لعنت کړی دی څوک چي کوم ځناور لره اوتړي او نښانه يي کړي په دي باره کې ډير روايات وارد دي.

---

[1] ـ صحيح مسلم ـ الصيد ٢ (١٩٥٧) . سنن النسائي ـ الضحايا ٤١ (٤٤٤٨) . سنن ابن ماجه ـ الذبائح ١٠ (٣١٨٧) . (تحفة الأشراف: ٦١١٢) . و احمد في المسند (١ـ ٢١٦، ٢٧٣، ٢٨٠، ٢٨٥، ٣٤٠، ٣٤٥)

***************

## ١٠_ باب مَا جَاءَ فِي ذَكَاةِ الْجَنِينِ

### دمور په خيټه کې دموجود بچي دذبح کولو بيان

١٤٧٦_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، عَنْ مُجَالِدٍ. ح قَالَ: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ وَكِيعٍ، حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ غِيَاثٍ، عَنْ مُجَالِدٍ، عَنْ أَبِي الْوَدَّاكِ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " ذَكَاةُ الْجَنِينِ ذَكَاةُ أُمِّهِ ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ جَابِرٍ، وَأَبِي أُمَامَةَ، وَأَبِي الدَّرْدَاءِ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رُوِيَ مِنْ غَيْرِ هَذَا الْوَجْهِ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ، مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ، وَهُوَ قَوْلُ سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ، وَابْنِ الْمُبَارَكِ، وَالشَّافِعِيِّ، وَأَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ، وَأَبُو الْوَدَّاكِ اسْمُهُ: جَبْرُ بْنُ نَوْفٍ. (١)

**ترجمه** : دابوسعيد خدري رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دجنين دمور ذبح کيدل دجنين دذبح کولو دپاره کافي دي.

امام ترمذي وايي دا حديث حسن صحيح دي او دا ددي سند نه علاوه په بل سند هم دابوسعيد خدري نه مروي دي، په دي باب کې دجابر، ابوامامه، ابو الدرداء او ابوهريره رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي دصحابه کرامو او ددوئ نه علاوه دنورو اهل علمو هم په دي باندي عمل دي او همدا دسفيان ثوري او ابن مبارك، شافعي، او احمد او اسحاق بن راهويه رحمهم الله قول هم دي.

***************

## ١١_ باب مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ كُلِّ ذِي نَابٍ وَذِي مِخْلَبٍ

### دهر داړو والا درلده او دپنجو والا مرغو دحرمت بيان

١٤٧٧_ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ الْحَسَنِ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، عَنْ مَالِكِ بْنِ أَنَسٍ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ أَبِي إِدْرِيسَ الْخَوْلَانِيِّ، عَنْ أَبِي ثَعْلَبَةَ الْخُشَنِيِّ، قَالَ: " نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

---

١ _ سنن ابي داود_ الضحايا ١٨ (٢٨٢٧)، سنن ابن ماجه_ الذبائح ١٥ (٣١٩٩)، و احمد في المسند (٣_ ٣١، ٥٣). (تحفة الأشراف: ٣٩٨٦)

عَنْ كُلِّ ذِي نَابٍ مِنَ السِّبَاعِ ". حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْمَخْزُومِيُّ، وَغَيْرُ وَاحِدٍ، قَالُوا: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ أَبِي إِدْرِيسَ الْخَوْلَانِيِّ نَحْوَهُ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَأَبُو إِدْرِيسَ الْخَوْلَانِيُّ اسْمُهُ: عَائِذُ اللَّهِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ. (1)

**ترجمه**: ابوثعلبه خشني رضي الله عنه نه مروي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم دهر دارو والاخناور او دپنجي والامرغو دخوړلو نه منع فرمائيلي ده.

امام ترمذي وايي ددي سند نه علاوه په بل سند هم ددي هم معني روايت مروي دي او دا حديث حسن صحيح دي او دابو ادريس خولاني نوم عائذ الله بن عبدالله دي.

***************

١٤٧٨ـ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا أَبُو النَّضْرِ هَاشِمُ بْنُ الْقَاسِمِ، حَدَّثَنَا عِكْرِمَةُ بْنُ عَمَّارٍ، عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي كَثِيرٍ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ جَابِرٍ، قَالَ: " حَرَّمَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَعْنِي: يَوْمَ خَيْبَرَ، الْحُمُرَ الْإِنْسِيَّةَ، وَلُحُومَ الْبِغَالِ، وَكُلَّ ذِي نَابٍ مِنَ السِّبَاعِ، وَذِي مِخْلَبٍ مِنَ الطَّيْرِ ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، وَعِرْبَاضِ بْنِ سَارِيَةَ، وَابْنِ عَبَّاسٍ وقَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ جَابِرٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ. (2)

**ترجمه**: دجابر رضي الله عنه بيان دي چي دفتح خيبر په ورځ رسول الله صلي الله عليه وسلم دكورنو خرو او دقچر دغوښي او د دارو والاخناور او د پنجو والامرغو حرمت بيان كړي دي.

امام ترمذي وايي دجابر حديث حسن غريب دي، او په دي باب كي دابوهريره، عرباض بن ساريه، او ابن عباس رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي او دا حديث دجابر په روايت حسن غريب دي.

**تخريج**: تفرد بذكره المؤلف (تحفة الأشراف: ٣١٦٢)

***************

[1] ـ اخرجه البخاري في الصحيح ـ الصيد ٢٩ (٥٥٣٠). والطب ٥٧ (٥٧٨٠). صحيح مسلم ـ الصيد ٣ (١٩٣٢). والأطعمة ٣٣ (١٩٣٢). سنن ابي داود ـ الأطعمة ٣٣ (٣٨٠٢). سنن النسائي ـ الصيد ٢٨ (٤٣٢٥). و ٣٠ (٤٣٤٣). سنن ابن ماجه ـ الصيد ١٣ (٣٢٣٢). (تحفة الأشراف: ١١٨٧٤). و احمد في المسند (٤ـ ١٩٣)

[2] ـ : تخريج: تفرد بذكره المؤلف وانظر: سنن ابن ماجه ـ الصيد ١٣ (٣٢٣٣). (تحفة الأشراف: ١٥٠٢٦). و احمد في المسند (٢ـ ٣٣٦، ٣٦٦، ٤٣٨)

١٤٧٩_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ. حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ مُحَمَّدٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرٍو، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "حَرَّمَ كُلَّ ذِي نَابٍ مِنَ السِّبَاعِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَكْثَرِ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ، وَهُوَ قَوْلُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الْمُبَارَكِ، وَالشَّافِعِيِّ، وَأَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ. (1)

**ترجمه**: دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم هر داړو والا ځناور او پنجو والا مرغو خوړل حرام ګرځولي دي.

امام ترمذي وايي دا حديث حسن دي دصحابه كرامو او ددوئ نه پس داكثر اهل علمو په دي باندي عمل دي او عبدالله بن مبارك، شافعي، احمد، او اسحاق بن راهويه رحمهم الله هم په دي باندي قول كړي دي.

***************

## ١٢_ باب مَا قُطِعَ مِنَ الْحَيِّ فَهُوَ مَيِّتَةٌ

### دژوندي ځناور نه پري كړي شوي غوښه دمرداري په حكم كي ده

١٤٨٠_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الْأَعْلَى الصَّنْعَانِيُّ، حَدَّثَنَا سَلَمَةُ بْنُ رَجَاءٍ، قَالَ: حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ دِينَارٍ، عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ، عَنْ أَبِي وَاقِدٍ اللَّيْثِيِّ، قَالَ: قَدِمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمَدِينَةَ وَهُمْ يَجُبُّونَ أَسْنِمَةَ الْإِبِلِ، وَيَقْطَعُونَ أَلْيَاتِ الْغَنَمِ، فَقَالَ: "مَا قُطِعَ مِنَ الْبَهِيمَةِ وَهِيَ حَيَّةٌ فَهِيَ مَيْتَةٌ". حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ يَعْقُوبَ الْجَوْزَجَانِيُّ، حَدَّثَنَا أَبُو النَّضْرِ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ دِينَارٍ نَحْوَهُ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَهَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ، لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ، وَأَبُو وَاقِدٍ اللَّيْثِيُّ اسْمُهُ: الْحَارِثُ بْنُ عَوْفٍ. (2)

**ترجمه**: دابوواقد حارث بن عوف ليثي بيان دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم مديني ته تشريف راوړو او دمديني خلقو به دژوندواوښانو ګوپونه او دژوندو چيلو اندامونه كټ كول رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل دژوندي ځاروي نه كټ كړي شوي غوښه مرداره ده په همدي سند ددي هم معني نور روايتونه هم مروي دي.

---

[1] ـ سنن ابي داود ـ الصيد ٣ (٢٨٥٨) (تحفة الأشراف: ١٥٥١٥)، وسنن الدارمي ـ الصيد ٩ (٢٠٦١)

[2] ـ تفرد به المؤلف رحمه الله.

امام ترمذي وايي دا حديث حسن غريب دي او دا صرف دزيد بن اسلم په روايت متصل دي، او داهل علمو په همدي باندي عمل دي.

### د ابوواقد حارث ابن عوف رضي الله عنه حالات

دده نوم حارث دی ليکن په ابو واقد مشهور وو او دپلار نوم يي عوف بن الحارث دی او دبعضو په نزد حارث بن مالك دی بعضي علماء وائي چي په بدر کې شريك شوی وو ليکن بعضي اسماء الرجال والا ددينه انکار کوي او بعضي اسماء الرجال والا وائي چي دفتح په ورځ دده په لاس کې دبني ضمراء قبيلي او ليث قبيلي او بني سعد قبيلي جهنډه وه دبعضي علماؤ خيال دادی چي دی دفتح په ورځ مسلمان شوی دی ليکن صحيح قول دادی چي په فتح مکه کې شريك وو او ددينه مخکې مسلمان شوی وو په مکه کې اوسيدو او په مکه کې په ۸۲هجري کې وفات شو او دمهاجرينو په قبرستان کې دفن کړی شو او په دغه وخت کې دده عمر ۷۵ يا ۸۵کلونه وو دده دمروياتو شمير ۲۴ دی چي يولس په دي کې متفق عليه دي.

**************

## ١٣_ بَاب مَا جَاءَ فِي الذَّكَاةِ فِي الْحَلْقِ وَاللَّبَّةِ

### په حلق او لبه (دسيني نه پورته حصه ) کې دذبح کولو بيان

١٤٨١_ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، وَمُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ، قَالَا: حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ حَمَّادِ بْنِ سَلَمَةَ. ح وحَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، أَنْبَأَنَا حَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي الْعُشَرَاءِ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللهِ، أَمَا تَكُونُ الذَّكَاةُ إِلَّا فِي الْحَلْقِ وَاللَّبَّةِ، قَالَ: " لَوْ طَعَنْتَ فِي فَخِذِهَا لَأَجْزَأَ عَنْكَ ". قَالَ أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، قَالَ يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ: هَذَا فِي الضَّرُورَةِ، قَالَ: وَفِي الْبَاب، عَنْ رَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ، قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ، لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ حَمَّادِ بْنِ سَلَمَةَ، وَلَا نَعْرِفُ لِأَبِي الْعُشَرَاءِ، عَنْ أَبِيهِ، غَيْرَ هَذَا الْحَدِيثِ، وَاخْتَلَفُوا فِي اسْمِ أَبِي الْعُشَرَاءِ، فَقَالَ بَعْضُهُمْ: اسْمُهُ أُسَامَةُ بْنُ قِهْطِمٍ، وَيُقَالُ: اسْمُهُ يَسَارُ بْنُ بَرْزٍ، وَيُقَالُ: ابْنُ بَلْزٍ وَيُقَالُ: اسْمُهُ عُطَارِدٌ نُسِبَ إِلَى جَدِّهِ. [1]

**ترجمه** دابوالعشراء دپلار اسامه بن مالك بيان دي فرمائي چي ما درسول الله صلي الله عليه وسلم نه تپوس اوکړو چي ايا شرعي ذبح صرف په حلق او لبه کي وي؟ رسول الله اوفرمائيل که

---

[1] _ ابي داود_ الضحايا ١٦ (٢٨٢٥) . النسائي_ الضحايا ٢٥ (٤٤١٣) . سنن ابن ماجه_ الذبائح ٩ (٣١٨٤) . (تحفة الأشراف: ١٥٦٩٤) واحمد في المسند (٤_ ٣٣٤) . الدارمي_ الأضاحي ١٢ (٢٠١٥)

په ورون يي په غشي اوولئ نو هم به كافي وي، يزيد بن هارون وائي دا حكم دضرورت دوخت پوري خاص دي.
امام ترمذي وايي دا حديث غريب دي او دا صرف دحماد بن سلمه په سند متصل دي ددي حديث نه علاوه دابوالعشراء كوم بل حديث په دي باب كي مونږ ته نه دي معلوم او دابوالعشراء دنوم په سلسله كي اختلاف دي بعضي محدثين وائي دده نوم اسامه بن قهطم دي او يسار بن برز نوم هم خودلي شوي دي او بعضي خلق ورته ابن بلز هم وائي او دا هم وئيلي شوي دي چي دده نوم عطارد دي او نيكه ته يي نسبت شوي دي، په دي باب كي درافع بن خديج رضي الله عنه نه هم روايت وارد دي.

****************

## ١٤ـ بَابُ مَا جَاءَ فِي قَتْلِ الْوَزَغِ

### دكربوړي دوژلو بيان

١٤٨٢ـ حَدَّثَنَا أَبُو كُرَيْبٍ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ سُهَيْلِ بْنِ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "مَنْ قَتَلَ وَزَغَةً بِالضَّرْبَةِ الأُولَى، كَانَ لَهُ كَذَا وَكَذَا حَسَنَةً، فَإِنْ قَتَلَهَا فِي الضَّرْبَةِ الثَّانِيَةِ، كَانَ لَهُ كَذَا وَكَذَا حَسَنَةً، فَإِنْ قَتَلَهَا فِي الضَّرْبَةِ الثَّالِثَةِ، كَانَ لَهُ كَذَا وَكَذَا حَسَنَةً". قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ، وَسَعْدٍ، وَعَائِشَةَ، وَأُمِّ شَرِيكٍ، قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (1)

**ترجمه**: دابوهريره رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي څوك چي په اول ګذار كربوړي مړ كړي نو دده دپاره به دومره ثواب وي او كه په دويم ګذار يي مړ كړي نو دده دپاره به دومره ثواب وي اوكه په دريم ګذار يي مړ كړي نو دده دپاره به دومره ثواب وي.
امام ترمذي وايي دابوهريره حديث حسن صحيح دي او په دي باب كي دابن مسعود، سعد، عائشه، ام شريك رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي.

****************

## ١٥ـ بَابُ مَا جَاءَ فِي قَتْلِ الْحَيَّاتِ

---

1 ـ صحيح مسلم ـ السلام ٣٨ (الحيوان ٢) (٢٢٤٠)، سنن ابي داود ـ الأدب ١٧٥ (٥٢٦٣)، سنن ابن ماجه ـ الصيد ١٢ (٣٢٢٨)، (تحفة الأشراف: ١٢٦٦١)، واحمد في المسند (٢ـ ٣٥٥)

## دمارانو وژلو بيان

١٤٨٣_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ سَالِمِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " اقْتُلُوا الحَيَّاتِ، وَاقْتُلُوا ذَا الطُّفْيَتَيْنِ، وَالأَبْتَرَ، فَإِنَّهُمَا يَلْتَمِسَانِ البَصَرَ، وَيُسْقِطَانِ الحُبْلَى ". قَالَ: وَفِي البَابِ، عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ، وَعَائِشَةَ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَسَهْلِ بْنِ سَعْدٍ، قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رُوِيَ عَنِ ابْنِ عُمَرَ، عَنْ أَبِي لُبَابَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " نَهَى بَعْدَ ذَلِكَ عَنْ قَتْلِ حَيَاتِ البُيُوتِ وَهِيَ: العَوَامِرُ ". وَيُرْوَى عَنِ ابْنِ عُمَرَ، عَنْ زَيْدِ بْنِ الخَطَّابِ أَيْضًا، وقَالَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ المُبَارَكِ: إِنَّمَا يُكْرَهُ مِنْ قَتْلِ الحَيَّاتِ قَتْلُ الحَيَّةِ الَّتِي تَكُونُ دَقِيقَةً، كَأَنَّهَا فِضَّةٌ، وَلَا تَلْتَوِي فِي مِشْيَتِهَا. [1]

**ترجمه** : دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي ماران وژنئ او په خاص طور سره هغه ماران دکوم په خيته چي دوه توري کرخي وي او هغه ماران وژنئ چي لکئ يي وړه وي څکه چي دا دواړه نظر لره ختموي او حمل لره غورځوي.

امام ترمذي وايي دا حديث حسن صحيح دي ابن عمر رضي الله عنهما نه مروي دي چي هغه دابو لبابه رضي الله عنه نه روايت نقل کوي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم ددينه پس په کورونو کي اوسيدونکي ماران کومو ته چي عوامر(په کورونو کي اوسيدونکي) وئيلي شي دوژلو نه منع فرمائيلي ده، او ابن عمر دا حديث د زيد بن خطاب نه هم نقل کړي دي، او په دي باب کي دابن مسعود، عائشه، ابوهريره، او سهل بن سعد رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي، عبدالله بن مبارك وائي دمارانو په اقسامو کي هغه قسم مار وژل هم مکروه دي کوم چي نري او سپين وي داسي ښکاري لکه چي سپين زروي او په رفتار کي يو طرف او بل طرف ته کوږوالي نه کوي بلکه سيده نيغ روان وي.

*****************

١٤٨٤_ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا عَبْدَةُ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، عَنْ صَيْفِيٍّ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الخُدْرِيِّ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " إِنَّ لِبُيُوتِكُمْ عُمَّارًا، فَحَرِّجُوا عَلَيْهِنَّ ثَلَاثًا، فَإِنْ بَدَا لَكُمْ بَعْدَ ذَلِكَ مِنْهُنَّ شَيْءٌ فَاقْتُلُوهُ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَكَذَا رَوَى عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ، هَذَا الحَدِيثَ، عَنْ صَيْفِيٍّ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الخُدْرِيِّ، وَرَوَى مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ هَذَا الحَدِيثَ، عَنْ صَيْفِيٍّ، عَنْ أَبِي

---

[1] _ اخرجه البخاري في الصحيح_ بدء الخلق ١٣ (٣٢٩٧)، صحيح مسلم_ السلام ٣٧ (الحيوان ١) (٢٢٣٣)، سنن أبي داود_ الأدب ١٧٣ (٥٢٥٢)، سنن ابن ماجه_ الطب ٤٢ (٣٥٣٥)، (تحفة الأشراف: ٦٨٢١)

السَّائِبِ مَوْلَى هِشَامِ بْنِ زُهْرَةَ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. وَفِي الحَدِيثِ قِصَّةٌ. حَدَّثَنَا بِذَلِكَ الأَنْصَارِيُّ، حَدَّثَنَا مَعْنٌ، حَدَّثَنَا مَالِكٌ، وَهَذَا أَصَحُّ مِنْ حَدِيثِ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، وَرَوَى مُحَمَّدُ بْنُ عَجْلَانَ، عَنْ صَيْفِيٍّ، نَحْوَ رِوَايَةِ مَالِكٍ. [1]

**ترجمه**: دابوسعيد خدري رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي ستاسو په كورونو كي كورني ماران اوسيږي تاسو ورته دري پيري خبر وركوئ تاسو په تنګئ كي يئ (يعني چي دوباره ښكاره نشئ) او كنه نو دتنګئ او پريشانئ سره به مخامخ شئ نو بيا كه ددي تنبيه نه هم كوم مار راښكاره شي نو قتل يي كړئ.

امام ترمذي وايي دا حديث عبدالله بن عمر په سند دصيفي عن ابي سعيدالخدري نقل كړي دي مګر مالك بن انس دا حديث په سند دصيفي عن ابي السائب مولاهشام بن زهره عن ابي سعيد عن النبي صلي الله عليه وسلم سره نقل كړي دي اوپه دي حديث كي يوه قصه هم مذكورده، او مونږ ته دا حديث انصاري په سند دمعن عن مالك عن صيفي عن ابي السائب عن ابي سعيد الخدري سره نقل كړي دي او دا روايت دعبيدالله بن عمر دروايت نه زيات صحيح دي، او محمد بن عجلان هم دصيفي نه دمالك دروايت پشان روايت نقل كړي دي.

***************

١٤٨٥_ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي زَائِدَةَ، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي لَيْلَى، عَنْ ثَابِتٍ الْبُنَانِيِّ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي لَيْلَى، قَالَ: قَالَ أَبُو لَيْلَى، قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا ظَهَرَتِ الحَيَّةُ فِي الْمَسْكَنِ، فَقُولُوا لَهَا: إِنَّا نَسْأَلُكِ بِعَهْدِ نُوحٍ، وَبِعَهْدِ سُلَيْمَانَ بْنِ دَاوُدَ، أَنْ لَا تُؤْذِيَنَا. فَإِنْ عَادَتْ فَاقْتُلُوهَا". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ، لَا نَعْرِفُهُ مِنْ حَدِيثِ ثَابِتٍ الْبُنَانِيِّ، إِلَّا مِنْ هَذَا الوَجْهِ مِنْ حَدِيثِ ابْنِ أَبِي لَيْلَى. [2]

**ترجمه**: دابوليلي بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي كله چي په يو كور كي مار ښكاره شي نو ورته ووائي مونږ دنوح او سليمان بن داود دعهد او اقرار په وجه دا غواړو چي تاسو مونږ ته تكليف مه راكوئ نو بيا كه چري دوئ دوباره راښكاره شي نوقتل يي كړئ.

---

[1] _ صحيح مسلم_ السلام ٣٧ (٢٢٣٦) . سنن ابي داود_ الأدب ١٧٣ (٥٢٥٦،٥٢٥٩) سنن النسائي_ عمل اليوم والليلة ٢٨٠ (٩٦٩) (تحفة الأشراف : ٤٠٨٠)

[2] _ سنن ابي داود_ الأدب ١٧٣ (٥٢٦٠) . سنن النسائي_ عمل اليوم والليلة ٢٨٠ (٩٦٨) . (تحفة الأشراف : ١٢١٥٢)

امام ترمذي وايي: دا حديث حسن غريب دي او دا حديث مونږ ته دثابت بناني په روايت صرف دابن ابي ليلي په سند رارسيدلي دي.

***************

## ١٦_ باب مَا جَاءَ فِي قَتْلِ الْكِلَابِ

### دسپو وژلو بيان

١٤٨٦_ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ، أَخْبَرَنَا مَنْصُورُ بْنُ زَاذَانَ، وَيُونُسُ بْنُ عُبَيْدٍ، عَنِ الْحَسَنِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مُغَفَّلٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَوْلَا أَنَّ الْكِلَابَ أُمَّةٌ مِنَ الْأُمَمِ لَأَمَرْتُ بِقَتْلِهَا كُلِّهَا، فَاقْتُلُوا مِنْهَا كُلَّ أَسْوَدَ بَهِيمٍ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، وَجَابِرٍ، وَأَبِي رَافِعٍ، وَأَبِي أَيُّوبَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مُغَفَّلٍ، حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَيُرْوَى فِي بَعْضِ الْحَدِيثِ: أَنَّ الْكَلْبَ الْأَسْوَدَ الْبَهِيمَ شَيْطَانٌ، وَالْكَلْبُ الْأَسْوَدُ الْبَهِيمُ الَّذِي لَا يَكُونُ فِيهِ شَيْءٌ مِنَ الْبَيَاضِ، وَقَدْ كَرِهَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ صَيْدَ الْكَلْبِ الْأَسْوَدِ الْبَهِيمِ.[1]

**ترجمه** دعبدالله بن مغفل رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي که چرې دا خبره نه وي چې سپي هم دنور مخلوق پشان مخلوق دي نو ما به ددوی دوژلو حکم کړې وو مګر اوس تاسو په دوی کې هر تك تور سپي وژنئ.

امام ترمذي وايي دعبدالله بن مغفل حديث حسن صحيح دي او په دي باب کې دابن عمر، جابر، ابورافع، او ابو ايوب رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي په بعضي احاديثو کې وارد دي چې تور سپي شيطان دي، او "الاسود البهيم" هغه سپي ته وئيلي شي په کوم کې چې سپين والي بالکل نه وي، او بعضي اهل علمو تور سپي دښکار دپاره مکروه ګڼړلي دي.

### دعبدالله بن مغفل رضي الله عنه حالات

نوم عبدالله کنيه ابوسعيد دهجرت په شپږم کال مسلمان شوی وواو چې په کومه غزوه کې يې شرکت کړی وو هغه غزوه حديبيه وه (بخاري کتاب التفسير)

په بيعة الرضوان کې هم شريك وو (مسند احمد)

خيبر، فتح مکه، غزوه تبوك، وغيره غزواتو کې خپله بهادري خودلي وه.

---

[1] _ سنن ابي داود_ الصيد ١ (٢٨٤٥)، سنن النسائي_ الصيد ١٠ (٤٢٨٥)، و ١٣ (٤٢٩٣)، سنن ابن ماجه_ الصيد ٢ (٣٢٠٤)، (تحفة الأشراف: ٩٦٤٩)، واحمد في المسند (٤_ ٨٥، ٨٦)، و (٥_ ٥٤، ٥٦، ٥٧) سنن الدارمي_ الصيد ٣ (٢٠٥١)

درسول الله صلي الله عليه وسلم په زندګئ کې خو په مدينه کې اوسيدو ليکن کله چې بصره ازاده شوه نو ده لره عمر رضي الله عنه ددوئ دتعليم او تربيت دپاره بصري ته اوليږلو او د عمر داخري لمحاتو پوري هلته اوسيدو (طبقات ابن سعد).

دبدعاتو نه به يې سخت نفرت کولو دده بچي يوه ورځ دا اووئيل ما داسي کس نه دی ليدلی چې زما دپلار په نسبت دبدعاتو نه زيات نفرت کونکی وي (مسند احمد).

وفات: په ۵۹يا ۶۰هجر کې په بصره کې په مرض موت مبتلا شو او په اخري کې يې يو څو وصيتونه اوکړل.

اول ، دغسل په اوبو کې به کافور واچوئ.

دويم، په کفن کې به د دوه څادرونو او يو قميص نه زيادت نه کوئ.

دريم، په غسل ورکولو کې به صرف صحابه کرام رضي الله عنهم وي.

څلورم، په جنازي پسي به وروسته اور او رڼا نه اوړئ.

پنځم، ابن زياد چې دبصري والي وو دی به زما جنازي ته نه راځي.

شپږم، دا وصيت يې هم کړی وو چې په ما باندي به ابوبرزه اسلمي جنازه کوي لهذا دده دوفات نه پس په دې ټولو وصيتونو عمل اوکړی شو او په بصره کې خاورو ته اوسپارلی شو.

دده دمروياتو شمير ۱۴۳احاديث دي چې څلور متفق عليه دي يو په بخاري کې دی او يو په مسلم کې.

***************

## ١٧ــ بَابُ مَا جَاءَ مَنْ أَمْسَكَ كَلْبًا مَا يَنْقُصُ مِنْ أَجْرِهِ

### دسپي دساتلو په وجه دانسان څومره اجر کميږي

١٤٨٧ــ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنِ اقْتَنَى كَلْبًا لَيْسَ بِضَارٍ، وَلَا كَلْبَ مَاشِيَةٍ، نَقَصَ مِنْ أَجْرِهِ كُلَّ يَوْمٍ قِيرَاطَانِ". قَالَ: وَفِي البَابِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مُغَفَّلٍ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَسُفْيَانَ بْنِ أَبِي زُهَيْرٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ عُمَرَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رُوِيَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ قَالَ: "أَوْ كَلْبَ زَرْعٍ".[1]

---

[1] ــ اخرجه البخاري في الصحيح ــ الصيد والذبائح ٦ (٥٤٨٢) . صحيح مسلم ــ المساقاة ١٠ (البيوع ٣١) . (١٥٧٤) . سنن النسائي ــ الصيد ١٢ (٤٢٨٩) و ١٣ (٤٢٩١، ٤٢٩٢) (تحفة الأشراف : ٧٥٢٩) . والموطأ الاستئذان ٥ (١٣) . و احمد في المسند (٢ـ ٤، ٨، ٤٧، ٦٠، ٤٧، ٦٠) . وسنن الدارمي ــ الصيد ٢ (٢٠٤٧)

**ترجمه** دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي که چا داسي سپي اوساتلو کوم چي دښکار دپاره روزلي شوي او دځاروو دحفاظت دپاره نه وي دده په ثواب کي به هره ورځ د دوه قيراطو په مقدار کمي راځي.
امام ترمذي وايي دابن عمر رضي الله عنهما حديث حسن صحيح دي،او دا هم مروي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم دا هم فرمائيلي دي "اوكلب زرع" يا هغه سپي کوم چي دفصل نګراني کونکي نه وي، او په دي باب کي دعبدالله بن مغفل، ابوهريره، او سفيان بن ابي زهير رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي.

**تشريح:** **دقيراط تحقيق**

قيراط يو وزن دی کوم چي يو دانګ شپږ رتئ او دبعضو په نزد ديو دينار ۴ ۲ حصه ده او دبعضو په قول ددينار لسمه حصي دنيمي برابر وي او يو دانګ دشپږ رتو برابر وي يا ديو درهم دشپږمي حصي سره برابر وي او په بعضو روايتونو کي دقيراط وزن داحد دغر برابر خودلی شوی دی خلاصه داده چي دضرورت نه بغير سپي ساتلو په وجه انسان دخپلو نيکو عملونو ديوي ډيري لويي حصي نه محروميږي.

***************

١٤٨٨_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ دِينَارٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَمَرَ بِقَتْلِ الكِلَابِ، إِلَّا كَلْبَ صَيْدٍ، أَوْ كَلْبَ مَاشِيَةٍ". قَالَ: قِيلَ لَهُ: إِنَّ أَبَا هُرَيْرَةَ كَانَ يَقُولُ: أَوْ كَلْبَ زَرْعٍ، فَقَالَ: إِنَّ أَبَا هُرَيْرَةَ لَهُ زَرْعٌ، قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.[1]

**ترجمه** دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم دښکاري سپي او دځاروو دنګراني کولو دپاره دسپي ساتلو نه علاوه دنورو سپو دوژلو حکم کړي دي، ابن عمر رضي الله عنهما ته اوونيلي شول ابوهريره به دا هم ونيل "اوكلب ذرع" يعني دفصل دنګراني دپاره چي سپي اوساتلي شي، نو ابن عمر اوفرمائيل دابوهريره سره فصل وو (نو ځکه هغه په دي باره کي تپوس کړي وي).
امام ترمذي وايي دا حديث حسن صحيح دي.

---

[1] _ اخرجه البخاري في الصحيح_ بدء الخلق ١٧ (٣٣٢٣) . (دون ما استثنى منها) صحيح مسلم_ المساقاة ١٠ (البيوع ٣١) (١٥٧١) . سنن النسائي_ الصيد ٩ (٤٢٨٣، ٤٢٨٢) . سنن ابن ماجه_ الصيد ١ (٣٢٠٢) . (دون ماستثنى منها) (تحفة الأشراف: ٧٢٥٣) . والموطأ الاستئذان ٥ (١٣) . واحمد في المسند (٢_ ٢٢٢، ١١٣، ١٣٢، ١٣٦) . سنن الدارمي_ الصيد ٣ (٢٠٥٠)

***************

١٤٨٩ـ حَدَّثَنَا الحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ الحُلْوَانِيُّ، وَغَيْرُ وَاحِدٍ، قَالُوا: أَخْبَرَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " مَنِ اتَّخَذَ كَلْبًا، إِلَّا كَلْبَ مَاشِيَةٍ، أَوْ صَيْدٍ، أَوْ زَرْعٍ، انْتَقَصَ مِنْ أَجْرِهِ كُلَّ يَوْمٍ قِيرَاطٌ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَيُرْوَى عَنْ عَطَاءِ بْنِ أَبِي رَبَاحٍ: أَنَّهُ رَخَّصَ فِي إِمْسَاكِ الكَلْبِ، وَإِنْ كَانَ لِلرَّجُلِ شَاةٌ وَاحِدَةٌ، حَدَّثَنَا بِذَلِكَ إِسْحَاقُ بْنُ مَنْصُورٍ، حَدَّثَنَا حَجَّاجُ بْنُ مُحَمَّدٍ، عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ، عَنْ عَطَاءٍ بِهَذَا. [1]

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي هر څوك چي سپي اوساتي مګر علاوه دهغه سپي نه كوم چي دڅاروو دښكار دحفاظت دپاره وي او كوم چي دفصل دحفاظت دپاره وي نو دده داجر نه به هره ورځ د دوه قيراطو په مقدار اجر كميږي.

امام ترمذي وايي دا حديث حسن صحيح دي او دعطاء بن ابي رباح نه مروي دي چي هغه دسپو ساتلو اجازت وركړي دي اګر كه ديو سړي يوه ګډه هم وي همدارنګي دا حديث مونږ ته اسحاق بن منصور دحجاج بن محمد نه او حجاج دابن جريج نه او هغه دعطاء نه په همدي مضمون نقل كړي دي.

***************

١٤٩٠ـ حَدَّثَنَا عُبَيْدُ بْنُ أَسْبَاطِ بْنِ مُحَمَّدٍ القُرَشِيُّ، حَدَّثَنَا أَبِي، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ إِسْمَاعِيلَ بْنِ مُسْلِمٍ، عَنِ الحَسَنِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مُغَفَّلٍ، قَالَ: إِنِّي لَمِمَّنْ يَرْفَعُ أَغْصَانَ الشَّجَرَةِ عَنْ وَجْهِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ يَخْطُبُ، فَقَالَ: " لَوْلَا أَنَّ الكِلَابَ أُمَّةٌ مِنَ الأُمَمِ، لَأَمَرْتُ بِقَتْلِهَا، فَاقْتُلُوا مِنْهَا كُلَّ أَسْوَدَ بَهِيمٍ، وَمَا مِنْ أَهْلِ بَيْتٍ يَرْتَبِطُونَ كَلْبًا، إِلَّا نَقَصَ مِنْ عَمَلِهِمْ كُلَّ يَوْمٍ قِيرَاطٌ، إِلَّا كَلْبَ صَيْدٍ، أَوْ كَلْبَ حَرْثٍ، أَوْ كَلْبَ غَنَمٍ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ، وَقَدْ رُوِيَ

---

[1] ـ سنن ابي داود ـ الصيد ١ (٢٨٤٥) . سنن النسائي ـ الصيد ١٠ (٤٢٨٥) ، و ١٤ (٤٢٩٣) . سنن ابن ماجه ـ الصيد ٢ (٣٢٠٤) . (تحفة الأشراف : ٩٦٤٩) . و احمد في المسند (٤ ـ ٨٥، ٨٦) ، و (٥ ـ ٥٤، ٥٦، ٥٧) سنن الدارمي ـ الصيد ٣ (٢٠٥١)

هَذَا الحَدِيثُ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ، عَنِ الحَسَنِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مُغَفَّلٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. ([1])

**ترجمه**: دعبدالله بن مغفل رضي الله عنه بيان دي فرمائي چي زه دهغه كسانو نه يم چاچي درسول الله صلي الله عليه وسلم دمخ مبارك نه د ونو لختي لري كولي او هغه خطبه ونيله او په خطبه كي يي دا اوفرمائيل كه چري دا خبره نه وي چي سپي هم دنور مخلوقات پشان يو مخلوق دي نو ما به ددوئ دوژلو حكم كړي وو پس اوس تاسو هر تور سپي وژنئ چي كوم كور والاو ښكاري هم وي او دفصل دنګرانئ او څاروو دحفاظت نه علاوه نور ساتلي سپي كه څوك ترلي اوساتي نو دده دعمل دثواب نه يو قيراط اجر كميږي.

امام ترمذي وايي دا حديث حسن صحيح دي او دا حديث په سند د حسن بصري عن عبدالله بن مغفل عن النبي صلي الله عليه وسلم سره مروي دي.

**تشريح: فرشتي داسي كورته نه ورځي چي سپي يا تصوير پكي وي**

دابوطلحه رضي الله عنه نه روايت دی چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي كوم كور كي چي تصوير ياسپی وي درحمت فرشتی نه ورننوزي.(بخاري مسلم)

داسي كورونو ته فرشتي نه ورځي په كومو كي چي سپی يا تصوير موجود وي، دا حكم د هغه سپي دی دكوم چي ساتل حرام دي او دكومو سپو دساتلو چي اجازت شته هغه په دي كي داخل نه دي، مثلا ښكاري سپی يا دڅاروو دحفاظت دپاره دداسي سپو ساتل دفرشتو دپاره ركاوټ نه جوړيږي.

دفرشتونه هغه فرشتي مراد دي كومي چي دانسانانو داعمالو ليكونكي او حفاظت كونكي نه وي ځكه چي عمل ليكونكي فرشتي خو په هر حال كي دانسان سره موجودي دي.

**دسپي په وجه دجبريل نه راتلل**

دابن عمر رضي الله عنه نه روايت دی چي جبرائيل عليه السلام رسول الله صلي الله عليه وسلم سره دراتلو وعده كړی وه بيايی راتلو كي دومره تاخير اوكړو چي رسول الله صلي الله عليه وسلم ته انتظار مشكل شو بهر ته اووتو نو جبرائيل عليه السلام ورسره ملاقات اوكړو رسول الله صلي الله عليه وسلم ورته دتاخير ګيله اوكړه نو هغه اووئيل مونږ داسی كور ته نه ورځو كوم كي چي سپي يا تصوير وي.

---

[1] ـ اخرجه البخاري في الصحيح ـ الحرث ٣ (٢٣٢٢) وبدء الخلق ١٧ (٣٢٢٣). صحيح مسلم ـ المساقاة ١٠ (البيوع ٣١). (١٩). سنن ابي داود ـ الصيد ١ (٢٨٤٤). سنن النسائي ـ الصيد ١٣ (٤٢٩٣). سنن ابن ماجه ـ الصيد ٢ (٣٢٠٤). (تحفة الأشراف: ١٥٢٧١). واحمد في المسند (٢ـ ٢٦٧، ٣٤٥)

ابن عمر رضي الله عنه نه روایت دی چي رسول الله صلي الله علیه وسلم فرمائیلي دي چاچي دښکار یا فصل دحفاظت نه علاوه سپی اوساتلو هره ورځ به یې دنیکو دثواب نه دوه قیراطه اجر کمیږي او په یو روایت یو قیراط راغلی دی.

## په بعضي وجوهاتو سپي ساتل جائز دي

ابو هریره رضي الله عنه نه روایت دی چي رسول الله صلي الله علیه وسلم فرمائیلي دي چاچي سپی اوساتلو دهغه نیك عمل داجر نه به هره ورځ دوه قیراطه کمیږي لیکن که دپټي یا څاروو دحفاظت دپاره وي نو خیر دی.

او دامام مسلم یو روایت په دی الفاظو دی چاچي سپی اوساتلو که دښکار سپی یا دپټي او یا دڅاروو دحفاظت سپی نه وي نو دهغه داجر نه هره ورځ دوه قیراطه کمیږي

یو سوال څلور جوابونه

سوال: دسپي ساتلو په وجه په یو روایت کي دیو قیراط ثواب دکمیدو ذکر دی او په بل روایت کي د دوه قیراطه نیکئ کمیدو ذکر دی په دواړو روایتونو کي تعارض دی.

جواب: بعضي علماء وائي بعضي سپي ډیرخطرناك په تکلیف رسونکي دي نو دهغي په ساتلو سره دوه قیراطه ثواب کمیږي او کوم سپي چي کم ضرر والا وي دهغوئ په ساتلو یو قیراط ثواب کمیږي.

دویم جواب: مقدس مقام مثلا مکه ، مدینه، وغیره ښارونو کي بغیر دضرورته سپي ساتلو په وجه دوه قیراطه ثواب کمیږي او ددینه په علاوه ښارونو کي یو قیراط ثواب کمیږي.

دریم جواب: په ښار کي دوه قیراطه کمیږي او په کلو کي یو قیراط کمیږي

څلورم: په ابتداء کي دیو قیراط وعید وو لیکن کله چي خلقوسپي ساتل زیات کړل نو په زجر کي زیادت راغی او ددوه قیراطه ثواب کمیدو حکم جاري شو اوس به په دوه قیراطه ثواب کمیدو والاحدیث باندي عمل وي.

دابوهریره رضي الله عنه نه روایت دی چي رسول الله صلي الله علیه وسلم فرمائیلي دي درحمت فرشتی داسی قافلئ سره نه ملګري کیږي کومه کي چي سپی وي یا جرس وي

"لاتصحب الملائكة" یعني فرشتي ملګرتیا نه کوي. ددینه هغه فرشتي مراد دي کومي چي داعمالو لیکونکو او حفاظت کونکو نه علاوه وي

"جرس" یعني تلئ ددي په وجه هم فرشتي لري تختي خکه چي دا د ناقوس سره مشابه دی کوم چي دغیرمسلمو علامه ده یا داچي ددي اواز په شریعت کي بد ګنړلی شوی دی. په یو روایت کي راخي چي یو هلك عائشه رضي الله عنها ته راغلو او داسي څیز ورسره وو چي

شرنګا يي کوله ام المؤمنين ورته اوفرمائيل داسي څيز زما خواته مه راوړه کوم چي فرښتو لره لري شړونکی وي

***************

## ١٨_ باب مَا جَاءَ فِي الذَّكَاةِ بِالْقَصَبِ وَغَيْرِهِ

## په بانړس وغیره تیره څیز دذبحي کولو بیان

١٤٩١_ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا أَبُو الأَحْوَصِ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ مَسْرُوقٍ، عَنْ عَبَايَةَ بْنِ رِفَاعَةَ بْنِ رَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ رَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ، قَالَ: قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنَّا نَلْقَى الْعَدُوَّ غَدًا، وَلَيْسَتْ مَعَنَا مُدًى، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " مَا أَنْهَرَ الدَّمَ وَذُكِرَ اسْمُ اللَّهِ عَلَيْهِ فَكُلُوهُ، مَا لَمْ يَكُنْ سِنًّا، أَوْ ظُفُرًا، وَسَأُحَدِّثُكُمْ عَنْ ذَلِكَ: أَمَّا السِّنُّ فَعَظْمٌ، وَأَمَّا الظُّفُرُ فَمُدَى الْحَبَشَةِ ". حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، عَنْ سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ، قَالَ: حَدَّثَنَا أَبِي، عَنْ عَبَايَةَ بْنِ رِفَاعَةَ، عَنْ رَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَهُ، وَلَمْ يَذْكُرْ فِيهِ عَبَايَةَ، عَنْ أَبِيهِ، وَهَذَا أَصَحُّ، وَعَبَايَةُ، قَدْ سَمِعَ مِنْ رَافِعٍ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ، لَا يَرَوْنَ أَنْ يُذَكَّى بِسِنٍّ، وَلَا بِعَظْمٍ. (1)

**ترجمه** : درافع بن خديج رضي الله عنه نه روايت دي چي ما رسول الله صلي الله عليه وسلم ته عرض اوکړو اي دالله رسوله که سبا مونږ د دشمن سره مخامخ شو او زمونږ سره دچاړوو ذبح کولو دپاره چاړه نه وي (نو څه حکم دي) رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل کوم څيز چي وينه بهيوي او دالله نوم ورباندي واخلئ نو دا خوړلي شئ مګر علاوه دهغه ځاروي نه چي په غاښونو يا نوکانو ذبح شوي وي، او زه تاسو ته دغاښ او نوک تفسير بيانوم چي دا يو هډوکي دي او نوک دحبشيانو چاړه ده.

امام ترمذي وايي دا حديث دمحمد بن بشار په سند مروي دي، سفيان ثوري وائي چي دا حديث دعبايه بن رفاعه نه مروي دي او هغه درافع بن خديج نه او هغه دنبي کريم صلي الله

---

[1] _ اخرجه البخاري في الصحيح كتاب الشركة ٣ (٢٤٨٨)، و ١٦ (٢٥٠٧)، والجهاد ١٩١ (٣٠٧٥)، والذبائح ١٥ (٥٤٩٨)، و ٢٣ (٥٥٠٩)، و ٣٦ (٥٥٤٣)، و ٣٧ (٥٥٤٤)، صحيح مسلم_ الأضاحي ٤ (١٩٦٨)، سنن ابي داود_ الضحايا ١٥ (٢٨٢١)، سنن النسائي_ الصيد ١٧ (٤٣٠٢)، والضحايا ٢٠ (٤٤٠٨)، و ٢٦ (٤٤٢١)، سنن ابن ماجه_ الذبائح ٩ (٣١٨٣) (تحفة الأشراف: ٣٥٦١)، واحمد في المسند (٣_ ٤٦٣، ٤٦٤)، و (٤_ ١٤٠، ١٤٢)

عليه وسلم نه ددي هم معني روايت نقل كړي دي او په دي سند كي د عبايه عن ابيه ذكر نشته
او همدا زيات صحيح سند دي عبايه درافع نه اوريدل كړي دي او داهل علمو په هم دي باندي
عمل دي چي هغوئ په غابښونو او په هډوكو ذبح كول درست نه ګڼړي.

*******************

## ١٩ـ باب مَا جَاءَ فِي الْبَعِيرِ وَالْبَقَرِ وَالْغَنَمِ إِذَا نَدَّ فَصَارَ وَحْشِيًّا يُرْمَى بِسَهْمٍ أَمْ لاَ
## كله چي يو څاروي ليوني شي او وحشي اوګرځي نوهغه به په غشي ويشتلي شي او كنه

١٤٩٢ـ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا أَبُو الأَحْوَصِ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ مَسْرُوقٍ، عَنْ عَبَايَةَ بْنِ رِفَاعَةَ بْنِ رَافِعٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ رَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ، قَالَ: كُنَّا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي سَفَرٍ، فَنَدَّ بَعِيرٌ مِنْ إِبِلِ الْقَوْمِ، وَلَمْ يَكُنْ مَعَهُمْ خَيْلٌ، فَرَمَاهُ رَجُلٌ بِسَهْمٍ، فَحَبَسَهُ اللَّهُ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " إِنَّ لِهَذِهِ الْبَهَائِمِ أَوَابِدَ كَأَوَابِدِ الْوَحْشِ، فَمَا فَعَلَ مِنْهَا هَذَا فَافْعَلُوا بِهِ هَكَذَا ". حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلاَنَ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَبَايَةَ بْنِ رِفَاعَةَ، عَنْ جَدِّهِ رَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَهُ، وَلَمْ يَذْكُرْ فِيهِ عَبَايَةَ، عَنْ أَبِيهِ، وَهَذَا أَصَحُّ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ، وَهَكَذَا رَوَاهُ شُعْبَةُ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ مَسْرُوقٍ، نَحْوَ رِوَايَةِ سُفْيَانَ.[1]

**ترجمه** . درافع بن خديج رضي الله عنه بيان دي فرماني چي مونږ په يو سفر كي دنبي كريم صلي الله عليه وسلم سره موجود وو چي دچا په اوښانو كي يو اوښ تختيدلي وو او هغوئ سره اسونه هم نه وو نو يو كس هغه په غشي اوويشتلو نو الله تعالي هغه اودرولو رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمانيل په دي څاروو كي بعضي دځنګلي څاروو پشان تختيدونكي هم وي نو په دي وجه كه كوم څاروي داسي اوكړي يعني اوتختي نو دهغه سره همداسي كول پكار دي او په يو بل سند هم درافع رضي الله عنه نه ددي هم معني روايت مروي دي ليكن هغه روايت كي دا نه دي ذكر شوي چي عبايه دخپل پلار نه روايت نقل كړي دي او دا زيات صحيح سند دي داهل علمو په همدي باندي عمل دي دارنګي دا حديث شعبه دسعيد بن مسروق نه دسفيان دروايت هم معني روايت بيان كړي دي

### دمتروك التسميه ذبح حكم

په ذبيحه باندي تسميه ونيل ضروري دی.

[1] ـ سنن الدارمي ـ الأضاحي ١٥ (٢٠٢٠) وانظر تخريج حديث رقم ١٤٩١

امام مالك وائي كه په هيره يا قصد سره ئې تسميه پريخودې وي نوذبيحه به حلال نه وي.
امام شافعي بالكل ددې عكس وائي يعنى كه قصدا ئې پريږدى او كه چرې په هيره. دواړو صورتو نو كي ذبيحه حلال ده.
حنفيان په منځ منځ كي دى، وائي كه په هيره ئې پريږدى نوذبيحه حلال ده او كه چرې قصدا ئې پريږدى نوذبيحه مرداره او حرام ده.دا به نه خوړلې كيږى.

***************

# كتاب الأضاحي عن رسول الله صلى الله عليه وسلم

## دقربانۍ دڅاروي دپاره كم ازكم څومره عمر ضروري دي

جذع : د ګډې يا چيلۍ هغه بچې چې د شپږو مياشتو شوې وى.ثنى: د ګډې يا چيلۍ هغه بچې كوم چې د يو كال وي او د غوا او ميښې هغه بچې كوم چې د دوو كالو وي او د اوښې هغه بچې كوم چې د پنځو كالو وى نوپه قربانۍ كي دې دريو واړو كي ثنى جائز ده.يعنى چيلۍ د يو كال. غوئې د دوو كالواو اوښ د پنځو كالو،البته ګډه چې كله د شپږو مياشتو وي او څربه وى چې دا د يو كال د ګډ برابر معلوميږى نوددې قرباني جائز ده،د ميښې او غوا يو جنس دې،قرباني د ساتلى شوى څاروى وى،د وحشى (ځنګلى څاروى) نه وى.خوكه بچې د دواړو وى نودمور تابع به وى كه پلار زمرې اومور چيلۍ وى نوددې بچى قربانى

جائز ده.

## دقربانۍ دغوښي مستحقين

يعنى پخپله خوړل او په بل خوړل، او اوچول (او ساتل) ټول جائز دى،د دريمې حصې صدقه كول مستحب دى خكه چې دلته دري طرفه دى (۱) پخپله خوړل (۲) په بل خوړل (۳) ايخودل.۔ نو د هر طرف په حصه كي دريمه راغله نوصدقه دې د دريمې نه نه كمه وى

***************

## ١_ باب مَا جَاءَ فِي فَضْلِ الأُضْحِيَةِ

## دقربانۍ كولو فضيلت

١٤٩٣_ حَدَّثَنَا أَبُو عَمْرٍو مُسْلِمُ بْنُ عَمْرِو بْنِ مُسْلِمٍ الحَذَّاءُ المَدَنِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ نَافِعٍ الصَّائِغُ أَبُو مُحَمَّدٍ، عَنْ أَبِي المُثَنَّى، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "مَا عَمِلَ آدَمِيٌّ مِنْ عَمَلٍ يَوْمَ النَّحْرِ، أَحَبَّ إِلَى اللهِ مِنْ إِهْرَاقِ الدَّمِ، إِنَّهَا لَتَأْتِي

يَوْمَ الْقِيَامَةِ بِقُرُونِهَا، وَأَشْعَارِهَا، وَأَظْلَافِهَا، وَأَنَّ الدَّمَ لَيَقَعُ مِنَ اللهِ بِمَكَانٍ قَبْلَ أَنْ يَقَعَ مِنَ الأَرْضِ، فَطِيبُوا بِهَا نَفْسًا ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ، وَزَيْدِ بْنِ أَرْقَمَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ، لَا نَعْرِفُهُ مِنْ حَدِيثِ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، إِلَّا مِنْ هَذَا الْوَجْهِ، وَأَبُو الْمُثَنَّى اسْمُهُ: سُلَيْمَانُ بْنُ يَزِيدَ، وَرَوَى عَنْهُ ابْنُ أَبِي فُدَيْكٍ، قَالَ أَبُو عِيسَى: وَيُرْوَى عَنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ قَالَ: "فِي الأُضْحِيَّةِ لِصَاحِبِهَا بِكُلِّ شَعَرَةٍ حَسَنَةٌ". وَيُرْوَى بِقُرُونِهَا.[1]

**ترجمه** دام المؤمنين عائشه رضي الله عنها بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دقربانۍ په ورځ دالله تعالي په نزد ديو انسان په ټولو عملونو کي محبوب ترين عمل وينه بهيول دي ، او دقيامت په ورځ به دقربانۍ څاروي دخپلو ښکرو او وړۍ او نوکانو سره راځي، دقربانۍ وينه په زمکي دغورځيدلو نه مخکي دقبوليت درجه حاصلوي نو په دي وجه په خوشحالۍ خوشحالۍ قرباني کوۍ.

امام ترمذي وايي داحديث حسن غريب دي او د هشام بن عروه دا حديث مونږ ته صرف په همدي سند رارسيدلي دي، او په دي باب کي دعمران بن حصين او زيد بن ارقم رضي الله عنهما نه هم احاديث مروي دي، او د راوي ابومثني نوم سليمان بن يزيد دي او دده نه ابوفديك نقل دروايت کړي دي، درسول الله صلي الله عليه وسلم نه مروي دي فرمائيلي يي دي قرباني کونکي ته دقربانۍ دڅاروي دهر ويخته په بدل کي نيکي ملاويږي، او دا هم مروي دي چي دقربانۍ دڅاروي دښکر په بدل کي ورته هم بدل ملاويږي.

**تشريح:** **دقربانۍ دوجوب شرائط**

رومبۍ شرط آزاد کيدل دی،ددې وجه دا ده چي قربانۍ دپاره ملك پکار دې او په غلام کي د مالك کيدو صلاحيت نشته بلکه دا مملوك دې،يعنی مالك کيدل صرف آزاد دپاره مخصوص دی.

دويم شرط مسلمان کيدل دی ځکه چي قربانی قربت دې او کافر د قرباتو ادا کولو اهل نه دې

دريم شرط د قربانۍ مويسر کيدل دی.

څلورم شرط مالدار کيدل دی.

پنځم شرط د قربانۍ وخت کيدل دی،يعنی ايام نحر(د قربانۍ ورځې) ځکه چي قربانی هم دې ورځو سره مخصوص ده.

[1] ـ سنن ابن ماجه ـ الأضاحي ٣(٣١٢٦) . (تحفة الأشراف : ١٦٣٢٢)

***************

## ٢_ باب مَا جَاءَ فِي الأُضْحِيَةِ بِكَبْشَيْنِ

### په دوه ګډانو دقربانۍ کولو بيان

١٤٩٤_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: " ضَحَّى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِكَبْشَيْنِ أَمْلَحَيْنِ أَقْرَنَيْنِ، ذَبَحَهُمَا بِيَدِهِ، وَسَمَّى، وَكَبَّرَ، وَوَضَعَ رِجْلَهُ عَلَى صِفَاحِهِمَا ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ عَلِيٍّ، وَعَائِشَةَ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَأَبِي أَيُّوبَ، وَجَابِرٍ، وَأَبِي الدَّرْدَاءِ، وَأَبِي رَافِعٍ، وَابْنِ عُمَرَ، وَأَبِي بَكْرَةَ أَيْضًا. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [1]

**ترجمه** : دانس رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم د دوه ښكرونو والا خړبو ګډانو باندي قرباني اوكړه او دا دواړه يي پخپل لاس ذبح كړل بسم الله يي اووئيل او الله اكبر يي اووئيل او دذبح كولو په وخت كي يي خپله خپه ددوئ په څټونو باندي كيخوده.

امام ترمذي وايي : دا حديث حسن صحيح دي، او په دي باب كي دعلي، عائشه، ابوهريره، ابوايوب، جابر، ابوالدرداء ، ابو رافع، ابن عمر، او ابوبكره رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي.

***************

## ٣_ باب مَا جَاءَ فِي الأُضْحِيَةِ عَنِ الْمَيِّتِ.

### دمړي دطرفه دقربانۍ بيان

١٤٩٥_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُبَيْدٍ الْمُحَارِبِيُّ الْكُوفِيُّ، حَدَّثَنَا شَرِيكٌ، عَنْ أَبِي الْحَسْنَاءِ، عَنِ الْحَكَمِ، عَنْ حَنَشٍ، عَنْ عَلِيٍّ " أَنَّهُ كَانَ يُضَحِّي بِكَبْشَيْنِ، أَحَدُهُمَا عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَالْآخَرُ عَنْ نَفْسِهِ ". فَقِيلَ لَهُ: فَقَالَ: أَمَرَنِي بِهِ يَعْنِي: النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَا أَدَعُهُ أَبَدًا. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ شَرِيكٍ، وَقَدْ رَخَّصَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ أَنْ يُضَحَّى عَنِ

---

[1] _ اخرجه البخاري في الصحيح_ الأضاحي ٧ (٥٥٥٣) . و ٩ (٥٥٥٨) . و ١٣ (٥٥٦٤) . و ١٤ (٥٥٦٥) . والتوحيد ١٣ (٧٣٩٩) . صحيح مسلم_ الأضاحي ٣ (١٩٦٦) . سنن ابي داود_ الأضاحي ٤ (٢٧٩٤) . سنن النسائي_ الأضاحي ١٣ . (٤٣٩١ . ٤٣٩٢) . و ٢٨ (٤٤٢٠) . و ٢٩ (٤٤٢١) . سنن ابن ماجه_ الأضاحي (٣١٢٠) (تحفة الأشراف : ١٢٢٧) . و احمد في المسند (٣_ ٩٩ . ١١٥ . ١٧٠ . ١٧٨ . ١٨٩ . ٢١١ . ٢١٤ . ٢٢٢ . ٢٥٥ . ٢٥٨ . ٢٧٢ . ٢٧٩ . ٢٨١) . سنن الدارمي_ الأضاحي ١ (١٩٨٨)

الْمَيِّتِ، وَلَمْ يَرَ بَعْضُهُمْ أَنْ يُضَحَّى عَنْهُ، وقَالَ عَبْدُ اللهِ بْنُ الْمُبَارَكِ: "أَحَبُّ إِلَيَّ أَنْ يُتَصَدَّقَ عَنْهُ، وَلَا يُضَحَّى عَنْهُ، وَإِنْ ضَحَّى، فَلَا يَأْكُلُ مِنْهَا شَيْئًا، وَيَتَصَدَّقُ بِهَا كُلِّهَا". قَالَ مُحَمَّدٌ. قَالَ عَلِيُّ بْنُ الْمَدِينِيِّ، وَقَدْ رَوَاهُ غَيْرُ شَرِيكٍ، قُلْتُ لَهُ: أَبُو الْحَسْنَاءِ مَا اسْمُهُ، فَلَمْ يَعْرِفْهُ، قَالَ مُسْلِمٌ اسْمُهُ: الْحَسَنُ. (1)

**ترجمه** : دعلي رضي الله عنه باره کي مروي دي چي هغه به په دوه ګډانو قرباني کوله. يو درسول الله صلي الله عليه وسلم دطرفه او دويم دخپل طرفه نو دهغه نه په دي باره کي تپوس اوکړي شو راته يي اوفرمائيل ماته ددي حکم نبي کريم صلي الله عليه وسلم کړي دي لهذا زه يي هيڅ کله نه پريږدم.

امام ترمذي وايي دا حديث حسن غريب دي او دا مونږ ته صرف دشريك په روايت رارسيدلي دي ، امام بخاري وائي دعلي بن مديني قول دي چي دا حديث دشريك نه علاوه نورو راويانو هم نقل کړي دي ما ورنه تپوس اوکړو دابو الحسناء نوم څه دي نو هغه اونه پيژندل، مسلم وائي دده نوم حسن دي، بعضي اهل علمو دمړي دطرفه دقربانئ کولو اجازت ورکړي دي او بعضي نور اهل علم دمړي دطرفه قرباني کول درست نه ګڼړي دعبدالله بن مبارك قول دي زما دا خبره ډيره خوښه ده چي دمړي دطرفه دي صدقه ورکړي شي او قرباني دي اونکړي شي او که څوك دمړي دطرفه قرباني اوکړي نو بيا دي ددينه هيڅ نه خوري بلکه ټول دي صدقه کوي.

**تشريح** : د قربانئ دپاره ضروری ده چي دا پوره قربت واقع وی،ګنی (شريکا نو کي به) د يوکس قربانی به هم نه کيږي نوکه د يوکس قصد غوښه خوړل وی نود هيڅ يوکس قربانی به جائز نه وی.دغه شان که يو شريکوال هم نصرانی وی نوچونکه هغه د قربت اهل نه دې نود هيڅ يوکس قربانی به نه کيږي او د قربت په حق کي وينه تويول نه ټکړې کيږی نوکه ددې بعضي حصه قربت نه وی نوبيا به يوه حصه هم قربت نه وی،بهرحال د قربت نيت ضروری دې او که چري د قربت جهات بدل شی نوهيڅ باك نشته نوکه يوکس د قربانئ نيت اوکړواو دويم کس د دم قران، او دريم د دم تمتع نيت اوکړو نوجائز ده څکه چي قربت کي ټول متحد دي او د غير د طرفه قربانی هم قربت دې لکه څنګه چي د نبی کريمﷺ عمل په دې دلالت کوی نومعلومه شوه چي د مړی د طرفه دده وارثا نو شريکا نو ته د قربانئ اجازت ورکړو نوقربانی جائز ده.

****************

## ٤ـ باب مَا جَاءَ مَا يُسْتَحَبُّ مِنَ الأَضَاحِي

[1] ـ سنن ابي داود ـ الأضاحي ٢ (٢٧٩٠). (تحفة الأشراف: ١٠٠٨٢)

## كوم قسم ځاروي با ندي قربا ني كول مستحب دي

١٤٩٦_ حَدَّثَنَا أَبُو سَعِيدٍ الأَشَجُّ، حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ غِيَاثٍ، عَنْ جَعْفَرِ بْنِ مُحَمَّدٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، قَالَ: " ضَحَّى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِكَبْشٍ أَقْرَنَ، فَحِيلٍ يَأْكُلُ فِي سَوَادٍ، وَيَمْشِي فِي سَوَادٍ، وَيَنْظُرُ فِي سَوَادٍ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ، لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ حَفْصِ بْنِ غِيَاثٍ. (1)

**ترجمه** دابوسعيد خدري رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم په يو نر ګډ باندي قرباني اوکړه چي په توروالي کي يي خوړل کول او په توروالي کي تلو او په توروالي کي به يي کتل کول.
امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح غريب دي دا مونږ ته صرف دحفص بن غياث په سند رارسيدلي دي.

****************

## ٥_ باب مَا لاَ يَجُوزُ مِنَ الأَضَاحِي

## په كومو ځاروو قربا ني كول جائز نه دي

١٤٩٧_ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ، أَخْبَرَنَا جَرِيرُ بْنُ حَازِمٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاق، عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي حَبِيبٍ، عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ عُبَيْدِ بْنِ فَيْرُوزَ، عَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ، رَفَعَهُ، قَالَ: "لَا يُضَحَّى بِالْعَرْجَاءِ بَيِّنٌ ظَلَعُهَا، وَلَا بِالْعَوْرَاءِ بَيِّنٌ عَوَرُهَا، وَلَا بِالْمَرِيضَةِ بَيِّنٌ مَرَضُهَا، وَلَا بِالْعَجْفَاءِ الَّتِي لَا تُنْقِي ". حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي زَائِدَةَ، أَخْبَرَنَا شُعْبَةُ، عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ عُبَيْدِ بْنِ فَيْرُوزَ، عَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَهُ بِمَعْنَاهُ، قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ عُبَيْدِ بْنِ فَيْرُوزَ، عَنِ الْبَرَاءِ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا الْحَدِيثِ عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ. (2)

---

[1] _ سنن ابي داود_ الأضاحي ٤ (٢٧٩٦) . سنن النسائي_ الضحايا ١٣ (٤٣٩٥) . سنن ابن ماجه_ الأضاحي ٤ (٣١٢٨) . (تحفة الأشراف: ٤٢٩٧)

[2] _ : ابي داود_ الأضاحي ٦ (٢٨٠٢) . سنن النسائي_ الضحايا ٥ (٤٣٧٤) . سنن ابن ماجه_ الأضاحي ٨ (٣١٤٤) . (تحفة الأشراف: ١٧٩٠) . والموطاء الضحايا ١ (١) واحمد في المسند (٤_ ٢٨٤. ٢٨٩. ٣٠٠. ٣٠١) . سنن الدارمي_ الأضاحي (١٩٩٢)

**ترجمه**: دبراء بن عازب رضي الله عنه نه روايت دي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي په داسي ګوډ څاروي دي قرباني اونكړي شي چي ګودوالي يي ښكاره وي او نه دي په داسي ړوند څاروي قرباني اوكړي شي چي ړوندوالي يي ښكاره وي او نه دي په داسي بيمار څاروي قرباني اوكړي شي چي بيماري يي معلوميږي او نه دي په داسي خوار او كمزوري څاروي قرباني اوكړي شي چي هډوكي يي بيل بيل ښكاري په دي سند دبراء بن عازب رضي الله عنه نه ددي هم معني يو بل حديث هم مروي دي.
امام ترمذي وايي دا حديث حسن صحيح دي او دا مونږ ته صرف دعبيد بن فيروز په سند رارسيدلي دي او هغه دبراء نه نقل كړي دي او داهل علمو په همدي باندي عمل دي

***************

## ٦_ باب مَا يُكْرَهُ مِنَ الأَضَاحِي

## په كومو څاروو قرباني كول مكروه دي

١٤٩٨_ حَدَّثَنَا الحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ الحُلْوَانِيُّ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، أَخْبَرَنَا شَرِيكُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ شُرَيْحِ بْنِ النُّعْمَانِ الصَّائِدِيِّ وَهُوَ الهَمْدَانِيُّ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ، قَالَ: أَمَرَنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " أَنْ نَسْتَشْرِفَ العَيْنَ، وَالأُذُنَ، وَأَنْ لَا نُضَحِّيَ بِمُقَابَلَةٍ، وَلَا مُدَابَرَةٍ، وَلَا شَرْقَاءَ، وَلَا خَرْقَاءَ ". حَدَّثَنَا الحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ مُوسَى، أَخْبَرَنَا إِسْرَائِيلُ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ شُرَيْحِ بْنِ النُّعْمَانِ، عَنْ عَلِيٍّ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِثْلَهُ، وَزَادَ، قَالَ: " المُقَابَلَةُ: مَا قُطِعَ طَرَفُ أُذُنِهَا، وَالمُدَابَرَةُ: مَا قُطِعَ مِنْ جَانِبِ الأُذُنِ، وَالشَّرْقَاءُ: المَشْقُوقَةُ، وَالخَرْقَاءُ: المَثْقُوبَةُ ". قَالَ أَبُو عِيسَى، هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. قَالَ أَبُو عِيسَى، وَشُرَيْحُ بْنُ النُّعْمَانِ الصَّائِدِيُّ هُوَ كُوفِيٌّ مِنْ أَصْحَابِ عَلِيٍّ، وَشُرَيْحُ بْنُ هَانِئٍ كُوفِيٌّ وَلِوَالِدِهِ صُحْبَةٌ مِنْ أَصْحَابِ عَلِيٍّ، وَشُرَيْحُ بْنُ الحَارِثِ الكِنْدِيُّ أَبُو أُمَيَّةَ القَاضِي، قَدْ رَوَى عَنْ عَلِيٍّ، وَكُلُّهُمْ مِنْ أَصْحَابِ عَلِيٍّ فِي عَصْرٍ وَاحِدٍ، قَوْلُهُ أَنْ نَسْتَشْرِفَ: أَيْ أَنْ نَنْظُرَ صَحِيحًا.[1]

**ترجمه**: دعلي بن ابي طالب رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم مونږ ته حكم كړي دي چي دقربانۍ دڅاروو سترګي او غوږونه په غور سره اوګورو او په داسي څاروي

---

[1] _ سنن ابي داود_ الأضاحي ٦ (٢٨٠٤)، سنن النسائي_ الضحايا ١٠ (٤٣٧٤)، سنن ابن ماجه_ الأضاحي ٨ (٣١٤٢)، (تحفة الأشراف: ١٠١٢٥)، و احمد في المسند (١/ ٨٠، ١٠٨، ١٢٨، ١٤٩)، سنن الدارمي_ الأضاحي ٣ (١٩٩٥)

قرباني اونكړو دكوم چي غوږ پري كړي شوي وي او يا يي غوږ دروستو طرف نه كټ شوي وي او يايي غوږ شليدلي وي او يايي په غوږ كي سوري وي، په دي سند هم دعلي رضي الله عنه نه ددي پشان روايت مروي دي ليكن په دي كي دا اضافه ده چي "مقابلة " يعني هغه ځاروي دكوم دغوږ چي يوه كناره پري كړي شوي وي اوْ مدابره هغه ځاروي دي چي دغوږ يوه حصه يي پري كړي شوي وي او شرقاء هغه ځاروي دي چي غوږ يي په اوږدو شلولي شوي وي او خرقاء هغه ځاروي دي دكوم په غوږ كي چي سوري وي.

امام ترمذي وايي دا حديث حسن صحيح دي او شريح بن نعمان صائدي دكوفي اوسيدونكي دي او دعلي رضي الله عنه په ملګرو كي دي او شريح بن هاني هم دكوفي اوسيدونكي دي او دده پلار ته شرف دصحابيت حاصل دي او دعلي رضي الله عنه په تعلق دارانو كي دي او شريح بن حارث كندي ابو اميه قاضي دي هغه دعلي رضي الله عنه نه نقل دروايت كوي دا دري واړه شريحه دعلي رضي الله عنه ملګري او دهغه دزماني خلق دي او د "نستشرف" نه مراد "تنظر صحيحا" دي يعني دقرباني ځاروي به مونږ ښه په غور سره ګورو.

***************

## ٧_ باب مَا جَاءَ فِي الْجَذَعِ مِنَ الضَّأْنِ فِي الأَضَاحِي

### په ګډانوكي په جزع دقرباني كولو بيان

١٤٩٩_ حَدَّثَنَا يُوسُفُ بْنُ عِيسَى، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ وَاقِدٍ، عَنْ كِدَامِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ أَبِي كِبَاشٍ، قَالَ: جَلَبْتُ غَنَمًا جُذْعَانًا إِلَى الْمَدِينَةِ، فَكَسَدَتْ عَلَيَّ، فَلَقِيتُ أَبَا هُرَيْرَةَ فَسَأَلْتُهُ، فَقَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: "نِعْمَ" أَوْ: "نِعْمَتِ الأُضْحِيَّةُ الْجَذَعُ مِنَ الضَّأْنِ". قَالَ: فَانْتَهَبَهُ النَّاسُ قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، وَأُمِّ بِلاَلٍ ابْنَةِ هِلاَلٍ، عَنْ أَبِيهَا، وَجَابِرٍ، وَعُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ، وَرَجُلٍ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ، حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ، وَقَدْ رُوِيَ هَذَا عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ مَوْقُوفًا، وَعُثْمَانُ بْنُ وَاقِدٍ هُوَ: ابْنُ مُحَمَّدِ بْنِ زَيْدِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ، أَنَّ الْجَذَعَ مِنَ الضَّأْنِ يُجْزِئُ فِي الأُضْحِيَّةِ.[1]

[1] _ : تفرد بلكره المؤلف (تحفة الأشراف: ١٥٢٥٦) وانظر مسند احمد (٢ ٣٤٥)

**ترجمه** : دابوكباش بيان دي فرمائي چي ما مديني ته دتجارت دپاره جذع يعني دګډانو واړه واړه بچي راوستل او بازار سست وو نو ما دابوهريره رضي الله عنه سره ملاقات اوکړو او تپوس مي ورنه اوکړو ابوهريره وئيل ما درسول الله صلي الله عليه وسلم نه اوريدلي دي چي دګډ په جذع قرباني درسته ده، ابوكباش وائي ددي خبري په اوريدو زما د ګډانو په بچو خلق راپريوتل، او په باب كي دابن عباس، ام بلال، بنت هلا ل دپلار او جابر، او عقبي بن عامر رضي الله عنهم او دنبي كريم صلي الله عليه وسلم په صحابه كرامو كي ديو بل صحابه نه هم احاديث وارد دي.

امام ترمذي وايي دابوهريره حديث حسن غريب دي او دا حديث دابوهريره نه موقوفا هم مروي دي او عثمان بن واقد ابن محمد بن زياد بن عبدالله بن عمر بن خطاب دي. په صحابه كرامو كي داهل علمو او ددوئ نه پس دبعضي نورو اهل علمو په دي باندي عمل دي چي دګډانو بچي دقربانئ دپاره كافي دي.

***************

١٥٠٠_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي حَبِيبٍ، عَنْ أَبِي الْخَيْرِ، عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " أَعْطَاهُ غَنَمًا يَقْسِمُهَا عَلَى أَصْحَابِهِ ضَحَايَا. فَبَقِيَ عَتُودٌ، أَوْ جَدْيٌ، فَذَكَرْتُ ذَلِكَ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: ضَحِّ بِهِ أَنْتَ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، قَالَ وَكِيعٌ، الْجَذَعُ مِنَ الضَّأْنِ: يَكُونُ ابْنَ سَنَةٍ أَوْ سَبْعَةِ أَشْهُرٍ. وَقَدْ رُوِيَ مِنْ غَيْرِ هَذَا الْوَجْهِ، عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ، أَنَّهُ قَالَ: قَسَمَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ضَحَايَا، فَبَقِيَ جَذَعَةٌ، فَسَأَلْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: " ضَحِّ بِهَا أَنْتَ ".[1]

**ترجمه** : دعقبي بن عامر رضي الله عنه نه مروي دي فرمائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم ماته ګډان راكړل ترڅو چي دقربانئ دپاره يي په صحابه كرامو تقسيم كړل نو په دوئ كي دچيلئ يو كلن سورب بچي باقي پاتي شو نو ما رسول الله صلي الله عليه وسلم ته ددي ذكر اوكړو راته يي اوفرمائيل په دي ته قرباني اوكړه.

امام ترمذي وايي دا حديث حسن صحيح دي دوكيع قول دي دګډ جذع دشپږو يا اوه مياشتو بچي وي، دعقبي بن عامر نه په بل سند هم يو روايت مروي دي چي رسول الله صلي الله عليه

---

[1] _ اخرجه البخاري في الصحيح_ الوكالة ١ (٢٣٠٠) . والشركة ١٢ (٢٥٠٠) . والأضاحي ٢ (٥٥٤٧) . و ٧ (٥٥٥٥) . صحيح مسلم_ الأضاحي ٢ (١٩٦٥) . سنن النسائي_ الضحايا ١٢ (٤٣٨٤ ٤٣٨٦) . سنن ابن ماجه_ الأضاحي ٧ (٣١٣٨) . (تحفة الأشراف : ٩٩٥٥) . و احمد في المسند (٤_ ١٤٤. ١٤٩. ١٥٢. ١٥٦) . سنن الدارمي_ الأضاحي ٤ (١٩٩٦)

وسلم په صحابه کرامو د قربانۍ څاروي تقسیم کړل هر کله چي یو څاروي باقي پاتي شو نو دهغه باره کي ما درسول الله نه تپوس اوکړو راته یي اوفرمائیل په دي ته پخپله قرباني اوکړه.

***************

حَدَّثَنَا بِذَلِكَ مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، وَأَبُو دَاوُدَ، قَالَا: حَدَّثَنَا هِشَامٌ الدَّسْتُوَائِيُّ، عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي كَثِيرٍ، عَنْ بَعْجَةَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ بَدْرٍ، عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِهَذَا الْحَدِيثِ. [1]

**ترجمه** : دعقبي بن عامر رضي الله عنه دنبي کریم صلي الله علیه وسلم نه دماقبل حدیث یو بل هم معني روایت نقل کړي دي.

***************

## ٨ـ بَاب مَا جَاءَ فِي الِاشْتِرَاكِ فِي الْأُضْحِيَةِ

## په قرباني کي دشرکیدلو بیان

١٥٠١ـ حَدَّثَنَا أَبُو عَمَّارٍ الْحُسَيْنُ بْنُ حُرَيْثٍ، حَدَّثَنَا الْفَضْلُ بْنُ مُوسَى، عَنِ الْحُسَيْنِ بْنِ وَاقِدٍ، عَنْ عِلْبَاءَ بْنِ أَحْمَرَ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "كُنَّا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي سَفَرٍ، فَحَضَرَ الْأَضْحَى، فَاشْتَرَكْنَا فِي الْبَقَرَةِ سَبْعَةً، وَفِي الْبَعِيرِ عَشَرَةً". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَفِي الْبَاب، عَنْ أَبِي الْأَسَدِ السُّلَمِيِّ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، وَأَبِي أَيُّوبَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ عَبَّاسٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ، لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ الْفَضْلِ بْنِ مُوسَى. [2]

**ترجمه** : دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما بیان دي فرمائي چي مونږ درسول الله صلي الله علیه وسلم سره په یو سفر کي موجود وو چي دقربانۍ ورځ راغله چنانچي مونږ دغوا په قربانۍ کي اوه کسان او داوښ په قربانۍ کي لس کسان شریک شو.

---

[1] ـ اخرجه البخاري في الصحيح ـ الوكالة ١ (٢٣٠٠)، والشركة ١٢ (٢٥٠٠)، والأضاحي ٢ (٥٥٤٧)، و ٧ (٥٥٥٥). صحيح مسلم ـ الأضاحي ٢ (١٩٦٥). سنن النسائي ـ الضحايا ١٣ (٤٣٨٤ ٤٣٨٦). سنن ابن ماجه ـ الأضاحي ٧ (٣١٣٨). (تحفة الأشراف: ٩٩٥٥)، واحمد في المسند (٤ـ ١٤٤، ١٤٩، ١٥٢، ١٥٦). سنن الدارمي ـ الأضاحي ٢ (١٩٩٦)

[2] ـ انظر حديث رقم: ٩٠٥

امام ترمذي وايي دابن عباس حديث حسن غريب دي او دا مونږ ته صرف دفضل بن موسي په سند رارسيدلي دي، او په دي باب کي دابوالاسد سلمي نه چي هغه دخپل پلار نه او هغه دده دنيکه نه روايت نقل کوي او دابوايوب انصاري رضي الله عنهما نه هم احاديث مروي دي.

****************

١٥٠٢_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ، قَالَ: " نَحَرْنَا مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالحُدَيْبِيَةِ البَدَنَةَ عَنْ سَبْعَةٍ، وَالبَقَرَةَ عَنْ سَبْعَةٍ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ العِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ، وَهُوَ قَوْلُ سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ، وَابْنِ المُبَارَكِ، وَالشَّافِعِيِّ، وَأَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ، وقَالَ إِسْحَاقُ: يُجْزِئُ أَيْضًا البَعِيرُ عَنْ عَشَرَةٍ، وَاحْتَجَّ بِحَدِيثِ ابْنِ عَبَّاسٍ. [1]

**ترجمه** : دجابر رضي الله عنه بيان دي فرمائي چي مونږ درسول الله صلي الله عليه وسلم سره په حديبيه مقام کي داوه اوه کسانو دطرفه غواگاني او اوښان ذبح کړل.

امام ترمذي وايي دا حديث حسن صحيح دي په صحابه کرامو کي داهل علمو او ددوئ نه علاوه خلقو هم په دي باندي عمل دي او دسفيان ثوري، ابن مبارك، شافعي، احمد، او اسحاق بن راهويه رحمهم الله هم دا قول دي، اسحاق بن راهويه وائي اوښ دلسو کسانو دطرفه هم کفايت کوي او ددي دپاره يي دابن عباس رضي الله عنهما دحديث نه استدلال کړي دي

****************

## ٩_ بَاب فِي الضَّحِيَّةِ بِعَضْبَاءِ القَرْنِ وَالأُذُنِ

**په ماتو ښکرو والا او شليدلي غوږ والا څاروي باندي دقرباني کولو بيان**

١٥٠٣_ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ، أَخْبَرَنَا شَرِيكٌ، عَنْ سَلَمَةَ بْنِ كُهَيْلٍ، عَنْ حُجَيَّةَ بْنِ عَدِيٍّ، عَنْ عَلِيٍّ، قَالَ: البَقَرَةُ عَنْ سَبْعَةٍ، قُلْتُ: فَإِنْ وَلَدَتْ، قَالَ: اذْبَحْ وَلَدَهَا مَعَهَا، قُلْتُ: فَالعَرْجَاءُ، قَالَ: إِذَا بَلَغَتِ المَنْسِكَ، قُلْتُ: فَمَكْسُورَةُ القَرْنِ، قَالَ: لَا بَأْسَ، أُمِرْنَا أَوْ أَمَرَنَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "

---

[1] _ انظر حديث رقم: ٩٠٢

أَنْ نَسْتَشْرِفَ الْعَيْنَيْنِ، وَالأُذُنَيْنِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَقَدْ رَوَاهُ سُفْيَانُ، عَنْ سَلَمَةَ بْنِ كُهَيْلٍ. [1]

**ترجمه**: دحجيه بن عدي نه روايت دي چي علي رضي الله عنه اوفرمائيل دغوا قرباني داوه كسانو دطرفه كافي كيږي حجيه وائي ما ورنه تپوس اوكړو كه چري دا بچي راوړي نو څه حكم دي نو ويي فرمائيل بچي يي ذبح كړئ ما اوونيل كه دا ګوډه وي نو ويي فرمائيل كله چي دقربانئ مقام ته پخپله اورسي نو ذبح يي كړئ ما اوونيل كه ښكر يي مات وي؟ ونيل يي چي په دي كي هيڅ باك نشته مونږ ته حكم شوي دي او كه داسي يي اوفرمائيل مونږ ته رسول الله صلي الله عليه وسلم حكم كړي دي چي مونږ به دقربانئ دخاروي غوږونه او سترګي په غور سره ګورو.

امام ترمذي وايي دا حديث حسن صحيح دي او دا حديث سفيان دسلمه بن كهيل نه هم نقل كړي دي.

***************

١٥٠٤_ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا عَبْدَةُ، عَنْ سَعِيدٍ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ جُرَيِّ بْنِ كُلَيْبٍ النَّهْدِيِّ، عَنْ عَلِيٍّ، قَالَ: " نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يُضَحَّى بِأَعْضَبِ الْقَرْنِ، وَالأُذُنِ ". قَالَ قَتَادَةُ: فَذَكَرْتُ ذَلِكَ لِسَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ، فَقَالَ: الْعَضْبُ: مَا بَلَغَ النِّصْفَ فَمَا فَوْقَ ذَلِكَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [2]

**ترجمه**: دعلي رضي الله عنه بيان دي فرمائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم په هغه خاروو دقربانئ كولو نه منع فرمائيلي ده دكومو چي ښكرونه مات وي او غوږونه يي شليدلي وي، قتاده وائي ماسعيد بن مسيب ته ددي ذكر اوكړو نو هغه اوونيل دغضباء نه مراد ماتو ښكرونو والاخاروي دي چي ښكرونه يي نيم نه وي او يا دنيمو نه زيات نه وي.

امام ترمذي وايي دا حديث حسن صحيح دي.

---

[1] _ سنن النسائي_ الضحايا ١١ (٤٣٨١). سنن ابن ماجه_ الأضاحي ٨ (٣١٤٣). (تحفة الأشراف: ١٠٠٦٢). و احمد في المسند (١_ ٩٥. ١٠٥. ١٢٥. ١٣٢. ١٥٢). وسنن الدارمي_ الأضاحي ٣ (١٩٩٣).

[2] _ سنن ابي داود_ الضحايا ٦ (٢٨٠٥). سنن النسائي_ الضحايا ١٢ (٤٣٨٢). سنن ابن ماجه_ الأضاحي ٨ (٣١٤٥). (تحفة الأشراف: ١٠٠٣١). و احمد في المسند (١_ ٨٣. ١٠١. ١٠٩. ١٢٧. ١٢٩. ١٥٠)

****************

## ١٠ـ باب مَا جَاءَ أَنَّ الشَّاةَ الْوَاحِدَةَ تُجْزِئُ عَنْ أَهْلِ الْبَيْتِ

**ديو ګډ يا چيلئ قرباني ديو كور دټولو افرادو دطرفه كافي دي**

١٥٠٥ـ حَدَّثَنِي يَحْيَى بْنُ مُوسَى، حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرٍ الْحَنَفِيُّ، حَدَّثَنَا الضَّحَّاكُ بْنُ عُثْمَانَ، حَدَّثَنِي عُمَارَةُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: سَمِعْتُ عَطَاءَ بْنَ يَسَارٍ، يَقُولُ: سَأَلْتُ أَبَا أَيُّوبَ الأَنْصَارِيَّ: كَيْفَ كَانَتِ الضَّحَايَا عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ؟ فَقَالَ: "كَانَ الرَّجُلُ يُضَحِّي بِالشَّاةِ عَنْهُ، وَعَنْ أَهْلِ بَيْتِهِ، فَيَأْكُلُونَ، وَيُطْعِمُونَ، حَتَّى تَبَاهَى النَّاسُ، فَصَارَتْ كَمَا تَرَى "، قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَعُمَارَةُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ هُوَ: مَدَنِيٌّ، وَقَدْ رَوَى عَنْهُ مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ الْعِلْمِ، وَهُوَ قَوْلُ أَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ: " وَاحْتَجَّا بِحَدِيثِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ ضَحَّى بِكَبْشٍ، فَقَالَ: هَذَا عَمَّنْ لَمْ يُضَحِّ مِنْ أُمَّتِي "، وَقَالَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ: لَا تُجْزِي الشَّاةُ إِلَّا عَنْ نَفْسٍ وَاحِدَةٍ، وَهُوَ قَوْلُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الْمُبَارَكِ: وَغَيْرِهِ مِنْ أَهْلِ الْعِلْمِ. ([1])

**ترجمه** . دعطاء بن يسار نه روايت دي فرمائي چي دابو ايوب انصاري رضي الله عنه نه مي تپوس اوكړو چي درسول الله صلي الله عليه وسلم په زمانه كي به قرباني څنګه كيدله نو هغه اووئيل يو كس به دخپل ځان او دخپل بال بچ دطرفه يو چيلي ذبح كولو او هغوئ به پخپله خوړل او نورو ته به يي هم دخوراك دپاره وركولو تردي پوري چي خلقو په زياتي قربانئ كولوفخر شروع كړو او اوس خو داسي حال دي كوم چي تاسو پخپله وينئ.

امام ترمذي وايي دا حديث حسن صحيح دي، او عماره بن عبدالله راوي مدني دي انس بن مالك ورنه هم نقل درروايت كړي دي او دبعضي اهل علمو په دي حديث عمل دي دامام احمد او اسحاق بن راهويه هم دا قول دي دوئ دواړو دنبي كريم صلي الله عليه وسلم دهغه حديث نه استدلال كړي دي په كوم كي چي دامضمون مروي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم په يو ګډ قرباني اوكړه او ويي فرمائيل دا زما په امت كي دهغه كسانو دطرفه دي چاچي قرباني نه وي كړي . بعضي اهل علم وائي يو چيلي صرف ديو كس دطرفه كافي كيږي. عبدالله بن مبارك او نورو اهل علمو هم په دي باندي قول كړي دي ليكن اولني قول زيات راجح دي.

****************

[1] ـ سنن ابن ماجه_الأضاحي ١٠(٣١٤٧). (تحفة الأشراف: ٣٤٨١)

## ١١_ باب الدَّلِيلِ عَلَى أَنَّ الأُضْحِيَةَ سُنَّةٌ

### دقربانۍ دسنت کيدو دليل

١٥٠٦_ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ، أَخْبَرَنَا حَجَّاجُ بْنُ أَرْطَاةَ، عَنْ جَبَلَةَ بْنِ سُحَيْمٍ، أَنَّ رَجُلًا سَأَلَ ابْنَ عُمَرَ عَنِ الأُضْحِيَةِ أَوَاجِبَةٌ هِيَ ؟ فَقَالَ " ضَحَّى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالْمُسْلِمُونَ "، فَأَعَادَهَا عَلَيْهِ، فَقَالَ: أَتَعْقِلُ، ضَحَّى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالْمُسْلِمُونَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ: " أَنَّ الأُضْحِيَةَ لَيْسَتْ بِوَاجِبَةٍ، وَلَكِنَّهَا سُنَّةٌ مِنْ سُنَنِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُسْتَحَبُّ أَنْ يُعْمَلَ بِهَا "، وَهُوَ قَوْلُ سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ، وَابْنِ الْمُبَارَكِ. ([1])

**ترجمه** : دجبله بن سحيم نه روايت دي چي يو کس دابن عمر رضي الله عنهما نه دقربانۍ باره کي تپوس اوکړو نو هغه اوونيل ايا نه پوهيږي رسول الله صلي الله عليه وسلم او مسلمانانو ټولو قرباني کړي ده.

امام ترمذي وايي : دا حديث حسن صحيح دي او اهل علمو په همدي باندي عمل دي چي قرباني واجب نه ده بلکه په سنت نبوي کي يو سنت دي او عمل کولورباندي مستحب دي سفيان ثوري اوابن مبارك هم په دي باندي قول کړي دي.

**تشريح**: د قربانۍ دحکم متعلق د فقهاؤ اختلاف دي او په دي دوه مذاهب دي.

د امام ابو حنيفه رحمه الله او امام محمد او امام زفراو د حسن بن زياد رحمهم الله په نزد قرباني واجب ده.

او د امام ابويوسف هم يو روايت دا دې او د امام شافعي په نزد او د امام ابويوسف د دويم روايت مطابق (کوم چي دوی په جوامع کي ذکرکړې دې چه) قربانی سنت ده.

بعضو اهل علمو اختلاف ذکرکړې دې. او امام طحاوی او بعضو نورو اهل علمو داسې ذکرکړی دی چي د امام ابو حنيفه رحمه الله په نزد واجب ده او د صاحبينو په نزد سنت مؤکده ده.، بهرحال فتوی د قربانۍ په وجوب ده.

****************

[1] _ سنن ابن ماجه_ الأضاحي ٢ (٣١٢٣، ٣١٢٤_ م) (تحفة الأشراف : ٦٦٧١)

١٥٠٧ـ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، وَهَنَّادٌ، قَالَا: حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي زَائِدَةَ، عَنْ حَجَّاجِ بْنِ أَرْطَاةَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: "أَقَامَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْمَدِينَةِ عَشْرَ سِنِينَ يُضَحِّي". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ. [1]

**ترجمه** : دابن عمررضي الله عنهما نه روايت دي فرمائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم په مدينه كي لس كاله اوسيدل كړي دي چي قرباني به يي كوله
امام ترمذي وايي داحديث حسن دي.

***************

## ١٢ـ باب مَا جَاءَ فِي الذَّبْحِ بَعْدَ الصَّلَاةِ

### قرباني داختر دمونځ نه پس كول پكار دي

١٥٠٨ـ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ، أَخْبَرَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ دَاوُدَ بْنِ أَبِي هِنْدٍ، عَنِ الشَّعْبِيِّ، عَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ، قَالَ: خَطَبَنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي يَوْمِ نَحْرٍ، فَقَالَ: "لَا يَذْبَحَنَّ أَحَدُكُمْ حَتَّى يُصَلِّيَ". قَالَ: فَقَامَ خَالِي، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، هَذَا يَوْمٌ اللَّحْمُ فِيهِ مَكْرُوهٌ، وَإِنِّي عَجَّلْتُ نُسُكِي لِأُطْعِمَ أَهْلِي، وَأَهْلَ دَارِي، أَوْ جِيرَانِي، قَالَ: "فَأَعِدْ ذَبْحًا آخَرَ". فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، عِنْدِي عَنَاقُ لَبَنٍ وَهِيَ خَيْرٌ مِنْ شَاتَيْ لَحْمٍ أَفَأَذْبَحُهَا؟ قَالَ: "نَعَمْ، وَهِيَ خَيْرُ نَسِيكَتَيْكَ، وَلَا تُجْزِئُ جَذَعَةٌ بَعْدَكَ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ جَابِرٍ، وَجُنْدَبٍ، وَأَنَسٍ، وَعُوَيْمِرِ بْنِ أَشْقَرَ، وَابْنِ عُمَرَ، وَأَبِي زَيْدٍ الْأَنْصَارِيِّ، قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَكْثَرِ أَهْلِ الْعِلْمِ أَنْ لَا يُضَحَّى بِالْمِصْرِ حَتَّى يُصَلِّيَ الْإِمَامُ، وَقَدْ رَخَّصَ قَوْمٌ مِنْ أَهْلِ الْعِلْمِ لِأَهْلِ الْقُرَى فِي الذَّبْحِ إِذَا طَلَعَ الْفَجْرُ، وَهُوَ قَوْلُ ابْنِ الْمُبَارَكِ، قَالَ أَبُو عِيسَى: وَقَدْ أَجْمَعَ أَهْلُ الْعِلْمِ أَنْ لَا يُجْزِئَ الْجَذَعُ مِنَ الْمَعْزِ، وَقَالُوا: إِنَّمَا يُجْزِئُ الْجَذَعُ مِنَ الضَّأْنِ. [2]

---

[1] ـ تفرد بذكره المؤلف (تحفة الأشراف: ٦٦٣٥)

[2] ـ اخرجه البخاري في الصحيح ـ العيدين ٣ (٩٥١)، و ٥ (٩٥٥)، و ٨ (٩٥٧)، و ١٠ (٩٦٨)، و ١٧ (٩٧٦)، و ٢٣ (٩٨٣)، والأضاحي ١ (٥٥٤٥)، و ٨ (٥٥٥٦و٥٥٥٧)، و ١١ (٥٥٦٠)، و ١٢ (٥٥٦٣)، والأيمان والنذور ١٥ (٦٦٧٣)، صحيح مسلم ـ الأضاحي ١ (١٩٦١)، سنن ابي داود ـ الأضاحي ٥ (٢٨٠٠)، سنن النسائي ـ العيدين ٨ (١٥٦٤)، والضحايا ١٧ (٤٤٠٠)، (تحفة الأشراف: ١٧٦٩)، واحمد في المسند (٤ـ ٢٨٠، ٢٩٧، ٣٠٢، ٣٠٣) وسنن الدارمي ـ الأضاحي ٧ (٢٠٠٥)

**ترجمه** : دبراء بن عازب رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم ذقربانۍ په ورځ خطبه ورکړه او دخطبي په دوران کي يي اوفرمائيل چي څو پورې مو داختر مونځ اداء کړي نه وي هغه وخته پوري قرباني مه کوئ براء وائي دي وخت کي زما ماما اودريدو او عرض يي اوکړو اي دالله رسوله دا خو يوه داسي ورځ ده په کومه کي چي غوښه قابل دنفرت وي نو په دي وجه ما پخپله قربانۍ کي جلتي اوکړه تردي چي پخپلو بچو او ګاونډيانو باندي يي اوخوروم ؟ رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل که داسي دي کړي وي نو دويمه قرباني به کوي هغه عرض اوکړو اي دالله رسوله زما سره خو يوه لنګه اوښه ده او د دوه غوښي والا ګډانو نه بهتره ده نو ايا دا ذبح کړم رسول الله اوفرمائيل هو دا ستاسو په قربانو کي بهتره قرباني ده ليکن ستا نه پس به بل څوك په جذعه (بچي) قرباني نه کوي، په دي باب کي دجابر، جندب، انس، عوايمر بن اشقر، ابن عمر، او ابوزيد انصاري رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي.

امام ترمذي وايي دا حديث حسن صحيح دي او داکثرو اهل علمو درباندي عمل دي چي څو پوري امام داختر مونځ اداء کړي نه وي تر هغي پوري دي په ښار کي قرباني اونکړي شي مګر داهل علمو يو جماعت دکلو او بانډچيانو خلقو دپاره ددي اجازت ورکړي دي دابن مبارك هم دا قول دي، او داهل علمو اجماع ده چي دچيلۍ بچي (چي دشپږو مياشتو وي) قرباني کول درست نه دي دوئ وائي البته دګډ په بچي چي دشپږو مياشتو وي قرباني کول درست وي

*****************

## ١٣_ بَاب مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ أَكْلِ الأُضْحِيَةِ فَوْقَ ثَلاثَةِ أَيَّامٍ

### د دري ورځو نه زيات دقربانۍ غوښه خوړل مکروه دي

١٥٠٩_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ. حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "لَا يَأْكُلُ أَحَدُكُمْ مِنْ لَحْمِ أُضْحِيَّتِهِ فَوْقَ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ عَائِشَةَ، وَأَنَسٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ عُمَرَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَإِنَّمَا كَانَ النَّهْيُ مِنَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُتَقَدِّمًا، ثُمَّ رَخَّصَ بَعْدَ ذَلِكَ. (1)

**ترجمه** : دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت دي نبي کريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي په تاسو کي دي هيڅوك د دري ورځو نه اخوا دقربانۍ غوښه نه خوري.

---

1 صحيح مسلم_ الأضاحي ٥ (١٩٧٠). (تحفة الأشراف: ٨٢٩٣)

امام ترمذي وايي په دي باب کي دعائشه او انس رضي الله عنهما نه هم احاديث مروي دي او دابن عمر حديث حسن صحيح دي، نبي کريم صلي الله عليه وسلم اول ممانعت کړي وو مګر بيا يي ددي اجازت ورکړي دي.

4/15

***************

## ١٤_ بَاب مَا جَاءَ فِي الرُّخْصَةِ فِي أَكْلِهَا بَعْدَ ثَلاَثٍ

### د دريو ورځو نه پس دقربانۍ دغوښي خوړلو داجازت بيان

١٥١٠_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، وَمَحْمُودُ بْنُ غَيْلاَنَ، وَالحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ الخَلاَّلُ، وَغَيْرُ وَاحِدٍ، قَالُوا: أَخْبَرَنَا أَبُو عَاصِمٍ النَّبِيلُ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ، عَنْ عَلْقَمَةَ بْنِ مَرْثَدٍ، عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ بُرَيْدَةَ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "كُنْتُ نَهَيْتُكُمْ عَنْ لُحُومِ الأَضَاحِيِّ فَوْقَ ثَلاَثٍ لِيَتَّسِعَ ذُو الطَّوْلِ عَلَى مَنْ لاَ طَوْلَ لَهُ، فَكُلُوا مَا بَدَا لَكُمْ وَأَطْعِمُوا وَادَّخِرُوا". قَالَ: وَفِي البَاب، عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ، وَعَائِشَةَ، وَنُبَيْشَةَ، وَأَبِي سَعِيدٍ، وَقَتَادَةَ بْنِ النُّعْمَانِ، وَأَنَسٍ، وَأُمِّ سَلَمَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ بُرَيْدَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ العِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ.[1]

**ترجمه** دبريده رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي ما خو تاسو د دريو ورځو نه پس دقربانۍ دغوښي خوړلو نه منع کړي وئ ددي دپاره چي مالداران خلق هغه خلقو ته غوښي ورکړي دچاچي دقربانۍ وس نه وي مګر اوس چي مو څومره وخته پوري خوښه وي خورئ او په خلقو هم خوروئ او غوښي جمع کولي شئ.

امام ترمذي وايي دبريده حديث حسن صحيح دي په صحابه کرامو او ددوئ نه پس دنورو اهل علمو په دي باندي عمل دي، او په دي باب کي دابن مسعود، عائشه، ابوسعد، قتاده بن نعمان، انس، او ام سلمه رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي.

***************

[1] _ صحيح مسلم_ الجنائز ٣٦ (٩٧٧_ ١٠٦) . والأضاحي ٥ (٩٧٧_ ٣٧) . سنن ابي داود_ الأشربة ٧ (٣٦٩٨) . سنن النسائي_ الجنائز ١٠٠ (٢٠٣٣) . سنن ابي داود_ الأضاحي ٣٦ (٤٤٣٤، ٤٤٣٥) . والأشربة ٤٠ (٥٦٥٣، ٥٦٥٦) (تحفة الأشراف: ١٩٣٢) . واحمد في المسند (٥_ ٣٥٠، ٣٥٥، ٣٥٦، ٣٥٧، ٣٦١)

١٥١١_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا أَبُو الأَحْوَصِ، عَنْ أَبِي إِسْحَاق، عَنْ عَابِسِ بْنِ رَبِيعَةَ، قَالَ: " قُلْتُ لِأُمِّ الْمُؤْمِنِينَ: أَكَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَنْهَى عَنْ لُحُومِ الأَضَاحِيّ؟ قَالَتْ: لَا، وَلَكِنْ قَلَّ مَنْ كَانَ يُضَحِّي مِنَ النَّاسِ فَأَحَبَّ أَنْ يُطْعَمَ مَنْ لَمْ يَكُنْ يُضَحِّي، وَلَقَدْ كُنَّا نَرْفَعُ الْكُرَاعَ فَنَأْكُلُهُ بَعْدَ عَشَرَةِ أَيَّامٍ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَأُمُّ الْمُؤْمِنِينَ هِيَ: عَائِشَةُ زَوْجُ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَقَدْ رُوِيَ عَنْهَا هَذَا الْحَدِيثُ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ. ()

**ترجمه** : دعابس بن ربيعه بيان دي فرمائي چي ام المؤمنين عائشه رضي الله عنها ته مي اووئيل ايا رسول الله صلي الله عليه وسلم به دقربانئ دغوښي خوړلو نه منع فرمائيله؟ نو ويي وئيل نه ليکن هغه وخت کي به ډيرو کمو خلقو قرباني کوله نو په دي وجه رسول الله غوښتل چي څوك قرباني نشي کولي پکار ده چي په هغوئ باندي هم اوخورولي شي او مونږ به دقربانئ دخاروي خپې ساتلي او بيا به مو لس ورځي پس پخولي.

امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي او ام المؤمنين، عائشه رضي الله عنها دنبي کريم صلي الله عليه وسلم بي بي ده او دهغي نه داحديث په يو څو سندونو مروي دي.

### دعابس بن ربيعه رضي الله عنه حالات

عابس تابعي دی او حافظ ابن حجرپه کبار تابعينو کي شميرلی دی (کذا في التقريب) چي دنخع قبيلي سره يي تعلق وو څکه ورته نخعي وئيلی شي او کوفي دی علماؤ په ثقاتو کي شميرلی دی (التقريب).

***************

## ١٥_ بَاب مَا جَاءَ فِي الْفَرَعِ وَالْعَتِيرَةِ

### دفرع او عتيره بيان

١٥١٢_ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنِ ابْنِ الْمُسَيَّبِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " لَا فَرَعَ وَلَا عَتِيرَةَ، وَالْفَرَعُ: أَوَّلُ النِّتَاجِ كَانَ يُنْتَجُ لَهُمْ فَيَذْبَحُونَهُ ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ نُبَيْشَةَ، وَمِخْنَفِ بْنِ سُلَيْمٍ، وَأَبِي الْعُشَرَاءِ، عَنْ أَبِيهِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالْعَتِيرَةُ: ذَبِيحَةٌ كَانُوا يَذْبَحُونَهَا فِي رَجَبٍ، يُعَظِّمُونَ شَهْرَ رَجَبٍ لِأَنَّهُ أَوَّلُ شَهْرٍ مِنْ أَشْهُرِ الْحُرُمِ، وَأَشْهُرِ الْحُرُمِ: رَجَبٌ، وَذُو الْقَعْدَةِ،

وَذُو الحِجَّةِ، وَالمُحَرَّمُ، وَأَشْهُرُ الحَجِّ: شَوَّالٌ، وَذُو القَعْدَةِ، وَعَشْرٌ مِنْ ذِي الحِجَّةِ، كَذَلِكَ رُوِيَ عَنْ بَعْضِ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ فِي أَشْهُرِ الحَجِّ. [1]

**ترجمه** دابوهريره رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي په اسلام کي نه فرع شته او نه عتيره.

فرع د څاروي هغه اولني بچي دي کوم چي به پيدا شو او کافرانو به دبتانو په نوم ذبح کولو. امام ترمذي وايي دا حديث حسن صحيح دي، او په دي باب کي د نبيشه مخنف بن سليم، او ابو العشراء رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي، ابو العشراء دخپل پلار نه روايت کوي چي عتيره هغه ذبيحه ده کومه چي به اهل مکه درجب په مياشت کي ددي مياشتي دتعظيم دپاره ذبح کوله ځکه چي دحرمت په مياشتو کي رجب اولني مياشت ده او دحرمت مياشتي رجب، ذي قعده، ذي الحجه او محرم دي، او د حج مياشتي شوال، ذي قعد، ذي الحجي ابتدائي لس ورځي دي دحج دمياشتو په سلسله کي دبعضي صحابه کرامو او بعضي نورو خلقو نه هم روايات مروي دي.

**تخريج**: اخرجه البخاري في الصحيح_ العقيقة ٣ (٥٤٧٣)، و ٣ (٥٤٧٤). صحيح مسلم_ الأضاحي ٦ (١٩٧٦). سنن ابي داود_ الضحايا ٢٠ (٢٨٣١). سنن النسائي_ الفرع والعتيرة١ (٤٢٢٧). سنن ابن ماجه_ الذبائح ٢ (٣١٦٨). (تحفة الأشراف: ١٣٢٦٩). و احمد في المسند (٢_ ٢٢٩، ٢٣٩، ٢٧٩، ٤٩٠). سنن الدارمي_ الأضاحي ٨ (٢٠٠٧)

***************

## ١٦_ باب مَا جَاءَ فِي العَقِيقَةِ

### دعقيقي بيان

١٥١٣_ حَدَّثَنَا أبو سلمة يَحْيَى بْنُ خَلَفٍ البَصْرِيُّ، حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ المُفَضَّلِ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عُثْمَانَ بْنِ خُثَيْمٍ، عَنْ يُوسُفَ بْنِ مَاهَكَ، أَنَّهُمْ دَخَلُوا عَلَى حَفْصَةَ بِنْتِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ فَسَأَلُوهَا عَنِ

---

[1] _ اخرجه البخاري في الصحيح_ الأطعمة ٢٧ (٥٤٢٣)، و ٢٧ (٥٤٣٨)، والأضاحي ١٦ (٥٥٧٠). سنن النسائي_ الضحايا ٣٧ (٤٤٣٧). سنن ابن ماجه_ الضحايا ١٦ (١٥١١)، والأطعمة ٣٠ (٣١٥٩). (تحفة الأشراف: ١٦١٦٥). و احمد في المسند (٦_ ١٠٢، ٢٠٩) (وعند صحيح مسلم_ الأضاحي ٥ (١٩٧١)، و سنن ابي داود_ الضحايا ١٠ (٢٨١٢)، و موطا امام مالك_ الضحايا ٣ (٧) واحمد في المسند (٦_ ٥١). سنن الدارمي_ الأضاحي ٦ نحوه)

الْعَقِيقَةِ، فَأَخْبَرَتْهُمْ، أَنَّ عَائِشَةَ أَخْبَرَتْهَا، أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " أَمَرَهُمْ عَنِ الْغُلَامِ شَاتَانِ مُكَافِئَتَانِ، وَعَنِ الْجَارِيَةِ شَاةٌ ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ عَلِيٍّ، وَأُمِّ كُرْزٍ، وَبُرَيْدَةَ، وَسَمُرَةَ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَعَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو، وَأَنَسٍ، وَسَلْمَانَ بْنِ عَامِرٍ، وَابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عَائِشَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَحَفْصَةُ هِيَ: بِنْتُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي بَكْرٍ الصِّدِّيقِ. ([1])

**ترجمه** : ديوسف بن ماهك نه روايت دي فرمائي چي بعضي كسان حفصه بنت عبدالرحمن ته ورغلل او دعقيقي باره كي يي تپوس اوكړو هغي اوونيل ماته زما ترور ام المؤمنين عائشه رضي الله عنها ونيلي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم صحابه كرامو ته حكم اوكړو چي دوئ به دهلك دطرفه دوه ګډان چي يو شان وي او دجيني دطرفه په يو ګډ عقيقه كوي.

امام ترمذي وايي دعائشه رضي الله عنها حديث حسن صحيح دي، او حفصه دعبدالرحمن بن ابوبكر صديق رضي الله عنه لور ده، او په دي باب كي دعلي ، ام كرز، بريده ، سمره، ابوهريره، عبدالله بن عمرو، انس، سلمان بن عامر، او ابن عباس رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي.

**تشريح**: عقيقه داحنافو په نزد مستحب ده او دشوافع او مالكيانو په نزد سنت ده او دحنبليانو په نزد سنت يا واجب ده مګر دامام مالك په نزد دجيني او دهلك عقيقه يو شان ده يعني په دوارو كي هر يو دپاره په يوګډ عقيقه كول مسنون دي او دباقي اهل علمو په نزد دهلك دپاره دوه ګډان دي او دجيني دپاره يو باندي عقيقه كول مستحب دي او حديث الباب دجمهورو مستدل دي.

***************

## ١٧_ باب الأَذَانِ فِي أُذُنِ الْمَوْلُودِ

### د نوي پيدا شوي ماشوم په غوږ كي داذان كولو بيان

١٥١٤_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، وَعَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ، قَالَا: أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ، عَنْ عَاصِمِ بْنِ عُبَيْدِ اللهِ، عَنْ عُبَيْدِ اللهِ بْنِ أَبِي رَافِعٍ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: " رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَذَّنَ فِي أُذُنِ الْحَسَنِ بْنِ عَلِيٍّ حِينَ وَلَدَتْهُ فَاطِمَةُ بِالصَّلَاةِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالْعَمَلُ فِي الْعَقِيقَةِ عَلَى مَا رُوِيَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ غَيْرِ

---

[1] _ سنن ابن ماجه_الذبائح ا (٣١٦٣) ، (تحفة الأشراف : ١٥١٣) ، واحمد في المسند (٦_٣١، ١٥٨، ٢٥١)

وَجْهٍ، عَنِ الْغُلَامِ شَاتَانِ مُكَافِئَتَانِ، وَعَنِ الْجَارِيَةِ شَاةٌ، وَرُوِيَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَيْضًا: أَنَّهُ عَقَّ عَنِ الْحَسَنِ بْنِ عَلِيٍّ بِشَاةٍ، وَقَدْ ذَهَبَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ إِلَى هَذَا الْحَدِيثِ. [1]

**ترجمه** : دابورافع رضي الله عنه بيان دي فرمائي چي ما رسول الله صلي الله عليه وسلم اوليدو حسن بن علي چي كله دفاطمه نه پيدا شو نو رسول الله دحسن په غوږ كي دمونځ د اذان پشان اذان اوكړو.

امام ترمذي وايي دا حديث حسن صحيح دي او دعقيقي په مسئله كي په هغه حديث عمل دي كوم چي د نبي كريم صلي الله عليه وسلم نه په يو څو سندونو مروي دي چي دهلك دطرفه دي په دوه ګډانو چي يوشان وي او دجينۍ دطرفه دي په يو ګډ عقيقه اوكړي شي او ذبح دي كړي شي، ذرسول الله نه دا هم مروي دي چي هغه دحسن دطرفه يو ګډ ذبح كړو دبعضي اهل علمو مسلك ددي حديث موافق دي.

**دابورافع اسلم رضي الله عنه حالات**

نوم اسلم كنيه ابو رافع ، دده دپاره دا شرف كافي دی چي درسول الله صلي الله عليه وسلم په غلامانو كې شميرلی شوی دی ابو رافع اول دعبدالله بن عباس غلام وو هغه رسول الله صلي الله عليه وسلم ته په هديه كې وركړو او بيا رسول الله دعباس دمسلمانيدو په خوشحالۍ كې ازاد كړو (ابن سعد).

دغزوه بدر نه پس يي هجرت اوكړو او مديني ته راغی او درسول الله صلي الله عليه وسلم سره يي اوسيدل اختيار كړل.

دبدر نه علاوه په تمامو غزواتو كې شريك شوی دی دعلي رضي الله عنه سره يوي سريه ته هم تلی وو علي رضي الله عنه ورته پخپله غير موجودګۍ كې دسريه نګراني هم سپارلي ده.

رسول الله اګر چي ابو رافع ازاد كړی وو ليكن ددي باوجود يي درسول الله په غلامۍ كې وخت تيرولو او درسول الله خدمت كول يي نه دي پريخودلي رسول الله به ورسره هم ډير محبت كولو.

وفات: دعلي رضي الله عنه دخلافت په ابتداء كې وفات شو، ۶۸روايات ورنه مروي دي چي دري په دي كې متفق عليه دي.

***************

١٥١٥ـ حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ الْخَلَّالُ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا هِشَامُ بْنُ حَسَّانَ، عَنْ حَفْصَةَ بِنْتِ سِيرِينَ، عَنِ الرَّبَابِ، عَنْ سَلْمَانَ بْنِ عَامِرٍ الضَّبِّيِّ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

[1] ـ ابي داود ـ الأدب ۱۱۶ (۵۱۰۵) . (تحفة الأشراف : ۱۲۰۲۰) واحمد في المسند (٦ـ ٩، ٣٩١، ٣٩٢)

" مَعَ الغُلَامِ عَقِيقَةٌ فَأَهْرِيقُوا عَنْهُ دَمًا، وَأَمِيطُوا عَنْهُ الأَذَى ". حَدَّثَنَا الحَسَنُ بْنُ أَعْيَنَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا ابْنُ عُيَيْنَةَ، عَنْ عَاصِمِ بْنِ سُلَيْمَانَ الأَحْوَلِ، عَنْ حَفْصَةَ بِنْتِ سِيرِينَ، عَنِ الرَّبَابِ، عَنْ سَلْمَانَ بْنِ عَامِرٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِثْلَهُ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [1]

**ترجمه** : دسلمان بن عامر ضبي رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دهلك دپيدا كيدو په سبب عقيقه لازمه ده لهذا! دده دطرفه وينه اوبهيوئ (څاروي ذبح كړئ) او دده نه ګندګي لري كړئ په دي سند هم دسلمان بن عامر رضي الله عنه دحديث پشان روايت مروي دي.

امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي.

***************

١٥١٦ـ حَدَّثَنَا الحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ الخَلَّالُ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ، أَخْبَرَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ أَبِي يَزِيدَ، عَنْ سِبَاعِ بْنِ ثَابِتٍ، أَنَّ مُحَمَّدَ بْنَ ثَابِتِ بْنِ سِبَاعٍ أَخْبَرَهُ، أَنَّ أُمَّ كُرْزٍ أَخْبَرَتْهُ، أَنَّهَا سَأَلَتْ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ العَقِيقَةِ، فَقَالَ: " عَنِ الغُلَامِ شَاتَانِ، وَعَنِ الأُنْثَى وَاحِدَةٌ، وَلَا يَضُرُّكُمْ ذُكْرَانًا كُنَّ أَمْ إِنَاثًا ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [2]

**ترجمه** : دام كرز بيان دي فرمائي چي ما درسول الله صلي الله عليه وسلم نه دعقيقي باره كي تپوس اوكړو نو ويي فرمائيل دهلك دطرفه دوه ګډان او دجينئ دطرفه دي يو ګډ ذبح كړي شي څاروي نر وي او كه ښځه وي په دي كي څه باك نشته.

امام ترمذي وايي دا حديث حسن صحيح دي.

***************

## ١٨ـ باب

---

[1] ـ اخرجه البخاري في الصحيح_ العقيقة ٢ (٥٤٧١) . سنن ابي داود_ الضحايا ٢١ (٢٨٣٩) . سنن النسائي_ العقيقة ٢ (٤٢١٩) . سنن ابن ماجه_ الذبائح ١ (٣١٦٤) . (تحفة الأشراف : ٤٤٨٥) . و احمد في المسند (٤_ ١٧، ١٨، ٢١٤) سنن الدارمي_ الأضاحي ٩ (٢٠١٠)

[2] ـ سنن ابي داود_ الضحايا ٢١ (٢٨٣٤٢٨٣٥) . سنن النسائي_ العقيقة ٢ (٤٢٢٠) . سنن ابن ماجه_ الذبائح ١ (٣١٦٢) . (تحفة الأشراف : ١٨٣٥١) . و احمد في المسند (٦_ ٣٨١، ٤٢٢) سنن الدارمي_ الأضاحي ٩ (٢٠٠٩)

## دقرباني متعلق يو بل باب

۱۵۱۷ـ حَدَّثَنَا سَلَمَةُ بْنُ شَبِيبٍ، حَدَّثَنَا أَبُو الْمُغِيرَةِ، عَنْ عُفَيْرِ بْنِ مَعْدَانَ، عَنْ سُلَيْمِ بْنِ عَامِرٍ، عَنْ أَبِي أُمَامَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " خَيْرُ الأُضْحِيَةِ الْكَبْشُ، وَخَيْرُ الْكَفَنِ الْحُلَّةُ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ، وَعُفَيْرُ بْنُ مَعْدَانَ يُضَعَّفُ فِي الْحَدِيثِ. (1)

**ترجمه**: دابوامامه رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دقرباني په خارو کي دتولو نه بهتر گډ دي او په ټولو کفنونو کي بهتر حله ده (يعني لنگ او څادر).

امام ترمذي وايي دا حديث غريب دي عفير بن معدان په باب درروايت دحديث کي ضعيف دي.

***************

## ۱۹ـ باب

## دقرباني متعلق يو بل باب

۱۵۱۸ـ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا رَوْحُ بْنُ عُبَادَةَ، حَدَّثَنَا ابْنُ عَوْنٍ، حَدَّثَنَا أَبُو رَمْلَةَ، عَنْ مِخْنَفِ بْنِ سُلَيْمٍ، قَالَ: كُنَّا وُقُوفًا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِعَرَفَاتٍ، فَسَمِعْتُهُ يَقُولُ: " يَا أَيُّهَا النَّاسُ، عَلَى كُلِّ أَهْلِ بَيْتٍ فِي كُلِّ عَامٍ أُضْحِيَةٌ وَعَتِيرَةٌ، هَلْ تَدْرُونَ مَا الْعَتِيرَةُ؟ هِيَ الَّتِي تُسَمُّونَهَا الرَّجَبِيَّةَ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ، وَلاَ نَعْرِفُ هَذَا الْحَدِيثَ إِلاَّ مِنْ هَذَا الْوَجْهِ مِنْ حَدِيثِ ابْنِ عَوْنٍ. (2)

**ترجمه**: دمخنف بن سليم رضي الله عنه بيان دي فرمائي چي مونږ دنبي کريم صلي الله عليه وسلم سره دعرفات په ميدان کي ولاړ وو او ما ورنه دي وخت کي واوريدل فرمائيل يي اي خلقو په هر کور والاباندي په کال کي يوه قرباني او عتيره ده او تاسو ته پته ده عتيره څه څيز دي عتيره هغه څيز وي کوم ته چي تاسو رجبيه وائي

---

1 _ سنن ابن ماجه_ الأضاحي ٣(٣١٢٣). (تحفة الأشراف: ٤٨٦٦)

2 _ سنن ابي داود_ الأضاحي ١(٢٧٨٨). سنن النسائي_ الفرع والعتيرة ١(٤٢٢٩). سنن ابن ماجه الأضاحي ٢(٣١٢٥). (تحفة الأشراف: ١١٢٤٤). و احمد في المسند (٤_٢١٥) و (٥_٧٦)

امام ترمذي وايي دا حديث حسن غريب دي او دا مونږ ته صرف دابن عون په سند را رسيدلي دي.

***************

## ٢٠_ باب الْعَقِيقَةِ بِشَاةٍ
## په يوګډ دعقيقي کولو بيان

١٥١٩_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى الْقُطَعِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْأَعْلَى بْنُ عَبْدِ الْأَعْلَى، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي بَكْرٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَلِيِّ بْنِ الْحُسَيْنِ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ، قَالَ: " عَقَّ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْحَسَنِ بِشَاةٍ، وَقَالَ: يَا فَاطِمَةُ، احْلِقِي رَأْسَهُ، وَتَصَدَّقِي بِزِنَةِ شَعْرِهِ فِضَّةً، قَالَ: فَوَزَنَتْهُ، فَكَانَ وَزْنُهُ دِرْهَمًا أَوْ بَعْضَ دِرْهَمٍ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ، وَإِسْنَادُهُ لَيْسَ بِمُتَّصِلٍ، وَأَبُو جَعْفَرٍ مُحَمَّدُ بْنُ عَلِيِّ بْنِ الْحُسَيْنِ لَمْ يُدْرِكْ عَلِيَّ بْنَ أَبِي طَالِبٍ. [1]

**ترجمه**: دعلي رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم دحسن دطرفه په يو ګډ عقيقه اوکړه او بيا يي اوفرمائيل اي فاطمي سر يي اوخوروه او دده دويختو برابر سپين زر صدقه کړه فاطمه رضي الله عنها چي دده ويخته اوتلل نو وزن يي ديو درهم سره برابر وو او يا ددينه لږ کم وو.

امام ترمذي وايي دا حديث حسن غريب دي او سند يي متصل نه دي، او د ابوجعفر صادق محمد بن علي بن حسين دعلي رضي الله عنه سره ملاقات ثابت نه دي.

***************

## ٢١_ باب
## دقرباني متعلق يوبل باب

١٥٢٠_ حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ الْخَلَّالُ، حَدَّثَنَا أَزْهَرُ بْنُ سَعْدٍ السَّمَّانُ، عَنِ ابْنِ عَوْنٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ سِيرِينَ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي بَكْرَةَ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " خَطَبَ ثُمَّ نَزَلَ فَدَعَا بِكَبْشَيْنِ فَذَبَحَهُمَا ". قَالَ أَبُو عِيسَى، هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [2]

---

[1] _ تفرد بہ کرہ المؤلف (تحفة الأشراف: ١٠٢٦١)

[2] _ صحيح مسلم_ القسامة (الحدود) ٩ (١٦٧٩)، سنن النسائي_ الضحايا ١٣ (٤٣٩٣)، (تحفة الأشراف: ١١٦٨٣)

**ترجمه** دابوبکره رضي الله عنه بیان دي نبي کریم صلي الله علیه وسلم خطبه ورکړه او بیا د منبر نه راکوز شو او بیا یي دوه ګډان راوغوښتل اوذبح یي کړل
امام ترمذي وایي دا حدیث حسن صحیح دي

***************

## ۲۲_ باب

## دقربانۍ متعلق یوبل باب

۱۵۲۱_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ عَمْرِو بْنِ أَبِي عَمْرٍو، عَنِ الْمُطَّلِبِ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: " شَهِدْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الأَضْحَى بِالْمُصَلَّى، فَلَمَّا قَضَى خُطْبَتَهُ نَزَلَ عَنْ مِنْبَرِهِ، فَأُتِيَ بِكَبْشٍ فَذَبَحَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِيَدِهِ، وَقَالَ بِسْمِ اللَّهِ، وَاللَّهُ أَكْبَرُ، هَذَا عَنِّي وَعَمَّنْ لَمْ يُضَحِّ مِنْ أُمَّتِي ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ مِنْ هَذَا الْوَجْهِ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ، أَنْ يَقُولَ الرَّجُلُ إِذَا ذَبَحَ، بِسْمِ اللَّهِ، وَاللَّهُ أَكْبَرُ، وَهُوَ قَوْلُ ابْنِ الْمُبَارَكِ، وَالْمُطَّلِبُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ حَنْطَبٍ، يُقَالُ: إِنَّهُ لَمْ يَسْمَعْ مِنْ جَابِرٍ. [1]

**ترجمه** : دجابر رضي الله عنه نه مروي دي فرماني چي زه دنبي کریم صلي الله علیه وسلم سره دلوي اختر په ورځ عیدګاه ته لاړم چي کله یي خطبه ختمه شوه نو دمنبر نه راکوز شو بیا یو ګډ راوستلي شو او پخپل لاس یي ذبح کړو او دذبح کولو وخت کي یي دا کلمات "بسم الله والله اکبر هذا عني وعمن لم یضح من امتي" ووئیل.
امام ترمذي وایي دا حدیث په دي سند غریب دي په صحابه کرامو کي داهل علمو او ددینه پس په نورو خلقو کي د اهل علمو په دي باندي عمل دي چي دځاروي ذبح کولو وخت کي بسم الله والله اکبر ووئیل پکار دي دابن مبارک هم دا قول دي، وئیلي شوي دي چي دمطلب بن عبدالله بن حنطب سماع دجابر نه ثابت نه دي.

***************

## ۲۳_ بابٌ مِنَ الْعَقِيقَةِ

[1] _ سنن ابي داود_ الضحایا ۸ (۲۸۱۰) . سنن ابن ماجه_ الأضاحي ۱ (۳۱۲۱) . (تحفة الأشراف : ۳۰۹۹) . و احمد في المسند (۳_ ۳۵۶، ۳۶۲) . وسنن الدارمي_ الأضاحي ۱ (۱۹۸۹)

## دعقيقي متعلق يوبل باب

۱۵۲۲ـ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ، أَخْبَرَنَا عَلِيُّ بْنُ مُسْهِرٍ، عَنْ إِسْمَاعِيل بْنِ مُسْلِمٍ، عَنِ الْحَسَنِ، عَنْ سَمُرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "الْغُلَامُ مُرْتَهَنٌ بِعَقِيقَتِهِ، يُذْبَحُ عَنْهُ يَوْمَ السَّابِعِ، وَيُسَمَّى وَيُحْلَقُ رَأْسُهُ". (۱)

**ترجمه** : دسمره رضي الله عنه نه روايت دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي هر يو ماشوم عقيقي كولو پوري گرودي دپيدائش په اومه ورځ دده عقيقه كول پكار دي او بيا ورباندي نوم ايخودل پكار دي او دده سر خريل پكار دي.

****************

حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ الْخَلَّالُ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، أَخْبَرَنَا سَعِيدُ بْنُ أَبِي عَرُوبَةَ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنِ الْحَسَنِ، عَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدَبٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَهُ، قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ، يَسْتَحِبُّونَ أَنْ يُذْبَحَ عَنِ الْغُلَامِ الْعَقِيقَةُ يَوْمَ السَّابِعِ، فَإِنْ لَمْ يَتَهَيَّأْ يَوْمَ السَّابِعِ، فَيَوْمَ الرَّابِعَ عَشَرَ، فَإِنْ لَمْ يَتَهَيَّأْ عُقَّ عَنْهُ يَوْمَ حَادٍ وَعِشْرِينَ، وَقَالُوا: لَا يُجْزِئُ فِي الْعَقِيقَةِ مِنَ الشَّاةِ، إِلَّا مَا يُجْزِئُ فِي الْأُضْحِيَّةِ. (۲)

**ترجمه** : دسمره بن جندب رضي الله عنه نه روايت دي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي او دسابقه روايت هم معني حديث يې بيان كړو.

امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي او داهل علمو په دي باندي عمل دي دوئ مستحب گڼړي چي دهلك دطرفه په اومه ورځ عقيقه اوكړي شي او كه په اومه ورځ تياري اونه شي نو په څوارلسمه ورځ كول پكار دي او كه دديته هم پاتي شي نو په يويشتمه ورځ پكار دي علماء وائي په عقيقه كي هغه څاروي كفايت كوي كوم چي په قرباني كي كفايت كوي.

****************

## ۲٤ـ بَابُ تَرْكِ أَخْذِ الشَّعْرِ لِمَنْ أَرَادَ أَنْ يُضَحِّيَ

---

[1] ـ اخرجه البخاري في الصحيح_ العقيقة ۲ (۵۴۷۲). (اشارة بعد حديث سلمان الضبي) سنن ابي داود_ الضحايا ۲۱ (۲۸۳۷). سنن النسائي_ العقيقة ۵ (۴۲۲۵). سنن ابن ماجه_ الذبائح ۱ (۳۱٦۵). (تحفة الأشراف: ۴۵۸۱). و احمد في المسند، (۵_ ۷، ۸، ۱۲، ۱۷، ۱۸، ۲۲) وسنن الدارمي_ الأضاحي ۹ (۲۰۱۲)

[2] ـ انظر ماقبله (تحفة الأشراف: ۴۵۷۲)

## څوک چې قرباني کول غواړي هغوئ دې ويخته نه کټ کوي

١٥٢٣_ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ الحَكَمِ البَصْرِيُّ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ، عَنْ شُعْبَةَ، عَنْ مَالِكِ بْنِ أَنَسٍ، عَنْ عَمْرٍو أَوْ عُمَرَ بْنِ مُسْلِمٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ، عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " مَنْ رَأَى هِلَالَ ذِي الحِجَّةِ، وَأَرَادَ أَنْ يُضَحِّيَ، فَلَا يَأْخُذَنَّ مِنْ شَعْرِهِ، وَلَا مِنْ أَظْفَارِهِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالصَّحِيحُ هُوَ عَمْرُو بْنُ مُسْلِمٍ، قَدْ رَوَى عَنْهُ مُحَمَّدُ بْنُ عَمْرِو بْنِ عَلْقَمَةَ، وَغَيْرُ وَاحِدٍ، وَقَدْ رُوِيَ هَذَا الحَدِيثُ عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ، عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ غَيْرِ هَذَا الوَجْهِ نَحْوَ هَذَا، وَهُوَ قَوْلُ بَعْضِ أَهْلِ العِلْمِ، وَبِهِ كَانَ يَقُولُ سَعِيدُ بْنُ الْمُسَيَّبِ، وَإِلَى هَذَا الحَدِيثِ ذَهَبَ أَحْمَدُ، وَإِسْحَاق، وَرَخَّصَ بَعْضُ أَهْلِ العِلْمِ فِي ذَلِكَ، فَقَالُوا: لَا بَأْسَ أَنْ يَأْخُذَ مِنْ شَعْرِهِ وَأَظْفَارِهِ، وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ، وَاحْتَجَّ بِحَدِيثِ عَائِشَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَبْعَثُ بِالْهَدْيِ مِنَ الْمَدِينَةِ، فَلَا يَجْتَنِبُ شَيْئًا مِمَّا يَجْتَنِبُ مِنْهُ الْمُحْرِمُ.
(١)

**ترجمه** : دام المؤمنين عائشه رضي الله عنها بيان دي نبي كريم صلي الله عليهٔ وسلم فرمائيلي دي څوك چې دذي الحجي مياشت اوګوري او قرباني كولو اراده لري دوئ چې څو پوري قرباني كړي نه وي تر هغي پوري دي خپل ويخته او نوكان نه كټ كوي.
امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي دعمرو او عمر په باره كي صحيح قول عمرو بن مسلم دي دده نه محمد بن عمرو بن علقمه او بعضي نورو راويانو نقل دروايت كړي دي په يو بل سند هم ددي پشان حديث دسعيد بن مسيب نه مروي دي سعيد بن مسيب دابوسلمه نه او ابو سلمه دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه نقل كړي دي، بعضي اهل علمو په دي سلسله كي اجازت وركړي دي دوئ وائي په ويختو او نوكانو كټ كولو كي څه حرج نشته دامام شافعي هم دا قول دي او هغه په دي باره كي دعائشه رضي الله عنها دحديث نه استدلال كوي چې نبي كريم صلي الله عليه وسلم به دقربانئ څاروي مديني ته بوتلو او محرم چې دكومو څيزونو نه اجتناب كوي رسول الله به په دي څيزونو كي دهيڅ يو څيز نه اجتناب نه كولو.
**لغات** : ذبح ذبحا وذباحا معني شلول او كټ كول او مرئ خفه كول او تاوول ، په ذبح كولو كي مبالغه كول، مذبوح معني ذبح كړي شوي تذابحوا معني يو بل لره ذبح كړو . الذبيح

---

[1] _ مسلم_ الأضاحي ٧ (١٩٧٧) . سنن ابي داود_ الضحايا ٣ (٢٧٩١) . النسائي_ الضحايا ١ (٤٣٦٧) . ابن ماجه_ الأضاحي ١١ (٣١٤٩) . (تحفة الأشراف : ١٨١٥٢) . واحمد في المسند (٦_ ٢٨٩، ٣٠١، ٣١١) . سنن الدارمي_ الأضاحي ٢ (١٩٩٠)

معني ذبح کړي شوي.
**تشريح**: د سعيد بن المسيب او امام احمد بن حنبل او اسحاق بن ابراهيم بن راهويه رحمهم الله قول دی چي د قرباني کونکي دپاره د ذي الحجي د اولي عشري د شروع کيدو نه پس د ددويمي عشري د شروع کيدو پوري نوکان او ويخته کټ کول او کمول پکار نه دي.
ليکن امام شافعي وايي چي ده قرباني کونکي دپاره د ذي الحجي د اولي عشري د شروع کيدو نه پس د ددويمي عشري د شروع کيدو پوري نوکان او ويخته کټ کول او کمولو کي هيڅ باك نشته او جائز دي.
يعني که څوك دقربانئ اراده لري نو هغه به خپل ويخته او نوکان نه کټ کوي. علماء وائي ددي وجه داده چي په همدي ورځو کي خلق حج کوي او احرامونه يي تړلي وي او دا څيزونه نه کټ کوي نو دحاجيانو سره دمشابهت اختيارولو په وجه دنورو خلقو دپاره دا حکم دی دفقهاؤ په نزد دپورتني حديث ممانعت مکروه تنزيهي دی او ويخته وغيره کټ کول به مستحب وي او په بل چا کټ کول به خلاف اولي وي.

****************

# كتاب النذور والأيمان عن رسول الله صلى الله عليه وسلم

## د نذرونو او قسمونو داحکامو بيان

**تشريح**: ... دبعضي مفسرينو قول دي چي دنذر پوره کولو نه مراد دتمامو واجباتو ادا کول دي برابره خبره ده چي نذر يي منلي وي اوکه نه وي (يعني دالله دطرفه وربانديي کومه خبره واجب شوي وي يا بنده پخپله پخپل خان واجب کړي وي چي زه به دا کار ضرور کوم) دجمهورو په نزد دايفاء نذر نه مراد دهغه کارونه ادا کول دي . کوم چي دالله تعالي دطرفه نه وي واجب شوي بلکه بنده پخپله پخپل خان واجب کړي وي .

### نذر په دوه قسمه دي

(۱) منجز (غير مشروط) مثلا څوك دا معاهده اوکړي چي زه به دالله تعالي دپاره دوه رکعاته نفلي مونځ کوم.
(۲) مشروط يا معلق مثلا که زما فلاني کار اوشي نو زه به يوه روژه نيسم ، اوشرط هم په دوه قسمه وي، اول مرغوب ، او دويم غير مرغوب يعني که الله تعالي ماته شفا راکړي نو زه به څلور روژي نيسم دا مرغوب شرط دي ديته نذر تردد وئيلي شي . او که چري ما د زيد سره خبري اوکړي نو يوه مياشت روژي وي په ما لازم دي دا غير مرغوب شرط دي داسي نذر ته نذر الجاج وئيلي شي .

نذر دداسي خبري نوم دي چي څوك يي پخپل ځان باندي واجب كړي او دالله تعالي دطرفه ورباندي نه وي واجب شوي (يعني ايجاب مالم يجب شرعا) نوكه چا په ځان داسي څيز واجب كړي وي كوم چي شرعا دمخكې نه واجب وي نو ديته نذر نشي ونيلي بلكه دا محض خبري جمله ده مثلا څوك اووائي كه چري الله زما بيمارته شفا وركړي نو تمام رمضان روژي به نيسم يا دماسپخين مونځ به كوم ظاهره ده چي درمضان روژي او دماسپخين مونځ دمخكې نه دالله تعالي دطرف نه لازم دي نو مونږ داسي كلام ته نذر نشو ونيلي اونه به پدي باندي دنذر احكام مرتب وي او كه چري چا دشرعي واجبو په اوصافو يامقدار كې څه تغير كړي وي نودغه تغير چي وصفي وي او كه مقداري وي دي لره به څه اعتبار نه وي مثلا كه چا اوونيل كه الله تعالي زما بيمار ته شفا وركړي نو زه به دخپل مال نه پنځه فيصده زكاة ادا كوم او يا به شپږ ركعاته دماسپخين فرض مونځ كوم اويابه هر مونځ په تازه اودس سره ادا كوم يا داچي هر مونځ به په جمعي سره كوم، پدي تمامو صورتونو كې به شرعي فرائض په شرعي صورت او مقدار سره قائم وي او دنذر الفاظو لره به اعتبار نه وي نه به يي په وصف كې تبديلي راځي او نه به يي په مقدار كې كمي او زياتي راځي دزكواة فرضيت به دوه نيم فيصده پاتي وي او دماسپښين فرضيت به دڅلورو ركعاتو وي او مونځ به دده دپاره بغير دتازه اودس نه جائز وي او دجماعت چي دمخكې نه كومه درجه وه هم هغه به اوس هم وي ځكه چي الله تعالي دماسپخين څلور ركعاته فرض كړي دي او هر مونځ يي داودس سره فرض كړى دى، برابره خبره ده چي تازه وي او كه زوړ او بغير دجماعت نه دمنفرد مونځ كافي ګرځولي دي ، كه چري بغير دقيوداتو نه ددي احكامو شرعي ادائيګي كافي اونه ګنړلي شي نو دالله تعالي دحكم منسوخ كيدل به لازم شي او كه چري په اصلي شرعي صورت كې كافي اوګنړلي شي نو ددي تبديل او تغير به هيڅ فائده نه وي ځكه چي دداسي مشروط نذر نه پس كه دنذر پوره والي اوكړي شي نو په څه بلي طريقي سره ادا كول پكار دي يعني كفاره وركول پكار دي او چونكه دا څيزونه مستقل نه دي نو پدي وجه ددوى كفاره په مثل معقول سره ادا كيدي نشي اوكه چري ادا دمثل غير معقول په شكل وي نو د مثل غير معقول تعين دشريعت دطرف نه كول پكار دي او شرعا په داسي صورت كې دغير معقول هيڅ تعين نه وي همدا معني ده دعلماؤ ددي قول چي وجوب دپوره والي دنذر شرط دادي چي دا به طاعت مقصوده وي او بذات خود به ددي حيثيت مستقل وي

## ١_ بَاب مَا جَاءَ عَنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ لاَ نَذْرَ فِي مَعْصِيَةٍ

### دګناه په كار كي نذر منل او پوره كول نشته

١٥٢٤_ حدثنا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا أَبُو صَفْوَانَ، عَنْ يُونُسَ بْنِ يَزِيدَ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا نَذْرَ فِي مَعْصِيَةٍ، وَكَفَّارَتُهُ كَفَّارَةُ يَمِينٍ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، وَجَابِرٍ، وَعِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ لَا يَصِحُّ لِأَنَّ الزُّهْرِيَّ لَمْ يَسْمَعْ هَذَا الْحَدِيثَ مِنْ أَبِي سَلَمَةَ، قَالَ: سَمِعْت مُحَمَّدًا يَقُولُ: رَوَى غَيْرُ وَاحِدٍ مِنْهُمْ مُوسَى بْنُ عُقْبَةَ وَابْنُ أَبِي عَتِيقٍ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ أَرْقَمَ، عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي كَثِيرٍ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ مُحَمَّدٌ، وَالْحَدِيثُ هُوَ هَذَا.
([1])

**ترجمه** : دام المؤمنين عائشه رضي الله عنهابيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دمعصيت په كارونوكي نذر منل جائز نه دي او ددي كفاره هغه ده كومه چي دقسم كفاره ده.

امام ترمذي وايي دا حديث صحيح نه دي ځکه چي زهري دابوسلمه نه سماع نه ده کړي، دامام بخاري نه مي دا اوريدلي دي چي دا حديث يو څو راويانو نقل كړي دي چي په هغوئ كي موسي بن عقبه او ابن عقيق هم شامل دي دوئ دواړو دزهري نه په سند دسليمان بن ارقم عن يحي بن ابي كثير عن ابي سلمة عن عائشة عن النبي صلي الله عليه وسلم سره نقل كړي دي امام بخاري وائي هغه همدا حديث دي (وړاندي راروان دي)، او په دي باب كي دابن عمر، جابر، عمران بن حصين رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي.

**تشريح**: دنذر پوره كول قطعي فرض دي او كه واجب دي؟ پدي باره كي دعلماؤ اختلاف دي:

دامام ابو حنيفه په نزد يوه مسلمه ضابطه ده چي عام مخصوص البعض ظني وي (يعني مفيد دظن وي فرض نه وي) ، او دا ايت عام دي دهر قسم دنذر دپوره كولو حكم كوي ليكن دمعصيت دنذر پوره كول په اتفاق دعلماؤ جائز نه دي (نو معلومه شوه چي دا ايت مخصوص البعض دي) ، اومخصوص البعض ظني وي (لهذا دنذر پوره كول د شريعت په بنا واجب دي فرض نه دي) ، دبعضي علماؤ قول دي دامام ابو حنيفه دقاعدي په بنا هم دنذر مفهوم قطعي دي ځکه چي ايت اګر كه مخصوص البعض دي كوم چي مفيد دوجوب وي ليكن ددي مخصوص البعض دحكم په فرض كيدو باندي دامت اجماع منعقد شوي ده ، داجماع دانعقادپه وجه چي دنذر پوره كولو كوم حكم وو قطعي او فرض اوګرځيدو اونذر دطاعت كه

[1] _ سنن ابي داود_ الأيمان ٢٣ (٣٢٩٠،٣٢٩٢) ، سنن ابن ماجه_ الكفارات ١٦ (٢١٢٥) ، سنن النسائي_ الأيمان ٤١ (٣٨٦٥_٣٨٧٠) (تحفة الأشراف : ١٧٧٧٠) ، واحمد في المسند (٦_٢٤٧) (ملاحظه هو: الإرواء رقم: ٢٥٩٠)

منجز وي او ددي دپوره كولو استطاعت وي نوبيا ددي پوره كول فرض دي او دنذر پوره كول پريخودل او بيا دهغي كفاره ادا كول په اتفاق دعلماؤ سره ناجائز دي
، دبعضو په نزد دپوره كولو په صورت كې دقسم كفاره ادا كيدي شي او كه نذر مشروط وي او شرط موجود شي نو دامام مالك او ابو حنيفه او اكثرو علماؤ په نزد ددي حكم هم دمنجز پشان دي ګويا كې دنذر مشروط دا معني ده چي دشرط دوجوب په وخت كې الله تعالي دپاره دداسي كولو ذمه داري قبلوم
دا هم په يو روايت كې راغلي دي چي امام ابو حنيفه دخپل وفات نه شپيته ورځي مخكې ددي قول نه رجوع كړي وه او فرمانيلي يي وو چي دمشروط نذر په صورت كې صاحب نذر ته اختيار حاصل دي چي نذر پوره كوي او كه دقسم كفاره ادا كوي دامام محمد هم دا مسلك دي

****************

١٥٢٥ـ حَدَّثَنَا أَبُو إِسْمَاعِيلَ التِّرْمِذِيُّ وَاسْمُهُ مُحَمَّدُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ بْنِ يُوسُفَ، حَدَّثَنَا أَيُّوبُ بْنُ سُلَيْمَانَ بْنِ بِلَالٍ، حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرِ بْنُ أَبِي أُوَيْسٍ، عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ بِلَالٍ، عَنْ مُوسَى بْنِ عُقْبَةَ، وَمُحَمَّدِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي عَتِيقٍ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ أَرْقَمَ، عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي كَثِيرٍ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " لَا نَذْرَ فِي مَعْصِيَةِ اللَّهِ، وَكَفَّارَتُهُ كَفَّارَةُ يَمِينٍ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ، وَهُوَ أَصَحُّ مِنْ حَدِيثِ أَبِي صَفْوَانَ، عَنْ يُونُسَ، وَأَبُو صَفْوَانَ هُوَ: مَكِّيٌّ، وَاسْمُهُ: عَبْدُ اللَّهِ بْنُ سَعِيدِ بْنِ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ مَرْوَانَ، وَقَدْ رَوَى عَنْهُ الْحُمَيْدِيُّ، وَغَيْرُ وَاحِدٍ مِنْ جِلَّةِ أَهْلِ الْحَدِيثِ، وقَالَ: قَوْمٌ مِنْ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ: لَا نَذْرَ فِي مَعْصِيَةِ اللَّهِ، وَكَفَّارَتُهُ كَفَّارَةُ يَمِينٍ، وَهُوَ قَوْلُ أَحْمَدَ، وَإِسْحَاق، وَاحْتَجَّا بِحَدِيثِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، وقَالَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ: لَا نَذْرَ فِي مَعْصِيَةٍ، وَلَا كَفَّارَةَ فِي ذَلِكَ، وَهُوَ قَوْلُ مَالِكٍ، وَالشَّافِعِيِّ. [1]

**ترجمه** : دام المؤمنين عائشه رضي الله عنها بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي دهيڅ يو داسي نذر پوره كول جائز نه دي كوم چي دالله تعالي په معصيت بناء وي او دنذر كفاره هغه ده كومه چي دقسم كفاره ده.

[1] ـ سنن ابي داود ـ الأيمان ٢٢ (٣٢٩٢،٣٢٩٠) . سنن ابن ماجه ـ الكفارات ١٦ (٢١٢٥) . سنن النسائي الأيمان ٤١ (٣٨٦٥ ٣٨٤٠) (تحفة الأشراف : ١٧٧٧٠) . واحمد في المسند (٦ ـ ٢٤٧) (ملاحظه هو: الإرواء رقم: ٢٥٩٠)

امام ترمذي وايي دا حديث غريب دي او دابوصفوان دهغه حديث نه كوم چي يي ديونس نه نقل كړي دي دا زيات صحيح دي، ابوصفوان دمكي اوسيدونكي دي او نوم يي عبدالله بن سعيد بن عبدالملك بن مروان دي دده نه په حميدي او بعضي نورو محدثينو نقل دروايت كړي دي داهل علمو صحابه كرامو يو جماعت او بعضي نور اهل علم وائي دالله دمعصيت په كار كي نذر منل نشته او ددي كفاره هغه ده كومه چي دقسم كفاره ده، امام احمد او اسحاق هم په دي باندي قول كړي دي دوئ دواړو دزهري دهغه حديث نه استدلال كړي دي كوم چي هغه دابو سلمه نه او ابو سلمه دعائشه نه نقل كړي دي مګر بعضي اهل علم صحابه او ددوئ نه پس بعضي نور اهل علم وائي چي دمعصيت پكار كي نذر جائز نه دي او په دي كي هيڅ قسم كفاره هم نشته امام مالك او شافعي هم په دي باندي قول كړي دي

***************

## ٢_ بَاب مَنْ نَذَرَ أَنْ يُطِيعَ اللَّهَ فَلْيُطِعْهُ

### چاچي دالله تعالي داطاعت نذر منلي وي هغه لره دالله تعالي اطاعت كول پكار دي

١٥٢٦_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، عَنْ مَالِكِ بْنِ أَنَسٍ، عَنْ طَلْحَةَ بْنِ عَبْدِ الْمَلِكِ الْأَيْلِيِّ، عَنِ الْقَاسِمِ بْنِ مُحَمَّدٍ، عَنْ عَائِشَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " مَنْ نَذَرَ أَنْ يُطِيعَ اللَّهَ فَلْيُطِعْهُ، وَمَنْ نَذَرَ أَنْ يَعْصِيَ اللَّهَ فَلَا يَعْصِهِ ". حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ الْخَلَّالُ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ نُمَيْرٍ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، عَنْ طَلْحَةَ بْنِ عَبْدِ الْمَلِكِ الْأَيْلِيِّ، عَنِ الْقَاسِمِ بْنِ مُحَمَّدٍ، عَنْ عَائِشَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَهُ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رَوَاهُ يَحْيَى بْنُ أَبِي كَثِيرٍ، عَنِ الْقَاسِمِ بْنِ مُحَمَّدٍ، وَهُوَ قَوْلُ بَعْضِ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ، وَبِهِ يَقُولُ مَالِكٌ، وَالشَّافِعِيُّ، قَالُوا: لَا يَعْصِي اللَّهَ وَلَيْسَ فِيهِ كَفَّارَةُ يَمِينٍ إِذَا كَانَ النَّذْرُ فِي مَعْصِيَةٍ. [1]

**ترجمه** : دام المؤمنين عائشه رضي الله عنها بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي كه څوك دا نذر اومني چي دي به دالله تعالي اطاعت كوي نو دالله تعالي اطاعت

[1] _ البخارى_ الأيمان والنذور ٢٨ (٦٧٠٠) . سنن ابي داود_ الأيمان ٢٢ (٣٢٨٩) . سنن النسائى_ الأيمان ٢٧ (٣٨٢٩). سنن ابن ماجه_ الكفارات ١٦ (٢١٢٦) . (تحفة الأشراف : ١٧٤٥٨) . والمؤطاء النذور ٣ (٨) . و احمد في المسند (٦_٣٦،٤١. ٢٢٣) سنن الدارمى_ النذور ٣ (٢٣٨٣)

دي اوکړي، او که څوک دالله تعالي دنافرمانۍ نذر اومني نو دالله تعالي نافرماني دي نه کوي، او په دي سند هم دعائشه رضي الله عنها نه دهم هغه حديث پشان حديث مروي دي.
امام ترمذي وايي دا حديث حسن صحيح دي، دا حديث يحیٰ بن ابي كثير هم دقاسم بن محمد نه نقل کړي دي ، دبعضي صحابه کرامو او دبعضي اهل علمو هم دا قول دي امام شافعي هم په دي باندي قول کړي دي دوئ وائي چي دالله تعالي نافرماني دي نه کوي او کله چي نذر دالله دنافرمانۍ متعلق وي نو په دي کي دقسم کفاره نشته .
**تشريح**: دمعصيت نذر په دوه قسمه وي ، اول هغه نذر دي دکوم چي هر يو فرد دمعصيت نه خالي نه وي لکه دشرابو څکلو او زنا کولو نذر منل ، امام ابو حنيفه دداسي نذر متعلق فرمائيلي دي که چري پدي نذر سره يي دقسم نيت کړي وي نو نذر به منعقد کيږي او دقسم ماتولو نه پس به کفاره ادا کوي او که نيت يي نه وي کړي نو نذر به منعقد نه وي او کلام به لغوه ګڼړلي شي او په ايت مذکوره کي دا څيز مراد نه دي او په اتفاق دعلماؤ سره ددي دپوره کولو حکم هم په ايت کي نه دی شوي الله تعالي دفحشاء او دګناهونو حکم نه کوي ، امام مالك او امام شافعي هم ددي قائل دي .
دامام احمد قول دي چي دا نذر به منعقد وي او کفاره ادا کول به ورباندي لازم وي برابره خبره ده چي دقسم نيت يي کړي وي او که نه وي ، دابن همام قول دي داحنافو اکثرو مشائخو دا مسلك اختيار کړي دي ، طحاوي ليکلي دي که چري معصيت ته يي دنذر نسبت اوکړو اوداسي يي اوونيل چي که زما دا کار اوشو نو مادالله تعالي دپاره دا نذر منلي دي چي زه به زيد لره قتل کوم نودا قسم دي او ددي دماتولو نه پس به کفاره ادا کول لازم وي ، زه وايم دطحاوي ددي قول وجه داده چي دالفاظو حقيقي معني مراد کول چي کله ناممکن وي نو ضروريه مجازي معني ته رجوع کيږي ، رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چي په معصيت کي نذر نشته او دمعصيت دنذر کفاره دقسم کفاره ده ددي هم دا مطلب دي ، دامام صاحب په نزد پدي حديث کي دقسم دکفاري ذکر دي او ددينه مراد دقسم هغه کفاره ده کومه چي دقسم دنيت نه پس عائد وي (يعني دحديث مطلب دادي چي دمعصيت نذر خو جائز نه دي، که چري دمعصيت په نذر کي يي دقسم نيت کړي وي نو کفاره دقسم به لازمه وي).
دويم، دمعصيت دنذر يو صورت دا هم دي چي دکوم څيز نذر يي منلي وي هغه دګناه وي ليکن دداسي نذر بعضي صورتونه هغه هم دي کوم چي دمعصيت نه پاك او خالص طاعت وي مثلا چا دواړه اختر په ورځ دروژي نيولو نذر منلي وي او يا يي دنمر ختو په وخت کي دمونځ کولو نذر منلي وي نو دامام ابو حنيفه په نزد به دا نذر منعقد کيږي او دواړه اختر په ورځ روژه نه نيول نوبيا چرته بله ورځ ددي په عوض کي روژه نيول پده باندي واجب دي او دکفاري وجوب ورباندي نشته اوکه چري ده داختر په ورځ روژه اونيوله نو نذر به يي پوره شي (اوداختر

دورخي دروژي نيولو په وجه به ګنهګاروي اودنذر ددې سره څه تعلق نشته ) او كه دنذر نفي يي كړي وي او دقسم نيت يي كړي وي نو دقسم كفاره به وربانديلازم وي او كه چرې دنذر نفي يي نه وي كړي (او نيت يي هم نه وي كړي اوصرف دقسم نيت يي كړي وي) نو نذر پوره كول به وربانديضروري وي او دقسم كفاره به ورباندي هم لازمه وي لكه دطاعت دنذر پشان

دامام احمد قول دي دواړه اختر په ورځ روژه ماتول او په بله كومه ورځ ددي قضا راوړل اودقسم كفاره ادا كول پده باندي لازم دي، اوكه پدغه ورځ يي روژه اونيوله نوكافي به نه وي ، په دويم روايت كې دامام احمد دا قول راغلي دي كه چرې داواړه اختر په ورځ يي روژه اونيوله نو نذر يي پوره كيږي ليكن دامام مالك او امام شافعي قول دادي چي دمعصيت دويم قسم نذر به منعقد نه وي په دواړو كې هيڅ فرق نشته هغه هم معصيت دي او دا هم معصيت دي يعني دبنده په خود ساخته ايجاب سره معصيت نه واجب كيږي .

دامام ابو حنيفه په قول كې داسي توجيه شوي ده چي معصيت په دوه قسمه وي ، ذاتي او في نفسه لكه شراب څكل چي په هر وخت كې حرام دي ددي معصيت ذاتي دي او بل اضافي (يعني معصيت لغيره) كوم چي في نفسه معصيت نه وي بلكه دبل څيز په وجه حلال څيز حرام شوي وي او طاعت معصيت ګرځيدلي وي) لكه چي روژه پخپل خاي ممنوع نه ده طاعت دي ليكن داختر دورځي په وجه پدي كې معصيت پيدا شوي دي نو داصل په لحاظ سره به نذر منعقد كيږي ليكن روژه نه نيول واجب دي ددي دپاره چي داضافي معصيت نه اجتناب اوشي او بيادي ددي قضا راوړلي شي ددي دپاره چي واجب ساقط شي .

اوس كه چا دواړه اختر په ورځ روژه اونيوله نو دكومي خبري ذمه واري چي يي كړي وه هغه خو به پوره شي ، نو د اهل علمو دا اختلاف په يو اصولي اختلاف باندي بنا دي ، دامام ابو حنيفه په نزد كه افعال شرعيه ممنوع ګرځولي شوي وي نو پدي افعالوكې قبح اضافي وي بذاتي خود دا مشروع دي اودامام شافعي په نزد چي دافعال شرعيه نه ممانعت شوي وي نو پدي افعالو كې قبح ذاتي او في نفسه ده.

دامام احمد قول دي دنذر دروژي انعقاد پدي وجه دي چي صوم طاعت دي دمعصيت په لحاظ سره دا نه منعقد كيږي همداوجه ده كه روژه كامله وي نو نذر به ادا شي ، كه داختر په ورځ يي روژه اونيوله نو نذر به يي ادا نشي (ځكه چي دا روژه كامله نه ده) و په شريعت كې داسي مثالونه په كثرت سره موجود دي چي بعضي افعال واجب كيږي او په اصل وخت كې ددي ادا كول حرام دي او په بل وخت كې په طور دقضا ددي ادا كول لازم دي لكه چي په بيمارو ښځو درمضان روژې واجب وي نو كه په رمضان كې دوئ روژې اونيسي نو نه ادا كيږي بلكه په نورو ورځو كې به ددي قضا لازمه وي .

دريم، كه چري دمباح دترك كولو نذر يي منلي وي نو داسي نذر لغوه دي او نه به منعقد كيږي مګر كه دقسم نيت يي كړي وي نو په قسم ماتولو سره به كفاره وركوي . دامام شافعي قول دي نذر په هيڅ حال كې نه منعقد كيږي مګر دقسم حكم به ضرور عائد وي دقسم نيت يي كړي وي اوكه نه وي او دقسم ماتولو په صورت كې به كفاره ادا كول لازم وي اودامام شافعي هم راجح قول دادي (كذا في المنهاج).

ددي وجه هغه وه كومه چي مونږ ذكر كړي ده كله چي حقيقي معني مراد كيدي نشي نو مجازي معني ته به رجوع كيږي يعني قسم به مراد وي اودا څكه چي كوم څيز واجب نه دي دي لره واجب ګرځول تحريم دمباح وي (اوتحريم دمباح دا قسم دي) زه وايم دا دليل هغه څوك پيش كولي شي څوك چي تحريم دمباح لره قسم ګنړي.(مظهري، المنهاج)

***************

## ٣_ بَاب مَا جَاءَ لَا نَذْرَ فِيمَا لَا يَمْلِكُ ابْنُ آدَمَ

## كوم څيز چي دبنده په اختيار كي نه وي په هغي كي نذر كول نشته

١٥٢٧_ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ. حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ يُوسُفَ الْأَزْرَقُ، عَنْ هِشَامٍ الدَّسْتُوَائِيِّ، عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي كَثِيرٍ، عَنْ أَبِي قِلَابَةَ، عَنْ ثَابِتِ بْنِ الضَّحَّاكِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " لَيْسَ عَلَى الْعَبْدِ نَذْرٌ فِيمَا لَا يَمْلِكُ ". قَالَ: وَفِي الْبَاب، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، وَعِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ، قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (١)

**ترجمه** : دثابت بن ضحاك رضي الله عنه بيان دي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دبنده په اختيار كي چي كوم څيز نه وي په هغي كي نذر كول صحيح نه دي.

امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي ، او په دي باب كي دعبدالله بن عمرو او عمران بن حصين رضي الله عنهما نه هم احاديث وارد دي.

**تشريح**: دامام ابو يوسف په نزد په نذر سره دمنذوراتو وجوب په هغه وخت كې كيږي كله چي منذور دهغه جنس څيز وي كوم چي الله تعالي واجب كړي وي (مثلا دحج نذر منل يادمونځ كولو يادالله تعالي په لار كې دمال خرچ كولو ، نودا نذر يابعينه يا ددي كفاره ادا كول واجب

---

(١) _ اخرجه البخاري في الصحيح_ الأدب ٤٤ (٦٠٤٧) . صحيح مسلم_ الإيمان ٤٧ (١١٠) . سنن أبي داود_ الأيمان ٩ (٣٢٥٧) . سنن النسائي_ الأيمان ٧ (٣٨٠١) . و ٣١ (٣٨٤٤) . (تحفة الأشراف: ٢٠٦٢) . و احمد في المسند (٤_ ٣٣)

کیږي ځکه چې الله تعالي حج او مونځ دصدقات ورکول واجب کړي دي لیکن دمریض عیادت، دجنازي سره تلل، او ددي پشان نوري خبري ددي هم جنس کوم څیز چې الله تعالي نه وي واجب کړي لهذا ددي په نذر منلو سره ددي خبرو وجوب نه راځي)

په المنهاج کې دامام شافعي مسلك دا بیان شوي دي چې دهر قسم طاعت نذر منل واجب کیږي برابره خبره ده چې دغه طاعت چې دهغه طاعتونو هم جنس وي کوم چې الله تعالي واجب کړي وي لکه دمریض عیادت یادجنازي سره تلل یادسلام خورول.

مسئله: که چري دطاعت نذر یې نه وي پوره کړي نو په اتفاق دجمهورو قضا دنذر وراندي واجب ده (چې په نورو ورځو کې دي روژي اونیسي) لیکن ایا ددي سره دقسم کفاره هم واجب ده او که نه ده دا مسئله اختلافي ده ، سفیان ثوري دوجوب دکفاري او دقضا دنذر دواړو قائل دي ، دامام ابو حنیفه قول دي که چري دقسم نیت یې نه وي کړي او دنذر صیغه یې په ژبه ادا کړي وي برابره خبره ده چې دنذر نیت یې کړي وي او که نه خو بهر حال قضا دنذر وراندي واجب ده او کفاره دقسم وراندي واجب نه ده او که صرف دقسم نیت یې کړي وي او دنذر نفي یې کړي وي نو کفاره وراندي واجب ده او قضا وراندي واجب نه ده او که چري دقسم نیت یې کړي وي او دنذر یې نه نیت کړي وي او نه نفي او دنذر متعلق یې هیڅ خیال په زړه کې نه وي راغلي یادنذر یې هم نیت کړي وي نو قضادنذر اوکفاره دقسم دواړه وراندي واجب دي .

دامام ابو یوسف قول دي که چري دقسم نیث یې اوکړو اودنذر نیت یې نه وي کړي نوبیدي صورت کې صرف دقسم کفاره ادا کول وراندي واجب دي او قضا وراندي واجب نه ده ځکه چې دنذر دصیغي مجازي معني ده مراد کړي ده اودقسم نیت یې کړي دي او که چري دنذر نیت یې اوکړو اودقسم نیت یې نه دي کړي نو قضا واجب ده اوکفاره وراندي نشته او حقیقي معني متعین ده او که چري د دواړو نیت یې کړي وي نو بیابه هم په ده باندي صرف قضا لازم وي اوکفاره به لازمه نه وي ځکه چې حقیقت ته په مجاز باندي ترجیح ده او حقیقت او مجاز دواړه په یو وخت کې جمع کیدي نشي.

سفیان ثوري دخپل قول دثبوت دپاره فرمائیلي دي چې دنذر صیغه نیت ته محتاجه نه ده که چري دنذر دصیغي په وئیلو سره یې دنذر نیت کړي هم نه وي نو بیابه هم دنذر نفي نشي کیدي ځکه چې نذر انشاء ده او دانشاء داستعمالولو نه پس دحقیقت معني نفي نشي کیدي دنذر حالت داسي دي لکه دنکاح ، طلاق، رجعت، اودغلام دازادولو .

*****************

## ٤ـ بَاب مَا جَاءَ فِي كَفَّارَةِ النَّذْرِ إِذَا لَمْ يُسَمَّ

### دغیر معین نذر دکفاري بیان

١٥٢٨ـ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرِ بْنُ عَيَّاشٍ، حَدَّثَنِي مُحَمَّدٌ مَوْلَى الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ، حَدَّثَنِي كَعْبُ بْنُ عَلْقَمَةَ، عَنْ أَبِي الْخَيْرِ، عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "كَفَّارَةُ النَّذْرِ إِذَا لَمْ يُسَمَّ كَفَّارَةُ يَمِينٍ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ. ([1])

**ترجمه** : دعقبه بن عامر رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دغير معين نذر كفاره هغه ده كومه چي دقسم كفاره وي.
امام ترمذي وايي دا حديث حسن صحيح غريب دي.

***************

## ٥ـ باب مَا جَاءَ فِيمَنْ حَلَفَ عَلَى يَمِينٍ فَرَأَى غَيْرَهَا خَيْرًا مِنْهَا

## كله چي يو كس ته په كوم كار باندي دقسم خوړلو نه پس معلومه شي چي دا بل كار بهتر دي نو څه كول پكار دي

١٥٢٩ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الأَعْلَى الصَّنْعَانِيُّ، حَدَّثَنَا الْمُعْتَمِرُ بْنُ سُلَيْمَانَ، عَنْ يُونُسَ هُوَ: ابْنُ عُبَيْدٍ، حَدَّثَنَا الْحَسَنُ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ سَمُرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "يَا عَبْدَ الرَّحْمَنِ، لا تَسْأَلِ الإِمَارَةَ فَإِنَّكَ إِنْ أَتَتْكَ عَنْ مَسْأَلَةٍ وُكِلْتَ إِلَيْهَا، وَإِنْ أَتَتْكَ عَنْ غَيْرِ مَسْأَلَةٍ أُعِنْتَ عَلَيْهَا، وَإِذَا حَلَفْتَ عَلَى يَمِينٍ فَرَأَيْتَ غَيْرَهَا خَيْرًا مِنْهَا، فَأْتِ الَّذِي هُوَ خَيْرٌ وَلْتُكَفِّرْ عَنْ يَمِينِكَ". وَفِي الْبَاب، عَنْ عَلِيٍّ، وَجَابِرٍ، وَعَدِيِّ بْنِ حَاتِمٍ، وَأَبِي الدَّرْدَاءِ، وَأَنَسٍ، وَعَائِشَةَ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَأُمِّ سَلَمَةَ، وَأَبِي مُوسَى. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ سَمُرَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. ([2])

---

[1] ـ صحيح مسلم ـ النذور ٥ (١٦٤٥) . سنن ابي داود ـ الأيمان ٣١ (٣٣٢٣) . سنن النسائي ـ الأيمان ٤١ (٣٨٦٣) . سنن ابن ماجه ـ الكفارات ١٧ (٢١٢٥) . (تحفة الأشراف : ٩٩٦٠) . واحمد في المسند (٤ـ ١٤٤، ١٤٦، ١٤٧)

[2] ـ اخرجه البخاري في الصحيح ـ الأيمان والنذور ١ (٦٦٢٢) . والكفارات ١٠ (٦٧٢٢) . والأحكام ٥ (٧١٤٦) . صحيح مسلم ـ الأيمان ٣ (١٦٥٢) . سنن ابي داود ـ الخراج ٢ (٢٩٢٩) . سنن النسائي ـ آداب القضاة ٥ (٥٣٨٦) . (تحفة الأشراف : ٩٦٩٥) . واحمد في المسند (٥ـ ٦٢) وسنن الدارمي ـ النذور ٩ (٢٣٩١)

**ترجمه** : دعبدالرحمن بن سمره رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل اي عبدالرحمن دامارت او مشرئ مطالبه او خواهش مه کوه او دا څکه که ته دا اوغواړي او په غوښتلو يي حاصل کړي نو ته به ديته اوسپارلي شي او که تاته بغير دغوښتلو دکوشش نه درکړي شي نو دالله تعالي مدد او توفيق به تاسره شامل وي. او کله چي ته په کوم کار باندي قسم اوخوري او بيا درته بل کار دهغي نه بهتر ښکاره شي نو چي کوم کار درته بهتر ښکاري هغه اوکړه او دخپل قسم کفاره اداء کړه.

امام ترمذي وايي دعبدالرحمن بن سمره حديث حسن صحيح دي، او په دي باب کي دعلي، جابر، عدي بن حاکم، ابوالدرداء، انس، عائشه، عبدالله بن عمرو، ابوهريره ، ام سلمه، او ابوموسي اشعري رضي الله عنهم نه هم روايات وارد دي.

***************

## ٦ـ باب مَا جَاءَ فِي الْكَفَّارَةِ قَبْلَ الْحِنْثِ

### دقسم ماتولو نه مخکي دکفاري اداء کولو بيان

١٥٣٠ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، عَنْ مَالِكِ بْنِ أَنَسٍ، عَنْ سُهَيْلِ بْنِ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "مَنْ حَلَفَ عَلَى يَمِينٍ، فَرَأَى غَيْرَهَا خَيْرًا مِنْهَا، فَلْيُكَفِّرْ عَنْ يَمِينِهِ وَلْيَفْعَلْ". قَالَ: وَفِي البَاب، عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَكْثَرِ أَهْلِ العِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ. أَنَّ الكَفَّارَةَ قَبْلَ الحِنْثِ تُجْزِئُ، وَهُوَ قَوْلُ مَالِكِ بْنِ أَنَسٍ، وَالشَّافِعِيِّ، وَأَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ، وقَالَ بَعْضُ أَهْلِ العِلْمِ: لَا يُكَفِّرُ إِلَّا بَعْدَ الحِنْثِ، قَالَ سُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ: إِنْ كَفَّرَ بَعْدَ الحِنْثِ أَحَبُّ إِلَيَّ، وَإِنْ كَفَّرَ قَبْلَ الحِنْثِ أَجْزَأَهُ. [1]

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي نبي کريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي څوک چي په څه کار باندي قسم اوخوري او بيا ددينه علاوه کار ورته بهتر ښکاره شي نو دي دي دخپل قسم کفاره اداء کړي او بهتر کار دي اوکړي.

امام ترمذي وايي : دابوهريره حديث حسن صحيح دي، او په دي باب کي دام سلمه رضي الله عنها نه هم حديث وارد دي داکثر اهل علم صحابه او ددوئ نه پس داهل علمو په دي باندي عمل دي چي دقسم ماتولو نه مخکي کفاره اداء کول صحيح دي، مالك بن انس، شافعي،

[1] ـ مسلمـ الأيمان ٣ (١٦٥٠ـ ١٣) . (تحفة الأشراف : ١٢٧٣٨) . واحمد في المسند (٢ـ ٣٦١)

احمد، او اسحاق رحمهم الله هم په دي باندي قول کړي دي مګر بعضي اهل علم وائي چي دحانث کيدو نه پس به کفاره اداء کوي، سفيان ثوري وائي که څوک دحانث کيدو نه پس کفاره اداء کړي نو دا به زما په نزد زيات بهتر وي او که دحانث کيدو نه يي مخکي اداء کړي نو بيا هم درست دي.

***************

## ٧_ بَابُ مَا جَاءَ فِي الاِسْتِثْنَاءِ فِي الْيَمِينِ
### په قسم کي داستثناء کولو بيان

١٥٣١_ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الصَّمَدِ بْنُ عَبْدِ الْوَارِثِ، حَدَّثَنِي أَبِي، وَحَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "مَنْ حَلَفَ عَلَى يَمِينٍ فَقَالَ: إِنْ شَاءَ اللَّهُ، فَقَدِ اسْتَثْنَى، فَلَا حِنْثَ عَلَيْهِ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ عُمَرَ حَدِيثٌ حَسَنٌ، وَقَدْ رَوَاهُ عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ، وَغَيْرُهُ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، مَوْقُوفًا، وَهَكَذَا رُوِيَ عَنْ سَالِمٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، مَوْقُوفًا وَلَا نَعْلَمُ أَحَدًا رَفَعَهُ غَيْرَ أَيُّوبَ السَّخْتِيَانِيِّ، وقَالَ إِسْمَاعِيلُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ: وَكَانَ أَيُّوبُ أَحْيَانًا يَرْفَعُهُ، وَأَحْيَانًا لَا يَرْفَعُهُ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَكْثَرِ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ، أَنَّ الِاسْتِثْنَاءَ إِذَا كَانَ مَوْصُولًا بِالْيَمِينِ، فَلَا حِنْثَ عَلَيْهِ، وَهُوَ قَوْلُ سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ، وَالْأَوْزَاعِيِّ، وَمَالِكِ بْنِ أَنَسٍ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ الْمُبَارَكِ، وَالشَّافِعِيِّ، وَأَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ. [1]

**ترجمه** : دعبدالله بن عمررضي الله عنهما بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي څوک چي په څه کار باندي قسم اوکړي اوورسره انشاء الله اووائي نو ددي قسم دماتولو کفاره نشته.

امام ترمذي وايي : دابن عمر حديث حسن دي، دا حديث عبيدالله بن عمرو وغيره دنافع نه او نافع دابن عمر نه موقوفا نقل کړي دي دارنګي دا حديث سالم بن عليه هم دابن عمر نه موقوفا نقل کړي دي، او مونږ ته نه ده معلومه چي دايوب سختياني نه علاوه بل چا دا مرفوع ذکر کړي وي، اسماعيل بن ابراهيم وائي ايوب به دا حديث مرفوع نقل کولو او کله کله به يي مرفوع نه نقل کولو ، او په دي باب کي دابوهريره رضي الله عنه نه هم روايت وارد دي داکثرو

[1] _ سنن ابي داود_ الأيمان ١١ (٣٢٦١) . سنن النسائي_ الأيمان ١٨ (٣٨٠٢) . و٣٩ (٣٨٣٨) . سنن ابن ماجه_ الكفارات ٦ (٢١٠٥) . (تحفة الأشراف : ٧٥١٧) . و احمد في المسند (٢_ ٦، ١٠، ٤٨، ١٥٣)

اهل علمو صحابو او نورو اهل علمو هم په دي باندي عمل دي چي کله څوك دقسم سره انشاء الله اووائي نو دداسي قسم دماتولو کفاره نشته، سفيان ثوري، اوزاعي، مالك بن انس، عبدالله بن مبارك، شافعي، احمد، او اسحاق رحمهم الله هم په دي باندي قول کړي دي.

***************

١٥٣٢_ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ مُوسَى، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ ابْنِ طَاوُسٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "مَنْ حَلَفَ عَلَى يَمِينٍ فَقَالَ: إِنْ شَاءَ اللَّهُ، لَمْ يَحْنَثْ". قَالَ أَبُو عِيسَى: سَأَلْتُ مُحَمَّدَ بْنَ إِسْمَاعِيلَ، عَنْ هَذَا الحَدِيثِ، فَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ خَطَأٌ، أَخْطَأَ فِيهِ عَبْدُ الرَّزَّاقِ، اخْتَصَرَهُ مِنْ حَدِيثِ مَعْمَرٍ، عَنِ ابْنِ طَاوُسٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "إِنَّ سُلَيْمَانَ بْنَ دَاوُدَ، قَالَ، لَأَطُوفَنَّ اللَّيْلَةَ عَلَى سَبْعِينَ امْرَأَةً، تَلِدُ كُلُّ امْرَأَةٍ غُلَامًا، فَطَافَ عَلَيْهِنَّ، فَلَمْ تَلِدِ امْرَأَةٌ مِنْهُنَّ، إِلَّا امْرَأَةٌ نِصْفَ غُلَامٍ". فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَوْ قَالَ: إِنْ شَاءَ اللَّهُ، لَكَانَ كَمَا قَالَ". هَكَذَا رُوِيَ عَنْ عَبْدِ الرَّزَّاقِ، عَنْ مَعْمَرٍ، عَنِ ابْنِ طَاوُسٍ، عَنْ أَبِيهِ، هَذَا الحَدِيثُ بِطُولِهِ، وَقَالَ: سَبْعِينَ امْرَأَةً، وَقَدْ رُوِيَ هَذَا الحَدِيثُ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: قَالَ سُلَيْمَانُ بْنُ دَاوُدَ: لَأَطُوفَنَّ اللَّيْلَةَ عَلَى مِائَةِ امْرَأَةٍ.[1]

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي څوك چي قسم اوخوري او انشاء الله اووائي نو نه حانث کيږي.

امام ترمذي وايي : ما دامام بخاري نه ددي حديث باره کي سوال اوکړو نو هغه اووئيل په دي حديث کي غلطي ده چي دعبدالرزاق نه شوي ده هغوئ دا حديث دمعمرو دحديث نه مختصر کړي دي معمرو دا حديث په سند دابن طاوس عن ابيه عن ابي هريرة عن النبي صلي الله عليه وسلم سره نقل کوي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي سليمان بن داود عليهما السلام اووئيل (په الله قسم) نن به زه داويا ښځو سره هم بستري کوم او دهرير يوي ښځي نه به يو هلك پيدا کيږي نو هغه اويا ښځو ته ورغلو او په هغوئ کي ديوي هم خوي اونه شو صرف يوي ښځي د ناقص بچي ولادت اوشو، رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل که سليمان عليه السلام انشاء الله وئيلي وي نو همداسي به شوي وه څنګه چي هغه وئيلي وي دارنګي دا حديث دپوره تفصيل سره عبدالرزاق نقل کړي دي په سند دمعمرو عن ابن طاوس عن ابيه او په

[1] _ سنن النسائي_ الأيمان ٣٢ (٣٨٨٦) . سنن ابن ماجه_ الكفارات ٦ (٢١٠٤) . (تحفة الأشراف : ١٣٥٢٣)

دي حديث كي " علي سبعين امراة " راغلي دي دا حديث دابوهريره نه په نورو سندونو هم مروي دي په دي كي داسي دي ابوهريره دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه داسي روايت نقل كوي چي رسول الله اوفرمائيل سليمان بن داود عليهما السلام اوونيل نن به زه ضرور سلو ببيبانو ته ورځم.

***************

## ٨_ بَاب مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ الْحَلِفِ بِغَيْرِ اللَّهِ

### په غيرالله دقسم خوړلو دحرمت بيان

١٥٣٣_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَالِمٍ، عَنْ أَبِيهِ، سَمِعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عُمَرَ وَهُوَ يَقُولُ: وَأَبِي وَأَبِي، فَقَالَ: "أَلَا إِنَّ اللَّهَ يَنْهَاكُمْ أَنْ تَحْلِفُوا بِآبَائِكُمْ". فَقَالَ عُمَرُ: فَوَاللَّهِ، مَا حَلَفْتُ بِهِ بَعْدَ ذَلِكَ ذَاكِرًا وَلَا آثِرًا، قَالَ: وَفِي الْبَاب، عَنْ ثَابِتِ بْنِ الضَّحَّاكِ، وَابْنِ عَبَّاسٍ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَقُتَيْلَةَ، وَعَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ سَمُرَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ عُمَرَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. قَالَ أَبُو عِيسَى، قَالَ أَبُو عُبَيْدٍ، مَعْنَى قَوْلِهِ: وَلَا آثِرًا، أَيْ: لَمْ آثُرْهُ عَنْ غَيْرِي، يَقُولُ: لَمْ أَذْكُرْهُ عَنْ غَيْرِي.[1]

**ترجمه** : دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت دي رسول الله صلي الله عليه وسلم دعمر رضي الله عنه نه دا كلمار واوريدل "زما په پلار قسم، زما دي په پلار قسم وي، رسول الله صلي الله عليه وسلم راوغوښتلو او ورته يي اوفرمائيل واوره الله تعالي ته په پلار نيكه دقسم خوړلو نه منع كړي يي دعمر رضي الله عنه بيان دي زما دي په الله قسم وي چي ددينه پس بيا ما په پلار نيكه چرته قسم نه دي خوړلي نه مي قصدا بيا چرته داسي كړي دي او نه دكومي خبري په نقل كولو كي.

امام ترمذي وايي : دابن عمر حديث حسن صحيح دي، او په دي باب كي د ثابت بن ضحاك، ابن عباس، ابوهريره، قتيله ، او عبدالرحمن بن سمره رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي، ابوعبيده واني دعمر دقول "ولاأثرا" معني داده "لم اثره علي غير" يعني دبل چا دطرف نه مي

---

[1] _ البخاري_ الأدب ٧٤ (٦١٠٨) ، و الأيمان ٤ (٦٦٤٦ ، وتعليقاً بعد حديث ٦٦٤٧) صحيح مسلم_ الأيمان ١ (١٦٤٦_ ٣) . سنن النسائي_ الأيمان ٤ (٣٧٩٦) ، و ٥ (٣٧٩٧) . (تحفة الأشراف : ٦٨١٨) . والموطأ النذور ٩ (١٣) . و احمد في المسند (٢_ ١١ ، ٣٤ ، ٩٦).

هم بيا دا كلمات نه دي نقل كړي او عرب دا كلمات د "لم اذكره عن غيري" په ځاي باندي استعمالوي.

****************

١٥٣٤_ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا عَبْدَةُ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَدْرَكَ عُمَرَ وَهُوَ فِي رَكْبٍ، وَهُوَ يَحْلِفُ بِأَبِيهِ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " إِنَّ اللَّهَ يَنْهَاكُمْ أَنْ تَحْلِفُوا بِآبَائِكُمْ، لِيَحْلِفْ حَالِفٌ بِاللَّهِ، أَوْ لِيَسْكُتْ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (1)

**ترجمه** : دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم عمر رضي الله عنه په يوه قافله كي بيامونډلو او هغه پخپل پلار قسم خوړلو رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل يقينا ته الله تعالي په پلار نيكه دقسم خوړلو نه منع كړي يي قسم خوړونكي دي په الله قسم اوخوري او كنه نو چپ دي پاتي شي.

امام ترمذي وايي : دا حديث حسن صحيح دي.

****************

١٥٣٥_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا أَبُو خَالِدٍ الأَحْمَرُ، عَنِ الحَسَنِ بْنِ عُبَيْدِ اللَّهِ، عَنْ سَعْدِ بْنِ عُبَيْدَةَ، أَنَّ ابْنَ عُمَرَ سَمِعَ رَجُلًا يَقُولُ: لَا، وَالكَعْبَةِ، فَقَالَ ابْنُ عُمَرَ: لَا يُحْلَفُ بِغَيْرِ اللَّهِ، سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: " مَنْ حَلَفَ بِغَيْرِ اللَّهِ فَقَدْ كَفَرَ أَوْ أَشْرَكَ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ، وَفُسِّرَ هَذَا الحَدِيثُ عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ العِلْمِ، أَنَّ قَوْلَهُ: " فَقَدْ كَفَرَ أَوْ أَشْرَكَ "، عَلَى التَّغْلِيظِ وَالحُجَّةُ، فِي ذَلِكَ حَدِيثُ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، سَمِعَ عُمَرَ يَقُولُ: وَأَبِي وَأَبِي، فَقَالَ: " أَلَا إِنَّ اللَّهَ يَنْهَاكُمْ أَنْ تَحْلِفُوا بِآبَائِكُمْ ". وَحَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ قَالَ: " مَنْ قَالَ فِي حَلِفِهِ وَاللَّاتِ وَالعُزَّى، فَلْيَقُلْ: لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا مِثْلُ مَا رُوِيَ

---

1 _ انظر ما قبله (تحفة الأشراف : ٨٠٥٨)

عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهُ قَالَ: إِنَّ الرِّيَاءَ شِرْكٌ، وَقَدْ فَسَّرَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ هَذِهِ الآيَةَ: فَمَنْ كَانَ يَرْجُو لِقَاءَ رَبِّهِ فَلْيَعْمَلْ عَمَلًا صَالِحًا (الكهف: ١١٠) قَالَ: لَا يُرَائِي. [1]

**ترجمه** : دسعد بن عبيده نه مروي دي چي ابن عمر رضي الله عنهما ديو كس نه واوريدل هر كز داسي نه ده زما دي په كعبه قسم وي ابن عمر ورته اووئيل په غيرالله قسم مه خوره خكه چي ما درسول الله صلي الله عليه وسلم نه اوريدلي دي چاچي په غيرالله قسم اوكړو هغه كفر اوكړو يا يي شرك اوكړو.

امام ترمذي وايي : داحديث حسن دي دبعضي اهل علمو په نزد ددي حديث تفسير دادي چي دنبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمان "فقد كفر او اشرك" دتنبيه او تغليظ په طور دي خو ددي دليل دابن عمر حديث دي چي رسول الله د عمر رضي الله عنه نه واوريدل زما دي په پلار قسم وي، زما دي په پلار قسم وي، نو ورته يي اوفرمائيل الله تعالي ته په پلار دقسم خوړلو نه منع كړي يي، دارنګي دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چاچي په عزي اولات قسم اوخوړلو نو هغه دي لااله الاالله اووائي.

امام ترمذي وائي دا حديث درسول الله د هغه فرمان پشان دي چي ريا شرك دي. بعضي اهل علمو دايت كريمه "فمن كان يرجو لقاء ربه فاليعمل عملا صالحا" (الكهف ١١٠) دا تفسير كړي دي چي ريا دي نه كوي.

****************

## ٩ـ بَابُ مَا جَاءَ فِيمَنْ يَحْلِفُ بِالْمَشْيِ وَلَا يَسْتَطِيعُ

**بيان دهغه كس چي حج ته دپيدل تلو قسم اوكړي او دپيدل تلو طاقت يي نه وي**

١٥٣٦ـ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْقُدُّوسِ بْنُ مُحَمَّدٍ الْعَطَّارُ الْبَصْرِيُّ، حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَاصِمٍ، عَنْ عِمْرَانَ الْقَطَّانِ، عَنْ حُمَيْدٍ، عَنْ أَنَسٍ، قَالَ: نَذَرَتِ امْرَأَةٌ أَنْ تَمْشِيَ إِلَى بَيْتِ اللهِ، فَسُئِلَ نَبِيُّ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ ذَلِكَ، فَقَالَ: "إِنَّ اللهَ لَغَنِيٌّ عَنْ مَشْيِهَا مُرُوهَا فَلْتَرْكَبْ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، وَعُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ، وَابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَنَسٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ

---

[1] ـ البخاري ـ الأدب ٧٤ (٦١٠٨)، والأيمان ٣ (٦٦٤٦، وتعليقاً بعد حديث ٦٦٤٨) صحيح مسلم ـ الأيمان ١ (١٦٤٦ـ ٣). سنن النسائي ـ الأيمان ٣ (٣٧٦٦)، و ٥ (٣٧٩٧)، (تحفة الأشراف: ٦٨١٨)، والموطأ النذور ٩ (١٤)، واحمد في المسند (٢/ ١١، ٣٤، ٩٦).

مِنْ هَذَا الوَجْهِ. وَالعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ العِلْمِ. وَقَالُوا: إِذَا نَذَرَتِ امْرَأَةٌ أَنْ تَمْشِيَ فَلْتَرْكَبْ وَلْتُهْدِ شَاةً. (1)

**ترجمه** : دانس رضي الله عنه بيان دي فرمائي چي يوي ښځي نذر اومنلو چي زه به حج ته پيدل ځم، او بيا د نبي كريم صلي الله عليه وسلم نه په دي سلسله كي تپوس اوكړي شو نو وېي فرمائيل الله تعالي دچا دپيدل تلو نه بي پرواه دي او هغي ته حكم اوكړئ چي په سورلئ دي سوره لاړه شي.

امام ترمذي وايي : دا حديث په دي سند حسن صحيح غريب دي، او په دي باب كي دابوهريره، عقبه بن عامر، او ابن عباس رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي دبعضي اهل علمو په همدي باندي عمل دي دوئ وائي كله چي يوه ښځه حج ته دپيدل تلو نذر اومني نو په سورلئ دي لاړه شي او ديو ګډ جرمانه دي وركړي.

***************

۱۵۳۷_ حَدَّثَنَا أَبُو مُوسَى مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ الْحَارِثِ، حَدَّثَنَا حُمَيْدٌ، عَنْ ثَابِتٍ، عَنْ أَنَسٍ، قَالَ: مَرَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِشَيْخٍ كَبِيرٍ يَتَهَادَى بَيْنَ ابْنَيْهِ، فَقَالَ: " مَا بَالُ هَذَا ". قَالُوا: يَا رَسُولَ اللَّهِ، نَذَرَ أَنْ يَمْشِيَ، قَالَ: " إِنَّ اللَّهَ عَزَّ وَجَلَّ لَغَنِيٌّ عَنْ تَعْذِيبِ هَذَا نَفْسَهُ ". قَالَ: " فَأَمَرَهُ أَنْ يَرْكَبَ ". حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى،

حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عَدِيٍّ، عَنْ حُمَيْدٍ، عَنْ أَنَسٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَأَى رَجُلًا فَذَكَرَ نَحْوَهُ. هَذَا حَدِيثٌ صَحِيحٌ. (2)

**ترجمه** : دانس رضي الله عنه بيان دي فرمائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم ديو داسي بوډا په خوا كي تيريدو چاچي دخپلو دوه خامنو په اوګو لاسونه اچولي وو او ددوئ په مينځ كي پيدل حج ته روان وو رسول الله تپوس اوكړو دا څه معامله ده هغوئ اووئيل اي دالله رسوله حج ته دپيدل تلو نذر يي منلي دي ورته يي اوفرمائيل ځان ته دعذاب وركولو نه الله تعالي بي پرواه دي او بيا يي ورته په سورلئ دتلو حكم اوكړو.

[1] _ تفرد بذكره المؤلف (تحفة الأشراف: ٣٢)

[2] _ البخاري_ جزاء الصيد ٢٧ (١٨٦٥)، والأيمان ٣١ (٦٧٠١). صحيح مسلم_ النذور ٣ (١٦٤٢). ابي داود_ الأيمان ٢٣ (٣٣٠١). سنن النسائي_ الأيمان ٤٢ (٣٨٨٣). (تحفة الأشراف: ٢٩٢). واحمد في المسند (٣_ ١٠٦، ١١٤، ١٨٣، ٢٣٥، ٢٧١)

امام ترمذي وايي : په دي سند باندي هم دمذكوره حديث هم معني روايت مروي دي او دا هم صحيح حديث دي.

**تشريح**: مسئله: كه چري حج ته دپيدل تلو نذر يي منلي وي او دكوم عذر په وجه يا بغير د عذر نه سور شي نو په اتفاق دعلماؤ سره دوباره حج كول ورباندي واجب نه دي ليكن دامام ابو حنيفه دمسلك مطابق دقياس تقاضا دا وه چي دوباره حج كول دي ورباندي واجب شي لكه چي دمسلسل روژو نيولو نذر منل يا په ولاړه دمونځ كولو دنذر منلو په صورت كښ په خلاف ورزئ كولو سره اعاده مطابق دنذر واجب وي ليكن دسوريدو اجازت چونكه په حديث كښ راغلي دي نو پدي وجه به په قياس عمل نشي كولي .

مسئله: چاچي دپيدل حج كولو نذر اومنلو او دكوم عذر په وجه يا بغير دعذر نه سور شواو يوه قرباني يي وركړه نو ايا كفاره دقسم هم ورباندي واجب ده او كه نه ده ؟ امام ابو حنيفه دنفي صورت اختيار كړي دي چي كفاره دقسم به ورباندي واجب نه وي مگر كه دقسم نيت يي كړي وي نو بيابه دقسم كفاره به ورباندي هم واجب وي پدي مسئله كښ داسي اختلاف دي لكه چي داصل منذور دفوت كيدو په صورت كښ چي تير شوي وو .

مسئله: كه چري صرف داعتكاف كولو نذر يي اومنلو نو روژه نيول ورباندي دامام ابو حنيفه او امام مالك په نزد واجب دي ځكه چي ددوئ دواړو امامانو په نزد اعتكاف بغير دروژي نه صحيح نه دي ، دامام احمد او شافعي په نزد صرف اعتكاف كافي دي او روژه ورباندي واجب نه ده او داعتكاف دپاره روژه شرط نه ده ، اعتكاف دشپې هم كيدي شي او داعتكاف كم از كم موده يو ساعت پوري ده ، په يو روايت كښ دامام احمد قول هم دامام مالك سره موافق دي په اصل كښ دامام ابو حنيفه مسلك دادي چي دواجب اعتكاف دصحت دپاره روژه شرط ده او نفلي اعتكاف بغير دروژي نه هم كيدي شي دامام محمد هم دا قول دي .

*****************

## ١٠ـ بَابٌ فِي كَرَاهِيَةِ النَّذْرِ

### د نذر د كراهت بيان

١٥٣٨ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ. حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ مُحَمَّدٍ، عَنِ الْعَلَاءِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ. قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا تَنْذِرُوا. فَإِنَّ النَّذْرَ لَا يُغْنِي مِنَ الْقَدَرِ شَيْئًا. وَإِنَّمَا يُسْتَخْرَجُ بِهِ مِنَ الْبَخِيلِ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ. عَنِ ابْنِ عُمَرَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ، كَرِهُوا النَّذْرَ. وقَالَ عَبْدُ اللهِ بْنُ الْمُبَارَكِ: مَعْنَى الْكَرَاهِيَةِ فِي النَّذْرِ: فِي الطَّاعَةِ وَالْمَعْصِيَةِ، وَإِنْ نَذَرَ الرَّجُلُ بِالطَّاعَةِ فَوَفَّى بِهِ، فَلَهُ فِيهِ أَجْرٌ، وَيُكْرَهُ لَهُ النَّذْرُ.[1]

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي نذر په خان مه لازم کوئ ځکه چي نذر دتقدير په وړاندي هيڅ کار نشي کولي صرف دبخيل او کنجوس سړي مال په دي طريقه ويستلي شي.

امام ترمذي وايي : دابوهريره حديث حسن صحيح دي، او په دي باب کي ابن عمر رضي الله عنهما نه هم روايت وارد دي دبعضي اهل علمو صحابه کرامو او نورو خلقو په دي باندي عمل دي دوئ نذر مکروه ګڼړي، عبدالله بن مبارك وائي په نذر کي دکراهت مفهوم دطاعت او معصيت دواړو سره متعلق دي که چا دطاعت نذر منلي وي او پوره يې کړو نو ده ته به ددي دپوره کولو اجر ملاويږي ليکن دا نذر به مکروه وي.

***************

## ١١ـ بَاب مَا جَاءَ فِي وَفَاءِ النَّذْرِ

### د نذر پوره کولو بيان

١٥٣٩ـ حَدَّثَنَا إِسْحَاق بْنُ مَنْصُورٍ، أَخْبَرَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ الْقَطَّانُ، عَنْ عُبَيْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، عَنْ عُمَرَ، قَالَ: قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللهِ، إِنِّي كُنْتُ نَذَرْتُ أَنْ أَعْتَكِفَ لَيْلَةً فِي الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ فِي الْجَاهِلِيَّةِ، قَالَ: "أَوْفِ بِنَذْرِكَ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو، وَابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عُمَرَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ ذَهَبَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ إِلَى هَذَا الْحَدِيثِ، قَالُوا: إِذَا أَسْلَمَ الرَّجُلُ، وَعَلَيْهِ نَذْرُ طَاعَةٍ، فَلْيَفِ بِهِ، وَقَالَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ: لَا اعْتِكَافَ إِلَّا بِصَوْمٍ، وَقَالَ آخَرُونَ مِنْ أَهْلِ الْعِلْمِ: لَيْسَ عَلَى

---

[1] ـ البخاری ـ الأیمان ٢٦ (٦٦٩٣). صحیح مسلم ـ النذور ٢ (١٦٤٠). سنن ابی داود ـ الأیمان ٢١ (٣٢٨٨). سنن النسائی ـ الأیمان ٢٥ (٣٨٣٥)، و ٢٦ (٣٨٣٦). سنن ابن ماجه ـ الكفارات ١٥ (٢١٢٢). (تحفة الأشراف: ١٢٠٥٠). و احمد فی المسند (٢ـ ٢٣٥، ٣٠١، ٣١٢، ٣١٤، ٤١٢، ٤٦٣)

الْمُعْتَكِفِ صَوْمٌ، إِلَّا أَنْ يُوجِبَ عَلَى نَفْسِهِ صَوْمًا، وَاحْتَجُّوا بِحَدِيثِ عُمَرَ أَنَّهُ نَذَرَ أَنْ يَعْتَكِفَ لَيْلَةً فِي الْجَاهِلِيَّةِ، فَأَمَرَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْوَفَاءِ، وَهُوَ قَوْلُ أَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ. (1)

**ترجمه** : دعمر رضي الله عنه بيان دي فرمائي چي ما عرض اوكړو اې دالله رسوله ما دجاهليت په زمانه كي په ځان دا نذر لازم كړي وو چي يوه شپه به په مسجد الحرام كي اعتكاف كوم (نو ددي څه حكم دي) رسول الله صلي الله عليه وسلم ورته اوفرمائيل خپل نذر دي پوره كړه.

امام ترمذي وايي : دعمر رضي الله عنه حديث حسن صحيح دي، او په دي باب كي دعبدالله بن عمرو، او دابن عباس رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي او دبعضي اهل علمو مسلك ددي حديث موافق دي دوئ وائي چي كله څوك اسلام قبول كړي او په ده باندي دجاهليت دوخت نذر دطاعت واجب وي نو دا به پوره كوي، مګر بعضي اهل علم صحابه او نور خلق وائي چي بغير دروژي نه اعتكاف كول درست نه وي ليكن نور اهل علم وائي چي په معتكف باندي روژه واجب نه ده مګر هله به ورباندي واجب وي كله چي ده روژه په ځان واجب كړي وي (دنذر په ذريعه) دوئ دعمر رضي الله عنه ددي حديث نه استدلال كړي دي چي هغه دجاهليت په زمانه كي ديوي شپي داعتكاف كولو نذر منلي وو او رسول الله ورته دنذر پوره كولو حكم اوكړو (او دروژي يي ورته هيڅ ذكر اونكړو) امام احمد او اسحاق هم دا قول دي.

***************

## ١٢_ بَاب مَا جَاءَ كَيْفَ كَانَ يَمِينُ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

### درسول الله صلي الله عليه وسلم قسم به څنګه وو

١٥٤٠_ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ الْمُبَارَكِ، وَعَبْدُ اللَّهِ بْنُ جَعْفَرٍ، عَنْ مُوسَى بْنِ عُقْبَةَ، عَنْ سَالِمِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: "كَثِيرًا مَا كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَحْلِفُ بِهَذِهِ الْيَمِينِ، لَا وَمُقَلِّبِ الْقُلُوبِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (1)

---

[1] _ اخرجه البخاري في الصحيح_ الاعتكاف ٥ (٢٠٣٢)، و ١٥ (٢٠٤٢)، و ١٦ (٢٠٤٣)، والخمس ١٩ (٣١٤٤)، والمغازي ٥٤ (٤٣٢٠)، والأيمان ٢٩ (٦٦٩٧)، صحيح مسلم_ الأيمان ٦ (١٦٥٦)، سنن ابي داود_ الأيمان ٣٢ (٣٣٢٥)، سنن النسائي_ الأيمان ٣٦ (٣٨٣٠)، سنن ابن ماجه_ الصيام ٦٠ (١٧٧٢)، والكفارات ١٨ (٢١١٩)، (تحفة الأشراف : ١٠٥٥٠)، و احمد في المسند (١_٣٧) وأيضا (٢_٢٠، ٨٢، ١٥٣) وسنن الدارمي_ النذور ١ (٢٣٧٨)

**ترجمه** : دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما بيان دي فرمائي كله چي به رسول الله صلي الله عليه وسلم قسم خوړلو نو اكثر به يې داسي وئيل "لاومقلب القلوب" يعني داسي نه ده زما دي دزړونو په اړونكي قسم وي.
امام ترمذي وايي : داحديث حسن صحيح دي.

***************

## ١٣_ باب مَا جَاءَ فِي ثَوَابِ مَنْ أَعْتَقَ رَقَبَةً

### دغلام دازادولو دثواب بيان

١٥٤١_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ. حَدَّثَنَا اللَّيْثُ. عَنِ ابْنِ الْهَادِ. عَنْ عُمَرَ بْنِ عَلِيِّ بْنِ الْحُسَيْنِ بْنِ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ. عَنْ سَعِيدِ ابْنِ مَرْجَانَةَ. عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ. قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: "مَنْ أَعْتَقَ رَقَبَةً مُؤْمِنَةً. أَعْتَقَ اللَّهُ مِنْهُ بِكُلِّ عُضْوٍ مِنْهُ عُضْوًا مِنَ النَّارِ. حَتَّى يَعْتِقَ فَرْجَهُ بِفَرْجِهِ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ. عَنْ عَائِشَةَ. وَعَمْرِو بْنِ عَبَسَةَ. وَابْنِ عَبَّاسٍ. وَوَاثِلَةَ بْنِ الأَسْقَعِ. وَأَبِي أُمَامَةَ. وَعُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ. وَكَعْبِ بْنِ مُرَّةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ مِنْ هَذَا الْوَجْهِ. وَابْنُ الْهَادِ اسْمُهُ يَزِيدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أُسَامَةَ بْنِ الْهَادِ وَهُوَ مَدَنِيٌّ ثِقَةٌ. قَدْ رَوَى عَنْهُ مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ. وَغَيْرُ وَاحِدٍ مِنْ أَهْلِ الْعِلْمِ. (٢)

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه بيان دي فرمائي چي ما درسول الله صلي الله عليه وسلم نه اوريدلي دي چاچي يو مومن غلام ازاد كړو الله تعالي به دهغه دهر اندام په بدل كي دازادونكي يو يو اندام داور نه ازاد كړي تردي چي دغلام دشرمګاه په بدل كي به دده شرمګاه ازاد كړي.

---

[1] _ اخرجه البخاري في الصحيح_ القدر ١٣ (٦٦١٧) . والأيمان ٣ (٦٦٢٨) . والتوحيد ١١ (٧٣٩١) . سنن ابي داود_ الأيمان ١٢ (٣٢٦٣) . سنن النسائي_ الأيمان ١ (٣٧٧٠) . سنن ابن ماجه_ الكفارات ١ (٢٠٩٢) . (تحفة الأشراف : ٧٠٢٣) و احمد في المسند (٢_ ٢٦. ٦٧. ٦٨. ١٢٧)

[2] _ اخرجه البخاري في الصحيح_ العتق ١ (٢٥١٧) . والكفارات ٦ (٦٧١٥) . صحيح مسلم_ العتق ٥ (١٥٠٩) . (تحفة الأشراف : ١٣٠٨٨

امام ترمذي وايي : دابوهريره دا حديث په دي سند حسن صحيح غريب دي، او په دي باب كي دعائشه، عمرو بن عبسه، ابن عباس، واثله بن اسقع، ابوامامه، عقبه بن عامر، او كعب بن مره رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي.

****************

## ١٤_ باب مَا جَاءَ فِي الرَّجُلِ يَلْطِمُ خَادِمَهُ

## په څپيړه دخادم وهلو بيان

١٥٤٢_ حَدَّثَنَا أَبُو كُرَيْبٍ، حَدَّثَنَا الْمُحَارِبِيُّ، عَنْ شُعْبَةَ، عَنْ حُصَيْنٍ، عَنْ هِلَالِ بْنِ يَسَافٍ، عَنْ سُوَيْدِ بْنِ مُقَرِّنٍ الْمُزَنِيِّ، قَالَ: "لَقَدْ رَأَيْتُنَا سَبْعَةَ إِخْوَةٍ مَا لَنَا خَادِمٌ إِلَّا وَاحِدَةٌ، فَلَطَمَهَا أَحَدُنَا، فَأَمَرَنَا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ نُعْتِقَهَا" قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رَوَى غَيْرُ وَاحِدٍ هَذَا الْحَدِيثَ، عَنْ حُصَيْنِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، فَذَكَرَ بَعْضُهُمْ فِي الْحَدِيثِ قَالَ: "لَطَمَهَا عَلَى وَجْهِهَا".[1]

**ترجمه** : دسويد بن مقرن مزني بيان دي فرماني چي مونږ اوه ورونړه وو او زمونږ سره يوه خادمه وه په مونږ كي يو كس دا په څپړه اووهله نو نبي كريم صلي الله عليه وسلم حكم اوكړو چي دا ازاده كړئ.

امام ترمذي وايي : داحديث حسن صحيح دي او دا دعبدالرحمن نه يو څو راويانو نقل كړي دي بعضي راويانو پخپل روايت كي داسي ذكر كړي دي چي سويد بن مقرن "لطمها علي وجهها" ونيلي دي يعني هغه ددي مخ په څپيړه اووهلو.

امام ترمذي واني په دي باب كي دابن عمر رضي الله عنهما نه هم روايت وارد دي.

### دابوعلي سويد بن مقرن رضي الله عنه حالات

نوم سويد كنيه ابو علي او دپلار نوم مقرن پوره نوم يي داسي دی سويد بن مقرن بن عائز بن منجاء بن حجبر بن نضرالخ، دده دمور نوم مزنيه بنت ملك بنت وبره وه او په كوفه كي اوسيدو او درواياتو شمير يي دري دی يو ددوی نه په مسلم كي موجود دی.

****************

## ١٥_ باب مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ الْحَلِفِ بِغَيْرِ مِلَّةِ الإِسْلَامِ

---

[1] _ صحيح مسلم_ الأيمان ٨ (١٦٥٨)، سنن ابي داود_ الأدب ١٣٣ (٥١٦٦)، (تحفة الأشراف : ٤٨١١)، و احمد في المسند (٣_٤٤٨)، و (٥_٤٤٤)

## داسلامي قسم نه علاوه دبل مذهب دقسم خوړلو دكراهت بيان

١٥٤٣ـ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا إِسْحَاق بْنُ يُوسُفَ الأَزْرَقُ، عَنْ هِشَامٍ الدَّسْتُوَائِيِّ، عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي كَثِيرٍ، عَنْ أَبِي قِلاَبَةَ، عَنْ ثَابِتِ بْنِ الضَّحَّاكِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " مَنْ حَلَفَ بِمِلَّةٍ غَيْرِ الإِسْلاَمِ كَاذِبًا، فَهُوَ كَمَا قَالَ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدِ اخْتَلَفَ أَهْلُ العِلْمِ فِي هَذَا إِذَا حَلَفَ الرَّجُلُ بِمِلَّةٍ سِوَى الإِسْلاَمِ، فَقَالَ: هُوَ يَهُودِيٌّ، أَوْ نَصْرَانِيٌّ، إِنْ فَعَلَ كَذَا وَكَذَا، فَفَعَلَ ذَلِكَ الشَّيْءَ، فَقَالَ بَعْضُهُمْ: قَدْ أَتَى عَظِيمًا وَلاَ كَفَّارَةَ عَلَيْهِ، وَهُوَ قَوْلُ أَهْلِ المَدِينَةِ، وَبِهِ يَقُولُ مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ، وَإِلَى هَذَا القَوْلِ ذَهَبَ أَبُو عُبَيْدٍ، وقَالَ بَعْضُ أَهْلِ العِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالتَّابِعِينَ وَغَيْرِهِمْ: عَلَيْهِ فِي ذَلِكَ الكَفَّارَةُ، وَهُوَ قَوْلُ سُفْيَانَ، وَأَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ. [1]

**ترجمه** دثابت بن ضحاك بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چاچي داسلام نه علاوه دبل مذهب په دروغه قسم اوخوړلو نو دي به داسي شي څنګه چي ده وئيلي دي.

امام ترمذي وايي : دا حديث حسن صحيح دي، داهل علمو په دي كي اختلاف دي چي كله څوك داسلام نه علاوه دبل مذهب قسم اوخوري او داسي اووائي كه چري ما داسي اوكړل نو زه به يهودي يا نصراني يم او بيا ده هغه كار اوكړو بعضي اهل علم وائي چي ده ډيره لويه ګناه اوكړه ليكن كفاره وربانديي واجب نه ده او دا داهل مدينه قول دي امام مالك ددي قائل دي او ابو عبيده هم دا قول اختيار كړي دي مګر په صحابه كرامو او تابعينو كي بعضي اهل علم وائي چي په دي صورت كي په ده باندي كفاره واجب ده او دا د سفيان ثوري، امام احمد ، او اسحاق رحمهم الله قول هم دي.

***************

## ١٦ـ باب

## دماقبل باب متعلق يوبل باب

---

[1] ـ اخرجه البخاري في الصحيحـ الجنائز ٨٣ (١٣٦٣) . والأدب ٣٣ (٦٠٤٧) . و٤٣ (٦١٠٥) . والأيمان ٧ (٦٦٥٢) صحيح مسلمـ الأيمان ٤٧ (١١٠) . سنن ابي داودـ الأيمان ٩ (٣٢٥٧) . سنن النسائيـ الأيمان ٧ (٣٨٠١) . سنن ابن ماجهـ الكفارات ٣ (٢٠٩٨) . و٣١ (٣٨٤٣) . (تحفة الأشراف : ٢٠٦٢) . واحمد في المسند (٤ـ ٣٣، ٣٤)

١٥٤٤_ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ، عَنْ عُبَيْدِ اللهِ بْنِ زَحْرٍ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الرُّعَيْنِيِّ، عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَالِكٍ الْيَحْصُبِيِّ، عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ، قَالَ: قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللهِ، إِنَّ أُخْتِي نَذَرَتْ أَنْ تَمْشِيَ إِلَى الْبَيْتِ حَافِيَةً غَيْرَ مُخْتَمِرَةٍ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ اللهَ لَا يَصْنَعُ بِشَقَاءِ أُخْتِكَ شَيْئًا، فَلْتَرْكَبْ وَلْتَخْتَمِرْ، وَلْتَصُمْ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ، وَهُوَ قَوْلُ أَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ. [1]

**ترجمه** : دعقبه بن عامر رضي الله عنه بيان دي فرمائي چي ما عرض اوکړو اي دالله رسوله زما خور نذر منلي دي چي دا به دڅادر اغوستلو نه بغير بربنډي خپې کعبي ته ځي رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل الله تعالي ستا دخور په بدبختئ څه کوي پکار ده چي سوره دي لاړه شي او څادر دي واغوندي او دري ورځي روژي دي اونيسي.

امام ترمذي وايي : دا حديث حسن دي، او په دي باب کي دابن عباس نه هم روايت وارد دي او داهل علمو په دي باندي عمل دي دامام احمد او اسحاق هم دا قول دي.

## دعقبه بن عامر رضي الله عنه حالات

نوم عقبه کنيه ابوعمرو دپلار نوم عامر رسول الله صلي الله عليه وسلم چي کله مديني ته راغی نو عقبه په اسلام مشرف شو علامه ذهبي ليکلي دي چي عقبه فقيه او دکتاب الله قاري وو او دفرائضو ماهر او فصيح اللسان شاعر وو (تذکرة الحفاظ).

دقران کريم سره يي خصوصي مينه وه يوه نسخه دقران کريم يي پخپل لاس هم ليکلي وه (تهذيب التهذيب).

دنبي کريم صلي الله عليه وسلم ښه خدمت يي کړی دی په سفر کې به درسول الله سورلئ راښکل دده متعلق وو لکه چي په روايتونو کې راځي کان صاحب بغلة رسول الله صلي الله عليه وسلم الشهباء

دده دوفات دتاريخ باره کي مختلف اقوال مروي دي صحيح قول دادی چي په ۵۸هجري کې وفات شوی دی. او دده دمروياتو شمير ۵۵ دی چي يو په دي کې متفق عليه دی او يو په بخاري کې دی او اوه په مسلم کې دي (تهذيب الکمال)

داکابرو صحابه کرامو نه نقل دروايت کوي تردي چي صرف ديو حديث اوريدو دپاره مصر ته

---

[1] _ سنن ابي داود_ الأيمان ۲۳ (۳۲۹۳، ۳۲۹۴) . سنن النسائي_ الأيمان ۳۲ (۳۸۲۵) . سنن ابن ماجه_ الكفارات ۲۰ (۲۱۳۴) . (تحفة الأشراف : ۹۹۳۰) . واحمد في المسند (۴_ ۱۴۳، ۱۴۵، ۱۴۹، ۱۵۱) . سنن الدارمي_ النذور ۲ (۲۳۷۹)

دابو ايوب انصاري سره دملاويدو دپاره تلی وو خو چي هغه يي واوريدو نو فورا واپس لاړو.

***************

## ١٧_ باب

### دماقبل باب متعلق يوبل باب

١٥٤٥_ حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ مَنْصُورٍ، حَدَّثَنَا أَبُو الْمُغِيرَةِ، حَدَّثَنَا الأَوْزَاعِيُّ، حَدَّثَنَا الزُّهْرِيُّ، عَنْ حُمَيْدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ حَلَفَ مِنْكُمْ، فَقَالَ فِي حَلِفِهِ: وَاللَّاتِ وَالْعُزَّى، فَلْيَقُلْ: لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ، وَمَنْ قَالَ: تَعَالَ أُقَامِرْكَ، فَلْيَتَصَدَّقْ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَأَبُو الْمُغِيرَةِ هُوَ الْخَوْلَانِيُّ الْحِمْصِيُّ وَاسْمُهُ عَبْدُ الْقُدُّوسِ بْنُ الْحَجَّاجِ. [1]

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي په تاسو کي چي څوك قسم اوخوري او پخپل قسم کي داسي اووائي زما دي په لات او عزي قسم وي نو دي دي لا اله الا الله اووائي او که چا داسي اوونيل اشه چي جواري اوکړو نو دي دي صدقه ورکړي.

امام ترمذي وايي : دا حديث حسن صحيح دي.او ابو المغيره خولاني حمصي دی او دده نوم عبد القدوس بن الحجاج دی.

***************

## ١٨_ بَابُ مَا جَاءَ فِي قَضَاءِ النَّذْرِ عَنِ الْمَيِّتِ

### دمړي دطرفه د نذر پوره کولو بيان

١٥٤٦_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُتْبَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ سَعْدَ بْنَ عُبَادَةَ اسْتَفْتَى رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي نَذْرٍ كَانَ عَلَى أُمِّهِ تُوُفِّيَتْ

---

[1] _ اخرجه البخاري في الصحيح_ تفسير سورة النجم ٢ (٤٨٦٠) . والأدب ٧٤ (٦١٠٧) . والاستئذان ٥٢ (٦٣٠١) . والأيمان ٥ (٦٦٥٠) . صحيح مسلم_ الأيمان ٢ (١٦٤٨) . سنن ابي داود_ الأيمان ٣ (٣٢٤٧) . سنن النسائي_ الأيمان ١١ (٣٨٠٤) . سنن ابن ماجه_ الكفارات ٢ (٢٠٩٦) . (تحفة الأشراف : ١٢٢٧٦) . واحمد في المسند (٢_٣٠٩)

قَبْلَ أَنْ تَقْضِيَهُ ". فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " اقْضِ عَنْهَا ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. ([1])

**ترجمه** : دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه روايت دي سعد بن عباده رضي الله عنه يو داسي نذر باره كي درسول الله صلي الله عليه وسلم نه تپوس اوكړو كوم چي دده مور باندي واجب شوي وو او هغه ددي دپوره كولو نه مخكي مره شوي وه رسول الله صلي الله عليه وسلم ورته اوفرمائيل دهغي دطرفه نذر ته پوره كړه.

امام ترمذي وايي : داحديث حسن صحيح دي.

***************

## ١٩_ بَاب مَا جَاءَ فِي فَضْلِ مَنْ أَعْتَقَ

### دغلام ازادولو دفضيلت بيان

١٥٤٧_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الأَعْلَى، حَدَّثَنَا عِمْرَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ هُوَ أَخُو سُفْيَانَ بْنِ عُيَيْنَةَ، عَنْ حُصَيْنٍ، عَنْ سَالِمِ بْنِ أَبِي الْجَعْدِ، عَنْ أَبِي أُمَامَةَ، وَغَيْرِهِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: " أَيُّمَا امْرِئٍ مُسْلِمٍ أَعْتَقَ امْرَأً مُسْلِمًا، كَانَ فَكَاكَهُ مِنَ النَّارِ، يُجْزِي كُلُّ عُضْوٍ مِنْهُ عُضْوًا مِنْهُ، وَأَيُّمَا امْرِئٍ مُسْلِمٍ أَعْتَقَ امْرَأَتَيْنِ مُسْلِمَتَيْنِ، كَانَتَا فَكَاكَهُ مِنَ النَّارِ، يُجْزِي كُلُّ عُضْوٍ مِنْهُمَا عُضْوًا مِنْهُ، وَأَيُّمَا امْرَأَةٍ مُسْلِمَةٍ أَعْتَقَتِ امْرَأَةً مُسْلِمَةً، كَانَتْ فَكَاكَهَا مِنَ النَّارِ، يُجْزِي كُلُّ عُضْوٍ مِنْهَا عُضْوًا مِنْهَا ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ مِنْ هَذَا الْوَجْهِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَفِي الْحَدِيثِ مَا يَدُلُّ عَلَى أَنَّ عِتْقَ الذُّكُورِ لِلرِّجَالِ أَفْضَلُ مِنْ عِتْقِ الإِنَاثِ، لِقَوْلِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " مَنْ أَعْتَقَ امْرَأً مُسْلِمًا، كَانَ فَكَاكَهُ مِنَ النَّارِ، يُجْزِي كُلُّ عُضْوٍ مِنْهُ عُضْوًا مِنْهُ ". ([2])

---

[1] _ اخرجه البخاري في الصحيح_ الوصايا ١٩ (٢٧٦١) . والأيمان ٣٠ (٦٦٩٨) . والحيل ٣ (٦٩٥٩) . صحيح مسلم_ النذور ١ (١٦٣٨) . سنن ابي داود_ الأيمان ٢٥ (٣٣٠٧) . سنن النسائي_ الوصايا ٨ (٣٦٨٨) . والأيمان ٣٥ (٣٨٤٨) . سنن ابن ماجه_ الكفارات ١٩ (٢١٣٣) . (تحفة الأشراف : ٥٨٣٥) . والموطاء النذور ١ (١) . واحمد في المسند (١_ ٢١٩. ٣٢٩. ٣٧٠)

[2] _ (تحفة الأشراف : ٤٨٦٣) وأبي نجيح السلمي (عمرو بن عبسة) . سنن ابي داود_ العتق ١٣ (٣٩٦٥. ٣٩٦٦) . واحمد في المسند (٤_ ١١٣. ٣٨٦) . (تحفة الأشراف : ١٠٧٥٥ و ١٠٧٧٤) ومن حديث كعب بن مرة: د (برقم ٣٩٦٧) . ون (رقم ٣١٤٢) وسنن ابن ماجه_ العتق ٤ (٢٥٢٢) . واحمد في المسند (٤_ ٢٣٤. ٢٣٥. ٣٢١)

**ترجمه**: ابوامامه رضي الله عنه او بعضي نور صحابه كرام درسول الله صلي الله عليه وسلم نه روايت كوي چي فرمائيلي يي دي كوم مسلمان چي يو مسلمان لره ازاد كړي دا ازادول به دازادونكي دپاره دجهنم نه دنجات باعث وي او د ازاد كړي شوي غلام هر اندام به د ازادونكي دهر اندام نه كفايت كوي او هر مسلمان چي دوه مسلماني ښځي ازادي كړي نو دا به دده دپاره دجهنم نه دنجات سبب وي او ددغه دواړو ازادو ښځو هر اندام به دده دهر اندام نه كفايت كوي.

امام ترمذي وايي: داحديث په دي سند حسن صحيح غريب دي داحديث ددي خبري دليل دي چي سړو لره ازادول دښځو د ازادولو نه افضل دي ځكه چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چاچي كوم مسلمان لره ازاد كړو دا به دده دپاره دجهنم نه دنجات باعث وي او د ازاد كړي غلام هر اندام به دده دهراندام نه كفايت كوي او راوي پوره حديث بيان كړو چي دځېلو سندونو په لحاظ صحيح دي.

**تشريح**: دلته دنذر متعلق بعضي ضروري او فهقي احكام چي تفصيل طلب دی د فقهاؤ داقوالو په رڼرا كي ذكر كوو:

مسئله: چاچي نذر اومنلو او پوره يي نكړي شو برابره خبره ده چي پدي وجه وي چي هغه شرعا دګناه نذر دي نوځكه يي پوره نكړي شو يادا چي طبعا قابل دايفاء وو خوده پوره كولي نشو لكه هميشه دروژو نيولو نذر منل ، ياخو يي برداشت كولي شو ليكن وخت يي تير كړو اوتدارك يي ممكن پاتي نشو پدي وجه چي هغه مباح الترك وو ياپدي وجه چي نذر خو يي منلي وو ليكن چي څه شي يي نذر كړي وو ددي تعين يي نه وو كړي مثلا داسي يي وئيلي وو كه الله تعالي زما فلاني كار اوكړو نوزه به دهغه په نوم نذر منم ، پدي ټولو صورتونو كې به دقسم كفاره واجبه وي برابره خبره ده چي دقسم نيت يي كړي وي او كه نه.

بعضي محدثينو دا حديث دابن عباس قول ګرځولي دي ، او دا حديث دتير شوي حديث بيان دي.

مسئله: چاچي دطاعت نذر اومنلو او دادا كولو طاقت يي هم وو نوپه داسي صورت كې نذر نه ادا كول او كفاري ادا كولو طرف ته توجه كول جائز نه دي كه چري كفاره وركوي نوبيا مال دنذر دپاره نه كافي كيږي ځكه چي دعمران بن حصين رضي الله عنه په روايت كې راغلي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دمعصيت هيڅ يو نذر جائز نه دي او ددي كفاره دقسم كفاره ده (رواه النسائي والحاكم والبيهقي).

دامام احمد چي كوم مسلك دي چي نذر دمعصيت منعقد كيږي او ددي كفاره دقسم دكفاري پشان ادا كول واجب دي دذكر شوي حديث په اطلاق سره ددي مسلك تائيد كيږي ليكن ددي

حديث په سند کې يو راوي محمد بن زبير حنظري دي کوم چې قوي نه دي دابن زبير په روايت کې محدثينو اختلاف کړي دي ، عبدالرزاق دمحمد دپلار زبير په روايت سره بيان کړي حافظ ليکلي دي چې دا حديث په نورو سندونو سره هم راغلي دي چې صحيح دي مګر معلول دي.

مسئله: چاچې دنيک کار نذر اومنلو ليکن په څه قيوداتو سره يې مقيد کړو نو ايا داسې قيودات داعتبار قابل دي ؟ ددې متعلق دامام صاحب فيصله داده که چرې قيودات او صفات داسې وي کوم چې الله تعالي ته مرغوب وي او دثواب دکثرت او په درجاتو کې دترقئ موجب وي نو بيا دا نذر سره دقيوداتو او اوصافو نه پوره کول واجب دي او دقيوداتو په پريخودو سره صرف دنذر حکم باقي پريخودل ممکن نه دي او که چرې قيودات او اوصاف غير شرعي او عندالله مرغوب نه وي نو ددې شرائطو پابندي کول پکار نه دي.

مسئله که چرې دمونځ کولو نذر يې ومنلو اودولاړې ناستې څه نيت يې نه وي کړي نو په ولاړه مونځ کول به ورباندې واجب وي ځکه چې اصل په مونځ کې په ولاړه کول دي او که چرې په ناسته دمونځ کولو نذر يې منلي وي نو دا نذر په ناسته او په ولاړه دواړو طريقو سره ادا کولې شي او نذر به يې پوره ګڼړلې کيږي.

مسئله: که چرې په کعبه کې يې دمونځ کولو نذر منلي وي نو دامام ابو حنيفه اودامام ابويوسف په نزد چې په هر ځاي کې دي اوغواړي مونځ دې اوکړي او نذر به يې پوره شي، دامام زفر او ابو يوسف قول دادې که چرې په بيت المقدس کې يې دمونځ کولو نذر منلي وي او په مسجد نبوي يا کعبه کې يې اوکړي نو هم به يې نذر پوره وي او چاچې په مسجد نبوي کې دمونځ کولو نذر منلي وي او په کعبه کې يې ادا کړي نو بيابه يې هم نذر پوره وي او دمسجد نبوي او کعبې نه علاوه که په بل مسجد کې يې ادا کړي نو نذر به يې پوره نه وي او چاچې په کعبه کې دننه دمونځ کولو نذر منلي وي نو په کعبه کې دننه به يې ادا کوي او دکعبې نه علاوه په کوم بل مسجد کې په مونځ کولو سره به يې نذر پوره نه ګڼړلې کيږي.

مسئله: که چرې کوم بيمار دروغيدونه پس يامسافر دسفر نه دواپسئ په شرط سره خپله نذري روژه مشروط کړې وي او داسې يې وئيلي وي چې کله زما مسافر واپس راشي يا مې بيمار جوړ شي نو زه به يوه مياشت روژې صرف دالله تعالي دپاره نيسم نو دشرط پوره کيدو نه پس به نذر ادا کول پده باندې واجب وي او دشرط دوجود نه مخکې که چرې دې روژې اونيسې نودنذر ادا کيدو دپاره به کافي نه وي بلکه دې به دوباره روژې نيسي ځکه چې زمونږ په نزد شرط دسبب دانعقاد کيدو نه مانع دي (دشرط په موجودګئ کې سبب نه پيدا کيږي) اودسبب دوجود نه بغير دادا کولو څه معني نشته ، امام شافعي دوجود دشرط نه مخکې نذر ادا کول کافي ګڼړي ، دده په نزد شرط دحکم نه مانع دي او وجود دسبب مانع نه دي همدا وجه ده که

ځوك دوقوع دشرط نه مخکې روژه اونيسي نو نذر به يي پوره ګڼرلي کيږي، او دا داسي ده لکه چي نصاب دزکواة ادا کولو نه پس او دکال دپوره کيدو نه مخکې که زکات ادا کړي شي نو ادائيګي به يي قبوله وي.

مسئله: که چري د ادا کولو دوجود نسبت کوم خاص وخت يا زماني ته شوي وي نودامام ابو حنيفه او امام ابو يوسف په نزد دوخت دراتلو نه مخکې هم نذر لره ادا کولي شي ليکن امام محمد فرمائي وخت ته نسبت کول داسي دي لکه دشرط سره مشروط کول ، دشيخينو قول دي دنذر وخت ته نسبت کول دشرط پشان نه دي (وخت ته په نسبت کولو سره نذر نه مشروط کيږي بلکه) دا نذر منجز دي (يعني بغير دشرط نه) صرف په وخت سره مقيد شوي دي او قيوداتو لره اعتبار نه وي دا داسي ده لکه چي څا په بازار کې دمونځ کولو نذر منلي وي نو دي لره دي هر چرته ادا کولي شي نو همدا رنګي دوخت نه مخکې روژي نيول هم جائز دي او نذر به يي پوره ګڼرلي کيږي او که چري مقرر وخت تير شو او روژي يي اونه نيولي او حج يي هم اونکړو نو دا روژي ددينه پس بيا هم نيولي شي او حج هم کولي شي.

مسئله: څاچي دکوم طاعت نذر ومنلو نو پده به دا طاعت واجب وي او په کومو شرائطو او لوازمو پوري چي يي موقوف کړي وي هغه به ورباندي هم واجب وي ، مثلا څا بغير داودس نه يا بغير دقراءت دقران نه د دوه رکعاتو مونځ نذر اومنلو يايي ديو رکعات يا دري رکعاتونو نذر اومنلو نو سره د اودس او سره دقراءت دقران نه به ورباندي دوه رکعاتونه واجب وي ديو رکعات په ځاي به دوه کوي او د دري رکعاتونو په ځاي به څلور ادا کول پده لازم وي.

دامام محمد قول دي بې اودسه مونځ کولو نذر منل دسره درست نه دي او بې اودسه مونځ کول بالکل طاعت نه دي مګر بغير دقراءت دقران نه مونځ کله کله طاعت وي لکه دامي مونځ، ددينه علاوه په باقي دري واړو صورتونو کې دامام محمد قول دامام ابو حنيفه سره موافق دي، دامام زفر قول دي که د دري رکعاتونو نذر يي اومنلو نو دوه به ورباندي لازم وي او ددينه علاوه په باقي صورتونو کې به ورباندي هيڅ واجب نه وي ځکه چي بې اودسه او بغير دقرائته مونځ طاعت نه دي او يو رکعات هم طاعت نه دي برابره خبره ده چي صرف يو وي او که داسي يو وي چي مخکې ورنه دوه وي، همدا وجه ده چي په دي صورتونو کې نذر بالکل صحيح نه دي مونږ وايو دکوم څيز ذدمه دارئ اخستلو په وجه دهغه څيزونو التزام ضروري کيږي په کومو پوري چي ددي څيز وجود موقوف وي.

مسئله: که چري څا په رمضان کې داعتکاف کولو نذر اومنلو نو په رمضان کې ورباندي نذر کول واجب دي او درمضان شرط ورنه ساقط کيدي نشي ځکه چي په رمضان کې دهر عبات ثواب په نورو ورځو کې دعبادت دثواب نه زيات دي ، فرمان نبوي دي څاچي په نفلي طور سره په رمضان کې کوم نيك عمل اوکړو دده مثال دهغه څا پشان دي څاچي درمضان نه علاوه په

نورو ورخو کې کوم فرض عمل ادا کړي وي (يعني په رمضان کې دنفلي نيکئ ثواب په نورو ورخو کې دفرائضو سره برابر دي) او چاچي په رمضان کې يو فرض ادا کړل نو دده حالت به دهغه چا پشان وي چاچي درمضان نه علاوه په نورو ورخو کې اويا فرض ادا کړي وي (رواه البيهقي في شعب الايمان عن سلمان الفارسي في حديث طويل).

مسئله: که چري په مطلق رمضان کې يي داعتکاف کولو نذر اومنلو نو په هر رمضان کې اعتکاف کولي شي اګر که هر يو رمضان وي او که چا درمضان تعين اوکړو نو بيا په همدغه رمضان کې اعتکاف کول پده لازم دي.

مسئله: که چري په معين رمضان کې يي داعتکاف نذر اوکړو او مقرر شوي رمضان ورنه بغير داعتکاف نه تير شو نو په نورو ورخو کې به اعتکاف قضا راوړي او پدغه ورخو کې به په ده باندي روژو نيول هم ضروري نه دي او همدا قول دامام ابو حنيفه او امام احمد هم دي او دا دامام ابو يوسف هم يو قول ددي په موافقت کې مروي دي ليکن دهغه دويم قول دا مروي دي چي په ائينده زمانه کې دي قضا نه راوړي او همدا قول امام زفر هم دي خکه چي په رمضان کې اعتکاف افضل دي او په نورو ورخو کې دفوت شوي رمضان تلافي نشي کيدي لکه چاچي په ولاړه دمونځ کولو نذر منلي وي او ناستي په مونځ يي نذر نه پوره کيږي او يا يي دمسلسل روژو نيولو نذر منلي وي او په جدا جدا ورخو کې يي ادا کوي نو نذر به يي نه ادا کيږي نو کله چي دنذر پوره کول بالقضا ممکن نه دي نو دا نذر به ساقط شي.

مسئله: که کوم کافر دکفر په حالت کې دکوم طاعت نذر اومني او بيا دنذر پوره کولو نه مخکې مسلمان شي نو دامام مالك او احمد په نزد دکفر دوخت دنذر پوره کول داسلام په وخت کې واجب دي ، عمرفاروق رضي الله عنه دکفر په حالت کې داعتکاف نذر منلي وو او رسول الله ورته دمسلمانيدو نه پس دنذر پوره کولو حکم کړي وو.

ليکن دامام ابو حنيفه او شافعي په نزد دکفر دحالت نذر په اسلام کې پوره کول واجب نه دي خکه چي دي دهيڅ يو اطاعت اهل نه دي او دکافر اطاعت معصيت دي خکه چي دده اطاعت کې خلوص ايماني نشته او دمعصيت نذر پوره کول بالکل واجب نه دي اورسول الله چي عمر فاروق ته دنذر پوره کولو کوم حکم کړي وو ددي مطلب دا نه وو چي دمخکني نذر پوره کول وربانديي واجب دي بلکه عمرفاروق داعتکاف خواهش مند وو رسول الله چي دده درغبت شدت مخصوص کړو نو ابتدائي حکم يي ورته اوکړو او دا حکم دجاهليت دنذر دپوره کولو حکم نه وو.

مسئله: دطاعت نذر کولو نه پس که څوك مرتد شي او بيا څه موده پس دوباره اسلام راوړي نو دامام ابو حنيفه په نزد پده باندي دنذر پوره کول واجب نه دي خکه چي داطاعت نذر هم اطاعت دي او هر قربت دمرتد کيدو په وجه فوت شو او معدوم شو او اثر يي باقي پاتي نشو.

مسئله: که چري چا دهميشه روژو نيولو نذر اومنلو او دځه کارونو په وجه يي دوام ورنکړي شو چي څومره ورځي چي يي روژي نه وي نيولي نو دهري روژي په عوض کې دي يو صاع غنم صدقه کړي (کذا في الفتاوي الکبري) ابن همام هم داسي ليکلي دي او دا يي هم ليکلي دي که چري دتنګ دستئ په وجه مالي خيرات نشي کولي نو دالله تعالي نه دي دمعافئ طلب اوکړي ، مفتي به قول دادي چي چا ددوامي روژو نيولو نذر منلي وي هغه ته اختيار دي که خوښه يي وي روژي دي اونيسي او که خوښه يي وي کفاره دي ادا کړي . ناقابل برداشت څيز يا کار دنذر منلو په حکم کې هم دا اختلاف دي، څوك چي دکفاري قائل دي هغوئ دهغه حديث نه استدلال کوي کوم چي دابن عباس رضي الله عنهما نه مروي دي چي رسول الله اوفرمائيل چاچي داسي نذر منلي وي چي د ادا کولو طاقت يي نه لري نو ددي کفاره دقسم کفاره ده داحديث مخکې تير شوي دي .

مسئله: چاچي دلسو ياشلو حجونو کولو نذر اومنلو نو ايا پده باندي دنذر مطابق حجونه لازم دي اوکه نه دومره حجونه ضروري نه دي څومره چي ده نذر منلي وي يا دومره حجونه ضروري دي څومره چي ده ته زندګي اجازه ورکوي ، په خلاصه کې اولني قول اختيار کړي شوي دي ليکن نورو خلقو دوروستني قول نسبت صاحبينو ته کړي دي او دسرخسي په نزد هم دا غوره قول دي .

مسئله: که چا اووئيل چي زه به حج کوم نو دا وعده هم حج دي او ددي لفظ په ونيلو پده باندي حج نه لازميږي او نذر نه دي مگر وعده پوره کول مستحب دي .

مسئله: که چا اووئيل که الله تعالي ماته ددي بيمارئ نه شفا راکړي نو زه به حج کوم نو دا نذر شو داسلامي فريضي نه علاوه حج دنذر هم پده باندي لازم دي ، په ائينده کې که چري بغير دتعين نه ده حج اوکړو نو دابه دده فرض حج حسابيږي او که ددينه پس يي دويم حج اوکړو او هيڅ نيت يي نه وو کړي نو په بعضي اقوالو کې راغلي دي چي دا به نفلي حج وي او دنذر والا حج به نه وي او دنذر ادا کولو دپاره خو نيت ضروري دي .

مسئله که چا اووئيل که دزيد خوښه وي نو په ما دي حج لازم وي نو زيد اووئيل هو زه غواړم نو حج پده باندي لازم شو او دا مسئله ضروري نه ده چي په کوم وخت کې دي زيد ته خبر رسيدلي وي په هم هغه مجلس کې ضرور هغه دخپل مشيت اظهار اوکړي . دتعليق طلاق بالمشيت مسئله ددي په خلاف ده ځکه چي په دوارو کې فرق دي په طلاقو کې خو د تعليق معني وي او دحج په مسئله کې تعليق بالمشيت دزيد محض يو شرط دي .

مسئله: چاچي نذر اومنلو چي خپل تمام مال به صدقه کوم نو احسانا پده باندي لازم دي چي دده په څومره مال زکات واجبيږي هغه دي صدقه کړي ځکه چي دالله تعالي دطرفه په مقدار دنصاب زکات فرض کړي شوي دي او پدي باندي ايجاب دعبد يعني التزام دنذر هم قياس

کیږي ، یوه خبره دا هم ده چي ددي کلام نه ظاهرا دا معلومیږي چي فالتو مال لره صدقه کول مقصود دي او فالتو مال هغه وي کوم چي نصاب دزکواة دي او دوصیت حکم ددي په خلاف دي ځکه چي وصیت په هغه وخت کښ وي کله چي وصیت کونکي دمال ضرورت منند نه وي مګر که دا نذر یي اومنلو نو زما په ملکیت کښ چي څه دي دا به صدقه کوم نو ددي صورت مطابق دامام ابو حنیفه او صاحبینو په نزد تمام مال صدقه کول به په ده باندي لازم وي او دامام احمد او زفر او شافعي په نزد په دواړو کښ هیڅ فرق نشته چي دکل مال لفظ وي او که دکل ملك لفظ وي خو په دواړو صورتونو کښ په ده باندي ټول مال صدقه کول لازم دي.

دامام مالك بیان دي په دواړو صورتونو کښ یو ثلث دمال ورکول پکار دي د رزین نه روایت دي چي ابو لبابه رضي الله عنه په دربار رسالت کښ حاضر شو او عرض یي اوکړو زما دتوبي دا هم تکمیل دي چي زه دخپل کور سره تعلق پریږدم او چرته چي ما دګناه ارتکاب کړي دي دهغي نه جدا شم او خپل ټول مال دخان نه جدا کړم او صدقه یي کړم ، رسول الله ورته اوفرمائیل ستا دطرف نه یو ثلث کافي دي ، مونږ وایو په حدیث کښ ددي هیڅ ذکر نشته او نه کومه اشاره شته چي ابو لبابه دتمام مال خیرات کولو نذر منلي وو صرف دومره معلومیږي چي دټول مال دصدقه کولو اراده یي کړي وه رسول الله دیو ثلث دصدقي کولو مشوره ورکړه ددي دپاره چي دغریبانانو په ابو لبابه کوم حقوق وو هغه ضایع نشو ددي معني تائید پدي قول هم کیږي کعب بن مالك په حدیث کښ دي چي رسول الله د دریمي حصي دمال ذکر هم اونکړو.

مسئله : که چري داسي ووئیلي شي چي زما مال دي دغریبانانو دپاره صدقه وي نوپدي کښ به هغه مال داخل نه وي کوم چي دده دخلقو په ذمه دي.

مسئله : که چري داسي ووئیلي شي چي زما تمام مال کوم چي زما په ملکیت کښ دي اوپه ائنده کښ چي زما په ملکیت کښ راخي دټولو نذر کول منم نوپدي کښ به هغه مال داخل نه وي کوم چي دده دضروري مصارفو دپاره وي اودده دښځي اوبچو نفقه وي اودده دمتعلقینو دچاچي په ده خرچ واجب دي دهغوی داخراجاتو دپاره کفایت کوي هغه به په دي کښ داخل نه وي ، اودا داسي ده لکه چي چا دهمیشه روژو نذر منلي وي نو درمضان روژي په دي کښ داخل نه دي نو پدي وجه به ددي کفاره هم نه ادا کوي ځکه چي درمضان روژي دحقوق الله سره تعلق لري نو اوس که په بله کومه وجه درمضان نه علاوه دنورو ورځو روژي ونه ساتلي شي نو ددغه ورځو کفاره به ادا کوي.

مسئله : که چري داسي ووئیلي شي چي په ما دي دالله دپاره یوه چیلۍ یا غوا یا اوښ ذبح کول لازم وي نو في الحال ذبحه کول به ورباندي لازم وي اوکه کوم شرط یي ولګولو مثلا داسي یي ووئیل که زما رور روغ شو نود الله دپاره دي په ما باندي ددي څاروي ذبح کول لازم وي نوکله

چي شرط پوره شي نوېدغه وخت کې به په ده باندي څاروي ذبح کول لازم شي، اوهر چرته دذبح کولو اختيار به ورته حاصل وي ليکن غوښه به په فقراؤ باندي تقسيموي.
مسئله : په نوادر دابن سماعه کې ذکر شوي دي چي په مذکوره لفظ ونيلوسره نذر نه لازميږي ، مګر که په مذکور کلام کې يې په طور دخيرات زائد ووئيل نو دا نذر به جائز وي مونږ وايو مذکوره الفاظ په دي باندي دلالت کوي چي ده دمال ورکولو ذمه اخستلي ده او مال داسي دي چي فقراؤ ته ورکولي کيدي شي نوېدي وجه به دذبح کولو نه مراد دقرباني کولو نه پس په فقيرانو تقسيمول وي مګر که نيت يې صرف دذبح کولو کړي وي (نودغوښي تقسيم به ورباندي لازم نه وي او دا کلام به په نذر باندي نشي محمول کولي) که چري داسي ووئيلي شي چي د الله دپاره دي په ماباندي قرباني وي نوپه ګډ ، چيلي ، اوښ ، غواکي هر قسم څار وي ذبح کولي شي ، البته که دجنس تعين يې کړي وي نو دا قسم څاروي به ذبح کوي.
مسئله : د امام ابوحنيفه په نزد بدني په نذر منلو سره دحرم په داخل کې داوښ ذبح کول نه لازميږي مګر که "علي بدنة من شعائرالله " يې وئيلي وي نو چونکه شعائروالله هلته هغه اوښان وي په کومو چي خصوصي علامې لګيدلي وي چي دا اوښان حرم ته دقربانۍ دپاره روان دي نوېدي وجه به دبدني ذبح کول هم په حرم کې لازم وي نو اوس که هديه په حرم کې ذبح کړه نو دحرم په فقيرانو دي ددي غوښه تقسيم کړي اګر چي دحرم دفقيرانو نه علاوه نورو فقيرانو ته يې ورکول هم جائز دي.
مسئله : چاچي دچيلي نذر منلي وي او اوښ ذبح کړي نو بهتره ده نذر يې ادا شو او دا صورت ادا په قيمت نه ده چي کافي نه وي ځکه چي دنذر پوره کول يې هم دذبحي په شکل کې کړي وي ليکن که ددوه چيلو نذر يې منلي وي او يوه داسي چيلي قرباني کړي چي قيمت يې دځلورو چيلو برابر وي نو دنذر دپوره والي دپاره به کافي نه وي او دا به صرف يو چيلي ګڼرلي کيږي.
مسئله : که چري دمعين چيلي دذبح کولو نذر يې منلي وي نو هم هغه چيلي به ذبح کوي او که چري هغه مړ شي يا غلا کړي شي نو دويم به ورباندي لازم نه وي ، همدا رنګي معينو پيسو ته اشاره کول او دهغي دخيرات کولو نذر منلي او بيا ددينه پس هغه ضايع شي او يا پټي شي او يا ورباندي بل څه اوشي نو نوري معيني پيسي به ددي په ځاي ادا کول لازم نه وي ليکن که هغه پيسي موجودي وي او ددي په ځاي دومره نوري پيسي خيرات کړي نو کافي به وي او که ددوډۍ خيرات کولو نذر يې منلي وي او بيا ددوډۍ قيمت خيراتي کړي نو جائز دي .
مسئله : او که چري دجامو صدقه کولو نذر يې منلي وي او دکعبې فقيرانو يا څوکيدارانو ته يې ورکړي نو جائز دي او که چري څوکيداران غريبانان نه وي نو بيابه دوی ته په ورکولو سره

نذر پوره نه حسابیږي او که چرې دنذر په جامو دکعبې پردې یا د دیوالونو دپاره غلافونه جوړ کړي نوپدې شان سره به نذر نه ادا کیږي.

مسئله : که چرې چا دا نذر منلې وي چې دا څاروي به دکعبې یا بیت الله یامکې پورې لیږم نو دنذر وفا به پده باندې لازمه وي او که چرې دکعبې یا بیت الله یا مکې په ځاې یې حرم یا مسجد حرام لفظ وئیلې وي نو نذر به وربانديې دده دقول مطابق واجب نه وي ، دصاحبینو په نزد په دواړو صورتونو کې نذر واجبیږي او پده باندې به دده دقول مطابق دنذر وفا لازمه وي لیکن که صفا لفظ یې وئیلې وي نو دټولو اهل علمو په نزد ددې نذر التزام ضروري نه دې .

مسئله : که چرې داسې یې اووئیل زه به دخپلې دې کپړې نه دبیت الله یا حطیم غلاف جوړوم نو استحسانا به دده دا قول په نذر حمل کولې شي ځکه چې عرفا ددینه هدیه مراد وي .

مسئله : که چرې څوك یوې چیلۍ ته اشاره اوکړي او اووائي چې زه به دا چیلۍ اخلم اوکعبې ته به یې لیږم او هدیه کوم به یې نو دامام شافعي په نزد دا نذر لغوه دې ځکه چې دهغه په نزد تعلیق بالشرط دانعقاد دحکم نه مانع دې دسبب نه مانع نه دې او دانعقاد دسبب په وخت کې چیلۍ دبل چا په ملکیت کې وه او دغیر مملوك څیز نذر منل صحیح نه دې ، رسول الله صلي الله علیه وسلم فرمائیلې دي کوم څیز چې دسړي په ملکیت کې نه وي دهغې نذر منل صحیح نه دې ، لیکن دامام ابو حنیفه په نزد شرط دانعقاد دسبب نه مانع وي دشرط دوجود نه پس دسبب انعقاد وي یعنې داخستلو نه پس سبب منعقد دې نو ځکه نذر به لغوه نه وي او دشرط دوجود نه پس به پده باندې نذر پوره کول لازم وي.

مسئله : که چا اووئیل ماته چې ستا دمال نه کومه نفع حاصلیږي په مادې ددې خیرات کول لازم وي نو اوس چې کومه نفع دمخاطب دمال نه ده ته حاصلیږي دهغې خیرات کول به په ده باندې لازم وي لیکن که مخاطب ده ته دعوت ورکړي او خوراك ورته پیش کړي نو ددې خیرات کول به لازم نه وي.

مسئله : که چا داسې نذر اومنلو که ماداسې اوکړل نو څه چې زه خورم دهغې مقابل خیرات کول دې په مالازم وي یاڅه چې زه څکم دهغې مقابل خیرات کول دې په ما لازم وي نو په اولنې صورت کې دهرې لقمې په عوض کې یو درهم اوپه دویم صورت کې دهر ګوټ په عوض کې یو درهم صدقه کول پده باندې لازم دې او ددینه دکم خوړلو څکلو اختیار نشته .

مسئله : کله چې زید راشي نو دالله تعالي دشکریه په طور دې په ما پدغه ورځ روژه نیول لازم وي، که چا داسې اووئیل نو دا قسم شو نو اوس که چرې زید درمضان په کومه ورځ راشي نو دقسم کفاره به وي او دنذر قضا به لازمه نه وي .

مسئله . که چرې کوم بیمار دیوې میاشتې روژو نذر او مني او دروغیدو نه مخکې مړ شي نو پده باندې به هیڅ لازم نه وي او که چرې چا دکال یا دمیاشتې دکوم معین تاریخ یا ورځې نذر

اومني نو هر كال او هره مياشت چي كله دغه ورځ راځي نو روژه نيول به پده بانديي لازم وي (يعني دتمام عمر دپاره پده باندي ددغه ورځي روژه نيول لازم شول).

مسئله: كه چري څوك ددوشنبي يا پنجشنبي په ورځ دروژي نذر ومني نو صرف ديوي دوشنبي يا ديوي پنجشنبي روژه نيول به كافي وي ، مگر كه دهري دوشنبي يا دهر زيارت دروژي نيت يي كړي وي نو بيا به په هره دوشنبه اوپه هر زيارت روژه نيسي.

مسئله: كه چري دنذر الفاظ يي بغير دارادي نه په ژبه راشي نو نذر به نافذ وي او پوره كول به يي ضروري وي ځكه چي نذر انشاء ده (خبر نه دي په كوم كې چي ددروغو او رښتياؤ دواړو احتمال دي او په انشاء كې ددروغو احتمال نه وي).

ارشاد نبوي دي دري څيزونه داسي دي دكومو سنجيدگي او واقعيت هم سنجيدگي ده (يعني صحيح به گنړلي شي او احكام به يي نافذ وي اوددوئ ټوقي هم سنجيدگي ده ، ددي تفصيل مخكې تير شوي دي.

مسئله: كه چا اوويل دالله دپاره دي په ما روژي وي (يعني دتمام كال دروژو نذر كولو نيت يي كړي وو نو دنذر دوخت نه به دراتلونكو دولسو مياشتو روژي نيول به پده لازم وي ليكن په فتاوي قاضي خان او خلاصه كې دي چي سنت دادي چي دمحرم نه دي شروع اوكړي او دذي الحجي په اخر دي ختم كړي ليكن كه چري ده روان كال ته اشاره كړي وي نو دنذر دوخت نه به شروع كوي او دذي الحجي داخره پوري به پده روژي لازمي وي اودروان كال چي كومي ورځي يا مياشتي تيري شوي وي دهغي روژي به وربانديي لازمي نه وي. همدا رنگي كه چا اوويل زه د تير شوي پرون دروژي نذر منم نو دا كلام به لغوه وي ځكه چي تير شوي پرون واپس نه راځي

مسئله: كه چا رواني مياشتي ته اشاره اوكړه او ددي مياشتي روژي يي نذر كړي نو په مياشت كې چي څومره ورځي باقي وي ددي روژي خو به وربانديي لازمي وي او دتيرو شوو ورځو نذر به يي لغوه وي.

مسئله: كه چا اوويل نن دي په ما دتير شوي پرون روژه لازمه وي نو دتير شوي پرون سزا به وړبانديي لازمه نه وي صرف دهغي ورځي روژه به نيسي په كومه ورځ چي ده دا الفاظ ونيلي وي

مسئله: كه چري كومي ښځي دبيمارئ په وخت كې دروژو نيولو نذر اومنلو نو دا نذر به صحيح نه وي ځكه چي قضا يي واجب نه ده او كه چا دشپي دروژو نيولو نذر منلي وي نو دا نذر هم صحيح نه دي ځكه چي شرعي روژه خو دورځي وي

## دابو امامه اياس بن ثعلبه حارثي رضي الله عنه حالات

نوم اياس اود دبعضو په نزد دده نوم عبدالله بن ثعلبه وو او ددي برعكس ثعلبه بن عبدالله هم ونيلي شوي دی كنيه يي ابو امامه وه اودپلار نوم يي ثعلبه يا عبدالله وو او دقبيله خزرج سره

يي تعلق وو دده نه دوه يا دري روايتونه منقول دي يو په بخاري كي او يو په مسلم كي دى

****************

# كتاب السير عن رسول الله صلى الله عليه وسلم

## دجهاد احكام او مسائل

## ١_ باب مَا جَاءَ فِي الدَّعْوَةِ قَبْلَ الْقِتَالِ

### ددشمن سره د قتال كولو نه مخكي دوئ ته داسلام ددعوت وركولو بيان

١٥٤٨_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ السَّائِبِ، عَنْ أَبِي الْبَخْتَرِيِّ "أَنَّ جَيْشًا مِنْ جُيُوشِ الْمُسْلِمِينَ كَانَ أَمِيرَهُمْ سَلْمَانُ الْفَارِسِيُّ حَاصَرُوا قَصْرًا مِنْ قُصُورِ فَارِسَ، فَقَالُوا: يَا أَبَا عَبْدِ اللَّهِ، أَلَا نَنْهَدُ إِلَيْهِمْ؟ قَالَ: دَعُونِي أَدْعُهُمْ كَمَا سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدْعُوهُمْ، فَأَتَاهُمْ سَلْمَانُ، فَقَالَ لَهُمْ: إِنَّمَا أَنَا رَجُلٌ مِنْكُمْ فَارِسِيٌّ، تَرَوْنَ الْعَرَبَ يُطِيعُونَنِي، فَإِنْ أَسْلَمْتُمْ، فَلَكُمْ مِثْلُ الَّذِي لَنَا وَعَلَيْكُمْ مِثْلُ الَّذِي عَلَيْنَا، وَإِنْ أَبَيْتُمْ إِلَّا دِينَكُمْ، تَرَكْنَاكُمْ عَلَيْهِ، وَأَعْطُونَا الْجِزْيَةَ عَنْ يَدٍ وَأَنْتُمْ صَاغِرُونَ، قَالَ: وَرَطَنَ إِلَيْهِمْ بِالْفَارِسِيَّةِ: وَأَنْتُمْ غَيْرُ مَحْمُودِينَ، وَإِنْ أَبَيْتُمْ، نَابَذْنَاكُمْ عَلَى سَوَاءٍ، قَالُوا: مَا نَحْنُ بِالَّذِي نُعْطِي الْجِزْيَةَ، وَلَكِنَّا نُقَاتِلُكُمْ، فَقَالُوا: يَا أَبَا عَبْدِ اللَّهِ، أَلَا نَنْهَدُ إِلَيْهِمْ؟ قَالَ: لَا، فَدَعَاهُمْ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ إِلَى مِثْلِ هَذَا، ثُمَّ قَالَ: انْهَدُوا إِلَيْهِمْ، قَالَ: فَنَهَدْنَا إِلَيْهِمْ، فَفَتَحْنَا ذَلِكَ الْقَصْرَ،

قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ بُرَيْدَةَ، وَالنُّعْمَانِ بْنِ مُقَرِّنٍ، وَابْنِ عُمَرَ، وَابْنِ عَبَّاسٍ، وَحَدِيثُ سَلْمَانَ، حَدِيثٌ حَسَنٌ لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ عَطَاءِ بْنِ السَّائِبِ، وسَمِعْت مُحَمَّدًا، يَقُولُ: أَبُو الْبَخْتَرِيِّ لَمْ يُدْرِكْ سَلْمَانَ، لِأَنَّهُ لَمْ يُدْرِكْ عَلِيًّا، وَسَلْمَانُ مَاتَ قَبْلَ عَلِيٍّ، وَقَدْ ذَهَبَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ إِلَى هَذَا، وَرَأَوْا أَنْ يُدْعَوْا قَبْلَ الْقِتَالِ، وَهُوَ قَوْلُ إِسْحَاقَ بْنِ إِبْرَاهِيمَ، قَالَ: إِنْ تُقُدِّمَ إِلَيْهِمْ فِي الدَّعْوَةِ فَحَسَنٌ، يَكُونُ ذَلِكَ أَهْيَبَ، وقَالَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ: لَا دَعْوَةَ الْيَوْمَ، وقَالَ أَحْمَدُ: لَا أَعْرِفُ الْيَوْمَ أَحَدًا يُدْعَى، وقَالَ الشَّافِعِيُّ: لَا يُقَاتَلُ الْعَدُوُّ حَتَّى يُدْعَوْا، إِلَّا أَنْ يَعْجَلُوا عَنْ ذَلِكَ، فَإِنْ لَمْ يَفْعَلْ، فَقَدْ بَلَغَتْهُمُ الدَّعْوَةُ.[1]

---

[1] _ تفرد به كره المؤلف (تحفة الأشراف: ٤٤٩٠)

**ترجمه** : دابو البختري سعيد بن فيروز بيان دي فرمائي چي دمسلمانانو يو لښکر چي امير يي سلمان فارسي رضي الله عنه وو، دفارس يوه قلا محاصره کړه، خلقو اووئيل اي ابو عبدالله ايا حمله ورباندي اونکړو؟ هغه اووئيل ما پريږدئ زه دي کافرانو ته داسلام دعوت په داسي طريقه ورکړم څنګه چي ما درسول الله صلي الله عليه وسلم نه دعوت ورکول اوريدلي دي. چنانچي سلمان فارسي رضي الله عنه دوئ ته ورغلو او کافرانو ته يي اووئيل زه ستاسو دقوم دفارس علاقي يو اوسيدونکي يم تاسو خو وينئ چي عرب زما اطاعت کوي که چري تاسو اسلام قبول کړئ نو ستاسو دپاره به هغه حقوق وي کوم چي زمونږ دپاره وي او په تاسو به هغه ذمه واريانې مقرر کړي شي کومي چي په مونږ مقرري وي او که تاسو پخپل دين قائم پاتي کيدل غواړئ نو مونږ به په همدي باندي تاسو پريږدو خوتاسو به د ذليل او خوار کيدو په حال کي جزيه اداء کوئ سلمان فارسي رضي الله عنه دا خبري په فارسئ کي هم بيان کړئ او دا يي هم اووئيل چي تاسو دتعريف لائق خلق نه يئ، او که تاسو انکار اوکړو نو مونږ به درسره جنګ اوکړو دوئ ورته په جواب کي اووئيل مونږ هغه خلق نه يو څوك چي جزيه او ټيکسونه ورکوي بلکه مونږ هم درسره جنګ کوو مسلمانانو اووئيل اي ابو عبدالله ايا حمله ورباندي اونکړو؟ هغه اووئيل نه او بيا سلمان فارسي په همدي طريقه دري ورځي دوئ ته داسلام دعوت ورکړو او بيا يي مسلمانانو ته اووئيل حمله ورباندي اوکړئ مسلمانانو په دوئ حمله اوکړه او دا قلا يي فتح کړه.

امام ترمذي وايي : دسلمان فارسي حديث حسن دي دا مونږ ته صرف دعطاء بن سائب په سند رارسيدلي دي ما دامام بخاري نه اوريدلي دي چي ابو البختري دسلمان فارسي سره ملاقات نه دي شوي او په دي وجه هغه دعلي رضي الله عنه سره ليدل نه دي شوي او سلمان دعلي رضي الله عنه نه مخکي وفات شوي دي، او په دي باب کي دبريده، نعمان بن مقرن، ابن عمر، او ابن عباس رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي، په صحابه کرامو ددوئ نه پس خلقو کي بعضي اهل علمو په دي باندي قول کړي دي چي دقتال نه مخکي به کافرانو ته دعوت ورکولي شي او داسحاق بن ابراهيم بن راهويه هم دا قول دي که چري دوئ ته اول داسلام دعوت ورکړي شي نو بهتر ده دا به ددوئ دپاره دخوف باعث نه وي، مګر بعضي اهل علم وائي چي په دي وخت کي دعوت ته ضرورت نشته، امام احمد وائي زه په دي زمانه کي څوك ددي لائق نه ګڼړم چي دعوت ورته ورکړي شي. امام شافعي وائي د دعوت نه مخکي د دشمن سره جنګ شروع کول پکار نه دي خو که کافران پخپله په جنګ کولو کي مخکي شي او بيا ورته دعوت ورنکړي شي نو هيڅ باك نشته ځکه چي داسلام دعوت دوئ ته رسيدلي دي.

**دابوعبدالله سلمان الفارسي رضي الله عنه حالات:**

نوم مجوسي مايه وو داسلام قبلولو نه پس ورباندي سلمان نوم کيخودی شو کنيه يي ابو عبدالله ده نسب نامه يي داسي ده مايه بن لوذ خشان بن مرسلان بن بهنوخان بن پيروز بن سهرك.

دجاهليت په زمانه کې په مجوسيت کې هم ډير کلك وو دده شمير په هغه اورپرست خلقو کې شوی دی کومو چي به په هيڅ وخت کې اور وژلو ته نه پريخودو بيا عيسائي مذهب ته مائل شو او په دي سلسله کې يي دمتعددو فادريانو سره وخت تير کړو اخري فادري ورته درسول الله صلي الله عليه وسلم دراتلو بشارت ورکړی وو کله چي دی رسول الله ته راورسيدو نو مسلمان شو رسول الله دده او دابوالدرداء ورورولي قائمه کړه.

دده اولنۍ غزوه خندق وه او دخندق نه پس بيا په تمامو غزواتو کې شريك شوی دی (مسند احمد).

عمر رضي الله عنه ده لره دمدائن والي مقرر کړی دی دده په زندګۍ کې يو څو صفات ډير پرقيدونکي وو اول زهد او تقوي دويم درهبانيت نه نفرت ، دريم صداقت، څلورم سخاوت، پنځم دصدقات اخستلو نه اجتناب کول ، مروي دي چي دعثمان رضي الله عنه په زمانه کې وفات شوی دی دده عمر دبعضو په نزد دوه پنځوس يا دري پنځوس کاله وو دده دمروياتو تعداد ٦٠ دی ابوسعيد خدري ، ابن عباس، اوس بن مالك رضي الله عنهم وغيره دده شاګردان دي مزيد حالت يي طبقات ابن سعد او تهذيب الکمال کې کتلی شي.

****************

## ٢_ باب

## دجهاد متعلق يوبل باب

١٥٤٩_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى الْعَدَنِيُّ الْمَكِّيُّ وَيُكْنَى بِأَبِي عَبْدِ اللَّهِ الرَّجُلِ الصَّالِحِ هُوَ ابْنُ أَبِي عُمَرَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ نَوْفَلِ بْنِ مُسَاحِقٍ، عَنِ ابْنِ عِصَامٍ الْمُزَنِيِّ، عَنْ أَبِيهِ، وَكَانَتْ لَهُ صُحْبَةٌ، قَالَ: " كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا بَعَثَ جَيْشًا أَوْ سَرِيَّةً يَقُولُ لَهُمْ: "إِذَا رَأَيْتُمْ مَسْجِدًا، أَوْ سَمِعْتُمْ مُؤَذِّنًا، فَلَا تَقْتُلُوا أَحَدًا ". هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ، وَهُوَ حَدِيثُ ابْنِ عُيَيْنَةَ. ([1])

[1] _ سنن ابي داود_ الجهاد ١٠٠(٢٦٣٥) . (تحفة الأشراف : ٩٩٠١)

**رجمه** دعصام مزني رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي كله چي به رسول الله صلي الله عليه وسلم كوم لښكر يا سريه ليږله نو دوئ ته به يي فرمائيل كله چي تاسو كوم مسجد اووينئ او يا دموذن اواز واورئ نو هلته به هيڅ څوك نه وژنئ،

امام ترمذي وايي دا حديث حسن غريب دي او دا حديث دابن عيينه نه مروي دي.

***************

## ٣_ باب مَا جَاءَ فِي الْبَيَاتِ وَالْغَارَاتِ

### دشپې په دشمن دحملې كولو بيان

١٥٥٠_ حَدَّثَنَا الأَنْصَارِيُّ، حَدَّثَنَا مَعْنٌ، حَدَّثَنِي مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ، عَنْ حُمَيْدٍ، عَنْ أَنَسٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِينَ خَرَجَ إِلَى خَيْبَرَ، أَتَاهَا لَيْلاً، وَكَانَ إِذَا جَاءَ قَوْمًا بِلَيْلٍ، لَمْ يُغِرْ عَلَيْهِمْ حَتَّى يُصْبِحَ، فَلَمَّا أَصْبَحَ، خَرَجَتْ يَهُودُ بِمَسَاحِيهِمْ وَمَكَاتِلِهِمْ، فَلَمَّا رَأَوْهُ، قَالُوا: مُحَمَّدٌ وَافَقَ وَاللَّهِ مُحَمَّدٌ الْخَمِيسَ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " اللَّهُ أَكْبَرُ، خَرِبَتْ خَيْبَرُ، إِنَّا إِذَا نَزَلْنَا بِسَاحَةِ قَوْمٍ، فَسَاءَ صَبَاحُ الْمُنْذَرِينَ ".[1]

**ترجمه** : دانس رضي الله عنه نه مروي دي چي كله رسول الله صلي الله عليه وسلم خيبر ته روان شو نو هلته دشپې ورسيدو او رسول الله چي به هر كله كوم قوم ته دشپې وررسيدو نو خو پورې چي به سبا شوي نه وو تر هغې به يي په دوئ باندې حمله نه كوله هر كله چي سبا شو نو يهوديان دخپلو توكرو سره راووتل هر كله چي دوئ رسول الله اوليدو نو ويي وئيل دا خو محمد دي په الله قسم محمد (صلي الله عليه وسلم) دخپل لښكر سره راغلي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل الله اكبر خيبر برباد شو او كله چي مونږ ديو قوم ميدان ته ورشو نو دغه وخت كي دويرولو شوو خلقو سحر ډير بدترين وي.

***************

١٥٥١_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، وَمُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، قَالاَ: حَدَّثَنَا مُعَاذُ بْنُ مُعَاذٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي عَرُوبَةَ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَنَسٍ، عَنْ أبي طَلْحَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " كَانَ إِذَا ظَهَرَ عَلَى قَوْمٍ، أَقَامَ

---

[1] اخرجه البخاري في الصحيح_ الجهاد ١٠١ (٢٩٤٥)، والمغازي ٣٨ (٤١٩٧)، (وانظر أيضا: الصلاة ١٢ (٣٧١)، صحيح مسلم_ النكاح ١٤ (١٣٦٥_ ٨٤)، والجهاد ٤٣ (١٢٠_ ١٣٦٥)، سنن النسائي_ المواقيت ٢٦ (٥٤٨)، (تحفة الأشراف: ٥٣٢)، واحمد في المسند (٣_ ١٠٢، ١٨٦، ٢٠٦، ٢٦٣)

بِعَرْصَتِهِمْ ثَلَاثًا ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَحَدِيثُ حُمَيْدٍ، عَنْ أَنَسٍ، حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَقَدْ رَخَّصَ قَوْمٌ مِنْ أَهْلِ الْعِلْمِ فِي الْغَارَةِ بِاللَّيْلِ وَأَنْ يُبَيِّتُوا. وَكَرِهَهُ بَعْضُهُمْ. وَقَالَ أَحْمَدُ، وَإِسْحَاقُ: لَا بَأْسَ أَنْ يُبَيَّتَ الْعَدُوُّ لَيْلًا. وَمَعْنَى قَوْلِهِ وَافَقَ مُحَمَّدٌ الْخَمِيسَ. يَعْنِي بِهِ: الْجَيْشَ. ([1])

**ترجمه** : دابوطلحه رضي الله عنه نه مروي دي کله چي به نبي کريم صلي الله عليه وسلم په کوم قوم باندي غالب شو نو ددوئ په ميدان کي به يې دري ورځو پورې قيام کولو.

امام ترمذي وايي : داحديث حسن صحيح دي او دحميد چي کوم حديث دانس نه مروي دي دا حسن صحيح دي، او داهل علمو يو جماعت دشپې په دشمن دحملې کولو اجازت ورکړي دي مګر بعضي اهل علم دا کار مکروه ګنړي، امام احمد او اسحاق بن راهويه رحمهما الله وائي چي دشپې په دشمن په حمله کولو کي هيڅ باك نشته. او په "وافق محمد الخميس" کي دالخميس نه مراد لښکر دي.

**************

## ٤ـ باب فِي التَّحْرِيقِ وَالتَّخْرِيبِ

### دجنګ په دوران کي دمشرکانو دکورونو دسوزولو او ورانولو بيان

١٥٥٢ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " حَرَّقَ نَخْلَ بَنِي النَّضِيرِ وَقَطَعَ، وَهِيَ الْبُوَيْرَةُ، فَأَنْزَلَ اللَّهُ: مَا قَطَعْتُمْ مِنْ لِينَةٍ أَوْ تَرَكْتُمُوهَا قَائِمَةً عَلَى أُصُولِهَا فَبِإِذْنِ اللَّهِ وَلِيُخْزِيَ الْفَاسِقِينَ ( الحشر : ٥ ) وَفِي الْبَابِ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، وَهَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ ذَهَبَ قَوْمٌ مِنْ أَهْلِ الْعِلْمِ إِلَى هَذَا، وَلَمْ يَرَوْا بَأْسًا بِقَطْعِ الْأَشْجَارِ وَتَخْرِيبِ الْحُصُونِ، وَكَرِهَ بَعْضُهُمْ ذَلِكَ، وَهُوَ قَوْلُ الْأَوْزَاعِيِّ، قَالَ الْأَوْزَاعِيُّ: وَنَهَى أَبُو بَكْرٍ الصِّدِّيقُ أَنْ يَقْطَعَ شَجَرًا مُثْمِرًا، أَوْ يُخَرِّبَ عَامِرًا، وَعَمِلَ بِذَلِكَ الْمُسْلِمُونَ بَعْدَهُ، وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: لَا بَأْسَ بِالتَّحْرِيقِ فِي

---

[1] ـ اخرجه البخاري في الصحيح ـ الجهاد ١٨٣ (٣٠٦٣) . والمغازي ٨ (٣٩٧٦) . سنن ابي داود ـ الجهاد ١٣٢ (٢٦٩٥) . (تحفة الأشراف : ٣٧٧٠) . واحمد في المسند (٤ ـ ٢٩) . وسنن الدارمي ـ السير ٢٢ (٢٥٠٢)

أَرْضِ الْعَدُوِّ وَقَطْعِ الأَشْجَارِ وَالثِّمَارِ. وَقَالَ أَحْمَدُ: وَقَدْ تَكُونُ فِي مَوَاضِعَ لاَ يَجِدُونَ مِنْهُ بُدًّا. فَأَمَّا بِالْعَبَثِ، فَلاَ تُحَرَّقُ. وَقَالَ إِسْحَاقُ: التَّحْرِيقُ سُنَّةٌ إِذَا كَانَ أَنْكَى فِيهِمْ. (1)

**ترجمه** : دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما بيان دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم دبنو نضير دکجورو ونې اوسوزولې او کټ يې کړلې او دا د بويره مقام واقعه ده نو دي وخت کې الله تعالي دا ايت " مَا قَطَعْتُمْ مِنْ لِينَةٍ أَوْ تَرَكْتُمُوهَا قَائِمَةً عَلَى أُصُولِهَا فَبِإِذْنِ اللهِ وَلِيُخْزِيَ الْفَاسِقِينَ" نازل کړو.

امام ترمذي وايي : داحديث حسن صحيح دي ، او په دي باب کې دابن عباس رضي الله عنهما نه هم روايت وارد دي دبعضي اهل علمو همدا مسلك دي دوئ وائي د ونو په کټ کولو او دقلاګانو په ورانولو کې هيڅ باك نشته. مګر بعضي اهل علم دا کار مکروه ګڼړي او داوزاعي هم دا قول دي اوزاعي وائي ابوبکر صديق رضي الله عنه يزيد دونو کټ کولو او کورونو ورانولو نه منع کړو او دهغوئ نه پس مسلمانانو په دي باندي عمل اوکړو، امام شافعي وائي د دشمن په ملکيت په اور لګولو او د ونو ميوو کټ کولو کې هيڅ باك نشته، امام احمد وائي اسلامي لښکر کله کله په داسي ځاي کې وي چرته چي ددينه علاوه بله چاره نه وي ليکن دضرورت نه بغير اور اچول پکار نه دي، اسحاق بن راهويه وائي اور اچول سنت دي خو هغه وخت کې کله چي اور اچول دکافرانو دبيلات او رسوائي باعث دي.

***************

## ٥ـ باب مَا جَاءَ فِي الْغَنِيمَةِ

### دغنيمت بيان

١٥٥٣ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُبَيْدٍ الْمُحَارِبِيُّ الْكُوفِيُّ، حَدَّثَنَا أَسْبَاطُ بْنُ مُحَمَّدٍ، عَنْ سُلَيْمَانَ التَّيْمِيِّ، عَنْ سَيَّارٍ، عَنْ أَبِي أُمَامَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " إِنَّ اللهَ فَضَّلَنِي عَلَى الأَنْبِيَاءِ، أَوْ قَالَ: أُمَّتِي عَلَى الأُمَمِ، وَأَحَلَّ لِيَ الْغَنَائِمَ ". وَفِي الْبَابِ، عَنْ عَلِيٍّ، وَأَبِي ذَرٍّ، وَعَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو، وَأَبِي

---

1 ـ : اخرجه البخاري في الصحيح_ المزارعة ٤ (٢٣٥٦) . والجهاد ١٥٤ (٣٠٢٠) . والمغازي ١٤ (٣٩٦٠) . صحيح مسلم_ الجهاد ١٠ (١٧٤٦) . سنن ابي داود_ الجهاد ٩١ (٢٦١٥) . سنن ابن ماجه_ الجهاد (٢٨٤٤) . (تحفة الأشراف : ٨٢٦٧) . سنن الدارمي_ السير ٢٣ (٢٥٠٣)

مُوسَى، وَابْنِ عَبَّاسٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي أُمَامَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَسَيَّارٌ هَذَا يُقَالُ لَهُ: سَيَّارٌ مَوْلَى بَنِي مُعَاوِيَةَ، وَرَوَى عَنْهُ سُلَيْمَانُ التَّيْمِيُّ، وَعَبْدُ اللَّهِ بْنُ بَحِيرٍ، وَغَيْرُ وَاحِدٍ. [1]

**ترجمه** : دابوامامه رضي الله عنه نه روايت دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي الله تعالي ماته په انبياؤ او رسولانو فضيلت راکړي دي (او که داسي يي اوفرمائيل) زما امت ته يي په نورو امتونو فضيلت ورکړي دي او زمونږ دپاره يي غنيمت حلال کړي دي.

امام ترمذي وايي : دابوامامه حديث حسن صحيح دي ، او په دي باب کي د علي، ابوذر، عبدالله بن غمرو، ابو موسي، او ابن عباس رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي.

******************

حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ. حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ جَعْفَرٍ، عَنِ الْعَلَاءِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " فُضِّلْتُ عَلَى الْأَنْبِيَاءِ بِسِتٍّ: أُعْطِيتُ جَوَامِعَ الْكَلِمِ، وَنُصِرْتُ بِالرُّعْبِ، وَأُحِلَّتْ لِيَ الْغَنَائِمُ، وَجُعِلَتْ لِيَ الْأَرْضُ مَسْجِدًا وَطَهُورًا، وَأُرْسِلْتُ إِلَى الْخَلْقِ كَافَّةً، وَخُتِمَ بِيَ النَّبِيُّونَ ". هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [2]

**ترجمه** : د ابو هريره رضي الله عنه نه مروي دي : رسول الله صلي الله عليه وسلم ارشاد فرمائيلي دي ماته دشپږو خبرو په سبب په نورو انبياؤ فضيلت راکړي شوي دي ، ماته جامع الفاظ راکړي شوي دي (داسي الفاظ چي په وئيلو کي مختصر دي او معني يي زياته ده) اودرعب په وجه زما مدد شوي دي (دلزي لري پوري په دشمنانو زمارعب اچولي شوي دي) اوزمادپاره غنيمت حلال کړي شوي دي، اوزمادپاره تمامه زمکه عبادت ګاه او پاکونکي ګرخولي شوي ده اوزه دتمام مخلوق دهدايت دپاره راليږلي شوي يم اوپه ماباندي نبوت ختم شوي دي.

امام ترمذي وايي : دا حديث حسن صحيح دي.

**تشريح** : درسول الله صلي الله عليه وسلم بعثت دتمام انسانيت بلکه دجناتودپاره هم وو باقي انبياء صرف خپلو قومونو ته ليږلي شوي وو: ، درسول الله صلي الله عليه وسلم ارشاد دي ماته دشپږو خبرو په سبب په نورو انبياؤ فضيلت راکړي شوي دي ، ماته جامع الفاظ راکړي شوي دي (داسي الفاظ چي په وئيلو کي مختصر دي او معني يي زياته ده) اودرعب په وجه زما مدد شوي دي (دلري لري پوري په دشمنانو زمارعب اچولي شوي دي) اوزمادپاره غنيمت حلال

---

[1] ـ تفرد بذكره المؤلف (تحفة الأشراف: ٤٨٨٤)

[2] ـ صحيح مسلم ـ المساجد ١ (٥٢٣). سنن ابن ماجه ـ الطهارة ٩٠ (٥٦٧)

كړي شوي دي. اوزمادپاره تمامه زمکه عبادت ګاه او پاکونکي ګرځولي شوي ده اوزه دتمام مخلوق دهدايت دپاره راليږلي شوي يم اوپه مابانـدي نبوت ختم شوي دي (رواه مسلم والترمذي عن ابي هريرة رضي الله عنه).

په دي حديث کي درسول الله د خصوصياتو او امتيازاتو او معجزاتو ذکر دي چي په دي باندي په انسانانو کي بل څوك موصوف نشته.

طبراني په المعجم الکبير کې په صحيح سند سره دسائب بن يزيد په روايت مندرجه ذيل الفاظ نقل کړي دي چي ماته دپنځه خبرو په وجه په انبياؤ فضيلت راکړي شوي دي، زما بعثت تمامو خلقو ته شوي دي زما دامت دپاره زما شفاعت جمع کړي شوي دي ديوي مياشتي په مزل مخکې اوديوي مياشتي په مزل وروسته زما رعب اچولي شوي دي اوددي په ذريعه زما مدد شوي دي ، زمادپاره تمامه زمکه عبادت ګاه او پاکه ګرځولي شوي ده، زمادپاره غنيمت حلال کړي شوي دي ، زما نه مخکې دچادپاره نه وو حلال کړي شوي. بيهقي په صحيح سند سره دابو امامه رضي الله عنه نه روايت بيان کړي دي چي ماته دځلورو خبرو په وجه فضيلت راکړي شوي دي او دده په روايت کې دشفاعت ذکر نشته.

****************

## ٦_ بَاب مَا جَاءَ فِي سَهْمِ الْخَيْلِ

### دغنيمت په مال کي داس دحصي بيان

١٥٥٤حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ عَبْدَةَ الضَّبِّيُّ، وَحُمَيْدُ بْنُ مَسْعَدَةَ، قَالَا: حَدَّثَنَا سُلَيْمُ بْنُ أَخْضَرَ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " قَسَمَ فِي النَّفَلِ لِلْفَرَسِ بِسَهْمَيْنِ، وَلِلرَّجُلِ بِسَهْمٍ ".[1]

**ترجمه** دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه مروي دي فرمائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم دغنيمت دمال په تقسيم کي اس ته دوه حصي او څوك چي به په اس سور وو هغه ته يوه حصه ورکړه.

****************

[1] _ اخرجه البخاري في الصحيح_ الجهاد ٥١ (٢٨٦٣) ، والمغازي ٣٨ (٤٢٢٨) . صحيح مسلم_ الجهاد ١٧ (١٧٦٢) . سنن ابي داود_ الجهاد ١٥٣ (٢٧٣٣) . سنن ابن ماجه_ الجهاد ٣٦ (٢٨٥٤) . (تحفة الأشراف : ٧٩٠٤) . و احمد في المسند (٢_ ٢، ٦٢ ، ٧٢، ٨٠) . سنن الدارمي_ السير ٣٣ (٢٥١٥)

حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ، عَنْ سُلَيْمِ بْنِ أَخْضَرَ، نَحْوَهُ، وَفِي الْبَابِ، عَنْ مُجَمِّعِ بْنِ جَارِيَةَ، وَابْنِ عَبَّاسٍ، وَابْنِ ابي عمرة، عَنْ أَبِيهِ، وَحَدِيثُ ابْنِ عُمَرَ، حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَكْثَرِ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ، وَهُوَ قَوْلُ سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ، وَالأَوْزَاعِيِّ، وَمَالِكِ بْنِ أَنَسٍ، وَابْنِ الْمُبَارَكِ، وَالشَّافِعِيِّ، وَأَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ، قَالُوا: لِلْفَارِسِ ثَلاثَةُ أَسْهُمٍ، سَهْمٌ لَهُ، وَسَهْمَانِ لِفَرَسِهِ، وَلِلرَّاجِلِ سَهْمٌ.[1]

**ترجمه** دسليم بن احضر نه هم دماقبل روايت هم معني حديث مروي دي، امام ترمذي وائي په دي باب کي دمجمع بن جاريه، ابن عباس، او ابن ابي عمره دپلار نه هم روايات وارد دي او دابن عمر حديث حسن صحيح دي په صحابه کرامو او ددوئ نه پس خلقو کي داکثرو اهل علمو په دي باندي عمل دي، سفيان ثوري، اوزاعي، امام مالك، ابن مبارك، شافعي، احمد، او اسحاق رحمهم الله هم په دي باندي قول کړي دي دوئ وائي څوك چي په اس باندي سور وي دهغه دپاره دري حصي دي يوه حصه دده خپله ده او دوه حصي دده داس دي او دپيدل سړي دپاره يوه حصه ده.

***************

## ٧_ باب مَا جَاءَ فِي السَّرَايَا

### دسريوبيان

١٥٥٥_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى الأَزْدِيُّ الْبَصْرِيُّ، وَأَبُو عَمَّارٍ، وَغَيْرُ وَاحِدٍ، قَالُوا: حَدَّثَنَا وَهْبُ بْنُ جَرِيرٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ يُونُسَ بْنِ يَزِيدَ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُتْبَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " خَيْرُ الصَّحَابَةِ أَرْبَعَةٌ، وَخَيْرُ السَّرَايَا أَرْبَعُ مِائَةٍ، وَخَيْرُ الْجُيُوشِ أَرْبَعَةُ آلافٍ، وَلا يُغْلَبُ اثْنَا عَشَرَ أَلْفًا مِنْ قِلَّةٍ ". هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ، لا يُسْنِدُهُ كَبِيرُ أَحَدٍ غَيْرُ جَرِيرِ بْنِ حَازِمٍ، وَإِنَّمَا رُوِيَ هَذَا الْحَدِيثُ عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُرْسَلًا، وَقَدْ رَوَاهُ حِبَّانُ بْنُ عَلِيٍّ الْعَنَزِيُّ، عَنْ عُقَيْلٍ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ

---

[1] _ اخرجه البخاري في الصحيح_ الجهاد ٥١ (٢٨٦٣)، والمغازي ٣٨ (٤٢٢٨)، صحيح مسلم_ الجهاد ١٧ (١٧٦٢) سنن ابي داود_ الجهاد ١٥٣ (٢٧٣٣)، سنن ابن ماجه_ الجهاد ٣٦ (٢٨٥٤)، (تحفة الأشراف: ٧٩٠٤)، واحمد في المسند (٢_ ٢، ٦٢، ٧٢، ٨٠)، سنن الدارمي_ السير ٣٣ (٢٥١٥)

عَبْدِ اللهِ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَرَوَاهُ اللَّيْثُ بْنُ سَعْدٍ، عَنْ عُقَيْلٍ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُرْسَلًا. [1]

**ترجمه**: دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دتولو نه بهترين ملګري هغه دي چي تعداد يي څلور وي او په ټولو سريو کي بهترينه سريه هغه ده چي تعداد يي څلورسوه وي او په فوجونو کي بهترين فوج هغه دي چي تعداد يي څلور زره وي او دولس زره اسلامي فوج د تعداد دقلت په وجه نه مغلوب کيږي.

امام ترمذي وايي: داحديث حسن غريب دي دجرير بن حازم نه علاوه دا حديث دکوم لوي محدث نه مسندا مروي نه دي، زهري دا دنبي کريم صلي الله عليه وسلم نه مرسل نقل کړي دي او دا حديث حبان بن علي عنزي په سند د عقيل عن الزهري عن عبيدالله بن عبدالله بن عباس عن النبي صلي الله عليه وسلم سره نقل کړي دي دا رنګي ليث دا حديث په سند دعقيل عن الزهري عن النبي صلي الله عليه وسلم سره مرسل نقل کړي دي.

**لغات**: السرايا: جمع سرية فوجي دسته سري قائد الجيش ته وئلي شي . يا فوجي دستي لره دامير ليګل.

**تشريح**. په سفر کي عموما دوه اهم کارونه وي ، يو دسامان حفاظت ، دويم دخوراک څښاک انتظام که ملګري دري وي نو دريم به يي دسامان په خريدارئ پسي لاړ شي اوکه څلور وي نويا زياته بهتره ده چي دوه دوه کسانو ته به يو يو کار وسپارلي شي، مطلب دادي چي بهتر تعداد څلور دي که ددينه مزيد هرڅومره زيات وي نو دومره بهتر وي.

**لا يغلب اثناعشر الفا من قلة**: يعني ددولسو زروکسانو لښکر به دکموالي په وجه هيڅکله مغلوب نشي.

مطلب دادي چي دولس زره کسان نه مغلوب کيږي او که مغلوب هم شي نو دتعداد دکمي په وجه به نه وي.

***************

## ٨_ بَاب مَا جَاءَ مَنْ يُعْطَى الْفَيْءُ

## دغنيمت مستحقين څوک دي

---

[1] _ سنن ابي داود_ الجهاد ٨٩ (٢٦١١) . سنن ابن ماجه_ السرايا (٢٧٢٨) . (تحفة الأشراف : ٥٨٤٨) . وسنن الدارمي_ السير ٣ (٢٤٨٢)

١٥٥٦_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا حَاتِمُ بْنُ إِسْمَاعِيل، عَنْ جَعْفَرِ بْنِ مُحَمَّدٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ هُرْمُزَ، أَنَّ نَجْدَةَ الحَرُورِيَّ، كَتَبَ إِلَى ابْنِ عَبَّاسٍ يَسْأَلُهُ: هَلْ كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَغْزُو بِالنِّسَاءِ؟ وَهَلْ كَانَ يَضْرِبُ لَهُنَّ بِسَهْمٍ؟ فَكَتَبَ إِلَيْهِ ابْنُ عَبَّاسٍ، كَتَبْتَ إِلَيَّ تَسْأَلُنِي: هَلْ كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَغْزُو بِالنِّسَاءِ؟ "وَكَانَ يَغْزُو بِهِنَّ، فَيُدَاوِينَ المَرْضَى، وَيُحْذَيْنَ مِنَ الغَنِيمَةِ، وَأَمَّا بِسَهْمٍ، فَلَمْ يَضْرِبْ لَهُنَّ بِسَهْمٍ". وَفِي البَاب، عَنْ أَنَسٍ، وَأُمِّ عَطِيَّةَ، وَهَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَكْثَرِ أَهْلِ العِلْمِ، وَهُوَ قَوْلُ سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ، وَالشَّافِعِيِّ، وَقَالَ بَعْضُهُمْ: يُسْهَمُ لِلْمَرْأَةِ وَالصَّبِيِّ، وَهُوَ قَوْلُ الأَوْزَاعِيِّ، قَالَ الأَوْزَاعِيُّ: "وَأَسْهَمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِلصِّبْيَانِ بِخَيْبَرَ، وَأَسْهَمَتْ أَئِمَّةُ المُسْلِمِينَ لِكُلِّ مَوْلُودٍ وُلِدَ فِي أَرْضِ الحَرْبِ". قَالَ الأَوْزَاعِيُّ: "وَأَسْهَمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِلنِّسَاءِ بِخَيْبَرَ، وَأَخَذَ بِذَلِكَ المُسْلِمُونَ بَعْدَهُ". حَدَّثَنَا بِذَلِكَ عَلِيُّ بْنُ خَشْرَمٍ، حَدَّثَنَا عِيسَى بْنُ يُونُسَ، عَنِ الأَوْزَاعِيِّ، بِهَذَا، وَمَعْنَى قَوْلِهِ: وَيُحْذَيْنَ مِنَ الغَنِيمَةِ. يَقُولُ: يُرْضَخُ لَهُنَّ بِشَيْءٍ مِنَ الغَنِيمَةِ، يُعْطَيْنَ شَيْئًا. (١)

**ترجمه** : ديزيد بن خرمز نه روايت دي فرمائي چي نجده بن عامر حروري ابن عباس رضي الله عنهما ته ليکلي سوال اوليږلو چي ايا رسول الله صلي الله عليه وسلم به ښځي جهاد ته دخان سره بوتلي؟ او آيا ددوئ دپاره به يي دغنيمت په مال کي حصه مقرروله؟ ابن عباس ددي په جواب کي اوليکل هو، رسول الله به ښځي جهاد ته دخان سره بوتلي او هغوئ به دبيمارانو علاج کولو او دغنيمت په مال کي به يي په طور دانعام يو څه ورکول پاتي شوه دحصي خبره نو رسول الله ددوئ دپاره حصي مقرر کړي نه دي.

امام ترمذي وايي : داحديث حسن صحيح دي، او په دي باب کي دانس، ام عطيه رضي الله عنهما نه هم احاديث مروي دي، او داکثرو اهل علمو په دي باندي عمل دي، دسفيان ثوري او امام شافعي هم دا قول دي، مګر بعضي اهل علم وائي چي ښځو او ماشومانو ته به هم په غنيمت کي حصي ورکولي شي او دا د امام اوزاعي قول دي اوزاعي وائي نبي کريم صلي الله عليه وسلم په خيبر کي ماشومانو ته حصي ورکړي وي او دمسلمانانو حاکمانو هم هغه نوو پيداشوو ماشومانو ته حصي ورکړي وي څوك چي يي ددشمن په زمکه کي پيدا شوي وو

---

1 _ صحيح مسلم_ الجهاد ٣٨ (١٨١٢) . سنن ابي داود_ الجهاد ١٥٢ (٢٧٢٨) . سنن النسائي_ الفئ (٤١٣٨) . (تحفة الأشراف: ٦٥٥٤) . واحمد في المسند (١_ ٢٢٨، ٢٩٤، ٣٠٨)

اوزاعي وائي رسول الله په خيبر کي هم ښځو ته حصه ورکړي وه او دهغه نه پس مسلمانانو په دي باندي عمل کړي دي.

****************

## ٩_ باب هَلْ يُسْهَمُ لِلْعَبْدِ

### ايا غلام ته به دغنيمت په مال کي حصه ورکولي شي

١٥٥٧_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ الْمُفَضَّلِ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ زَيْدٍ، عَنْ عُمَيْرٍ مَوْلَى آبِي اللَّحْمِ، قَالَ: "شَهِدْتُ خَيْبَرَ مَعَ سَادَتِي، فَكَلَّمُوا فِيَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. وَكَلَّمُوهُ أَنِّي مَمْلُوكٌ، قَالَ: فَأَمَرَ بِي، فَقُلِّدْتُ السَّيْفَ، فَإِذَا أَنَا أَجُرُّهُ، فَأَمَرَ لِي بِشَيْءٍ مِنْ خُرْثِيِّ الْمَتَاعِ، وَعَرَضْتُ عَلَيْهِ رُقْيَةً كُنْتُ أَرْقِي بِهَا الْمَجَانِينَ، فَأَمَرَنِي بِطَرْحِ بَعْضِهَا وَحَبْسِ بَعْضِهَا". وَفِي الْبَابِ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، وَهَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ الْعِلْمِ، لَا يُسْهَمُ لِلْمَمْلُوكِ، وَلَكِنْ يُرْضَخُ لَهُ بِشَيْءٍ، وَهُوَ قَوْلُ الثَّوْرِيِّ، وَالشَّافِعِيِّ، وَأَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ. (1)

**ترجمه** : دعمير مولي ابي اللحم بيان دي چي زه دخپلو مالکانو سره په غزوه خيبر کي شريك شوم او هغوئ زما باره کي درسول الله صلي الله عليه وسلم سره خبري اوکړي او رسول الله ته يي اووئيل چي زه غلام يم چنانچي رسول الله حکم اوکړو او زما په جسم پوري توره زوړنده کړي شوه (ما به دخپل خان دلنډوالي او دتوري داوږدوالي د وجي) دا په خان پسي راښکله او رسول الله زما دپاره دغنيمت په مال کي دځه سامان راکولو حکم اوکړو ما درسول الله صلي الله عليه وسلم په وړاندي هغه دم درود بيان کړو په کوم باندي چي به ما ليوني دمول نو رسول الله ماته ددي دځه حصي د غورځولو او ځه حصه ددي د خان سره ساتلو حکم وکړو.

امام ترمذي وايي : دا حديث حسن صحيح دي او په دي باب کي دابن عباس رضي الله عنهما نه هم روايت وارد دي دبعضي اهل علمو په همدي باندي عمل دي چي غلام ته به حصه نشي ورکولي البته دعطيه په طور به يو ځه ورکولي شي دامام شافعي او احمد او اسحاق هم رحمهم الله دا قول دي.

****************

## ١٠_ باب مَا جَاءَ فِي أَهْلِ الذِّمَّةِ يَغْزُونَ مَعَ الْمُسْلِمِينَ هَلْ يُسْهَمُ لَهُمْ

---

1 _ سنن ابي داود_ الجهاد ١٥٢ (٢٧٣٠) . سنن ابن ماجه_ الجهاد ٣٧ (٢٨٥٥) . (تحفة الأشراف : ١٠٨٩٨) . وسنن الدارمي السير ٣٥ (٢٥١٨)

## كله چي ذميان دمسلمانا نوسره په جنګ کي شريکوي نوايا دوئ ته به په غنيمت کي حصي ورکولي شي

١٥٥٨_ حَدَّثَنَا الأَنْصَارِيُّ، حَدَّثَنَا مَعْنٌ، حَدَّثَنَا مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ، عَنِ الفُضَيْلِ بْنِ أَبِي عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ نِيَارٍ الأَسْلَمِيِّ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ: أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَرَجَ إِلَى بَدْرٍ، حَتَّى إِذَا كَانَ بِحَرَّةِ الوَبَرَةِ، لَحِقَهُ رَجُلٌ مِنَ المُشْرِكِينَ يَذْكُرُ مِنْهُ جُرْأَةً وَنَجْدَةً، فَقَالَ لَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَلَسْتَ تُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَرَسُولِهِ؟". قَالَ: لَا. قَالَ: "ارْجِعْ، فَلَنْ أَسْتَعِينَ بِمُشْرِكٍ". وَفِي الحَدِيثِ كَلَامٌ أَكْثَرُ مِنْ هَذَا. هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ. وَالعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ العِلْمِ، قَالُوا: لَا يُسْهَمُ لِأَهْلِ الذِّمَّةِ وَإِنْ قَاتَلُوا مَعَ المُسْلِمِينَ العَدُوَّ. وَرَأَى بَعْضُ أَهْلِ العِلْمِ: أَنْ يُسْهَمَ لَهُمْ إِذَا شَهِدُوا القِتَالَ مَعَ المُسْلِمِينَ. (حديث مرفوع) وَيُرْوَى عَنِ الزُّهْرِيِّ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَسْهَمَ لِقَوْمٍ مِنَ اليَهُودِ قَاتَلُوا مَعَهُ". حَدَّثَنَا بِذَلِكَ قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ الوَارِثِ بْنُ سَعِيدٍ، عَنْ عَزْرَةَ بْنِ ثَابِتٍ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، بِهَذَا. ([1])

**ترجمه** : دام المؤمنين عائشه رضي الله عنها بيان دي كله چي رسول الله صلي الله عليه وسلم بدر ته روان شو اوحرة الوبر ته ورسيدو نو يو مشرك ورسره يو خاي شو چي په بهادرئ او جرئت کي مشهور وو رسول الله صلي الله عليه وسلم ورنه تپوس اوکړو ايا په الله او دهغه په رسول دي ايمان شته؟ مشرك په جواب کي اووئيل نه، رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل واپس شه زه دمشرکانو نه هيڅ کله مدد نه اخلم.

امام ترمذي وايي : په دي حديث کي ددينه هم زيات تفصيل دي او دا حديث حسن غريب دي دبعضي علماؤ په دي باندي عمل دي دوئ وائي چي ذمي ته به په غنيمت کي حصه نشي ورکولي اګر که دمسلمانانو په ملګرتيا کي يي ددشمن سره جنګ کړي وي، دبعضي اهل علمو خيال دي چي کله ذمي دمسلمانانو سره په جنګ کي شريك شي نو حصه به ورته ورکولي شي، دزهري نه مروي دي چي نبي کريم صلي الله عليه وسلم ديهوديانو يو جماعت ته حصه ورکړي وه کوم چي دمسلمانانو سره په جنګ کي شريك وو.

***************

[1] _ صحيح مسلم_ الجهاد ٥١ (١٨١٧) . سنن ابي داود_ الجهاد ١٥٣ (٢٧٣٢) . سنن ابن ماجه_ الجهاد ٢٧ (٢٨٣٢) . (تحفة الأشراف: ١٦٣٥٨) . وسنن الدارمي_ السير ٥٢ (٢٥٣٨)

١٥٥٩_ حَدَّثَنَا أَبُو سَعِيدٍ الأَشَجُّ، حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ غِيَاثٍ، حَدَّثَنَا بُرَيْدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي بُرْدَةَ، عَنْ جَدِّهِ أَبِي بُرْدَةَ، عَنْ أَبِي مُوسَى، قَالَ: " قَدِمْتُ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي نَفَرٍ مِنَ الأَشْعَرِيِّينَ خَيْبَرَ، فَأَسْهَمَ لَنَا مَعَ الَّذِينَ افْتَتَحُوهَا ". هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ، وَالعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ العِلْمِ، قَالَ الأَوْزَاعِيُّ: مَنْ لَحِقَ بِالْمُسْلِمِينَ قَبْلَ أَنْ يُسْهَمَ لِلْخَيْلِ، أُسْهِمَ لَهُ، وَبُرَيْدٌ يُكْنَى أَبَا بُرَيْدَةَ وَهُوَ ثِقَةٌ، وَرَوَى عَنْهُ سُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ، وَابْنُ عُيَيْنَةَ، وَغَيْرُهُمَا. [1]

**ترجمه** دابوموسي اشعري رضي الله عنه بيان دي فرمائي چي زه داشعري قبيلي ديو جماعت سره خيبر ته لاړم او درسول الله صلي الله عليه وسلم په خدمت کي حاضر شوم او کومو کسانو چي خيبر فتح کړي وو دهغوئ سره رسول الله صلي الله عليه وسلم زمونږ دپاره هم حصي مقرر کړي.

امام ترمذي وايي : داحديث حسن صحيح غريب دي او دبعضي اهل علمو په همدي باندي عمل دي، امام اوزاعي وائي د اس دپاره دحصي مقررولو نه مخکي چي څوك دمسلمانانو سره يوځاي شي هغه ته به هم حصه ورکولي شي. اود بريد اسم کنيه ابو بريده ده او ثقه دی، سفيان ثوري او ابن عيينه وغيره ورنه نقل درو ايت کړی دی.

****************

## ١١_ بَاب مَا جَاءَ فِي الإِنْتِفَاعِ بِآنِيَةِ الْمُشْرِكِينَ

### دمشرکانو دلوښو داستعمالولو بيان

١٥٦٠_ حَدَّثَنَا زَيْدُ بْنُ أَخْزَمَ الطَّائِيُّ، حَدَّثَنَا أَبُو قُتَيْبَةَ سَلْمُ بْنُ قُتَيْبَةَ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ أَبِي قِلَابَةَ، عَنْ أَبِي ثَعْلَبَةَ الخُشَنِيِّ، قَالَ: سُئِلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ قُدُورِ المَجُوسِ ؟ فَقَالَ: " أَنْقُوهَا غَسْلًا وَاطْبُخُوا فِيهَا، وَنَهَى عَنْ كُلِّ سَبُعٍ وَذِي نَابٍ ". وَقَدْ رُوِيَ هَذَا

---

[1] _ اخرجه البخاري في الصحيح_ فرض الخمس ١٥ (٣١٣٦) ، والمناقب ٢٤ (٣٨٧٦) ، والمغازي ٣٨ (٤٢٣٠) . صحيح مسلم_ فضائل الصحابة ٤١ (٢٥٠٢) . سنن ابي داود_ الجهاد ١٥١ (٢٧٢٥) ، (تحفة الأشراف : ٩٠٣٩)

الْحَدِيثُ مِنْ غَيْرِ هَذَا الْوَجْهِ عَنْ أَبِي ثَعْلَبَةَ. وَرَوَاهُ أَبُو إِدْرِيسَ الْخَوْلَانِيُّ، عَنْ أَبِي ثَعْلَبَةَ. وَأَبُو قِلَابَةَ لَمْ يَسْمَعْ مِنْ أَبِي ثَعْلَبَةَ، إِنَّمَا رَوَاهُ عَنْ أَبِي أَسْمَاءَ الرَّحَبِيِّ، عَنْ أَبِي ثَعْلَبَةَ. [1]

**ترجمه** دابوثعلبه خشني رضي الله عنه بيان دي چي درسول الله صلي الله عليه وسلم نه ديهوديانو دديگونو په باره کي تپوس اوکړي شو نو وېي فرمائيل دا اووينځئ او پاك يې کړئ او خوراکونه پکي پخوئ او رسول الله صلي الله عليه وسلم دهر درنده (ځناور) او داړو والا ځناور دخوړلو نه منع اوفرمائيله.

امام ترمذي وايي : داحديث دابوثعلبه نه په نورو سندونو هم مروي دي او ابو ادريس خولاني هم دا حديث دابوثعلبه نه نقل کړي دي ليکن دابو قلابه سماع دابوثعلبه نه ثابت نه ده هغوئ دابواسماء په واسطه دابو ثعلبه نه روايت نقل کړي دي.

**تشريح** : دسپينو زرو په لوښو کې دخوراك ځښاك نه هم منع راغلي ده. دتمامو علماؤ اتفاق دى چي داحکم دنارينه اوزنانه دواړو دپاره دى چي دسپينو او سرو زرو په لوښو کې به خوراك نه کوي او که لوټه وغيره وي نو هغه هم حرامه ده دښځو دپاره صرف زيوراتو استعمال جائزدى.

## دسپينو زرو په لوښي کې خوراك کونکي خيټي ته اور اچوي

دام سلمه رضي الله عنها نه روايت دى چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي، څوك چي دسپينو زرو په لوښي کې اوبه څکي، هغه په خيټه کې د دوزخ اور اچوي (بخاري ومسلم).
دا وعيد په حرمت دلالت کوي دسرو او سپينو دلوښو استعمال دمشرکينو او متکبرينو علامه ده او الله لره خفه کونکی څيز دی ددي استعمال دفقهاؤ په نزد په کبيره ګناهونو کې شامل دی . علامه طيبي دشافعي او دنووي قول نقل کړی دی که چرې دسرو او سپينو واړه واړه ميښونه وي او دضرورت په وجه په کوم لوښي کې استعمال شي نوجائز به وي ليکن که زيات وي يالوي وي نو حرام به وي ليکن په دې کې هم داحنافو اختلاف دی هغوئ وائي ددې استعمال به په هغه وخت کې جائز وي کله چي په دې باندې خوله نښي ايخودلی شي.

****************

---

[1] ـ اخرجه البخاري في الصحيح ـ الصيد ٣ (٥٤٧٨) . و ١٠ (٥٤٨٨) . و ١٣ (٥٤٩٦) . صحيح مسلم الصيد ١ (١٩٣٠) . و ٢ (١٩٣١) . سنن ابي داود ـ الصيد ٢ (٢٨٥٥) . سنن النسائي ـ الصيد ٣ (٤٢٧١) . سنن ابن ماجه ـ الصيد ٣ (٣٢٠٧) . (تحفة الأشراف : ١١٨٧٥) . و احمد في المسند (٤ ـ ١٩٣، ١٩٤، ١٩٥) ويأتي في السير ١١ (١٥٦٠) . وفي الأطعمة ٧ (١٧٩٦)

حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا ابْنُ الْمُبَارَكِ، عَنْ حَيْوَةَ بْنِ شُرَيْحٍ، قَالَ: سَمِعْتُ رَبِيعَةَ بْنَ يَزِيدَ الدِّمَشْقِيَّ، يَقُولُ: أَخْبَرَنِي أَبُو إِدْرِيسَ الْخَوْلَانِيُّ عَائِذُ اللَّهِ بْنُ عُبَيْدِ اللَّهِ، قَالَ: سَمِعْتُ أَبَا ثَعْلَبَةَ الْخُشَنِيَّ، يَقُولُ: أَتَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنَّا بِأَرْضِ قَوْمٍ أَهْلِ كِتَابٍ نَأْكُلُ فِي آنِيَتِهِمْ؟ قَالَ: "إِنْ وَجَدْتُمْ غَيْرَ آنِيَتِهِمْ فَلَا تَأْكُلُوا فِيهَا، فَإِنْ لَمْ تَجِدُوا، فَاغْسِلُوهَا وَكُلُوا فِيهَا".
قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [1]

**ترجمه**: دابو ادریس خولاني عائذالله بن عبیدالله بیان دي فرمائي چي ما دابوثعلبه خشني رضي الله عنه نه واوریدل چي دمشرکانو دلوښو باره کي یي سوال اوکړو ورته یي اوفرمائیل که ددوئ دلوښو نه علاوه نور لوښي موندلي شئ نو په دي کي خوراك مه کوئ او که نور نشئ موندلي نو دا اووینځئ او خوراك پکي اوکړئ.

**تخریج**:

***************

## ١٢_ باب مَا جَاءَ فِي النَّفَلِ

### د نفل بیان

١٥٦١_ حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الْحَارِثِ، عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ مُوسَى، عَنْ مَكْحُولٍ، عَنْ أَبِي سَلَّامٍ، عَنْ أَبِي أُمَامَةَ، عَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "كَانَ يُنَفِّلُ فِي الْبَدْأَةِ الرُّبُعَ، وَفِي الْقُفُولِ الثُّلُثَ". وَفِي الْبَاب، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، وَحَبِيبِ بْنِ مَسْلَمَةَ، وَمَعْنِ بْنِ يَزِيدَ، وَابْنِ عُمَرَ، وَسَلَمَةَ بْنِ الْأَكْوَعِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَحَدِيثُ عُبَادَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ، وَقَدْ رُوِيَ هَذَا الْحَدِيثُ عَنْ أَبِي سَلَّامٍ، عَنْ رَجُلٍ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. [2]

---

[1] _ اخرجه البخاري في الصحيح_ الصيد ٣ (٥٤٧٨)، و ١٠ (٥٤٨٨)، و ١٤ (٥٤٩٦)، صحيح مسلم_ الصيد ١ (١٩٣٠)، و ٢ (١٩٣١)، سنن ابي داود_ الصيد ٢ (٢٨٥٥)، سنن النسائي_ الصيد ٤ (٤٢٧١)، سنن ابن ماجه_ الصيد ٣ (٣٢٠٧)، (تحفة الأشراف: ١١٨٧٥)، واحمد في المسند (٤_ ١٩٣، ١٩٤، ١٩٥) ويأتي في السير ١١ (١٥٦٠)، وفي الأطعمة ٧ (٦٩٧١)

[2] _ سنن ابن ماجه_ الجهاد ٣٥ (٢٨٥٢)، (تحفة الأشراف: ٥٠٩١)



**ترجمه** : دعباده بن الصامت رضي الله عنه بيان دي فرمائي چي ماته نبي كريم صلي الله عليه وسلم دسريه په ابتداء كي په تلو باندي څلورمه حصه او دجنګ نه دواپسۍ په وخت كي په دوباره تلو باندي ماته دريمه حصه زائده په طور دانعام راكړي وه
امام ترمذي وايي : دعباده رضي الله عنه حديث حسن دي، دا حديث دابو سلام نه مروي دي او هغه ديو صحابي نه نقل كړي دي او هغه دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه نقل كړي دي او په دي باب كي د ابن عباس، حبيب بن مسلمه، معن بن يزيد، ابن عمر، او سلمه بن الاكوع رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي.

***************

حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي الزِّنَادِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُتْبَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "تَنَفَّلَ سَيْفَهُ ذَا الْفَقَارِ يَوْمَ بَدْرٍ، وَهُوَ الَّذِي رَأَى فِيهِ الرُّؤْيَا يَوْمَ أُحُدٍ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ، إِنَّمَا نَعْرِفُهُ مِنْ هَذَا الْوَجْهِ مِنْ حَدِيثِ ابْنِ أَبِي الزِّنَادِ، وَقَدِ اخْتَلَفَ أَهْلُ الْعِلْمِ فِي النَّفَلِ مِنَ الْخُمُسِ، فَقَالَ مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ: لَمْ يَبْلُغْنِي أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَفَّلَ فِي مَغَازِيهِ كُلِّهَا، وَقَدْ بَلَغَنِي أَنَّهُ نَفَّلَ فِي بَعْضِهَا، وَإِنَّمَا ذَلِكَ عَلَى وَجْهِ الِاجْتِهَادِ مِنَ الْإِمَامِ فِي أَوَّلِ الْمَغْنَمِ وَآخِرِهِ، قَالَ إِسْحَاقُ ابْنُ مَنْصُورٍ: قُلْتُ لِأَحْمَدَ: إِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "نَفَّلَ إِذَا فَصَلَ بِالرُّبُعِ بَعْدَ الْخُمُسِ، وَإِذَا قَفَلَ بِالثُّلُثِ بَعْدَ الْخُمُسِ". فَقَالَ: يُخْرِجُ الْخُمُسَ ثُمَّ يُنَفِّلُ مِمَّا بَقِيَ، وَلَا يُجَاوِزُ هَذَا، قَالَ أَبُو عِيسَى: وَهَذَا الْحَدِيثُ عَلَى مَا قَالَ ابْنُ الْمُسَيَّبِ: النَّفَلُ مِنَ الْخُمُسِ، قَالَ إِسْحَاقُ: هُوَ كَمَا قَالَ. [1]

**ترجمه** : دابن عباس رضي الله عنهما بيان دي فرمائي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم خپله ذوالفقار توره دجنګ بدر په ورځ په طور دنفل اخستلي ده او دا هغه توره وه چي ددي باره كي يي داحد په ورځ خوبونه ليدلي وو.
امام ترمذي وايي : داحديث حسن غريب دي او داموږ ته صرف په هم دي يو سند دابن ابي الزناد نه رارسيدلي دي او داهل علمو په دي خبره كي اختلاف دي چي نفل به دخمس نه وي او كنه؟ امام مالك واني ماته دا خبره نه ده رارسيدلي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم پخپلو تولو جهادونو كي چي نفل اخستلي وي او ماته دا خبر رارسيدلي دي چي په بعضي جهادونو كي يي نفل اخستلي دي او ددي ثبوت په اجتهاد دي دامام دطرفه دغنيمت په اول وخت كي او

[1] ـ سنن ابن ماجه ـ الجهاد ١٨ (٢٨٠٨) . (تحفة الأشراف : ٥٨٢٤)

په اخر وخت كي، اسحاق بن منثور وائي احمد بن حنبل ته مي اوونيل نبي كريم صلي الله عليه وسلم نفل جدا كړي وو په څلورمه حصه دخمس نه پس او د واپسئ نه پس په ثلث كي دخمس نه پس امام احمد اوونيل اول به خمس اوباسي او بيا به نفل دمابقي نه جدا كوي او ددينه به تجاوز نه كوي، امام ترمذي وائي ددي حديث بناء په هغه قول ده كوم چي سعيد بن المسيب كړي دي چي نفل به دخمس نه جدا كيږي او اسحاق بن راهويه هم دده دقول په موافقت كي قول كړي دي.

**تشريح** : دنفل جمع انفال ده اومعني يي دغنيمت مال دي مفت مال ته غنيمت وئيلي شي اونفل په معني دزائد دي اودزائد وئيلو وجه دا ده چي دا محض دالله تعالي په وركړي سره حاصل شوي وي (نه دتجارت اونه دزراعت اونه دصنعت په ذريعه اونه دميراث او هبي په ذريعه حاصل شوي وي) مطلب دا دي چي مسلمانان ستانه تپوس كوي چي دغنيمت دمال حقدار څوك دي ته ورته اووايه چي دغنيمت مال دالله تعالي ملكيت دي او ددي دتصرف حق دالله رسول ته حاصل دي كوم چي دي لره دالله دحكم مطابق تقسيموي.

بيضاوي ليكلي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم وعده فرمائيلي وه چي څوك غنيمت حاصل كړي نو رسول الله به ورته هم هغه مال وركوي ددي فرمان په اوريدو سره خو خوانان ميدان ته ورمخكي شول او اويا كسان يي قتل كړل او اويا كسان يي قيديان راوستل اودغنيمت كوم مال چي يي راوړي وو دهغي طلب كونكي شول مګر مال لږ وو كوم مشائخ اوبوډاګان اوسرداران چي دجنډو دخوا نه نه وو خوزيدلي او هم هلته په خپل ځاي پاتي شوي وو هغوئ ته څه نه شو ملاويدي نوپدي بنا دي كسانو ځوانانوته اوونيل چي مونږ دجنډوسره ستاسو دپاره دپناګاه په شكل كي پاتي شوي وو نوپدي باره كي په قران كي ايت نازل شو اورسول الله په ټولو باندي برابر تقسيم اوكړو.

بيضاوي ليكلي دي ددينه دا مسئله ثابتيږي كه چري امام دسپاهيانو سره وعده كړي وي نودهغي پوره كول لازمي نه دي (بلكه مصلحت ته كتلي شي) اودامام شافعي هم دا قول دي.

ابن ابي شيبه، امام احمد ، عبدبن حمدي، اوابن مردويه دسعد بن ابي وقاص رضي الله عنه بيان نقل كړي دي چي كله دبدر جګړه راغله نوزما ورور عمير شهيد شو اوماسعيد بن عاص قتل كړو اودهغه توره چي ذو الكتيفه به ورته وئيلي شول ما واخستله اودرسول الله صلي الله عليه وسلم په خدمت كي حاضر شوم او عرض مي اوكړو چي اي دالله رسوله نن په مشركانو باندي الله تعالي زما زړه يخ كړو او دا توره يي هم راته په غنيمت كي راكړي ده او زه هغه څوك يم چي ته مي پيژني (يعني زما دشجاعت او دايمان د پوخ والي نه خبردار يي نوپدي وجه ددي توري مستحق زه يم) نو ويي فرمائيل دا توره نه ستا ده او نه زما ده دا كيږده ، نو ماكيخودله او په زړه كي مي اوونيل شايد چي رسول الله به داتوره داسي كس ته وركوي دچا كارنامي چي

زما پښان نه وي نوددي خيال په وجه زه لږ فكرمند شوم مگر رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل ورشه اوهغه په غنيمت كې كيږده ماچي دا واوريدل نو خفه شوم اوكوم غم چي ماته دخپل ورور دشهيد كيدو په وجه او ددشمن نه داخستلي شوي مال په غنيمت كې دايخودو په وجه وو هغه الله ته معلوم وو ، ليكن چي مجبورا زه توري لره په غنيمت كې دواپس كولو دپاره روان شوم نو زما نفس بد اوگنړل او زه واپس شوم اوعرض مي اوكړو چي دا به ماته راكوي نورسول الله ددي په اوريدو سره يو تيز اواز اوكړو او زه ورنه لاړم لږ شان لاتللي نه وم چي سورة انفال نازل شو اوددي دنزول نه پس رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل ورشه او خپله توره واخله ، په بل روايت كې دا الفاظ دي چي پورا رسول الله صلي الله عليه وسلم زما سره لاړو او ويي فرمائيل تاچي زما نه كومه توره غوښتلي وه په هغه وخت كې هغه توره زما نه وه او اوس زما ده نولهذا وايخله.

بخاري په تاريخ كې ليكلي دي چي دسعيد بن جبير رضي الله عنه نه روايت دي چي سعد او يوانصاري دغنيمت حاصلولو دپاره لاړل اودواړو يوه توره اوموندله دواړه په توره راپريوتل سعد اوونيل دا زما ده او انصاري اوونيل زما ده زه يي نه دركوم نوپدي وخت كې رسول الله صلي الله عليه وسلم تشريف راوړو او دواړه حاضر شول اوقصه يي ورته عرض كړه نو ويي فرمائيل اي سعد داتوره نه ستا ده او نه ددي انصاري ده نوپدي باره كې ﴿وَاعْلَمُوا أَنَّمَا غَنِمْتُمْ مِنْ شَيْءٍ فَأَنَّ لِلَّهِ خُمُسَهُ وَلِلرَّسُولِ وَلِذِي الْقُرْبَى﴾ نازل شو.

***************

## ١٣_ باب مَا جَاءَ فِيمَنْ قَتَلَ قَتِيلاً فَلَهُ سَلَبُهُ

### دكافر دقاتل ته دمقتول دسامان وركولو بيان

١٥٦٢_ حَدَّثَنَا الأَنْصَارِيُّ، حَدَّثَنَا مَعْنٌ، حَدَّثَنَا مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ، عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ، عَنْ عُمَرَ بْنِ كَثِيرِ بْنِ أَفْلَحَ، عَنْ أَبِي مُحَمَّدٍ مَوْلَى أَبِي قَتَادَةَ، عَنْ أَبِي قَتَادَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ قَتَلَ قَتِيلًا لَهُ عَلَيْهِ بَيِّنَةٌ، فَلَهُ سَلَبُهُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَفِي الْحَدِيثِ قِصَّةٌ.[1]

---

[1] _ البخاري_ البيوع ٣٧ (٢١٠٠) . والخمس ١٨ (٣١٤٢) . والمغازي ٥٤ (٤٣٢١) . والأحكام ٢١ (٧١٧٠) . مسلم_ الجهاد ١٣ (١٧٥١) . سنن ابي داود_ الجهاد ١٤٧ (٢٧١٧) . ابن ماجه_ الجهاد ٢٩ (٢٨٣٧) . (تحفة الأشراف : ١٢١٣٢) . والموطاء الجهاد ١٠ (١٨) . الدارمي_ السير ٤٤ (٢٥٢٨)

**ترجمه** دابو قتاده بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي څوك چي كوم كافر قتل كړي او ګواه ورسره موجود وي نو دمقتول سامان به هم دده وي

امام ترمذي وايي: په دي حديث كي يي يوه حصه مذكور ده.

****************

حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ. حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ، بِهَذَا الإِسْنَادِ، نَحْوَهُ، وَفِي الْبَابِ، عَنْ عَوْفِ بْنِ مَالِكٍ، وَخَالِدِ بْنِ الْوَلِيدِ، وَأَنَسٍ، وَسَمُرَةَ بْنِ جُنْدَبٍ، وَهَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَأَبُو مُحَمَّدٍ هُوَ نَافِعٌ مَوْلَى أَبِي قَتَادَةَ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ، وَهُوَ قَوْلُ الأَوْزَاعِيِّ، وَالشَّافِعِيِّ، وَأَحْمَدَ، وقَالَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ: لِلإِمَامِ أَنْ يُخْرِجَ مِنَ السَّلَبِ الْخُمُسَ، وقَالَ الثَّوْرِيُّ: النَّفَلُ، أَنْ يَقُولَ الإِمَامُ: مَنْ أَصَابَ شَيْئًا فَهُوَ لَهُ، وَمَنْ قَتَلَ قَتِيلًا فَلَهُ سَلَبُهُ، فَهُوَ جَائِزٌ، وَلَيْسَ فِيهِ الْخُمُسُ، وقَالَ إِسْحَاقُ: السَّلَبُ لِلْقَاتِلِ، إِلَّا أَنْ يَكُونَ شَيْئًا كَثِيرًا، فَرَأَى الإِمَامُ أَنْ يُخْرِجَ مِنْهُ الْخُمُسَ كَمَا فَعَلَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ.[1]

**ترجمه**: دسعيد بن مسيب نه هم په دي سند هم دماقبل هم معني روايت مروي دي.

امام ترمذي وايي: په دي باب كي دعوف بن مالك، خالد بن الوليد، انس او سمره بن جندب رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي او دا حديث حسن صحيح دي او دابومحمد نوم نافع دي او د ابوقتاده ازاد كړي غلام دي او په صحابه كرامو او اهل علمو كي دبعضو په دي باندي عمل دي اوزاعي، شافعي، او امام احمد هم په دي باندي قول كړي دي، مګر بعضي اهل علم وائي امام لره پكار دي چي دسلب نه خمس جدا كړي او سفيان ثوري وائي دنفل نه به جدا كوي او امام به وائي چاچي كوم څيز حاصل كړي وي دا دده دي او كه چا كوم كافر قتل كړي وي نو دهغه سامان به دده وي او دا جائز دي او په دي كي خمس نشته مګر اسحاق بن راهويه وائي سلب دقاتل حق دي مګر هله چي دا ډير زيات وي نو بيا به امام ددينه خمس جدا كوي لكه چي عمر بن الخطاب رضي الله عنه څنګه كړي وو.

ابـن ابـي شـيبه، ابـوداود، حـاكم، ابـن حبـان، عبـد الـرزاق، عبـد بـن حميـد، ابـن عابـد، ابـن مردويه، او ابن عساكر دابن عباس رضي الله عنهما بيان نقل كړي دي چي رسول الله صلي الله

---

[1] ـ البخاري ـ البيوع ٣٧ (٢١٠٠). والخمس ١٨ (٣١٤٢). والمغازي ٥٣ (٤٣٢١). والأحكام ٢١ (٧١٧٠). و مسلم ـ الجهاد ١٣ (١٧٥١). سنن ابي داود ـ الجهاد ١٣٧). (٢٧١٧). ابن ماجه ـ الجهاد ٢٩ (٢٨٣٧). (تحفة الأشراف: ١٢١٣٢). والموطاء الجهاد ١٠ (١٨). و الدارمي ـ السير ٤٤ (٢٥٢٨)

عليه وسلم فرمائيلي دي: څوك چي كوم دشمن لره قتل كړي نوهغه ته به دا ، دا ، وركړي شي اوڅوك چي چالره قيد كړي هغه ته به دا ، دا ، وركړي شي.
ابن مردويه دكلبي په واسطي سره دابوصالح نه اوهغه دعطاء نه اوهغه دابن عجلان نه اوهغه عكرمه نه دابن عباس رضي الله عنهما دقول موفق بيان نقل كړي دي څوك چي كوم دشمن لره قتل كړي نودهغه نه اخستلي شوي مال (اسلحه وغيره) به هم دده وي . پس ددي فرمان نه پس بوډاګان خلق خو دجهنډو نيولو دپاره كلك شول اوخوانان په تيزئ سره قتل كولو اولوټ كولو ته ورمخكې شول ، بوډاګانو خوانانو ته ووئيل مونږ هم دخان سره په غنيمت كې شريك كړئ ځكه چي مونږ ستاسو شاته ولاړ يو كه چري پتاسو څه كيږي نوتاسو دپناه دپاره مونږ ته راځئ . غرض داچي دواړو ډلو خپله مقدمه رسول الله ته پيش كړه ، او ابو اليسر دوه كسان قيد كړي راوستل او عرض يي وكړو اي دالله رسوله تازمونږ سره وعده كړي وه نوبيا دي وخت كې سعد بن معاذ ودريدو اوعرض يي وكړو تاسو دي خلقو ته هرڅه وركړل اودملګرو دپاره دي هيڅ پاتي نشول ، مونږ خوبدي وجه نه وو پاتي شوي چي ګني داخرت طلب مو غرض نه وو او يا دقتل نه ويريدو او يا مودبزدلئ په وجه دخپل نفس متعلق بخل كولو لكه چي زمونږ وروڼو وكړل مګر خبره داوه مونږ وليدل چي تاسو يواځي پاتي شوئ اومونږ دامناسب ونه ګڼړل چي تالره پريږدو اويواځي ورمخكې شو ستاد حفاظت دپاره مونږ دلته پاتي شوي يو چي دشادطرف نه دريانده دشمن حمله ونكړي. (مظهري)

***************

## ١٤_ باب فِي كَرَاهِيَةِ بَيْعِ الْمَغَانِمِ حَتَّى تُقْسَمَ

## دتقسيم نه مخكې دغنيمت خرڅولو دكراهيت بيان

١٥٦٣_ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ. حَدَّثَنَا حَاتِمُ بْنُ إِسْمَاعِيل، عَنْ جَهْضَمِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ زَيْدٍ، عَنْ شَهْرِ بْنِ حَوْشَبٍ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، قَالَ: "نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ شِرَاءِ الْمَغَانِمِ حَتَّى تُقْسَمَ". وَفِي الْبَاب. عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ أَبُو عِيسَى: وَهَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ. ([1])

**ترجمه** . دابوسعيد خدري رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم دتقسيم نه مخكې دغنيمت دڅيز دخرڅولو نه ممانعت فرمائيلي دي

---

[1] _ ابن ماجه_ التجارات ٢٢ (٢١٩٦) . (تحفة الأشراف : ٤٠٧٣)

امام ترمذي وايي : داحديث حسن غريب دي او په دي باب كي دابوهريره رضي الله عنه نه هم روايت وارد دي

**************

## ١٥_ باب مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ وَطْئِ الْحَبَالَى مِنَ السَّبَايَا

## په جنګ کي د قيد کړي شوو حاملو ښځوسره د جماع کولو د کراهت بيان

١٥٦٤_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى النَّيْسَابُورِيُّ، حَدَّثَنَا أَبُو عَاصِمٍ النَّبِيلُ، عَنْ وَهْبِ بْنِ خَالِدٍ، قَالَ: حَدَّثَتْنِي أُمُّ حَبِيبَةَ بِنْتُ عِرْبَاضِ بْنِ سَارِيَةَ، أَنَّ أَبَاهَا أَخْبَرَهَا، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "نَهَى أَنْ تُوطَأَ السَّبَايَا حَتَّى يَضَعْنَ مَا فِي بُطُونِهِنَّ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَفِي الْبَابِ، عَنْ رُوَيْفِعِ بْنِ ثَابِتٍ، وَحَدِيثُ عِرْبَاضٍ حَدِيثٌ غَرِيبٌ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ. وقَالَ الْأَوْزَاعِيُّ: إِذَا اشْتَرَى الرَّجُلُ الْجَارِيَةَ مِنَ السَّبْيِ وَهِيَ حَامِلٌ. فَقَدْ رُوِيَ عَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ، أَنَّهُ قَالَ: لَا تُوطَأُ حَامِلٌ حَتَّى تَضَعَ. قَالَ الْأَوْزَاعِيُّ: وَأَمَّا الْحَرَائِرُ، فَقَدْ مَضَتِ السُّنَّةُ فِيهِنَّ بِأَنْ أُمِرْنَ بِالْعِدَّةِ. حَدَّثَنِي بِذَلِكَ عَلِيُّ بْنُ خَشْرَمٍ. قَالَ: حَدَّثَنَا عِيسَى بْنُ يُونُسَ، عَنِ الْأَوْزَاعِيِّ، بِهَذَا الْحَدِيثِ. [1]

**ترجمه** : د ام حبيبه بنت عرباض بن ساريه رضي الله عنها بيان دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم د قيديانو ښځو سره دجماع كولو نه منع فرمائيلي ده چي څو پوري ددوی ولادت نه وي شوی

امام ترمذي وايي : په دي باب كي دروفيع بن ثابت رضي الله عنه نه هم روايت وارد دی اود عرباض بن ساريه حديث غريب دی، اود اهل علمو په دي باندي عمل دی، اوزاعي وايي كله چي څوك په قيديانو كي حامله وينځه واخلي او حال دادي چي د عمر رضي الله عنه نه مروي دي فرمائيل يي چي د قيدي حاملو ښځو سره د حمل د وضع پوري جماع كول جائز نه دي. اوزاعي وايي د ازادو ښځو متعلق خو د شريعت قانون مشهور دي چي عدت به تيروي او ماته په دي باره كي علي بن حشرم حديث بيان كړی دی هغه د عيسي بن يونس او يونس داوزاعي نه نقل كړی دی

### د عرباض بن ساريه رضي الله عنه حالات

نوم عرباض كنيه ابو نجيح ده او دپلار نوم يي ساريه وو داصحاب صفه نه شميرلی شي دی پخپله واني چي زه څلورم نمبر مسلمان يم او زما نه مخكي دري كسان په اسلام كي داخل

[1] _ تفرد بذكره المؤلف وتقدم برقم ١٤٧٤ (تحفة الأشراف : ٩٨٩٣)

شوي دي
وفات شام ته لاړو او بياحمص ته لاړو او هلته يي دژوند اخري ورځي تيري کړي چي دشاګردانو تعداد يي کافي ډير دی او ۷۵ روايات ورنه منقول دي ليکن ابن حزم ۳۱ ليکلي دي

***************

## ۱۶_ باب مَا جَاءَ فِي طَعَامِ الْمُشْرِكِينَ
### دمشرکينو دخوراکونو دشرعي حيثيت بيان

۱۵٦۵_ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ الطَّيَالِسِيُّ، عَنْ شُعْبَةَ، أَخْبَرَنِي سِمَاكُ بْنُ حَرْبٍ، قَالَ: سَمِعْتُ قَبِيصَةَ بْنَ هُلْبٍ يُحَدِّثُ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: سَأَلْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ طَعَامِ النَّصَارَى ؟ فَقَالَ: " لَا يَتَخَلَّجَنَّ فِي صَدْرِكَ طَعَامٌ ضَارَعْتَ فِيهِ النَّصْرَانِيَّةَ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ.
سَمِعْت مَحْمُودًا، وَقَالَ عُبَيْدُ اللهِ بْنُ مُوسَى: عَنْ إِسْرَائِيلَ، عَنْ سِمَاكٍ، عَنْ قَبِيصَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، مِثْلَهُ.
قَالَ مَحْمُودٌ: وَقَالَ وَهْبُ بْنُ جَرِيرٍ: عَنْ شُعْبَةَ، عَنْ سِمَاكٍ، عَنْ مُرِّيِّ بْنِ قَطَرِيٍّ، عَنْ عَدِيِّ بْنِ حَاتِمٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، مِثْلَهُ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنَ الرُّخْصَةِ فِي طَعَامِ أَهْلِ الْكِتَابِ.[1]

**ترجمه**: دهلب رضي الله عنه بيان دي فرماني چي دنبي کريم صلي الله عليه وسلم نه دنصارا دخوراکونو په باره کي تپوس اوکړي شو نو ويي فرمائيل هيڅ يو خوراک دي ستاسو په زړونو کي شك پيدانکړي په دي باره کي چي دنصرانيت سره ستاسو مشابهت پيدا نشي.
امام ترمذي وايي: داحديث حسن دي.
**تشريح**: مفسرينو اومحدثينو او شارحينو د حديث ليکلي چي دلته د طعام نه مراد ذبيحه ده خکه چي دنورو خوراکونو حلت داهل کتابوسره مخصوص ندي. په "الذين اتوا الكتاب" کي يهود اونصاري داخل دي اوصابنين پکي هم داخل دي خويدي شرط چي په کوم

[1] _ سنن ابي داود_ الأطعمة ۲۲ (۳۷۸۳) . سنن ابن ماجه_ الجهاد ۲٦ (۲۸۳۰) . (تحفة الأشراف : ۱۱۸۳۳) . و احمد في المسند(۵_۲۲٦)

نبي اوكوم اسماني دين باندي دايمان دعوي نه لري، ستوري پرست صابئين پدي کې داخل ندي.

داهل کتابو نه مراد هرکتابي دي اګرکه حربي وي اوکه ذمي وي عجمي وي اوکه عربي وي اوکه تغلبي اوکه بکري وي ، دامام ابوحنيفه رحمة الله عليه همدا قول دي

ليکن دباقي دريوارو امامانو په نزد دقبيله بني تغلب دعيسايانو ذبيحه حلاله نده، (ځکه چي مشرکان دي)، ابن الجوزي ليکلي دي چي زمونږ دسلسلي ملګرو دابن عباس رضي الله عنهما نه روايت بيان کړي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم دعربو دعيسايانو دذبيحیٰ خوړلو نه ممانعت فرمائيلي دي ، ابن جوزي دعلي رضي الله عنه قول نقل کړي دي چي دبني تغلب دعيسايانو ذبيحه مه خورئ هغوئ په نصرانيت کې دشرابو څکلونه علاوه نورڅه ندي قبول کړي، امام شافعي هم په صحيح سند سره دعلي رضي الله عنه دا قول نقل کړي دي عبد الرزاق دابراهيم نخعي په سند سره روايت نقل کړي دي چي علي رضي الله عنه دبني تغلب دعيسايانوذبيحه لره خوړل اودهغوئ دښخو سره نکاح کول مکروه ګڼړلي دي.

بغوي ليکلي دي چي دالله مراد دتمامو عيسايانو اويهوديانو ذبيحیٰ دي کوم چي درسول الله دبعثت نه مخکې په اهل کتابو کې شامل شوي وو، ليکن درسول الله دبعثت نه پس چي کومو خلقو عيسايت يا يهوديت قبول کړي دي دهغوئ ذبيحیٰ حلالي ندي.

صاحب هدايه ليکلي دي چي دمرتد ذبيحه حلاله نده يعني کومو مسلمانانو چي داسلام په پريخودو سره عيسايت يايهوديت يامجوسيت اختيارکړي دي ددوئ دلاس ذبيحه دي ونه خوړلي شي دوئ دهيڅ دين پابند ندي هغوئ په اختيار کړي مذهب باندي هم قائم ندي مګر که کوم کتابي خپل مذهب پريږدي اوبل دين لره اختيار کړي نو دذبح په وخت کې چي دده کوم مذهب وي هم هغه به قابل داعتبار وي تير شوي مذهب لره څه اعتبار نشته، صاحب کفايه ليکلي دي که چري کوم يهودي يا عيسائي مجوسي شي نو دده ذبيحه به حلاله نه وي اودي به اصلي مجوسي ګڼړلي شي ليکن ددي برعکس که چري څوك مجوسي يهودي يا عيسائی شي نو دده ښکار اوذبيحه به حلال ګڼړلي شي.

**مسئله**: که چري کوم يهودي دعزير عليه السلام په نوم ياعيسائي دعيسي عليه السلام په نوم ذبحه وکړي نوحلاله به نه وي ، صاحب کفايه ليکلي دي دکتابي ذبيحه په هغه وخت کښ حلاله ده کله چي ني دعزير يامسيح په نوم ذبح نه وي کړي ورنه حلاله به نه وي لکه چي دمسلمان هغه ذبيحه حلاله نده چي د الله نه علاوه دبل څيز په نوم ني کړي وي الله تعالي فرمائيلي دي وما اهل به لغير الله.

بغوي ليکلي دي پدي سلسله کې دعلماؤ اختلاف دي، امير المؤمنين عمر رضي الله عنه فرمائيلي دي چي حلاله نده ، اکثر اهل علم دحلت قائل دي، شعبي ، عطاء خراساني،

مکحول هم داقول دي، دشعبي نه تپوس وکړي شو که چري کوم عیساني دعیسی علیه السلام په نوم ذبح وکړي نوڅه حکم لري شعبي په جواب کښ ووئیل حلاله ده ځکه چې الله تعالي دعیسایانو ذبیحی حلالي کړي دي او هغه پدي ښه پوهه وو چي عسایان دذبح په وخت کې څه وائي.

حسن وئیلي دي که چري کوم یهودي یا عیساني دذبح په وخت کې دغیر الله نوم واخلي او تاسو ئي ورنه واورئ نوتاسو به دي لره نه خورئ اوکه چري تاسو هلته موجود نه يئ اوبخپله ئی وانه اورئ نوبیائي خوړلي شئ ځکه چې الله تعالي ستاسو دپاره حلاله کړي ده.

****************

## ١٧_ باب فِي كَرَاهِيَةِ التَّفْرِيقِ بَيْنَ السَّبْيِ

## په قیدیانو کي دجدائي راوستلو دکراهت بیان

١٥٦٦_ حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصِ بْنِ عُمَرَ الشَّيْبَانِيُّ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي حُيَيٌّ، عَنْ أَبِي عَبْدِ الرَّحْمَنِ الحُبُلِيِّ، عَنْ أَبِي أَيُّوبَ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: "مَنْ فَرَّقَ بَيْنَ وَالِدَةٍ وَوَلَدِهَا، فَرَّقَ اللَّهُ بَيْنَهُ وَبَيْنَ أَحِبَّتِهِ يَوْمَ القِيَامَةِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَفِي البَابِ، عَنْ عَلِيٍّ. وَهَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ. وَالعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ العِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ. كَرِهُوا التَّفْرِيقَ بَيْنَ السَّبْيِ، بَيْنَ الوَالِدَةِ وَوَلَدِهَا، وَبَيْنَ الوَلَدِ وَالوَالِدِ، وَبَيْنَ الإِخْوَةِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: قَدْ سَمِعْتُ البُخَارِيَّ، يَقُولُ: سَمِعَ أَبُو عَبْدِ الرَّحْمَنِ الحُبُلِيُّ، عَنْ أَبِي أَيُّوبَ الأَنْصَارِيِّ. (١)

**ترجمه** : دابوایوب انصاري رضي الله عنه بیان دي فرمائي چي دنبي کریم صلي الله علیه وسلم نه مي اوریدلي دي چاچي دمور او دبچي مینځ کي جدائي راوستله الله تعالي به دقیامت په ورځ دده دوستان دده نه جدا کړي

امام ترمذي وايي : داحدیث حسن غریب دي او په دي باب کي دعلي رضي الله عنه نه هم روایت وارد دي او دصحابه کرامو او ددوئ نه پس داهل علمو په دي باندي عمل دي هغوئ په قیدیانو کي دمور او بچو مینځ کي او دپلار او دبچو او رونړو مینځ کي جدائي پیداکول نه خوښوي.

****************

## ١٨_ باب مَا جَاءَ فِي قَتْلِ الأُسَارَى وَالْفِدَاءِ

## دقيديانو دقتل كولو يا فديه اخستل او ددوئ پريخودلو بيان

١٥٦٧_ حَدَّثَنَا أبو عُبَيْدَةَ بن أَبِي السَّفَرِ وَاسْمُهُ أَحْمَدُ بْنُ عَبْدِ اللهِ الْهَمْدَانِيُّ الْكُوفِيُّ، وَمَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، قَالَا: حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ الْحَفَرِيُّ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ زَكَرِيَّاءَ بْنِ أَبِي زَائِدَةَ، عَنْ سُفْيَانَ بْنِ سَعِيدٍ، عَنْ هِشَامٍ، عَنِ ابْنِ سِيرِينَ، عَنْ عَبِيدَةَ، عَنْ عَلِيٍّ، أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " إِنَّ جِبْرَائِيلَ هَبَطَ عَلَيْهِ، فَقَالَ لَهُ: خَيِّرْهُمْ، يَعْنِي: أَصْحَابَكَ، فِي أُسَارَى بَدْرٍ، الْقَتْلَ أَوِ الْفِدَاءَ، عَلَى أَنْ يُقْتَلَ مِنْهُمْ قَابِلًا مِثْلُهُمْ. قَالُوا: الْفِدَاءَ، وَيُقْتَلُ مِنَّا ". وَفِي الْبَابِ، عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ، وَأَنَسٍ، وَأَبِي بَرْزَةَ، وَجُبَيْرِ بْنِ مُطْعِمٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ مِنْ حَدِيثِ الثَّوْرِيِّ، لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ ابْنِ أَبِي زَائِدَةَ، وَرَوَى أَبُو أُسَامَةَ، عَنْ هِشَامٍ، عَنِ ابْنِ سِيرِينَ، عَنْ عَبِيدَةَ، عَنْ عَلِيٍّ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، نَحْوَهُ، وَرَوَى ابْنُ عَوْنٍ، عَنِ ابْنِ سِيرِينَ، عَنْ عَبِيدَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُرْسَلًا، وَأَبُو دَاوُدَ الْحَفَرِيُّ اسْمُهُ عُمَرُ بْنُ سَعْدٍ.[1]

**ترجمه** دعلي رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي جبرائيل عليه السلام ماته راغي او د خپلو ملګرو متعلق يي دبدر دقيديانو په سلسله کي اختيار راکړو که خوښه دي وي نو قتل يي کړه او که خوښه دي وي نو فديه ورنه واخله او د فديه په صورت کي به ددوئ نه په راتلونکي کال کي هم دومره کسان قتل کيږي دوئ اووئيل فديه اخلو او په مونږ کي دي کسان قتل کړي شي.

امام ترمذي وايي داحديث دثوري په روايت حسن غريب دي دا مونږ ته صرف دابن ابي زائده په سند رارسيدلي دي، اسامه دا حديث په سند دهشام عن ابن سيرين عن عبيدة عن علي عن النبي صلي الله عليه وسلم سره ددي هم معني نقل کړي دی او ابن عون په سند دابن سيرين عن عبيدة عن النبي صلي الله عليه وسلم سره مرسل نقل کړي دي، او په دي باب کي دابن مسعود، انس، ابو برزه، او جبير بن مطعم رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي.

****************

١٥٦٨_ حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، حَدَّثَنَا أَيُّوبُ، عَنْ أَبِي قِلَابَةَ، عَنْ عَمِّهِ، عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " فَدَى رَجُلَيْنِ مِنَ الْمُسْلِمِينَ بِرَجُلٍ مِنَ الْمُشْرِكِينَ ". قَالَ

---

[1] _ تفرد بذكره المؤلف (أخرجه النسائي في الكبرى) (تحفة الأشراف: ١٠٢٣٢)

أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَعَمُّ أَبِي قِلَابَةَ هُوَ أَبُو الْمُهَلَّبِ وَاسْمُهُ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ عَمْرٍو وَيُقَالُ: مُعَاوِيَةُ بْنُ عَمْرٍو. وَأَبُو قِلَابَةَ اسْمُهُ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ زَيْدٍ الْجَرْمِيُّ. وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَكْثَرِ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ. أَنَّ لِلْإِمَامِ أَنْ يَمُنَّ عَلَى مَنْ شَاءَ مِنَ الْأُسَارَى. وَيَقْتُلَ مَنْ شَاءَ مِنْهُمْ. وَيَفْدِي مَنْ شَاءَ. وَاخْتَارَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ الْقَتْلَ عَلَى الْفِدَاءِ. وقَالَ الْأَوْزَاعِيُّ: بَلَغَنِي أَنَّ هَذِهِ الْآيَةَ مَنْسُوخَةٌ قَوْلُهُ تَعَالَى: فَإِمَّا مَنًّا بَعْدُ وَإِمَّا فِدَاءً ( محمد: ٤) نَسَخَتْهَا وَاقْتُلُوهُمْ حَيْثُ ثَقِفْتُمُوهُمْ (البقرة : ١٩١) حَدَّثَنَا بِذَلِكَ هَنَّادٌ. حَدَّثَنَا ابْنُ الْمُبَارَكِ. عَنِ الْأَوْزَاعِيِّ. قَالَ إِسْحَاقُ بْنُ مَنْصُورٍ قُلْتُ لِأَحْمَدَ: إِذَا أُسِرَ الْأَسِيرُ. يُقْتَلُ أَوْ يُفَادَى أَحَبُّ إِلَيْكَ ؟ قَالَ: إِنْ قَدَرُوا أَنْ يُفَادُوا فَلَيْسَ بِهِ بَأْسٌ. وَإِنْ قُتِلَ فَمَا أَعْلَمُ بِهِ بَأْسًا. قَالَ إِسْحَاقُ: الْإِثْخَانُ أَحَبُّ إِلَيَّ. إِلَّا أَنْ يَكُونَ مَعْرُوفًا. فَأَطْمَعُ بِهِ الْكَثِيرَ. [1]

**ترجمه** : دعمران بن حصين رضي الله عنه نه مروي دي فرمائي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم دمشركينو ديو قيدي په بدل كي دوه مسلمانان سري پريخودل.

امام ترمذي وايي : داحديث حسن صحيح دي، او دابوقلابه نوم عبدالله بن زيد جرمي دي، داكثرو صحابه كرامو اهل علمو په دي باندي عمل دي چي امام ته اختيار دي كه په قيديانو كي په چا باندي احسان كوي او كه څوك قتل كوي او كه دچا نه فديه اخلي بعضي اهل علمو دفديه په ځاي دقتل اختيار وركړي دي، اوزاعي وائي ماته داخبر رارسيدلي دي چي ايت كريمه "فاما منابعد واما فداء" منسوخ دي او ايت "واقتلوهم حيث ثقفتموهم" ددي دپاره ناسخ دي، اسحاق بن منصور وائي دامام احمد بن حنبل نه مي تپوس اوكړو ستا په نزد بهتر څه دي چي كله قيدي گرفتار شي نو دا دي قتل كړي شي او كه فديه دي ورنه واخستلي شي او بيا دي پريخودلي شي ؟ هغه په جواب كي اووئيل كه فديه ورنه واخستلي شي نو څه باك نشته او كه قتل كړي شي نو دي كي هم څه باك نشته، اسحاق بن راهويه وائي زما په نزد وينه تويول زيات بهتر دي مگر هغه وخت كي كله چي مشهور وي او اكثر خلق ددي خواهش لري.

**تشريح**: بعضي مفسرينو وئيلي دي چي په ابتداء داسلام كې الله تعالي خپل رسول صلي الله عليه وسلم لره دمشركانو دقتل كولو نه منع كړي وو بياچي كله دنبي عليه السلام هجرت مديني ته اوشو نو په دي ايت كې ورته حكم اوشو چي څوك درسره قتال كوي نوته هم ورسره قتال كوه . ربيع فرمائي چي دجهاد په باره كې دا ايت اول نازل شوي دي اوبيادينه پس داحكم شوي دي اقتلوا المشركين كافة يعني تمامو مشركانو سره قتال اوكړئ برابره خبره ده

---

[1] ـ تفرد بهذكره المؤلف (أخرجه النسائي في الكبرى) (تحفة الأشراف : ١٠٩٨٤)

چي ستاسو سره قتال کوي اوکه نه، په دي تقدیرسره به دایت معني دا وي چي تاسو ابتداء دقتال مه کوئ نوپه دي تفسير سره دا ايت منسوخ شو.

ښځو، بوډاګانو، ماشومانو، اوډيرو بوډاګانو، اوراهبانو، او صلح کونکولره قتل کول ښکار نه دي، ، بريده رضي الله عنه نه مروي دي چي نبي کريم صلي الله عليه وسلم به کله چرته لښکر ليږلو نوپه طور دوصيت به يي فرمائيل چي دالله په نوم اودالله په لاره کې جنګ اوکړئ دهغه چا سره څوك چي په الله تعالي كفر كوي ددوئ سره قتال اوكړئ خو په قتال كولو كې دحد نه مه تيريږئ اوبد عهدي به نه كوئ اوزنانه اوماشومان اوبوډاګان به نه قتل كوئ (بغوي).

اومسلم يو اوږد حديث په دي مضمون سره نقل كړي دي مګر ددومره اضافي سره چي مثله به نه كوئ اوماشومان به نه وژنئ ، اودعبدالله ابن عمر رضي الله عنهما نه مروي دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم به دلښكر ليږلو په وخت كې فرمائيل دالله تعالي په نوم اودرسول الله دملت سره لاړ شئ ډير بوډاګان او ماشومان اوزنانه به نه قتل كوئ په غنيمت كې به خيانت نه كوئ او غنيمتونه به جمع كوئ اوخپل ټول حالات به منظم ساتئ او په يو بل به احسان كوئ يقينا نيكي كونكو لره الله تعالي خوښوي (ابوداود).

***************

## ١٩_ باب مَا جَاءَ فِي النَّهْيِ عَنْ قَتْلِ النِّسَاءِ، وَالصِّبْيَانِ

### دښځو او ماشومانو دقتل کولو دمما نعت بيان

١٥٦٩_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ أَخْبَرَهُ، أَنَّ امْرَأَةً وُجِدَتْ فِي بَعْضِ مَغَازِي رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَقْتُولَةً، فَأَنْكَرَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَلِكَ، "وَنَهَى عَنْ قَتْلِ النِّسَاءِ وَالصِّبْيَانِ". وَفِي البَابِ، عَنْ بُرَيْدَةَ، وَرَبَاحٍ وَيُقَالُ: رِيَاحُ بْنُ الرَّبِيعِ، وَالأَسْوَدِ بْنِ سَرِيعٍ، وَابْنِ عَبَّاسٍ، وَالصَّعْبِ بْنِ جَثَّامَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَالعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ العِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ، كَرِهُوا قَتْلَ النِّسَاءِ وَالوِلْدَانِ. وَهُوَ قَوْلُ سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ، وَالشَّافِعِيِّ، وَرَخَّصَ بَعْضُ أَهْلِ العِلْمِ فِي البَيَاتِ، وَقَتْلِ النِّسَاءِ فِيهِمْ وَالوِلْدَانِ وَهُوَ قَوْلُ أَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ، وَرَخَّصَا فِي البَيَاتِ. [1]

---

[1] _ اخرجه البخاري في الصحيح_ الجهاد ١٤٧ (٣٠١٢)، و١٤٨ (٣٠١٥). صحيح مسلم_ الجهاد ٨ (١٧٤٤). سنن ابي داود_ الجهاد ١٢١ (٢٦٦٨). سنن ابن ماجه_ الجهاد ٣٠ (٢٨٤١). (تحفة الأشراف : ٨٢٦٨). والمؤطاء الجهاد ٣ (٩). سنن الدارمي_ السير ٢٥ (٢٥٠٥)

**ترجمه** دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه مروي دي چي درسول الله صلي الله عليه وسلم په کومه غزوه کي يوه قتل کړي شوي ښځه اوموندلي شوه نو رسول الله صلي الله عليه وسلم ددي کار مذمت اوکړو او دښځو او ماشومانو دقتل کولو نه يي منع اوفرمائيله.
امام ترمذي وايي : دا حديث حسن صحيح دي، په دي باب کي دبريده ، رباح، اسود بن سريع، ابن عباس، او صعب بن جثامه رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي، او دي رباح ته رباح بن ربيع هم وئيلي شي، دبعضي صحابه کرامو او بعضي اهل علمو په دي باندي عمل دي ددوئ په نيزد دښځو او ماشومانو قتل کول حرام دي دسفيان ثوري او شافعي هم دا قول دي مګر بعضي اهل علمو دشپي دحملي کولو په صورت کي او په دي کي دښځو او ماشومانو دقتل متعلق رخصت ورکړي دي، احمد او اسحاق هم ددي قائل دي هغوئ دشپي دحملي کولو اجازت ورکړي دي.

***************

۱۵۷۰_ حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ الْجَهْضَمِيُّ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِي الصَّعْبُ بْنُ جَثَّامَةَ، قَالَ: قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنَّ خَيْلَنَا أَوْطِئَتْ مِنْ نِسَاءِ الْمُشْرِكِينَ وَأَوْلَادِهِمْ، قَالَ: " هُمْ مِنْ آبَائِهِمْ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [1]

**ترجمه** : دصعب بن جثامه بيان دي فرمائي چي ما عرض اوکړو اي دالله رسوله زمونږ اسونو دمشرکانو ښځي او ماشومان پامال کړي دي ، رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل هغوئ هم دخپل پلار نيکه نسل دي.
امام ترمذي وايي : داحديث حسن صحيح دي.

***************

## ۲۰_ باب

## دماقبل باب متعلق يوبل باب

۱۵۷۱_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ بُكَيْرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ يَسَارٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: بَعَثَنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي بَعْثٍ، فَقَالَ: " إِنْ وَجَدْتُمْ فُلَانًا وَفُلَانًا

---

[1] _ البخاري_ الجهاد ۱۴۶ (۳۰۱۲) . صحيح مسلم_ الجهاد ۹ (۱۷۴۵) . سنن ابي داود_ الجهاد ۱۲۱ (۲۶۷۲) . سنن ابن ماجه_ الجهاد ۳۰ (۲۸۳۹) . (تحفة الأشراف : ۴۹۳۹) . و احمد في المسند (۴_ ۳۸، ۷۱، ۷۲، ۷۳)

لِرَجُلَيْنِ مِنْ قُرَيْشٍ فَأَحْرِقُوهُمَا بِالنَّارِ ". ثُمَّ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِينَ أَرَدْنَا الْخُرُوجَ: " إِنِّي كُنْتُ أَمَرْتُكُمْ أَنْ تُحْرِقُوا فُلَانًا وَفُلَانًا بِالنَّارِ، وَإِنَّ النَّارَ لَا يُعَذِّبُ بِهَا إِلَّا اللهُ، فَإِنْ وَجَدْتُمُوهُمَا، فَاقْتُلُوهُمَا ". وَفِي الْبَاب، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، وَحَمْزَةَ بْنِ عَمْرٍو الْأَسْلَمِيِّ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ، وَقَدْ ذَكَرَ مُحَمَّدُ بْنُ إِسْحَاق، بَيْنَ سُلَيْمَانَ بْنِ يَسَارٍ، وَبَيْنَ أَبِي هُرَيْرَةَ رَجُلًا فِي هَذَا الْحَدِيثِ، وَرَوَى غَيْرُ وَاحِدٍ مِثْلَ رِوَايَةِ اللَّيْثِ، وَحَدِيثُ اللَّيْثِ بْنِ سَعْدٍ أَشْبَهُ وَأَصَحُّ. قَالَ الْبُخَارِيُّ: وَسُلَيْمَانُ بْنُ يَسَارٍ، قَدْ سَمِعَ مِنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ مُحَمَّدٌ: وَحَدِيثُ حَمْزَةَ بْنِ عَمْرٍو الْأَسْلَمِيِّ فِي هَذَا الْبَابِ صَحِيحٌ. (1)

**ترجمه** : د ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دي فرمايي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم مونږ وليګلو او راته يي اوفرمائيل كه فلاني فلاني مو وموندل اود يوځو قريشيانو نومونه يي واخستل نو په اور يي وسوزوئ ، خوچي كله ورنه مونږ روان شو نو راته يي بيا اوفرمائيل ماخو تاسو ته دفلاني فلاني دسوزولو خبره كړي وه ليكن په اور باندي چاته عذاب وركول دهيچا دپاره جائز ندي مګر صرف دالله تعالي دپاره نو كه وموموندل نو قتل يي كړئ.

امام ترمذي وايي : دابوهريره رضي الله عنه حديث حسن صحيح دي محمد بن اسحاق په دي حديث كي دسليمان بن يسار او ابوهريره په مينځ كي يو بل راوي ذكر كړي دي او بعضي نورو راويانو دليث دروايت پشان روايت بيان كړي دي او دليث بن سعد حديث زيات صحيح دي.
او په دي باب كي دابن عباس، او حمزه بن عمرو اسلمي رضي الله عنهما نه هم احاديث وارد دي او داهل علمو په همدي باندي عمل دي.

**لغات** : احرقوا: احراق معني په اور سوزول احرق يحرق احراقا مصدر دباب افعال دي.

**تشريح** : "ان وجدتم فلانا وفلان" ددي دوه كسانو نه مراد حبار بن الاسود او نافع بن قيس دي ، ددي روايت نه دا هم معلومه شوه چي په اور باندي چالره عذاب وركول پكارنه دي داسي عذاب خو به الله تعالي په جهنم كي كافرانو او مشراكانو ته وركوي او په كومو روايتونو كي چي راغلي دي چي صحابه كرامو داور سزا وركړي ده هغه روايتونه منسوخ شوي دي اوس دهيچا دپاره داور سزا وركول حلال نه دي پاتي شوي

****************

## ۲۱_ باب مَا جَاءَ فِي الْغُلُولِ

[1] _ اخرجه البخاري في الصحيح_ الجهاد ۴۹ (۳۰۱۶) . (تحفة الأشراف : ۱۳۴۸۱)

## دغنيمت په مال کې دخيانت کولو متعلق دوعيد بيان

١٥٧٢_ حَدَّثَنِي أبو رجاء قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ سَالِمِ بْنِ أَبِي الجَعْدِ، عَنْ ثَوْبَانَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " مَنْ مَاتَ وَهُوَ بَرِيءٌ مِنْ ثَلَاثٍ: الكِبْرِ، وَالغُلُولِ، وَالدَّيْنِ، دَخَلَ الجَنَّةَ ". وَفِي البَابِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، وَزَيْدِ بْنِ خَالِدٍ الجُهَنِيِّ. (1)

**ترجمه**: ثوبان رضي الله عنه وائي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي څوك چې مړ شو او د دري څيزونو نه پاك وي نو جنت ته به داخل شي او هغه دري څيزونه دا دي تکبر کول، او خيانت کول، او مقروض كيدل.

امام ترمذي وايي : په دي باب کې دابوهريره او زيد بن خالد الجهني رضي الله عنهما نه هم روايات وارد دي.

****************

١٥٧٣_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عَدِيٍّ، عَنْ سَعِيدٍ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ سَالِمِ بْنِ أَبِي الجَعْدِ، عَنْ مَعْدَانَ بْنِ أَبِي طَلْحَةَ، عَنْ ثَوْبَانَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " مَنْ فَارَقَ الرُّوحُ الجَسَدَ وَهُوَ بَرِيءٌ مِنْ ثَلَاثٍ: الكَنْزِ، وَالغُلُولِ، وَالدَّيْنِ، دَخَلَ الجَنَّةَ ". هَكَذَا قَالَ سَعِيدٌ: " الكَنْزُ ". وَقَالَ أَبُو عَوَانَةَ فِي حَدِيثِهِ: " الكِبْرُ ". وَلَمْ يَذْكُرْ فِيهِ عَنْ مَعْدَانَ، وَرِوَايَةُ سَعِيدٍ أَصَحُّ. (2)

**ترجمه** : ثوبان رضي الله عنه وائي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي دچاد جسم نه چې روح خارج شي او دي د دري څيزونو يعني کنز، غلول، او قرض نه پاك وي نو جنت ته به داخل شي، سعيد بن ابي عروبه پخپل روايت کې الكنز بيان کړي دي او ابوعوانه پخپل روايت کې الكبر بيان کړي دي او دابوعوانه په روايت کې عن معدان لفظ ذكر نشته او دسعيد روايت زيات صحيح دي

امام ترمذي وايي سعيد بن ابي عروبه پخپل روايت کې الكنز بيان کړي دي او ابوعوانه پخپل روايت کې الكبر بيان کړي دي او دابوعوانه په روايت کې عن معدان لفظ ذكر نشته او دسعيد روايت زيات صحيح دي

### دثوبان رضي الله عنه حالات

---

1 _ انظر ما يأتي (تحفة الأشراف : ٢٠٨٥) ، و احمد في المسند (٥_٢٧٦، ٢٨٢)

2 _ ابن ماجه_ الصدقات ١٢ (٢٤١٢) ، و احمد في المسند (٥_٢٨١) (تحفة الأشراف ، ٢١١٣)

نوم ثوبان کنيه ابو عبدالله چي په يمن کې دمشهور خاندان حمير سره يي تعلق وو ثعبان يو غلام وو رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل که خوښه دي وي خپل خاندان ته لاړ شه او که زمونږ سره دي اوسيدل خوښ وي نو اوسيږه ته به داهل بيتو نه شميرلی شي نو په دي بنا ثوبان په اهل بيتو کې شميرلو ته پخپل خاندان ترجيح ورکړه.

هميشه به يي درسول الله صلي الله عليه وسلم خدمت کولو او د رسول الله دفرمان سره به يي دځان نه زيات محبت کولو يو ځل نبي کريم صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل هيڅ کله به چاته لاس نه خوروي نو ددينه پس که به دده نه داس چابك هم اوغورځيدو نو پخپله به وريسي کوځيدو او اوچتولو به يي خو دچانه به يي سوال نه کولو (مسند احمد).

دنبي کريم صلي الله عليه وسلم دخدمت کولو په وجه يي پخپله بهترينه استفاده اوکړه په همدي وجه ابن عبدالبر ليکلي دي چي ثوبان دهغه دري کسانو نه دی چاچي احاديث محفوظ کړي دي او ددي اشاعت يي هم کړی دی (استيعاب) دمروياتو شمير يي ۱۲۷ دی.

***************

۱۵۷۴_ حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ الخلال، حَدَّثَنَا عَبْدُ الصَّمَدِ بْنُ عَبْدِ الْوَارِثِ، حَدَّثَنَا عِكْرِمَةُ بْنُ عَمَّارٍ، حَدَّثَنَا سِمَاكٌ أَبُو زُمَيْلٍ الْحَنَفِيُّ، قَالَ: سَمِعْتُ ابْنَ عَبَّاسٍ، يَقُولُ: حَدَّثَنِي عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ، قَالَ: قِيلَ: يَا رَسُولَ اللهِ، إِنَّ فُلَانًا قَدِ اسْتُشْهِدَ، قَالَ: "كَلَّا، قَدْ رَأَيْتُهُ فِي النَّارِ بِعَبَاءَةٍ قَدْ غَلَّهَا، قَالَ: قُمْ يَا عُمَرُ، فَنَادِ: إِنَّهُ لَا يَدْخُلُ الْجَنَّةَ إِلَّا الْمُؤْمِنُونَ". ثَلَاثًا. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ.[1]

**ترجمه** : دعمر رضي الله عنه نه مروي دي فرمائي چي عرض اوکړي شو اي دالله رسوله فلاني کس شهيد شو رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل هرګز نه ما دهغه عباء (چغه) په وجه په جهنم کي ليدلي دي کومه چي هغه دغنيمت دمال نه پټه کړي وه رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل اي عمر اودريږه او دري پيري دا اعلان اوکړه چي جنت ته به صرف مومن داخليږي (مومنان خيانت نه کوي)

امام ترمذي وايي : داحديث حسن صحيح غريب دي.

***************

## ۲۲_ بَابُ مَا جَاءَ فِي خُرُوجِ النِّسَاءِ فِي الْحَرْبِ

[1] _ صحيح مسلم_ الإيمان ۴۸ (۱۱۴). (تحفة الأشراف: ۱۰۴۹۸)

## په جنګ کې دښځو دشامليدو بيان

١٥٧٥_ حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ هِلَالٍ الصَّوَّافُ، حَدَّثَنَا جَعْفَرُ بْنُ سُلَيْمَانَ الضُّبَعِيُّ، عَنْ ثَابِتٍ، عَنْ أَنَسٍ، قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "يَغْزُو بِأُمِّ سُلَيْمٍ وَنِسْوَةٍ مَعَهَا مِنَ الأَنْصَارِ، يَسْقِينَ المَاءَ، وَيُدَاوِينَ الجَرْحَى". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَفِي البَابِ، عَنِ الرُّبَيِّعِ بِنْتِ مُعَوِّذٍ، وَهَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (1)

**ترجمه** : دانس رضي الله عنه بيان دي فرمائي چې رسول الله صلی الله عليه وسلم به ام سليم جهاد ته بوتلله او ورسره به يو څو نوري انصاري زنانه هم وې چې مجاهدينو ته به يې اوبه ورکولې او دزخميانو علاج به يې کولو.

امام ترمذي وايي : په دې باب کې دربيع بنت معوذ نه هم روايت وارد دی او دا حديث حسن صحيح دی.

***************

## ٢٣_ باب مَا جَاءَ فِي قَبُولِ هَدَايَا الْمُشْرِكِينَ

### دمشرکانو دتحفو قبلولو بيان

١٥٧٦_ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ سَعِيدٍ الكِنْدِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحِيمِ بْنُ سُلَيْمَانَ، عَنْ إِسْرَائِيلَ، عَنْ ثُوَيْرٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَلِيٍّ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَنَّ كِسْرَى أَهْدَى لَهُ فَقَبِلَ، وَأَنَّ المُلُوكَ أَهْدَوْا إِلَيْهِ فَقَبِلَ مِنْهُمْ". وَفِي البَابِ، عَنْ جَابِرٍ، وَهَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ، وَثُوَيْرُ بْنُ أَبِي فَاخِتَةَ اسْمُهُ سَعِيدُ بْنُ عِلَاقَةَ، وَثُوَيْرٌ يُكْنَى أَبَا جَهْمٍ. (2)

**ترجمه** : دعلي رضي الله عنه نه مروي دي فرمائي چې دنبي کريم صلی الله عليه وسلم دپاره دفارس بادشاه کسرا تحفه راوليږله نو رسول الله صلی الله عليه وسلم دا قبول کړه او يو څو نورو بادشاهانو هم رسول الله ته تحايف راليږلي وو او هغه يې قبول کړل

---

[1] _ صحيح مسلم_ الجهاد ٤٧ (١٨١٠) . سنن ابي داود_ الجهاد ٣٣ (٢٥٣١) . (تحفة الأشراف : ٢٦١) . وانظر المعنى عند اخرجه البخاري في الصحيح_ الجهاد ٦٥ (٢٨٨٠) . ومناقب الأنصار ١٨ (٣٨١١) . والمغازي ١٨ (٤٠٦٤)

[2] _ تفرد بذكره المؤلف (تحفة الأشراف : ١٠١٠٩)

امام ترمذي وايي : داحديث حسن غريب دي او ثويبر راوي دام فاخته خوي دي او دابوفاخته نوم سعيد بن علاقه دي او دثويبر كنيه ابوجهم ده ، او په دي باب كي دجابر رضي الله عنه نه هم حديث مروي دي.

***************

## ٢٤ـ بَاب فِي كَرَاهِيَةِ هَدَايَا الْمُشْرِكِينَ

### دكفارو او مشركينو دتحفو قبلولو دكراهيت بيان

١٥٧٧ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ، عَنْ عِمْرَانَ الْقَطَّانِ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ هُوَ ابْنُ الشِّخِّيرِ، عَنْ عِيَاضِ بْنِ حِمَارٍ، أَنَّهُ أَهْدَى لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَدِيَّةً لَهُ أَوْ نَاقَةً، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَسْلَمْتَ؟". قَالَ: لَا. قَالَ: "فَإِنِّي نُهِيتُ عَنْ زَبْدِ الْمُشْرِكِينَ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَمَعْنَى قَوْلِهِ: "إِنِّي نُهِيتُ عَنْ زَبْدِ الْمُشْرِكِينَ". يَعْنِي: هَدَايَاهُمْ. وَقَدْ رُوِيَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. أَنَّهُ كَانَ يَقْبَلُ مِنَ الْمُشْرِكِينَ هَدَايَاهُمْ. وَذُكِرَ فِي هَذَا الْحَدِيثِ الْكَرَاهِيَةُ. وَاحْتَمَلَ أَنْ يَكُونَ هَذَا بَعْدَ مَا كَانَ يَقْبَلُ مِنْهُمْ. ثُمَّ نَهَى عَنْ هَدَايَاهُمْ. [1]

**ترجمه** : دعياض بن حمار رضي الله عنه بيان دي چې هغوئ داسلام قبلولو نه مخكي نبي كريم صلي الله عليه وسلم ته يوه تحفه وركړه او اوښه يي ورته هديه كړه رسول الله ورنه تپوس اوكړو ايا تا اسلام قبول كړي دي؟ هغه اووئيل نه رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل زه خو دمشركانو دتحفو اخستلو نه منع كړي شوي يم.

امام ترمذي وايي : داحديث حسن صحيح دي او دنبي كريم صلي الله عليه وسلم دقول "اني نهيت عن زبدالمشركين" مطلب دادي چي زه ددوئ دتحفو اخستلو نه منع كړي شوي يم رسول الله صلي الله عليه وسلم نه دا هم مروي دي چي هغوئ به دمشركانو تحفي قبلولي مګر په دي حديث كي دكراهيت بيان دي دا احتمال شته چي دا دهغوئ روستني عمل وي ممكن ده چي اول يي تحفي قبلولي او بيا ورنه منع كړي شوي وي.

***************

## ٢٥ـ بَاب مَا جَاءَ فِي سَجْدَةِ الشُّكْرِ

---

[1] ـ ابي داودـ الخراج والإمارة ٣٥(٣٠٥٧). (تحفة الأشراف : ١١٠١٥). مسند احمد (٤ـ ١٦٢)

## د شکر د سجدې ادا کولو بیان

۱۵۷۸_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا أَبُو عَاصِمٍ، حَدَّثَنَا بَكَّارُ بْنُ عَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ أَبِي بَكْرَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي بَكْرَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَتَاهُ أَمْرٌ فَسُرَّ بِهِ، فَخَرَّ لِلَّهِ سَاجِدًا". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ، لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ هَذَا الْوَجْهِ مِنْ حَدِيثِ بَكَّارِ بْنِ عَبْدِ الْعَزِيزِ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَكْثَرِ أَهْلِ الْعِلْمِ رَأَوْا سَجْدَةَ الشُّكْرِ، وَبَكَّارُ بْنُ عَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ أَبِي بَكْرَةَ مُقَارِبُ الْحَدِيثِ. (۱)

**ترجمه** : دابوبکره رضي الله عنه بیان دي فرمائي چي نبي کریم صلي الله علیه وسلم ته یو خبر راغلو نو رسول الله صلي الله علیه وسلم خوشحاله شو اودالله په وړاندي په سجده پریوتو.

امام ترمذي وايي : داحدیث حسن غریب دي او دا مونږ ته صرف په همدي سند دبکار بن عبدالعزیز په روایت رارسیدلي دي، او بکار بن عبدالعزیز بن ابي بکره مقارب الحدیث دي داکثراهل علمو په همدي باندي عمل دي چي هغوئ سجده دشکر درست ګڼړي

***************

## ۲۶_ باب مَا جَاءَ فِي أَمَانِ الْعَبْدِ وَالْمَرْأَةِ

## دغلام اود ښځي دامان ورکولو بیان

۱۵۷۹_ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ أَكْثَمَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ أَبِي حَازِمٍ، عَنْ كَثِيرِ بْنِ زَيْدٍ، عَنِ الْوَلِيدِ بْنِ رَبَاحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "إِنَّ الْمَرْأَةَ لَتَأْخُذُ لِلْقَوْمِ". يَعْنِي: تُجِيرُ عَلَى الْمُسْلِمِينَ، وَفِي الْبَابِ، عَنْ أُمِّ هَانِئٍ، وَهَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ، وَسَأَلْتُ مُحَمَّدًا، فَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ صَحِيحٌ، وَكَثِيرُ بْنُ زَيْدٍ قَدْ سَمِعَ مِنَ الْوَلِيدِ بْنِ رَبَاحٍ، وَالْوَلِيدُ بْنُ رَبَاحٍ سَمِعَ مِنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، وَهُوَ مُقَارِبُ الْحَدِيثِ. (۲)

**ترجمه** . دابوهریره رضي الله عنه نه مروي دي نبي کریم صلي الله علیه وسلم فرمائیلي دي یوه مسلمانه ښځه چاته پناه ورکولي شي.

امام ترمذي وايي داحدیث حسن غریب دي مادمحمد بن اسماعیل بخاري نه تپوس اوکړو نو هغه اووئیل داحدیث صحیح دي کثیر بن زید د ولید بن رباح نه اوریدلي دي او ولید

---

[1] ـ ابي داود_الجهاد ۱۷۲(۲۷۷۳). ابن ماجه_الإقامة ۱۹۲(۱۳۹۴). (تحفة الأشراف : ۱۱۶۹۸)

[2] ـ تفرد بذكره المؤلف (تحفة الأشراف : ۱۴۸۰۹)

دابوهريره نه اوريدلي دي او هغه مقارب الحديث دي، په دي باب کي دام هاني رضي الله عنها نه هم روايت مروي دي.

***************

حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ الدِّمَشْقِيُّ، حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ بْنُ مُسْلِمٍ، أَخْبَرَنِي ابْنُ أَبِي ذِئْبٍ، عَنْ سَعِيدٍ الْمَقْبُرِيِّ، عَنْ أَبِي مُرَّةَ مَوْلَى عَقِيلِ بْنِ أَبِي طَالِبٍ، عَنْ أُمِّ هَانِئٍ، أَنَّهَا قَالَتْ: أَجَرْتُ رَجُلَيْنِ مِنْ أَحْمَائِي، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " قَدْ أَمَّنَّا مَنْ أَمَّنْتِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ أَجَازُوا أَمَانَ الْمَرْأَةِ، وَهُوَ قَوْلُ أَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ: أَجَازَ أَمَانَ الْمَرْأَةِ وَالْعَبْدِ، وَقَدْ رُوِيَ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ، وَأَبُو مُرَّةَ مَوْلَى عَقِيلِ بْنِ أَبِي طَالِبٍ وَيُقَالُ لَهُ أَيْضًا: مَوْلَى أُمِّ هَانِئٍ أَيْضًا وَاسْمُهُ يَزِيدُ، وَقَدْ رُوِيَ عَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ: أَنَّهُ أَجَازَ أَمَانَ الْعَبْدِ. رُوِيَ. عَنْ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " ذِمَّةُ الْمُسْلِمِينَ وَاحِدَةٌ يَسْعَى بِهَا أَدْنَاهُمْ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَمَعْنَى هَذَا عِنْدَ أَهْلِ الْعِلْمِ: أَنَّ مَنْ أَعْطَى الْأَمَانَ مِنَ الْمُسْلِمِينَ، فَهُوَ جَائِزٌ عَلَى كُلِّهِمْ. (1)

**ترجمه** : دام هاني رضي الله عنها نه روايت دي فرمائي چي پخپلو رشته دارو کي مي دوه کسانو ته امان ورکړو نورسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل چاته چي تا امان ورکړو هغوئ ته مونږ هم امان ورکړي دي.

امام ترمذي وايي : وائي داحديث حسن صحيح دي او داهل علمو په دي باندي عمل دي او هغوئ دښځي دامان ورکولو په جواز قول کړي دي او دا د امام احمد او اسحاق قول هم دي او هغوئ دښځي اوغلام امان جائز ګڼړي او داحديث ددي سند نه علاوه په نورو سندونو هم مروي دي او ابو مره دعقيل بن ابي طالب ازاد کړي غلام دي او دده نوم يزيد دي او دعمر رضي الله عنه نه هم ددي دجواز قول مروي دي اوعلي او عبدالله بن عمر رضي الله عنهم دا ارشاد نبوي نقل کوي چي فرمائيل يي دمسلمانانو امان ورکول يو دي که په دوئ کي ادني کس امان ورکړي نو هم به نافذ وي، امام ترمذي وائي داهل علمو په نزد ددي معني داده چي په مسلمانانو کي که هر څوک چاته امان ورکړي نو دا به نافذ ګڼړلي کيږي.

---

1 _ البخاري_ الصلاة ٤ (٣٥٧) . والجزية ٩ (٣١٧١) . والأدب ٩٣ (٦١٥٨) . و مسلم_ المسافرين ١٣ (٣٣٦_ ٨٢) سنن ابي داود_ الجهاد١٦٧ (٢٧٦٣) . (تحفة الأشراف : ١٨٠١٨) . والمؤطاء قصر الصلاة في السفر ٨ (٢٨) . و احمد في المسند (٦_ ٣٤٣ . ٣٢٣) . و سنن الدارمي_ الصلاة١٥١ (١٤٩٣)

### دام هاني فاخته رضي الله عنها حالات:

نوم فاخته كنيه ام هاني دپلار نوم ابو طالب دمور نوم فاطمه بنت اسد دا دعلي رضي الله عنه حقيقي خور ده دهبيره بن عمرو مخزومي سره يي نكاح شوي وه دفتح مكي په ورځ مسلمانه شوه ليكن ددي خاوند هبيره نجران ته اوتختيدو دام هاني درسول الله سره ډير محبت وو رسول الله چي دفتح مكي په ورځ ددوئ كور ته راغى نو شربت يي اوڅكلو او بيايي ددينه هغي ته هم وركړو ام هاني اووئيل زما روژه ده ليكن درسول الله صلي الله عليه وسلم جوټه يي واپس كول نه غوښتل (مسند احمد).

يوځل نبي كريم صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل اى ام هاني چيلئ اوساته دا دډير خير او بركت والاڅيز دى دامير معاويه رضي الله عنه په زمانه كې وفات شوه او دمروياتو شمير يي ۴۶دى.

***************

## ۲۷_ بَابُ مَا جَاءَ فِي الْغَدْرِ

### ددهوكي كولو بيان

۱۵۸۰_ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ، قَالَ: أَنْبَأَنَا شُعْبَةُ، قَالَ: أَخْبَرَنِي أَبُو الْفَيْضِ، قَالَ: سَمِعْتُ سُلَيْمَ بْنَ عَامِرٍ، يَقُولُ: كَانَ بَيْنَ مُعَاوِيَةَ وَبَيْنَ أَهْلِ الرُّومِ عَهْدٌ، وَكَانَ يَسِيرُ فِي بِلَادِهِمْ حَتَّى إِذَا انْقَضَى الْعَهْدُ أَغَارَ عَلَيْهِمْ، فَإِذَا رَجُلٌ عَلَى دَابَّةٍ أَوْ عَلَى فَرَسٍ وَهُوَ يَقُولُ: اللَّهُ أَكْبَرُ، وَفَاءٌ لَا غَدْرٌ، وَإِذَا هُوَ عَمْرُو بْنُ عَبَسَةَ، فَسَأَلَهُ مُعَاوِيَةُ عَنْ ذَلِكَ، فَقَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: " مَنْ كَانَ بَيْنَهُ وَبَيْنَ قَوْمٍ عَهْدٌ، فَلَا يَحُلَّنَّ عَهْدًا وَلَا يَشُدَّنَّهُ، حَتَّى يَمْضِيَ أَمَدُهُ أَوْ يَنْبِذَ إِلَيْهِمْ عَلَى سَوَاءٍ ". قَالَ: فَرَجَعَ مُعَاوِيَةُ بِالنَّاسِ، قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. ([1])

**ترجمه** دسليم بن عامر بيان دي فرمائي چي دمعاويه رضي الله عنه او درومیانو په مينځ كي دځه مودي پوري معاهده شوي وه معاويه به ددوئ ښارونو ته تلو راتلو او دا انتظار به يي كولو چي كله دوئ سره دمعاهدي ميعاد ختم شي نو حمله به وربانديي كوي دي وخت كي يو دم يو كس په سورلئ راښكاره شو او الله اكبر اوازونه يي كول او دا به يي وئيل ستاسو دطرفه د وعدي لحاظ كول پكار دي او بدعهدي كول نه دي پكار مونږ چي اوكتل نو دا كس عمرو بن عنبسه رضي الله عنه وو معاويه رضي الله عنه وربانديي په دي باره كي تپوس اوكړو نو هغه

[1] ـ سنن ابي داود_ الجهاد ۱۶۲ (۲۷۵۹) . (تحفة الأشراف : ۱۰۷۵۳) . و احمد في المسند (۴_۱۱۱)

اوونيل ما درسول الله صلي الله عليه وسلم نه اوريدلي دي دچاچي دکوم قوم سره معاهده وي ترڅوپوري چې دمعاهدي وخت ختم شوي نه وي او يا ورته دا معاهده دبرابري سره واپس شوي نه وي نو هرګز به دا معاهده نه ماتوي او نه به نوي معاهده کوي نو معاويه رضي الله عنه خپل کسان واپس راوستل او واپس شو.

امام ترمذي وايي : داحديث حسن صحيح دي.

***************

## ٢٨_ بَاب مَا جَاءَ أَنَّ لِكُلِّ غَادِرٍ لِوَاءً يَوْمَ الْقِيَامَةِ

### دقيامت په ورځ به دهر دهوکه کونکي دپاره جهنډه وي

١٥٨١_ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيل بْنُ إِبْرَاهِيمَ، قَالَ: حَدَّثَنِي صَخْرُ بْنُ جُوَيْرِيَةَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: "إِنَّ الْغَادِرَ يُنْصَبُ لَهُ لِوَاءٌ يَوْمَ الْقِيَامَةِ". قَالَ: وَفِي الْبَاب، عَنْ عَلِيٍّ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ، وَأَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، وَأَنَسٍ، قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَسَأَلْتُ مُحَمَّدًا عَنْ حَدِيثِ سُوَيْدٍ، عَنْ أَبِي إِسْحَاق، عَنْ عُمَارَةَ بْنِ عُمَيْرٍ، عَنْ عَلِيٍّ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "لِكُلِّ غَادِرٍ لِوَاءٌ". فَقَالَ: لَا أَعْرِفُ هَذَا الْحَدِيثَ مَرْفُوعًا. [1]

**ترجمه** : دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما بيان دي فرمائي چې درسول الله صلي الله عليه وسلم نه مي اوريدلي دي بيشکه دبي لوظي کونکو دپاره به دقيامت په ورځ يوه جهنډه اودرولي شي.

امام ترمذي وايي : داحديث حسن صحيح دي ما دامام بخاري نه دسويد دهغه حديث باره کي تپوس اوکړو کوم چې هغه داسحاق سبيعي نه او هغه دعماره بن عمير نه او هغه دعلي رضي الله عنه نه او هغه درسول الله صلي الله عليه وسلم نه نقل کوي چې فرمائيل يي دهر عهد کونکي دپاره يوه جهنډه وي امام بخاري اوونيل زما په علم کي داحديث مرفوع نه دي، او په دي باب کي دعلي، عبدالله بن مسعود، او ابوسعيد خدري رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي.

**لغات** : غادر: الغادر په معني دخيانت کونکي جمع يي غادرون او غدرة راځي او صفت يي

---

[1] _ اخرجه البخاري في الصحيح_ الجزية ٢٢ (٣١٨٨). والأدب ٩٩ (٦١٧٧). والحيل ٩ (٦٩٦٦). والفتن ٢١ (٧١١١). صحيح مسلم_ الجهاد ٤ (١٧٣٦). سنن ابي داود_ الجهاد ١٦٢ (٢٧٥٦). (تحفة الأشراف: ٧٦٩٠). واحمد في المسند ٢/ ١٢٢)

غادر دي مونث يي غادرة او جمع يي غادرات راځي

**تشريح** : د "غادر" نه مراد عهد لره دكولو نه پس ماتول دي دحديث خلاصه داده چي دقيامت په ورځ به دوكه باز ته يو جهنډه وركړى شي ددي دپاره چي مزيد نور هم رسوا شي او دده دمعاملي نقصانات هر چاته ښكاره شي او خلق يي په مجمع عام كي په دوكه باز اوپيژني.

***************

## ٢٩_ باب مَا جَاءَ فِي النُّزُولِ عَلَى الحُكْمِ

### دمسلمانانو په فيصلي ددشمن دراضي كيدو بيان

١٥٨٢_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ، أَنَّهُ قَالَ: رُمِيَ يَوْمَ الأَحْزَابِ سَعْدُ بْنُ مُعَاذٍ فَقَطَعُوا أَكْحَلَهُ أَوْ أَبْجَلَهُ، فَحَسَمَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالنَّارِ، فَانْتَفَخَتْ يَدُهُ، فَتَرَكَهُ، فَنَزَفَهُ الدَّمُ، فَحَسَمَهُ أُخْرَى، فَانْتَفَخَتْ يَدُهُ، فَلَمَّا رَأَى ذَلِكَ قَالَ: اللَّهُمَّ لَا تُخْرِجْ نَفْسِي حَتَّى تُقِرَّ عَيْنِي مِنْ بَنِي قُرَيْظَةَ، فَاسْتَمْسَكَ عِرْقُهُ، فَمَا قَطَرَ قَطْرَةً حَتَّى نَزَلُوا عَلَى حُكْمِ سَعْدِ بْنِ مُعَاذٍ، فَأَرْسَلَ إِلَيْهِ، فَحَكَمَ أَنْ يُقْتَلَ رِجَالُهُمْ وَيُسْتَحْيَا نِسَاؤُهُمْ يَسْتَعِينُ بِهِنَّ الْمُسْلِمُونَ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَصَبْتَ حُكْمَ اللَّهِ فِيهِمْ". وَكَانُوا أَرْبَعَ مِائَةٍ، فَلَمَّا فَرَغَ مِنْ قَتْلِهِمْ، انْفَتَقَ عِرْقُهُ فَمَاتَ، قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ، وَعَطِيَّةَ الْقُرَظِيِّ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.[1]

**ترجمه** : دجابر رضي الله عنه بيان دي فرمائي كله چي په غزوه احزاب كي سعد بن عباده رضي الله عنه په غشي اولګيدو نو كافرانو دده اكحل رګ يا ابجل رګ (دا دمټ يو رګ دي) كټ كړو نو رسول الله صلي الله عليه وسلم دا په اور اوداغلو او دده لاس اوچ شو لهذا رسول الله صلي الله عليه وسلم دا پريخودو او وينه ورنه جاري شوه چنانچي رسول الله دوباره دده لاس اوداغلو نو بيا دده لاس اوچ شو كله چي سعد بن معاذ رضي الله عنه دا اوليدو نو دا دعا يي اوغوښتله اي الله تعالي دهغه وخته پوري زما نه روح مه اخله تر څو پوري چي دبني قريظه په هلاكت او ذلت زما ستركي يخي شوي نه وي پس دده رګ بند شو او دويني يو څاڅكي ورنه هم نه څڅيدو تردي چي بنو قريظه دسعد بن معاذ رضي الله عنه په حكم دقلاګانو نه راكوز شول، رسول الله صلي الله عليه وسلم سعد راوغوښتلو او يا پخپله راغلو او فيصله يي اوكړه چي ددوئ نارينه دي قتل كړي شي او ښځي دي ژوندي پريخودي شي چي مسلمانان به ورنه

[1] ـ تفرد بذكره المؤلف (أخرجه النسائي في الكبرى (تحفة الأشراف : ٢٩٢٥)

خدمت اخلي رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل يقينا تا ددوئ باره کي دالله تعالي دفيصلي موافق فيصله اوکړه ددوئ تعداد څلور سوه وو کله چي رسول الله صلي الله عليه وسلم ددوئ دقتل نه فارغ شو نو دسعد رګ کولاو شو او هغه وفات شو

امام ترمذي وايي : داحديث حسن صحيح دي. او په دي باب کي دابوسعيد خدري او عطيه قرظي رضي الله عنهما نه هم احاديث وارد دي

***************

١٥٨٣ـ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ أَبُو الْوَلِيدِ الدِّمَشْقِيُّ، حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ بْنُ مُسْلِمٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ بَشِيرٍ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنِ الْحَسَنِ، عَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدَبٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " اقْتُلُوا شُيُوخَ الْمُشْرِكِينَ، وَاسْتَحْيُوا شَرْخَهُمْ ". وَالشَّرْخُ: الْغِلْمَانُ الَّذِينَ لَمْ يُنْبِتُوا. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ، وَرَوَاهُ الْحَجَّاجُ بْنُ أَرْطَاةَ، عَنْ قَتَادَةَ، نَحْوَهُ. [1]

**ترجمه** : دسمره بن جندب رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دمشرکانو نارينه قتل کړئ او ددوئ هغه هلکان پريږدئ کوم چي بلوغ ته نه وي رسيدلي او "شرخ" هغه هلکانو ته وئيلي شي دچا دبلوغ علامات چي ظاهر شوي نه وي.

امام ترمذي وايي : داحديث حسن صحيح دي او حجاج بن ارطات هم دقتاده نه دماقبل هم معني روايت نقل کړي دي.

***************

١٥٨٤ـ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ عُمَيْرٍ، عَنْ عَطِيَّةَ الْقُرَظِيِّ، قَالَ: " عُرِضْنَا عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ قُرَيْظَةَ، فَكَانَ مَنْ أَنْبَتَ قُتِلَ، وَمَنْ لَمْ يُنْبِتْ خُلِّيَ سَبِيلُهُ، فَكُنْتُ مِمَّنْ لَمْ يُنْبِتْ فَخُلِّيَ سَبِيلِي ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ بَعْضِ أَهْلِ الْعِلْمِ: أَنَّهُمْ يَرَوْنَ الإِنْبَاتَ بُلُوغًا، إِنْ لَمْ يُعْرَفْ احْتِلَامُهُ وَلَا سِنُّهُ، وَهُوَ قَوْلُ أَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ. [2]

**ترجمه** دعطيه قرظي بيان دي فرمائي چي مونږ دبني قريظه په ورځ نبي کريم صلي الله عليه وسلم ته پيش کړي شو نو په مونږ کي چي به دچا دبلوغ علامات ښکاره شوي وو هغوئ به يي

---

[1] ـ سنن ابي داود ـ الجهاد ١٢١ (٢٦٧٠). (تحفة الأشراف : ٤٥٩٢). واحمد في المسند (٥ـ ١٢، ٢٠)

[2] ـ : ابي داود ـ الحدود ١٧ (٤٤٠٤). سنن النسائي ـ الطلاق ٢٠ (٣٤٦٠). وقطع السارق ١٤ (٤٩٩٦). سنن ابن ماجه ـ الحدود ٤ (٢٥٤١). (تحفة الأشراف : ٩٩٠٤). واحمد في المسند (٤ـ ٣١٠). و ٥ـ ٣١٢)

قتل کول او دچا دبلوغ علامات چي به نه وو ښکاره شوي هغوئ به يي پريخودل چنانچي زه په هغه کسانو کي وم دچا دبلوغ علامات چي نه وو ښکاره شوي لهذا زه يي په دي وجه پريخودم
امام ترمذي وايي : داحديث حسن صحيح دي او دبعضي اهل علمو په دي باندي عمل دي دوئ وائي که ديو انسان دبلوغ علامات نه معلوميږي او عمر يي کم وي نو هغوئ به دويختو تو کيدل دبلوغ علامه گنړله. دامام احمد او اسحاق بن راهويه هم دا قول دي

*****************

## ٣٠_ باب مَا جَاءَ فِي الْحِلْفِ

### دجاهليت دوخت دقسم بيان

١٥٨٥_ حَدَّثَنَا حُمَيْدُ بْنُ مَسْعَدَةَ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ، حَدَّثَنَا حُسَيْنٌ الْمُعَلِّمُ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ فِي خُطْبَتِهِ: " أَوْفُوا بِحِلْفِ الْجَاهِلِيَّةِ، فَإِنَّهُ لَا يَزِيدُهُ، يَعْنِي: الْإِسْلَامَ، إِلَّا شِدَّةً، وَلَا تُحْدِثُوا حِلْفًا فِي الْإِسْلَامِ ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَوْفٍ، وَأُمِّ سَلَمَةَ، وَجُبَيْرِ بْنِ مُطْعِمٍ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَابْنِ عَبَّاسٍ، وَقَيْسِ بْنِ عَاصِمٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.[1]

**ترجمه** : دعبدالله بن عمر رضي الله عنه بيان دي فرمائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم يو ځل پخپله خطبه کي اوفرمائيل دجاهليت قسم او معاهدي پوره کړئ ځکه چي ددي په وجه داسلام په مضبوطيا کي زياتوالي راځي او اوس ددينه پس په اسلام کي کومه نوي معاهده او دچا سره تعاون مه کوئ.

امام ترمذي وايي : داحديث حسن صحيح دي، او په دي باب کي د عبدالرحمن بن عوف، ام سلمه، جبير بن مطعم، ابوهريره، ابن عباس، او قيس بن عاصم رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي.

*****************

## ٣١_ باب مَا جَاءَ فِي أَخْذِ الْجِزْيَةِ مِنَ الْمَجُوسِ

### دمجوسيانو نه دجزيه (ټکس) اخستلو بيان

[1] _ تفرد بذكره المؤلف (تحفة الأشراف: ٨٦٩٠)

١٥٨٦_ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، حَدَّثَنَا الْحَجَّاجُ بْنُ أَرْطَاةَ، عَنْ عَمْرِو بْنِ دِينَارٍ، عَنْ بَجَالَةَ بْنِ عَبْدَةَ، قَالَ: كُنْتُ كَاتِبًا لِجَزْءِ بْنِ مُعَاوِيَةَ عَلَى مَنَاذِرَ، فَجَاءَنَا كِتَابُ عُمَرَ، انْظُرْ مَجُوسَ مَنْ قِبَلَكَ فَخُذْ مِنْهُمُ الْجِزْيَةَ، فَإِنَّ عَبْدَ الرَّحْمَنِ بْنَ عَوْفٍ أَخْبَرَنِي، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَخَذَ الْجِزْيَةَ مِنْ مَجُوسِ هَجَرَ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ. [1]

**ترجمه** : دبجاله بن عبده بيان دي فرمائي چي زه په مناذر مقام دجزء بن معاويه منشي وم او مونږ. نه دعمر رضي الله عنه خط راورسيدو په خط كي دا ليكلي وو ستاسو خواته چي كوم مجوسيان دي په دوئ نظر اوساتئ او جزيه ورنه واخلئ ځكه چي عبدالرحمن بن عوف ماته خبر راكړي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم دهجر مقام دمجوسيانو نه جزيه اخستلي وه

امام ترمذي وايي :داحديث حسن دي

*****************

١٥٨٧_ حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ عَمْرِو بْنِ دِينَارٍ، عَنْ بَجَالَةَ، أَنَّ عُمَرَ كَانَ لَا يَأْخُذُ الْجِزْيَةَ مِنَ الْمَجُوسِ، حَتَّى أَخْبَرَهُ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ عَوْفٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَخَذَ الْجِزْيَةَ مِنْ مَجُوسِ هَجَرَ". وَفِي الْحَدِيثِ كَلَامٌ أَكْثَرُ مِنْ هَذَا، وَهَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [2]

**ترجمه** دبجاله بن عبده نه مروي دي فرمائي چي عمر رضي الله عنه به دمجوسيانو نه جزيه نه اخستله تردي چي عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه ورته خبر وركړو چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم دهجر مقام دمجوسيانو نه جزيه اخستلي وه په دي حديث كي دماقبل نه زيات تفصيل دي.

امام ترمذي وايي : داحديث حسن صحيح دي

*****************

١٥٨٨_ حَدَّثَنَا الْحُسَيْنُ بْنُ أَبِي كَبْشَةَ الْبَصْرِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنِ السَّائِبِ بْنِ يَزِيدَ، قَالَ: "أَخَذَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْجِزْيَةَ مِنْ مَجُوسِ

---

[1] _ اخرجه البخاري في الصحيح_ الجزية ١ (٣١٥٦) . سنن ابي داود_ الخراج والإمارة ٣١ (٣٠٤٣) . (تحفة الأشراف ٩٧١٧) . و احمد في المسند (١_١٩٠)

[2] _ البخاري في الصحيح_ الجزية ١ (٣١٥٦) . سنن ابي داود_ الخراج والإمارة ٣١ (٣٠٤٣) . (تحفة الأشراف : ٩٧١٧) . و احمد في المسند (١_١٩٠)

الْبَحْرَيْنِ، وَأَخَذَهَا عُمَرُ مِنْ فَارِسَ، وَأَخَذَهَا عُثْمَانُ مِنَ الْفُرْسِ". وَسَأَلْتُ مُحَمَّدًا عَنْ هَذَا. فَقَالَ: هُوَ مَالِكٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. (1)

**ترجمه** دسائب بن يزيد رضي الله عنه بيان دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم دبحرين دمجوسيانو نه او عمر او عثمان رضي الله عنهما دفارس دمجوسيانو نه جزيه اخستلي وه.
امام ترمذي وايي : ما دامام بخاري نه ددي حديث باره كي تپوس اوكړو نو هغه اوونيل مالك دزهري نه نقل كړي دي او زهري دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه مرسل نقل كړي دي

***************

## ٣٢_ بَاب مَا يَحِلُّ مِنْ أَمْوَالِ أَهْلِ الذِّمَّةِ

### دذمي دمال نه څومره اخستل جائز دي

١٥٨٩_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا ابْنُ لَهِيعَةَ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي حَبِيبٍ، عَنْ أَبِي الْخَيْرِ، عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ، قَالَ: قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللهِ، إِنَّا نَمُرُّ بِقَوْمٍ فَلَا هُمْ يُضَيِّفُونَا، وَلَا هُمْ يُؤَدُّونَ مَا لَنَا عَلَيْهِمْ مِنَ الْحَقِّ، وَلَا نَحْنُ نَأْخُذُ مِنْهُمْ. فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنْ أَبَوْا إِلَّا أَنْ تَأْخُذُوا كَرْهًا، فَخُذُوا". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ، وَقَدْ رَوَاهُ اللَّيْثُ بْنُ سَعْدٍ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي حَبِيبٍ أَيْضًا، وَإِنَّمَا مَعْنَى هَذَا الْحَدِيثِ: أَنَّهُمْ كَانُوا يَخْرُجُونَ فِي الْغَزْوِ، فَيَمُرُّونَ بِقَوْمٍ وَلَا يَجِدُونَ مِنَ الطَّعَامِ مَا يَشْتَرُونَ بِالثَّمَنِ، وَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنْ أَبَوْا أَنْ يَبِيعُوا إِلَّا أَنْ تَأْخُذُوا كَرْهًا، فَخُذُوا". هَكَذَا رُوِيَ فِي بَعْضِ الْحَدِيثِ مُفَسَّرًا، وَقَدْ رُوِيَ عَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، أَنَّهُ كَانَ يَأْمُرُ بِنَحْوِ هَذَا. (2)

**ترجمه** : دعقبه بن عامر رضي الله عنه بيان دي فرمائي چي ما عرض اوكړو اي دالله رسوله اكثر زمونږ په داسي خلقو تيريدل كيږي څوك چي نه مونږ ته ميلمستيا راكوي او نه زمونږ هغه حق اداء كوي كوم چي په دوئ زمونږ دي او مونږ ددوئ نه هيڅ نه اخلو رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل كه چري دوئ دزبردستۍ نه علاوه په بله طريقه ستاسو حق نه اداء كوي نو په زبردستۍ يي ورنه واخله.

---

1 _ تفرد بذكره المؤلف.

2 _ اخرجه البخاري في الصحيح_ المظالم ١٨ (٢٤٦١)، والأدب ٨٥ (٦١٣٧)، صحيح مسلم_ اللقطة ٣ (١٧٢٧)، سنن ابى داود_ الأطعمة ٥ (٣٧٥٢)، سنن ابن ماجه_ الأدب ٥ (٣٦٧٦)، (تحفة الأشراف : ٩٩٥٤)، واحمد في المسند (٤_ ١٤٩)

امام ترمذي وايي : داحديث حسن دي سعد بن ليث هم دا حديث ديزيد بن ابي حبيب نه نقل كړي دي ،خنګه چي دبخاري په سند كي دي، ددي حديث مفهوم دادي كله چي به صحابه كرام جهاد ته تلل نو ديو داسي قوم په خوا كي به تيريدل دكوم سره چي به يي خوراك نه موندلو چي په قيمت يي ورنه واخلي نبي كريم صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل كه چري په قيمت دوئ دخوراك خرڅولو نه انكار اوكړي مګر علاوه ددينه چي تاسو يي ورنه په زبردستئ واخلئ نو په زبردستئ يي ورنه واخلئ په يو بل حديث كي ددي داسي وضاحت راغلي دي دعمر بن الخطاب رضي الله عنه نه مروي دي چي هغوئ به هم داسي حكم كولو.

*****************

## ٣٣_ باب مَا جَاءَ فِي الْهِجْرَةِ

### دهجرت بيان

١٥٩٠_ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ عَبْدَةَ الضَّبِّيُّ، حَدَّثَنَا زِيَادُ بْنُ عَبْدِ اللهِ، حَدَّثَنَا مَنْصُورُ بْنُ الْمُعْتَمِرِ، عَنْ مُجَاهِدٍ، عَنْ طَاوُسٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "يَوْمَ فَتْحِ مَكَّةَ لَا هِجْرَةَ بَعْدَ الْفَتْحِ، وَلَكِنْ جِهَادٌ وَنِيَّةٌ، وَإِذَا اسْتُنْفِرْتُمْ فَانْفِرُوا". قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ، وَعَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو، وَعَبْدِ اللهِ بْنِ حُبْشِيٍّ، قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رَوَاهُ سُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ، عَنْ مَنْصُورِ بْنِ الْمُعْتَمِرِ، نَحْوَ هَذَا.[1]

**ترجمه** : د ابن عباس نه روايت دی چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دمكي فتح كيدو نه پس هجرت كول نشته ليكن دجهاد حكم باقي دي اود اعمالو مدار په نيت دي اوچي كله جهاد ته وغوښتلي شئ نو تلل به لازم وي.

امام ترمذي وايي : داحديث حسن صحيح دي سفيان ثوري هم دا حديث د منصور بن معتمر نه دماقبل هم معني نقل كړي، او په دي حديث كي دابوسعيد ، عبدالله بن عمرو ، او عبدالله بن حبشي رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي.

**لغات**: استنفرتم: استنفر دباب استفعال نه په معني دتختولو دي ، استنفر القوم يعني قوم لره

---

[1] _ البخارى_ جزاء الصيد ١٠ (١٨٣٤) . والجهاد ١ (٢٧٨٣) . و ٢٧ (٢٨٢٥) . و ١٩٣ (٣٠٧٧) . والجزية ٢٢ (٣١٨٩) . صحيح مسلم_ الحج ٨٢ (١٣٥٣) . والإمارة ٢٠ (١٣٥٣_ ٨٥) . سنن ابى داود_ المناسك ٩٠ (٢٠١٨) . (إشارة) والجهاد ٢ (٢٤٨٠) . سنن النسائى_ البيعة ١٥ (٤١٧٥) . سنن ابن ماجه_ الجهاد ٩ (٢٧٧٣) . (تحفة الأشراف : ٥٧٤٨) . و احمد في المسند (١_ ٢٢٦. ٢٢٦. ٣١٦. ٣٥٥) . وسنن الدارمى_ السير ٦٩ (٢٥٥٣)

دجنګ دپاره جمع کول. فانفروا ، نفر نفرا ونفورا معنی تلل.

**تشريح: دفتح مكي نه پس هجرت كول نشته**

ددي حديث مطلب دادي چي اوس دمكي نه هجرت كولو ته ضرورت نه دي پاتي شوي خكه مكه اوس دار الاسلام ګرځيدلى دي.

سوال: ددي حديث نه معلومه شوه چي دفتح مكي نه پس هجرت كول بند شول او حال دادي چي په بل حديث كي راغلي دي لاتنقطع الهجرة ، ددي نه معلوميږي چي هجرت به دقيامت پوري جاري وي ، جواب دادي چي په حديث مذكور الصدر كي خاص هجرت مراد دي اودلته مطلب دادي چي اوس به دمكي نه مديني ته دقيامت پوري هجرت كول درست نه وي او دابه انشاء الله دقيامت پوري دار الاسلام وي او د كفارو تسلط وربانديي نشي راتلي . باقي پاتي شوه دا چي كه چرته څوك دخپل دين حفاظت نشي كولي هلته منكرات زيات وي نو ددي ځاي نه دي هجرت وكړي او بل چرته دي لاړ شي ، دويم جواب دادي مديني ته هجرت كول دنبي كريم صلي الله عليه وسلم په زمانه مباركه كي فرض عين وو چي داد اسلام دحقانيت او دكفارو دشان او شوكت ماتولو دپاره وو ليكن اوس ددي هجرت فرضيت باقي نه دي پاتي شوي مګر كه دلته په اسلام عمل كول مشكل شي نو هجرت كول به ورنه واجب وګرځي

"ولكن جهاد ونية" البته دجهاد اونيت فرضيت باقي دي.

علامه طيبي ليكلي دي چي دمكي نه مديني ته هجرت كول فرض وو اوس يي فرضيت ختم شو ليكن جهاد او هجرت من دار الكفر الي دار الاسلام اوس هم باقي دي اودعلم دطلب وغيره دپاره وتل اوس هم باقي دي، ددي نيت كول دهر مسلمان دپاره ضروري دي.

***************

## ٣٤ـ بَاب مَا جَاءَ فِي بَيْعَةِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

### دنبي كريم صلي الله عليه وسلم سره دبيعت كولو بيان

١٥٩١ـ حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ الْأُمَوِيُّ، حَدَّثَنَا عِيسَى بْنُ يُونُسَ، عَنِ الْأَوْزَاعِيِّ، عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي كَثِيرٍ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللهِ، فِي قَوْلِهِ تَعَالَى: لَقَدْ رَضِيَ اللهُ عَنِ الْمُؤْمِنِينَ إِذْ يُبَايِعُونَكَ تَحْتَ الشَّجَرَةِ (الفتح : ١٨)، قَالَ جَابِرٌ" بَايَعْنَا رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى أَنْ لَا نَفِرَّ، وَلَمْ نُبَايِعْهُ عَلَى الْمَوْتِ". قَالَ: وَفِي الْبَاب، عَنْ سَلَمَةَ بْنِ الْأَكْوَعِ، وَابْنِ عُمَرَ،

وَعُبَادَةَ، وَجَرِيرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَقَدْ رُوِيَ هَذَا الحَدِيثُ عَنْ عِيسَى بْنِ يُونُسَ، عَنِ الأَوْزَاعِيِّ، عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي كَثِيرٍ، قَالَ: قَالَ جَابِرُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ: وَلَمْ يُذْكَرْ فِيهِ أَبُو سَلَمَةَ. [1]

**ترجمه** دجابر بن عبدالله رضي الله عنهما نه د ايت كريمه " لَقَدْ رَضِيَ اللَّهُ عَنِ الْمُؤْمِنِينَ إِذْ يُبَايِعُونَكَ تَحْتَ الشَّجَرَةِ " يعني الله تعالي دمومنانو نه راضي شو كله چي هغوئ د ونې دلاندې بيعت كولو متعلق مروي دي دجابر بيان دي چي مونږ درسول الله صلي الله عليه وسلم سره دجنګ نه دنه تختيدو بيعت كړي وو او مونږ دهغه سره په مرګ باندي بيعت نه وو كړي

امام ترمذي وايي : داحديث په سند د عيسي بن يونس عن الاوزاعي عن يحىٰ بن ابي كثير عن جابر بن عبدالله، سره مروي دي په دي سند كي ديحىٰ بن ابي كثير او جابر بن عبدالله په مينځ كي دابوسلمه دواسطي ذكر نشته، په دي باب كي دبسلمه بن الاكوع، ابن عمر، عباده او جرير بن عبدالله رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي.

****************

١٥٩٢ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا حَاتِمُ بْنُ إِسْمَاعِيل، عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي عُبَيْدٍ، قَالَ: قُلْتُ لِسَلَمَةَ بْنِ الأَكْوَعِ: "عَلَى أَيِّ شَيْءٍ بَايَعْتُمْ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ الحُدَيْبِيَةِ؟ قَالَ: عَلَى المَوْتِ"، وَهَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [2]

**ترجمه** ديزيد بن ابوعبيدالله بيان دي فرمائي چي ما دسلمه بن الاكوع رضي الله عنه نه تپوس اوكړو چي دحديبيه په ورځ تاسو درسول الله صلي الله عليه وسلم سره په كومو خبرو بيعت كړي وو؟ هغه اووئيل په مرګ باندي

امام ترمذي وايي : دا حديث حسن صحيح دي.

**تخريج**:

****************

[1] ـ مسلم ـ الإمارة ١٨ (١٨٥٦) . سنن النسائي ـ البيعة ٤ (٤١٦٣) . (تحفة الأشراف : ٣١٦٣) . و احمد في المسند (٣ـ ٣٥٥، ٣٨١، ٣٩٦) . وسنن الدارمي ـ السير ١٨ (٢٤٩٨)

[2] ـ اخرجه البخاري في الصحيح ـ الجهاد ١١٠ (٢٩٦٠) ، والمغازي ٣٥ (٤١٦٩) ، والأحكام ٤٣ (٧٢٠٦) ، و ٤٤ (٧٢٠٨) . صحيح مسلم ـ الإمارة ١٨ (١٨٦٠) . سنن النسائي ـ البيعة ٨ (٤١٦٣) . (تحفة الأشراف : ٤٥٣٦) . و احمد في المسند (٤ـ ٤٧، ٥١، ٥٤)

١٥٩٣_ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ، أَخْبَرَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ جَعْفَرٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ دِينَارٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: كُنَّا نُبَايِعُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى السَّمْعِ وَالطَّاعَةِ، فَيَقُولُ لَنَا: "فِيمَا اسْتَطَعْتُمْ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ كِلَاهُمَا. (1)

**ترجمه** عبدالله بن عمررضي الله عنهما نه روايت دی چي مونږ به رسول الله صلي الله عليه وسلم سره په اوريدلو اومنلو باندي بيعت كولونو رسول الله صلي الله عليه وسلم به مونږ ته فرمائيل چي (داوريدلو او منلو دا بيعت هغه كارونو دپاره دی چه) دكوم تاسو كي طاقت دي.
امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي دجابر اوسلمه بن الاكوع ددواړو حديثونو معني صحيح ده (په دي كي تعارض نشته).

**لغات** : السمع: داوريدلو حاسه (غوږ) يااوريدلي شوي خبره قبلول، جمع يي اسماع راځي او جمع الجمع يي اسامع او اساميع راځي، الطاعة: فرمانبرداري كول، په مجردو كي دنصر نه مستعمل دي.

**تشريح**: علماء وائي په دي حديث كي خو يو طرف ته رعيت ته حكم شوى دى چي دمسلمان حاكم اطاعت به كوئ او په دي شرط چي هغه دالله او درسول دحكم خلاف نه وي خو دويم طرف ته په دي كي حاكمانو ته هم خطاب دى چي تاسو به عوام په داسي مشقت كي نه اچوئ چي دهغي بوج دوئ اوړى نشي بلكه داسي قانون اختيارول پكار دي په كوم باندي چي عمل كول اسان وي او دوئ يي زور اولري، درسول الله ارشادات جوامع الكلم وي نو په دي وجه دلته دا دواړه معني مراد كيدى شي.

***************

١٥٩٤_ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: "لَمْ نُبَايِعْ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى الْمَوْتِ، إِنَّمَا بَايَعْنَاهُ عَلَى أَنْ لَا نَفِرَّ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَمَعْنَى كِلَا الْحَدِيثَيْنِ صَحِيحٌ: قَدْ بَايَعَهُ قَوْمٌ مِنْ أَصْحَابِهِ عَلَى الْمَوْتِ، وَإِنَّمَا قَالُوا: لَا نَزَالُ بَيْنَ يَدَيْكَ حَتَّى نُقْتَلَ، وَبَايَعَهُ آخَرُونَ، فَقَالُوا: لَا نَفِرُّ. (2)

---

[1] _ اخرجه البخاري في الصحيح_ الأحكام ٤٣ (٧٢٠٢). صحيح مسلم_ الإمارة ٢٢ (١٨٦٧). سنن النسائي_ البيعة ٢٤ (٤١٩٢). (تحفة الأشراف: ٧١٢٧). والموطأ البيعة ١(١). واحمد في المسند (٢_ ٦٢، ٨١، ١٠١، ١٣٩)

[2] _ انظر حديث رقم ١٥٩١. (تحفة الأشراف: ٢٧٦٣)

**ترجمه** دجابر بن عبدالله رضي الله عنه بيان دي فرمائي چي مونږ درسول الله صلي الله عليه وسلم سره په مرگ بيعت نه وو کړي مونږ خو دهغه سره په دي خبره بيعت کړي وو چي مونږ به ستا نه نه تختو (اگر که ددي انجام مرگ ولي نه وي).
امام ترمذي وايي: ددواړو حديثونو معني حسن صحيح ده.
بعضي صحابه کرامو درسول الله سره په مرگ بيعت کړي وو دوئ دا خبره کړي وه مونږ به ستا په وړاندي دهغه وخته پوري جنگيږو چي څو پوري قتل شوي نه يو او نورو خلقو ورسره په دي خبره بيعت کړي وو چي مونږ به ستا نه نه تختو.

***************

## ٣٥_ بَاب مَا جَاءَ فِي نَكْثِ الْبَيْعَةِ

### دبيعت دماتولو بيان

١٥٩٥_ حَدَّثَنَا أَبُو عَمَّارٍ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "ثَلاَثَةٌ لاَ يُكَلِّمُهُمُ اللَّهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَلاَ يُزَكِّيهِمْ، وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ: رَجُلٌ بَايَعَ إِمَامًا، فَإِنْ أَعْطَاهُ وَفَى لَهُ، وَإِنْ لَمْ يُعْطِهِ لَمْ يَفِ لَهُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَعَلَى ذَلِكَ الأَمْرُ بِلاَ اخْتِلاَفٍ.[1]

**ترجمه**: دابوهريره رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دري کسان داسي دي دچاسره چي به دقيامت په ورځ الله تعالي خبري نه کوي او نه به دوئ لره دگناهونو نه پاک کړي او ددوئ دپاره دردناك عذاب دي يو په دي دري کسانو کي هغه دي چي دکوم امام سره بيعت اوکړي او بيا که چرې امام ده ته دده دمرضئ مطابق څه ورکړي نو دي ورسره بيعت پوره کوي او که څه ورته ورنکړي نو بيعت نه پوره کوي.
امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي او بغير داختلاف نه حکم ددي موافق دي
**تشريح**: دا روايت هم دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه نقل دي چي ما درسول الله صلي الله عليه وسلم نه دا فرمان اوريدلی چي (دبيعت نه پس) چا دالله تعالي دحکم منلو نه لاس پورته کړو نو دقيامت په ورځ به الله تعالي سره داسي ملاويږي چي څه عذر اودليل به ورسره نه

[1] _ اخرجه البخاري في الصحيح_ المساقاة ١٠ (٢٣٦٩). والشهادات ٢٢ (٢٦٧٢). والأحكام ٤٨ (٧٢١٢). صحيح مسلم_ الإيمان ٤٦ (١٧٣). سنن ابي داود_ البيوع ٦٢ (٣٤٧٤). سنن النسائي_ البيوع ٦ (٤٤٦٧). سنن ابن ماجه_ التجارات ٣٠ (٢٢٠٧). والجهاد ٤٢ (٢٨٧٠). (تحفة الأشراف: ١٢٣٤٢). واحمد في المسند (٢_ ٢٥٣)

وي (چي هغه پيش کړي يا اومنلى شي) او څوك چي په داسى حال کښ مړ شو چي دبيعت پټىٔ يى په غاړه کښ نه وه نو هغه دجاهليت په مرګ باندي مړ شو.
فانه يموت موتة الجاهلية "دجاهليت په مرګ مړ شو" مطلب دادى لکه څنګه چي داسلام نه مخکښ ديو امير تصور نه وو په هغي کښ به يي خپل ذلت او عار محسوسولو نو اسلام چي راغى نو دوئ ته يي دنظم ضبط سبق ورکړو او ټول يي ديو امير پابند کړل او داطاعت تاکيد يي اوکړو که څوك دمقرر شوي امير اطاعت اونکړي او خان داطاعت نه جدا اوساتي نو دى دجاهليت دزماني په شان عمل کوي نو په دي وجه ده ته تنبيه ورکړى شوه.

***************

## ٣٦_ باب مَا جَاءَ فِي بَيْعَةِ الْعَبْدِ

### دغلامانو دبيعت کولو بيان

١٥٩٦_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ بْنُ سَعْدٍ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ، أَنَّهُ قَالَ: جَاءَ عَبْدٌ فَبَايَعَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى الْهِجْرَةِ، وَلَا يَشْعُرُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ عَبْدٌ، فَجَاءَ سَيِّدُهُ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "بِعْنِيهِ، فَاشْتَرَاهُ بِعَبْدَيْنِ أَسْوَدَيْنِ، وَلَمْ يُبَايِعْ أَحَدًا بَعْدُ حَتَّى يَسْأَلَهُ: أَعَبْدٌ هُوَ؟ ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ جَابِرٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ صَحِيحٌ، لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ أَبِي الزُّبَيْرِ. [1]

**ترجمه**: دجابررضي الله عنه بيان دي فرمائي چي يو غلام راغي او درسول الله صلي الله عليه وسلم سره يي په هجرت بيعت اوکړو رسول الله صلي الله عليه وسلم ته دا معلومه نه وه چي بيعت کونکي غلام دي نو په دي دوران کي دده مالك راغي رسول الله صلي الله عليه وسلم ورته اوفرمائيل داغلام په ما خرڅ کړه او بيا ورته رسول الله دوه تور غلامان ورکړل او دا يي ورنه واخستل او بيا ددينه پس دهغه وخته پوري رسول الله صلي الله عليه وسلم به دچا سره بيعت نه کولو ترڅو چي به يي ورنه دا معلومه کړي نه وه چي غلام خو نه يي؟
امام ترمذي وايي: دجابر حديث حسن صحيح غريب دي، دا روايت مونږ ته صرف د ابو الزبير په سند رارسيدلى دى، اوپه دي باب کي د ابن عباس رضي الله عنهما نه هم روايت وارد دى.

***************

## ٣٧_ باب مَا جَاءَ فِي بَيْعَةِ النِّسَاءِ

---

[1] _ تقدم في البيوع برقم ١٥٩١ (تحفة الأشراف: ٢٧٦٣)

## دښځو سره دبيعت کولو بيان

١٥٩٧_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنِ ابْنِ الْمُنْكَدِرِ، سَمِعَ أُمَيْمَةَ بِنْتَ رُقَيْقَةَ، تَقُولُ: بَايَعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي نِسْوَةٍ، فَقَالَ لَنَا: "فِيمَا اسْتَطَعْتُنَّ وَأَطَقْتُنَّ". قُلْتُ: اللَّهُ وَرَسُولُهُ أَرْحَمُ بِنَا مِنَّا بِأَنْفُسِنَا، قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، بَايِعْنَا، قَالَ سُفْيَانُ: تَعْنِي: صَافِحْنَا، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّمَا قَوْلِي لِمِائَةِ امْرَأَةٍ كَقَوْلِي لِامْرَأَةٍ وَاحِدَةٍ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ عَائِشَةَ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، وَأَسْمَاءَ بِنْتِ يَزِيدَ، قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْكَدِرِ، وَرَوَى سُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ، وَمَالِكُ بْنُ أَنَسٍ، وَغَيْرُ وَاحِدٍ هَذَا الْحَدِيثَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْكَدِرِ، نَحْوَهُ، قَالَ: وَسَأَلْتُ مُحَمَّدًا عَنْ هَذَا الْحَدِيثِ، فَقَالَ: لَا أَعْرِفُ لِأُمَيْمَةَ بِنْتِ رُقَيْقَةَ غَيْرَ هَذَا الْحَدِيثِ، وَأُمَيْمَةُ امْرَأَةٌ أُخْرَى لَهَا حَدِيثٌ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. [1]

**ترجمه** : داميمه بنت رقيقه رضي الله عنها بيان دي فرمائي چي ما ديو څو ښځو په معيت کي رسول الله صلي الله عليه وسلم سره بيعت اوکړو او مونږ ته يي اوفرمائيل په هغه امورو کي اطاعت کول په تاسو لازم دي دکومو چي تاسو طاقت لرئ ما اووئيل الله او دهغه رسول په مونږ باندي دځپلو ځانونو نه زيات مهربان دي او عرض مي اوکړو اي دالله رسوله زمونږ سره بيعت اوکړه سفيان راوي وائي دهغي مقصد مصافحه کول وو رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل دسلو ښځو سره زما خبري کول داسي دي لکه ديوي ښځي سره چي څنګه وي.

امام ترمذي وايي : داحديث حسن صحيح دي داموږ ته صرف دمحمد بن منکدر په روايت رارسيدلي وو، سفيان ثوري، مالك بن انس، او بعضي نورو راويانو دمحمد بن منكدر نه ددي پشان روايت نقل کړي دي ما دامام بخاري نه ددي حديث باره کي تپوس اوکړو نو هغوئ اووئيل ماته داميمه بنت رقيقه ددينه علاوه کوم بل حديث معلوم نه دي، او داميمه په نوم يوه بله ښځه هم شته چاچي درسول الله صلي الله عليه وسلم نه يو حديث نقل کړي دي. او په دي باب کي دعائشه، عبدالله بن عمر، او اسماء بنت يزيد رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي

**تشريح**: د مختلفو حالاتو په بنا د مختلفو مقاصدو دپاره رسول الله د ښځو نه بيعت اخستل په احاديث صحيحه کي ثابت دي مثلا رسول الله دښځو سره بيعت وکړو چي نوحه به نه کوئ

[1] _ سنن النسائي_ البيعة ١٨ (٤١٨٦) ، و ٢٤ (٤١٩٥) . سنن ابن ماجه_ الجهاد ٤٣ (٢٨٧٤) . (تحفة الأشراف : ١٥٧٨١) والموطاء_ البيعة ١ (٢) . و احمد في المسند (٦_٣٥٧)

عن أُمِّ عَطِيَّةَ نُسَيْبَةَ - بِضَمِّ النون وفتحها - رضي الله عنها ، قالت : أَخَذَ عَلَيْنَا رَسُولُ اللهِ ﷺ عِنْدَ البَيْعَةِ أَنْ لاَ نَنُوحَ. متفق عليه.

ام عطيه نه چي نوم یې نسیبه دی روایت دی چي رسول الله صلي الله علیه وسلم دبیعت په وخت مونږ نه اقرار اخستی دی چي په مړي به ویر نه کوئ.

أخرجه : البخاري كتاب الجنائز باب ماينهي عن النوح والبكاء ١٠٦/٢ (١٣٠٦) . ومسلم ٤٦/٣ (٩٣٦) (٣١) كتاب الجنائز باب التشديد في النياحة . وابو داود والنسائي.

ددي حدیث نه معلومیږي چي درسول الله صلي الله علیه وسلم په نزد نوحه کول یو ډیر لوي جرم وو نو ځکه یي په بیعت کې ددي عهد واخستو دویمه خبره علماؤ دا کړي ده چي په بیعت کې به رسول الله صلي الله علیه وسلم دا عهد اخستلو ځکه چي نوحه عموما ښځي کوي او سړي یي کم کوي ورنه که سړي هم نوحه اوکړي نو دا به هم حرام او ممنوع وي.

## په خیرو نه کولو دښځوسره بیعت

عن أَسِيدِ بن أَبِي أَسِيدٍ التابِعِيِّ ، عن امْرَأَةٍ مِنَ المُبَايِعاتِ ، قالت : كان فِيما أَخَذَ عَلَيْنَا رسُولُ اللهِ ﷺ ، فِي المَعْرُوفِ الَّذِي أَخَذَ عَلَيْنَا أَنْ لاَ نَعْصِيَهُ فِيهِ : أَنْ لا نَخْمِشَ وَجْهاً ، وَلاَ نَدْعُوَ وَيْلاً ، وَلاَ نَشُقَّ جَيْباً ، وأَنْ لاَ نَنْشُرَ شَعْراً . رواه أبو داود بإسناد حسن.

اسید بن ابي سید تابعي نه روایت دی هغه دیوی ښځی نه روایت کوي چاچي رسول الله صلي الله علیه وسلم سره بیعت کړی وو هغه صحابیه رضي الله عنها وائي چي رسول الله صلي الله علیه وسلم چي زمونږ دنیکئ په کومو کارونو اقرار اخستی وو چي په دی کې به مونږ دالله جل جلاله نافرماني نه کوو په هغو کې دا هم وو چي مونږ به دمړي په غم کې مخ نه شو کوو، واویلا به نه کوو، ګریوان به نه څیری کوو او دسر ویښته به نه ببروو، امام ابو داود په حسن سند روایت کړی دی.

أخرجه : أبو داود (٣١٣١) كتاب الجنائز باب النوح واسناده حسن

په پورتني حدیث کې دچا دمرګ نه پس مخ شوکول او ځان ته دهلاکت خیري کول او ګریبان شلول او ویخته ویستل ټول ممنوع دي ځکه چي دا دجاهلیت دزماني کارونه دي او اسلام خو ددي دپاره راغلی دی چي دجاهلیت دزماني رسومات ختم کړي په دي وجه یي دا کار په متعددو روایتونو او عنواناتو سره ممنوع ګرځولی دی چي مسلمانانی ښځي به دجاهلیت دزماني درسوماتو نه اجتناب کوي.

***************

## ٣٨_ باب مَا جَاءَ فِي عِدَّةِ أَصْحَابِ أَهْلِ بَدْرٍ

### داهل بدر دتعداد بيان

١٥٩٨_ حَدَّثَنَا وَاصِلُ بْنُ عَبْدِ الأَعْلَى الكُوفِيُّ، حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرِ بْنُ عَيَّاشٍ، عَنْ أَبِي إِسْحَاق، عَنِ البَرَاءِ، قَالَ: "كُنَّا نَتَحَدَّثُ: أَنَّ أَصْحَابَ بَدْرٍ يَوْمَ بَدْرٍ، كَعِدَّةِ أَصْحَابِ طَالُوتَ، ثَلَاثُ مِائَةٍ وَثَلَاثَةَ عَشَرَ رَجُلًا". قَالَ: وَفِي البَابِ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رَوَاهُ الثَّوْرِيُّ، وَغَيْرُهُ، عَنْ أَبِي إِسْحَاق. (1)

**ترجمه**: دبراء بن عازب رضي الله عنه بيان دي فرمائي چي مونږ به وئيل دغزوه بدر په ورځ دمجاهدينو تعداد دطالوت دملګرو دتعداد سره برابر وو.

امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي سفيان ثوري او نورو راويانو هم دابواسحاق سبيعي نه دا روايت نقل کړي دي، او په دي باب کي دابن عباس رضي الله عنهما نه هم روايت وارد دي.

**تشريح**: قاضي ثناء الله صاحب پخپل تفسير کي غزوه بدر ته د روانيدو حالت او مجاهدينو دتعداد مدلل تحقيق په سورة انفال کي ذکر کړي چي د فائدي په طور کي بلفظه نقل کوو:

مروي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم پخپل خاي باندي ابن ام مکتوم دمونځ ورکولو دپاره مقرر کړو او دمديني نه روان شو او بيا يي دروحاء مقام نه ابولبابه واپس کړو اوپه مدينه کې يي خپل نائب مقرر کړو، دابن سعد بيان دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم په دولسم رمضان دهفتي په ورځ دمديني نه روان شوي وو او ابن هشام اتم رمضان بيان کړي دي دمديني نه يو ميل بهر چي بيرابوعتبه ته ورسيدو نولښکر يي قائم کړو او کوم کسان چي کم عمره وو هغوئ يي واپس کړل په واپس کړي شوو کسانو کې عبدالله بن عمر، اسامه بن زيد، رافع بن خديج، براء بن عازب، اسيد بن حضير، زيد بن ارقم. زيد بن ثابت، او عمير بن ابي وقاص رضي الله عنهم شامل وو عمير په ژړا شو تردي چي رسول الله ورته دشريکيدو اجازت ورکړو اودبدر په جهاد کې دشپاړسو کالو په عمر کې شهيد شو رسول الله صحابه کرامو ته حکم اوکړو چي دبيرسقيه اوبه اوڅکئ او پخپله يي هم ددي کوهي اوبه اوڅکلي اودلته يي مونځونه هم اوکړل او دسقيا نه دروانيدو په وخت کې يي قيس بن ابي صعصعه ته دمسلمانانو دشميرلو حکم اوکړو قيس ټول مسلمانان دابوعتبه د کوهي سره اودرول او ويي شميرل او

---

1 _ اخرجه البخاري في الصحيح_ المغازي ٦ (٢٩٥٧، ٣٩٥٩) . سنن ابن ماجه_ الجهاد ٣٥ (٢٨٢٨) . (تحفة الأشراف: ١٩٠٨)

رسول الله ته يي عرض اوكړو چي دوئ ټول ۳۱۳ دي رسول الله چي واوريدل نو خوشحاله شو او
وېي فرمائيل چي د طالوت دملګرو دا شمير وو اوپدغه ورځ رسول الله صلي الله عليه وسلم
دمديني دپاره دعا اوغوښتله او عرض يي اوكړو اي الله ابراهيم ستا بنده او ستا خليل او ستا
نبي وو هغه دمكي والادپاره دعا كړي وه زه محمد (صلي الله عليه وسلم) هم ستا بنده او نبي
يم زه دمديني والادپاره ستا نه دعا غواړم چي ته ددوئ په صاع او ددوئ په مد او ددوئ په
ميوو كې بركت واچوي او اي الله ته دمديني محبت مونږ ته راكړي او د مديني د اب و هوا
خرابي (تبع وغيره) ته منتقل كړي لكه څنګه چي ستا خليل ابراهيم مكه حرم ګرځولي وو
نوهمدارنګي زه هم دمديني سوزيدلي او كاڼړني زمكي درمياني علاقه حرم ګرځول غواړم
حبيب بن اصاف اګر چي پدي وخت كې مسلمان شوي نه وو مګر دغنيمت دمال په لالچ كې
دخپلي قبيلي خزرج دمدد دپاره راغلي وو رسول الله صي الله عليه وسلم اوفرمائيل زمونږ سره
دي هغه كسان لاړ شي څوك چي مسلمان شوي وي اوچي څوك مسلمان نه وي هغه دي زمونږ
سره نه ځي ددي په اوريدو سره حبيب مسلمان شو دكردار په لحاظ ډير ښه اوختلو او ډيري
بهترينې كارنامي يي كړي دي ، دسقيه دابادئ نه داتوار په شپه روان شول اودروانيدو په
وخت كې يي دعا اوكړه چي اي الله دي په خپو برېنډ دي سورلئ ورته وركړي اوپه بدن برېنډ
دي جامي ورته وركړي اوپه خيټه اوږي دي په مړه خيټه خوراك ورته وركړي ، اودي ناداره دي
په خپل فضل سره يي غني كړي ، ټول اويا اوښان وو په نمبر نمبر به وړباندي يو يو سوريدلو ،
امام احمد او ابن سعد دابن مسعود رضي الله عنه بيان نقل كړي دي چي مونږ به دبدر په زمانه
كې په يو اوښ باندي دري دري كسان سوريدو ابو لبابه او علي رضي الله عنه درسول الله صلي
الله عليه وسلم سره سواره وو دواړو عرض وكړو چي اي دالله رسوله ته سور شه مونږ به پيدل
لاړشو نو وني فرمائيل تاسو زمانه دپيدل تلو دپاره زيات طاقتور نه يي اوزه ستاسونه دثواب
په اميد وارئ كم نه يم ، دصاحب البدايه والعيون بيان دي چي په سورلئ دابولبابه سره
دملګرتيا واقعه دهغه وخت سره تعلق لري كله چي يي دروحاء نه مديني ته واپس نه وو ليږلي
د روحاء نه درخصتيدو نه پس خو درسول الله سره په سورلئ شركاء علي او زيد رضي الله
عنهما وو ، ددي لښكر سره صرف دوه اوښان وو يو دمقداد اوبل د زبير بن عوام رضي الله عنه
سره وو .

***************

## ۳۹_ بَاب مَا جَاءَ فِي الْخُمُسِ

**دخمس بيان**

١٥٩٩_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا عَبَّادُ بْنُ عَبَّادٍ الْمُهَلَّبِيُّ، عَنْ أَبِي جَمْرَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لِوَفْدِ عَبْدِ الْقَيْسِ: "آمُرُكُمْ أَنْ تُؤَدُّوا خُمُسَ مَا غَنِمْتُمْ". قَالَ: وَفِي الْحَدِيثِ قِصَّةٌ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.

حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ أَبِي جَمْرَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، نَحْوَهُ. (1)

**ترجمه** : دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه روايت دي نبي كريم صلي الله عليه وسلم وفد د عبدالقيس ته اوفرمائيل زه تاسو ته دا حكم كوم چي دغنيمت دمال نه به خمس (پنځمه حصه) اداء كوئ.

امام ترمذي وايي : په دي حديث كي يوه قصه ده ، او دا حديث حسن صحيح دي.

**تشريح:** غنيمت دحربي كافر هغه مال ته وئيلي شي كوم چي ورنه مسلمان په جبري غالب كيدو سره حاصل كړي وي (چونكه خطاب مسلمانو ته دي) نوځكه امام ابوحنيفه رحمه الله فرمائلي دي (كه دمسلمانانو دحاكم داجازت نه بغير چي يو يا دوه مسلمانان دار حرب ته لاړ شي اود حربي كافر نه مال را وتروړي او يا يي ورنه پټ كړي (نو ددينه بيت المال ته خمس وركول واجب ندي، ليكن كه چري دامام داجازت نه بغير ځلور يا زيات كسان دار حرب ته لاړل اود حربيانو نه څه شي راوړي نوپدي كي بيت المال ته خمس وركول واجب دي په محيط كي ذكر شوي دي چي د امام ابو ابويوسف په نزد دجماعت تعداد اوه كسان پكار دي خوچي حفاظتي طاقت يي نه وي اوكه وي نوبيا لسو كسانو ته جماعت وئيلي شي.

د امام شافعي او امام مالك او اكثرو علماؤ قول دادي چي يوكس هم دار حرب ته لاړ شي اود كوم حربي مال را پټ كړي نو پدي كي به هم خمس واجب وي ځكه چي داد حربي هغه مال دي كوم چي په جبر سره حاصل شوي دي لهذا دغنيمت په حكم كي دي . امام ابوحنيفه اوپه يو روايت كي امام احمد هم ددي قائل دي چي دغلا مال غنيمت ندي ځكه چي په لوټ كولو سره اخستلي شوي دي په جبر سره ندي اخستلي شوي ځكه چي غل په تدبير كولو سره غلا كوي اود ا دنورو مباحاتو پشان دمال حاصلولو دپاره يوه مباحه طريقه ده لكه دځنګل نه لرګي

---

1 _ البخاري_ الإيمان ٤٠ (٥٣). والعلم ٢٥ (٨٧). والمواقيت ٢ (٥٢٣). والزكاة ١ (١٣٩٨). والمناقب ٥ (٣٥١٠). والمغازي ٦٩ (٤٣٦٩). والأدب ٩٨ (٦١٧٦). وخبر الواحد ٥ (٧٢٦٦). والتوحيد ٥٦ (٧٥٥٦). صحيح مسلم_ الإيمان ٦ (١٧). والأشربة ٦ (١٩٩٥). سنن ابي داود_ الأشربة ٧ (٣٦٩٢). والسنة ١٥ (٤٦٧٧). سنن النسائي_ الإيمان ٢٥. (٥٠٣٤). والأشربة (٥٥٦٤). و ٤٨ (٥٧٠٨). (تحفة الأشراف: ٦٥٢٤). واحمد في المسند ١_ ١٢٨. ٢٧٤. ٢٩١. ٣٠٤. ٣٣٤. ٣٤٠. ٣٥٢. ٣٦١). سنن الدارمي_ الأشربة ١٣ (٢١٥٧). ويأتي عند المؤلف في الإيمان برقم ٢٦١١

راوړل يا ښکار کول او د خمس د وجوب د پاره د مال غنيمت کېدل ضروري دي که چرې د امام په اجازت سره يو يا دوه کسانو په څه تدبير سره د دار حرب نه مال راوړو نو په اتفاق سره پدې کې خمس واجب دي ځکه چې د امام د اجازت نه پس د تلونکي مدد کول په امام لازم دي او حفاظتي طاقت لرونکي جماعت ځلور کسان وي او که زيات وي که چرې د امام د اجازت نه بغير هم دارحرب ته ورشي نو هم په امام د دوئ مدد کول لازم دي د دي د پاره چې د مسلمانانو او اسلام توهين ونشي او که چې ورته د امام حمايت حاصل وي نو د دوئ ته د اکوان نشي ونيلي کيدي د من شيء د لفظ نه تعميم مستفاد دي يعني د غنيمت مال که هر څومره وي او که صرف ستن او تار وي (خمس به پکې واجب وي) د عباده بن الصامت رضي الله عنه نه روايت دي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چې ستن يا تار (د غنيمت د مال) درسره وي نو هم يې راوړئ او د غنيمت د مال نه د پټولو نه اجتناب وکړئ او د قيامت په ورځ به د اغلا د غل د پاره د شرم او بيغور خبره وي (رواه الدارمي).

امام شافعي د عمرو بن شعيب په روايت سره دا حديث نقل کړي دي مګر پدې کې د ومره اضافه ده چې د دي په اوريدو سره ديو کس په لاس کې د وړئ پړي وو او وئي ونيل دا ما د خر د زين د مرمت کولو د پاره اخستلي وو نو رسول الله صلي الله عليه وسلم ورته او فرمائيل پدې کې چې زما او د بني عبد المطلب کومه حصه ده هغه ستا شوه.

**************

## ٤٠_ باب مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ النُّهْبَةِ

### د لوټ مار او تالان کولو د ممانعت بيان

١٦٠٠_ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا أَبُو الأَحْوَصِ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ مَسْرُوقٍ، عَنْ عَبَايَةَ بْنِ رِفَاعَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ رَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ، قَالَ: "كُنَّا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي سَفَرٍ، فَتَقَدَّمَ سَرَعَانُ النَّاسِ، فَتَعَجَّلُوا مِنَ الغَنَائِمِ، فَاطَّبَخُوا، وَرَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي أُخْرَى النَّاسِ، فَمَرَّ بِالقُدُورِ، فَأَمَرَ بِهَا، فَأُكْفِئَتْ، ثُمَّ قَسَمَ بَيْنَهُمْ، فَعَدَلَ بَعِيرًا بِعَشْرِ شِيَاهٍ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَرَوَى سُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَبَايَةَ، عَنْ جَدِّهِ رَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ وَلَمْ يَذْكُرْ فِيهِ عَنْ أَبِيهِ، حَدَّثَنَا بِذَلِكَ مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ سُفْيَانَ وَهَذَا أَصَحُّ، وَعَبَايَةُ بْنُ رِفَاعَةَ سَمِعَ مِنْ

جَدِّهِ رَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ، قَالَ: وَفِي البَابِ، عَنْ ثَعْلَبَةَ بْنِ الحَكَمِ، وَأَنَسٍ، وَعَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ سَمُرَةَ، وَزَيْدِ بْنِ خَالِدٍ، وَجَابِرٍ. [1]

**ترجمه** : درافع بن خديج رضي الله عنه بيان دي فرماني چي په يو سفر كي زمونږ سره رسول الله صلي الله عليه وسلم هم سفر وو دي وخت كي تيزي كونكي خلق مخكي شول او دغنيمت نه يي دپخولو څيزونه په جلتۍ سره راواخستل او دتقسيم نه مخكي يي ددي پخول شروع كړل او رسول الله صلي الله عليه وسلم ددوئ نه وروسته راتلونكو خلقو سره راروان وو كله چي دوئ ديګونو سره نژدي تيريدل نو رسول الله ددي داړولو حكم اوكړو او دا ضايع كړي شول او بيا رسول الله ددوئ په مينځ كي مال دغنيمت تقسيم كړو او يو اوښ يي دلسو ګډانو سره برابر مقرر كړو.

امام ترمذي وايي : سفيان ثوري داحديث په سند د عن ابيه سعيد عن عباية عن جده رافع بن خديج سره نقل كړي دي او په دي سند كي عبايه دخپل پلار واسطه نه ده ذكر كړي. امام ترمذي وائي مونږ ته دا حديث محمود بن عيلان بيان كړي دي او محمود وائي مونږ ته وكيع بيان كړي دي او وكيع وائي مونږ ته سفيان بيان كړي دي او داروايت زيات صحيح دي، دعبايه بن رفاعه سماع دده دنيكه رافع بن خديج نه ثابت دي او په دي باب كي دثعلبه بن حكم. انس، ابوريحانه ، ابو الدرداء، عبدالرحمن بن سمره، زيد بن خالد، جابر، ابوهريره، او ابوايوب رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي.

***************

١٦٠١ــ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، عَنْ مَعْمَرٍ، عَنْ ثَابِتٍ، عَنْ أَنَسٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " مَنِ انْتَهَبَ فَلَيْسَ مِنَّا ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ، مِنْ حَدِيثِ أَنَسٍ. [2]

**ترجمه** : دانس رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چاچي لوټ مار اوكړو هغه زمونږ نه نه دي.

---

[1] ـ اخرجه البخاري في الصحيح كتاب الشركة ٣ (٢٤٨٨) ، و ١٦ (٢٥٠٧) . والجهاد ١٩١ (٣٠٧٥) . والذبائح ١٥ (٥٤٩٨) . و ٢٣ (٥٥٠٩) . و ٣٦ (٥٥٤٣) . و ٣٧ (٥٥٤٤) . صحيح مسلم ـ الأضاحي ٤ (١٩٦٨) . سنن ابي داود ـ الضحايا ١٥ (٢٨٢١) . سنن النسائي ـ الصيد ١٧ (٤٣٠٢) . والضحايا ٢٠ (٤٤٠٨) . و ٢٦ (٤٤٢١) . سنن ابن ماجه ـ الذبائح ٩ (٣١٨٣) (تحفة الأشراف : ٣٥٦١) . واحمد في المسند (٣ـ ٤٦٣. ٤٦٤. ٣٦٤) . و (٤ـ ١٤٠. ١٤٢)

[2] ـ : تفرد بذكره المؤلف (تحفة الأشراف : ٤٧٩) . وانظر مسند احمد (٣ـ ١٤٠. ١٩٧. ٣١٢. ٣٢٣. ٣٨٠. ٣٩٥)



امام ترمذي وايي : داحديث دانس په روايت حسن صحيح غريب دي

***************

## ٤١_ باب مَا جَاءَ فِي التَّسْلِيمِ عَلَى أَهْلِ الْكِتَابِ

### په اهل كتابو دسلام اچولو بيان

١٦٠٢_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ مُحَمَّدٍ، عَنْ سُهَيْلِ بْنِ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " لَا تَبْدَءُوا الْيَهُودَ وَالنَّصَارَى بِالسَّلَامِ، وَإِذَا لَقِيتُمْ أَحَدَهُمْ فِي الطَّرِيقِ، فَاضْطَرُّوهُمْ إِلَى أَضْيَقِهِ "، قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، وَأَنَسٍ، وَأَبِي بَصْرَةَ الْغِفَارِيِّ صَاحِبِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَمَعْنَى هَذَا الْحَدِيثِ: "لَا تَبْدَءُوا الْيَهُودَ وَالنَّصَارَى"، قَالَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ: إِنَّمَا مَعْنَى: الْكَرَاهِيَةِ، لِأَنَّهُ يَكُونُ تَعْظِيمًا لَهُمْ، وَإِنَّمَا أُمِرَ الْمُسْلِمُونَ بِتَذْلِيلِهِمْ، وَكَذَلِكَ إِذَا لَقِيَ أَحَدَهُمْ فِي الطَّرِيقِ فَلَا يَتْرُكِ الطَّرِيقَ عَلَيْهِ، لِأَنَّ فِيهِ تَعْظِيمًا لَهُمْ. [1]

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دی چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي ، په نصرانيانو او يهوديانو سلام اچولو کې وړومبی کيږئ مه او چي لار کې درسره مخامخ شي (نو لار ورته مه پريدئ) په تنګ ځايی کې تيريدو بانديی يی مجبور کړئ

داحديث حسن صحيح دي او په دي باب کي دابن عمر، انس، ابوبصره، غفاري رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي او ددي حديث مفهوم دادي چي تاسو ورباندي پخپله سلام مه اچوئ (بلکه که دوئ درباندي سلام واچوي نو جواب ورته ورکړئ)، بعضي اهل علم واني دا کار ځکه ناخوښه دي چي په سلام اچولو کي په مخکي کيدو کي ددوئ تعظيم کيږي او مسلمانانوته خوددوئ دتذليل حکم شوي دي دارنګي که په لار کي درسره چرته مخامخ کيږي نو لاره ورته مه پريږدئ ځکه چي په دي طريقه هم ددوئ تعظيم کيږي (او دا درست نه دي).

**لغات** : فاضطروهم: معني مجبوره يي کړئ ، ضرّ ضراً فلان معني نقصان ورکول

### تشريح غير مسلم ته په سلام کې ابتداء کول ولې منع دي؟

لا تبدؤوا اليهود والنصاري بالسلام "په يهودو او نصاري باندي په سلام کولو کې مه مخکې کيږئ" ددي وجه داده چي سلام کول په حقيقت کې يو اسلامي اعزاز دی او غيرمسلم ددي

[1] _ صحيح مسلم_ السلام ۴(۲۱۶۷). سنن ابي داود_ الأدب ۱۴۹(۵۲۰۵). (تحفة الأشراف: ۱۲۷۰۰). ويأتي في الاستئذان برقم ۲۷۰۰)

مستحق نه دي ددي مستحق صرف مسلمانان دي ياداچي سلام كول داكرام او احترام علامه ده اوغير مسلم ددي مستحق نه دى بعضي وائي چي په سلام اچولو سره الفت پيدا كيږي او دغير مسلمو سره الفت پيدا كول الله تعالي منع كړي دي.

"فاضطروهم الي اضيقه" يعني په تنګه لاره يي تلو ته مجبور كړئ يعني يهود او نصاري كوم چي داسلام دشمنان دي او دين لره بدنامول غواړي كه دوئ درسره په لاره كې مخامخ شي نو دومره دباؤ ورباندي واچوئ چي مخامخ لار درته پرېږدي ددي وجه داده چي داسلام عظمت اوشوكت او دمسلمانانو دبدبه ظاهره شي.

****************

١٦٠٣_ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ، أَخْبَرَنَا إِسْمَاعِيل بْنُ جَعْفَرٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ دِينَارٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ الْيَهُودَ إِذَا سَلَّمَ عَلَيْكُمْ أَحَدُهُمْ فَإِنَّمَا يَقُولُ: السَّامُ عَلَيْكُمْ. فَقُلْ: عَلَيْكَ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (1)

**ترجمه** : دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي په يهوديانو كي چي څوك په تاسو سلام اچوي نو هغوئ داسي وائي "السام عليك" يعني په تاسو دي مرګ وي نو په دي وجه تاسو هم په جواب كي صرف "عليك" وائي.

****************

## ٤٢_ باب مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ الْمُقَامِ بَيْنَ أَظْهُرِ الْمُشْرِكِينَ

### دكفارو او مشركانو په مينځ كي داوسيدو دكراهت بيان

١٦٠٤_ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنْ إِسْمَاعِيل بْنِ أَبِي خَالِدٍ، عَنْ قَيْسِ بْنِ أَبِي حَازِمٍ، عَنْ جَرِيرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعَثَ سَرِيَّةً إِلَى خَثْعَمٍ، فَاعْتَصَمَ نَاسٌ بِالسُّجُودِ، فَأَسْرَعَ فِيهِمُ الْقَتْلَ، فَبَلَغَ ذَلِكَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَأَمَرَ لَهُمْ بِنِصْفِ الْعَقْلِ

1 _ اخرجه البخاري في الصحيح_ الاستئذان ٢٢ (٦٢٥٧) . والمرتدين ٤ (٦٩٢٨) . صحيح مسلم_ السلام ٤ (٢١٦٣) . سنن ابي داود_ الأدب ١٤٩ (٥٢٠٦) . سنن النسائي_ عمل اليوم والليلة ١٣٢ (١٧٨) . (تحفة الأشراف : ٧١٢٨) . والموطاء السلام ٣ (٣) . واحمد في المسند (٢_١٩) . وسنن الدارمي_ الاستئذان ٧ (٢٦٧٧)

وَقَالَ: "أَنَا بَرِيءٌ مِنْ كُلِّ مُسْلِمٍ يُقِيمُ بَيْنَ أَظْهُرِ الْمُشْرِكِينَ". قَالُوا: يَا رَسُولَ اللهِ، وَلِمَ؟ قَالَ: "لَا تَرَايَا نَارَاهُمَا".([1])

**ترجمه**: دجرير بن عبدالله رضي الله عنه نه روايت دي رسول الله صلي الله عليه وسلم خثعم قبيلي ته يوه سريه اوليږله «دکافرانو په مينځ کي بعضي اوسيدونکو مسلمانانو» دسجدي په ذريعه پناهي حاصلول اوغوښتل، مګر بيا هم ددوئ په قتل کولو کي جلتي اوکړي شوه نبي کريم صلي الله عليه وسلم ته چي ددي واقعي خبر ورسيدو نورسول الله دوئ ته دنيم ديت ورکولو حکم اوکړو او ويي فرمائيل زه دهر هغه مسلمان نه بيزاره يم څوك چي دمشرکانو په مينځ کي اوسيږي چاورنه تپوس اوکړو اي دالله رسوله دا ولي نو ويي فرمائيل «دمسلمان دپاره دکافرانو نه لري اوسيدل پکاردي» چي هغوئ دواړه دي يو بل د پخولو اور اونه ليدلي شي.

*****************

١٦٠٥_ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا عَبْدَةُ، عَنْ إِسْمَاعِيلَ بْنِ أَبِي خَالِدٍ، عَنْ قَيْسِ بْنِ أَبِي حَازِمٍ، مِثْلَ حَدِيثِ أَبِي مُعَاوِيَةَ وَلَمْ يَذْكُرْ فِيهِ عَنْ جَرِيرٍ وَهَذَا أَصَحُّ، وَفِي الْبَابِ، عَنْ سَمُرَةَ، قَالَ أَبُو عِيسَى: وَأَكْثَرُ أَصْحَابِ إِسْمَاعِيلَ، عَنْ قَيْسِ بْنِ أَبِي حَازِمٍ، أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعَثَ سَرِيَّةً، وَلَمْ يَذْكُرُوا فِيهِ عَنْ جَرِيرٍ، وَرَوَاهُ حَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ، عَنِ الْحَجَّاجِ بْنِ أَرْطَاةَ، عَنْ إِسْمَاعِيلَ بْنِ أَبِي خَالِدٍ، عَنْ قَيْسٍ، عَنْ جَرِيرٍ، مِثْلَ حَدِيثِ أَبِي مُعَاوِيَةَ، قَالَ: وَسَمِعْتُ مُحَمَّدًا يَقُولُ: الصَّحِيحُ حَدِيثُ قَيْسٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُرْسَلٌ، وَرَوَى سَمُرَةُ بْنُ جُنْدَبٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "لَا تُسَاكِنُوا الْمُشْرِكِينَ، وَلَا تُجَامِعُوهُمْ، فَمَنْ سَاكَنَهُمْ أَوْ جَامَعَهُمْ، فَهُوَ مِثْلُهُمْ".([2])

**ترجمه**: عبده په سند داسماعيل بن ابي خالد عن قيس بن ابي حازم عن النبي صلي الله عليه وسلم سره مرسل نقل کړي دي او دابو معاويه دحديث پشان روايت يي بيان کړي دي او په دي کي عبده دجرير واسطه نه ده ذکر کړي.

امام ترمذي وايي: دا روايت زيات صحيح دي، داسماعيل بن ابي خالد اکثر شاګردان داسماعيل په واسطه دقيس بن ابي حازم نه مرسل روايت نقل کوي چي رسول الله صلي الله

[1] _ سنن ابي داود_ الجهاد ١٠٥ (٢٦٤٥). سنن النسائي_ القسامة ٢٦ (٤٧٨٤). (تحفة الأشراف: ٣٢٢٤)

[2] _ سنن النسائي_ القسامة ٢٦ (٤٧٨٣). (تحفة الأشراف: ١٩٢٣٣)

عليه وسلم يوه سريه اوليږله او په دي کي هغوئ دجرير واسطه نه ده ذکر کړي، او حماد بن سلمه دارِوايت په سند د حجاج بن ارطات عن اسماعيل بن ابي خالد عن قيس عن جرير سره مرفوعا نقل کړي دي او دابو معاويه درِوايت پشان روايت يي بيان کړي دي، ما دامام بخاري نه اوريدلي دي صحيح داده چي دقيس حديث درسول الله صلي الله عليه وسلم نه مرسل منقول دي دارنګي سمره بن جندب دنبي کريم صلي الله عليه وسلم نه روايت نقل کړي دي چي فرمائيل يي دمشرکانو سره مه اوسيږئ او مه ددوئ سره ناسته اختياروئ ځوك چي ددوئ سره اوسيږي او يا ورسره ناسته کوي نو دي به هم دهغوئ دجملي نه ګڼړلي کيږي ، او په دي باب کي دسمره رضي الله عنه نه هم روايت وارد دي.

****************

## ٤٣ـ باب مَا جَاءَ فِي إِخْرَاجِ الْيَهُودِ وَالنَّصَارَى مِنْ جَزِيرَةِ الْعَرَبِ

### دجزيرة العرب نه ديهود او نصاري دشړلو بيان

١٦٠٦ـ حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْكِنْدِيُّ، حَدَّثَنَا زَيْدُ بْنُ الْحُبَابِ، أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ، عَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "لَئِنْ عِشْتُ إِنْ شَاءَ اللَّهُ، لَأُخْرِجَنَّ الْيَهُودَ وَالنَّصَارَى مِنْ جَزِيرَةِ الْعَرَبِ".[1]

**ترجمه** : دعمربن الخطاب رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي که چري زه ژوندي پاتي شوم نو انشاء الله يهود او نصاري به دجزيرة العرب نه بهر اوباسم.

****************

١٦٠٧ـ حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ الْخَلَّالُ، حَدَّثَنَا أَبُو عَاصِمٍ، وَعَبْدُ الرَّزَّاقِ، قَالَا: أَخْبَرَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِي أَبُو الزُّبَيْرِ، أَنَّهُ سَمِعَ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ، يَقُولُ: أَخْبَرَنِي عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ، أَنَّهُ سَمِعَ

---

[1] ـ صحيح مسلم ـ الجهاد ٢١ (١٧٦٧) ، سنن ابي داود ـ الخراج والإمارة ٢٨ (٣٠٣٠) . (تحفة الأشراف : ١٠٤١٩) . واحمد في المسند (١ـ ٣٢)

رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: "لَأُخْرِجَنَّ الْيَهُودَ وَالنَّصَارَى مِنْ جَزِيرَةِ الْعَرَبِ، فَلَا أَتْرُكُ فِيهَا إِلَّا مُسْلِمًا". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (1)

**ترجمه** : دعمربن الخطاب رضي الله عنه نه مروي دي درسول الله صلي الله عليه وسلم نه مي اوريدلي دي زه به دجزيرة العرب نه يهود او نصاري ضرور اوباسم او په دي كي به صرف مسلمانان پريږدم.

امام ترمذي وايي : دا حديث حسن صحيح دي.

**تشريح**: امام نووي په دي مسئله مستقل باب قائم كړى دى چي شيطان په جزيرة العرب خپل تسلط نشي قائمولى ''شيطان ددي خبري نه مايوسه دي چي په جزيرة العرب كښ به يي عبادت وشي'' اود استدلال دپاره يي يو مرفوع حديث نقل كړى دي ستاسود فائدي دپاره دلته دمقام داقتضاء په سبب نقل كوو:

عن جابر ﷺ قَالَ : سَمِعْتُ رسول الله ﷺ يقولُ : ((إِنَّ الشَّيْطَانَ قَدْ يَئِسَ أَنْ يَعْبُدَهُ الْمُصَلُّونَ فِي جَزِيرَةِ الْعَرَبِ ، وَلَكِنْ فِي التَّحْرِيشِ بَيْنَهُمْ)) . رواه مسلم .

أخرجه: مسلم كتاب صفة القيامة والنار باب تحريش الشيطان ١٣٨/٨ (٢٨١٢) (٦٥) واحمد في مسنده والترمذي وابن حبان.

دجابر رضي الله عنه نه روايت دى چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي شيطان نااميده شوى دى چي په جزيرة العرب كښ به مونځ گذار مسلمانان دهغه عبادت اوكړي ليكن ددوئ ترمينځه فساد اچولو نه نه دى مايوس شوى.

پورتنى حديث دنبوت دمعجزاتو نه دى چي رسول الله صلي الله عليه وسلم دراتلونكو خبرو متعلق خبر وركړى دى هغه هم هغه شان واقع شوي دي. دلته پدي روايت كښ قدأيس لفظ دي او په بل روايت كښ ان الشيطان قد يئس او په مسند احمد كښ قد يئس الشيطان الفاظ راغلي دي.

ولكن في التحريش بينهم: ليكن هغوئ پخپل مينځ كښ ورانى او قطع دتعلق پيدا كوي ددينه معلومه شوه چي شيطان هر وخت ددي خبري كوشش كوي چي مسلمانان په جګړو او جنګونو كښ او بغض او عداوت كښ مبتلا كړي نو په دي وجه په هر مسلمان لازم دي چي خپل ځان په قابو كښ اوساتي او دشيطان نه په الله پناه اوغواړي.

1 _ صحيح مسلم_ الجهاد ٢١ (١٧٦٧) . سنن ابي داود_ الخراج والإمارة ٢٨ (٣٠٣٠) . (تحفة الأشراف : ١٠٤١٩) . واحمد في

***************

## ٤٤_ باب مَا جَاءَ فِي تَرِكَةِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

### درسول الله صلي الله عليه وسلم دتركي (ميراث) بيان

١٦٠٨_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرٍو، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: جَاءَتْ فَاطِمَةُ إِلَى أَبِي بَكْرٍ، فَقَالَتْ: مَنْ يَرِثُكَ؟ قَالَ: أَهْلِي وَوَلَدِي قَالَتْ: فَمَا لِي لَا أَرِثُ أَبِي؟ فَقَالَ أَبُو بَكْرٍ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: "لَا نُورَثُ، وَلَكِنِّي أَعُولُ مَنْ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَعُولُهُ، وَأُنْفِقُ عَلَى مَنْ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُنْفِقُ عَلَيْهِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَفِي الْبَابِ، عَنْ عُمَرَ، وَطَلْحَةَ، وَالزُّبَيْرِ، وَعَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَوْفٍ، وَسَعْدٍ، وَعَائِشَةَ، وَحَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ مِنْ هَذَا الْوَجْهِ، إِنَّمَا أَسْنَدَهُ حَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ، وَعَبْدُ الْوَهَّابِ بْنُ عَطَاءٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرٍو، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، وَسَأَلْتُ مُحَمَّدًا عَنْ هَذَا الْحَدِيثِ، فَقَالَ: لَا أَعْلَمُ أَحَدًا رَوَاهُ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرٍو، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، إِلَّا حَمَّادَ بْنَ سَلَمَةَ، وَرَوَى عَبْدُ الْوَهَّابِ بْنُ عَطَاءٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرٍو، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، نَحْوَ رِوَايَةِ حَمَّادِ بْنِ سَلَمَةَ.[1]

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه بيان دي فاطمه رضي الله عنها ابوبكر رضي الله عنه ته راغله او ويې وئيل ستا دوفات نه پس به ستا وارث څوك وي هغه اووئيل زما كور والا او زما اولاد به زما وارثان وي فاطمه اووئيل بيا څه وجه ده چي زه دخپل پلار وارثه جوړه نشم؟ ابوبكر رضي الله عنه اووئيل ما درسول الله صلي الله عليه وسلم نه اوريدلي دي فرمائيل يي چي زمونږ (دانبياؤ) څوك وارث نه وي (او بيا ابوبكر اووئيل) رسول الله صلي الله عليه وسلم چي به دچا كفالت كولو مونږ هم دهغوئ كفالت كوو او هغه چي به په چا باندي خرچه كوله مونږ هم په هغوئ باندي خرچه كوو.

امام ترمذي وايي : دابوهريره حديث په دي سند حسن غريب دي دا حديث حماد بن سلمه او عبدالوهاب بن عطاء مسند نقل كري دي دوئ دواړه دمحمد بن عمرو نه او محمد دابوسلمه نه او ابو سلمه دابوهريره رضي الله عنه نه روايت نقل كوي، ما دامام بخاري نه ددي حديث باره كي تپوس اوكړو نو هغه اووئيل ماته دحماد نه علاوه بل څوك نه دي معلوم چي دا حديث

[1] _ (تحفة الأشراف : ١٥٦٢٥) وانظر: اخرجه البخاري في الصحيح_ الخمس١(٣٠٩٢، ٣٠٩٣). والنفقات٣ (٦٧٢٥، ٦٧٢٦)

يي دمحمد بن عمرونه او محمد دابوسلمه نه او ابوسلمه دابوهريره نه مرفوعا نقل كړي دي.
دامام ترمذي قول دي عبدالوهاب بن عطاء هم دمحمد بن عمرو نه او محمد دابوسلمه نه او ابوسلمه دابوهريره رضي الله عنه نه دحماد درروايت پشان روايت نقل كړي دي. او په دي باب كي دعمر، طلحه، زبير، عبدالرحمن بن عوف، سعد او عائشه رضي الله عنهم نه هم احاديث وار دي

**تشريح**: د اهل اسلام دا اجماعي فيصله ده چي دانبياء عليهم السلام څوك وارث نه وي دانبياء عليهم السلام تركه دخيرات مال دي كوم چي دمسلمانانو په ضرورتونو كي صرف كول پكار دي ، ليكن شيعه ددي فيصلي مخالف دي څوك چي په ابوبكر صديق رضي الله عنه باندي طعن كوي چي ده درسول الله صلي الله عليه وسلم تركه فاطمه رضي الله عنها ته نه وه وركړي.
اهل تشيع اعتراض كړي دي نحن معاشرالانبياء لانورث ماتركناه صدقة، مونږ دانبياؤ ډله چالره دخپل مال نه وارث كوو مونږ چي څه پريږدو هغه به عمومي خيرات وي ، داحديث خبرواحد دي اودايت كريمه يوصيكم الله مخالف دي ، لهذا ددي روايت په وجه په ايت باندي دخبرواحد ترجيح لازميږي اوبيا دبل ايت كريمه سره هم دا روايت مخالف دي چي : وَوَرِثَ دَاوُدُ سُلَيْمٰنَ. الايه. سليمان عليه السلام ته ددواود عليه السلام ميراث پاتي شو په بل ايت كريمه كي دزكريا عليه السلام قول نقل شوي دي چه: فَهَبْ لِي مِن لَّدُنكَ وَلِيًّا (٥) يَرِثُنِي وَيَرِثُ مِنْ آلِ يَعْقُوبَ.
خلق ډيرنا اشنا بي وقوفان دي دومره هم نه پوهيږي چي داحديث زمونږ دپاره داحاد نه دي ليكن صديق اكبر رضي الله عنه چي كله پخپلو غوږونو درسول الله صلي الله عليه وسلم دژبي نه واوريدو نودا دمتواتر نه هم په درجه كي مخكي شو ، دمحسوس درجه دمتواتر نه زياته وي . بياداخبره چي ددي حديث روايت صرف ابوبكر رضي الله عنه كړي دي پخپل خاي باندي غلطه ده خكه چي ددي روايت دصحابه كرامو يو جماعت كړي دي په كوموكي چي حذيفه بن يمان ، ابو الدرداء عائشه ، ابوهريره رضي الله عنهم هم شامل دي.
دبخاري بيان دي چي عمر فاروق رضي الله عنه دصحابه كرامو ديوجماعت په وړاندي اوونيل چي په هغوى كي علي ، عباس ، عبدالرحمن بن عوف، زبير بن عوام. اوسعد . بن ابي وقاص رضي الله عنهم هم شامل وو چي زه تاسو ته په هغه الله باندي قسم دركوم دچاپه حكم چي زمكه اواسمان قائم دي اياتاسوته معلومه ده چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي "لانورث ماتركناه صدقة" مونږ چالره خپل وارث نه جوړوو اوڅه چي مونږ پريږدو هغه به خيرات وي ددينه مراد دنبي كريم صلي الله عليه وسلم خپل ذات وو ، صحابه كرامو جواب وركړو هو «هداسي يي فرمائيلي وو» او بيا اميرالمؤمنين عمر رضي الله عنه د علي او عباس رضي الله

عنهما طرف ته خصوصي توجه اوکړه او ويي وئيل زه تاسو دواړو ته په الله تعالي قسم درکوم اوتپوس درنه کوم چي اياتاسوته معلومه ده چي رسول الله داسي فرمائيلي وو ؟ دواړو اووئيل هو بيشکه (الحديث)

ددي تمامو صحابه کرامو روايات په کتابونودحديث کې دصحت سره مذکور دي ، پس دا حديث زمونږ په نزد باندي هم درجي دشهرت ته رسيدلي دي او امت اسلاميه هم په اتفاق سره قبول کړي دي او دټول ملت اسلاميه ددي په صحت باندي اجماع ده او د اهل تشيع په کتابونوکې هم داسي احاديث شته کوم چي ددي تائيد کوي ، محمد بن يعقوب راضي په روايت د ابو البختري سره دابو عبدالله جعفر بن محمد صادق قول نقل کړي دي چي نبي کريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي علماء دانبياؤ وارثان دي اوداپه دي شان سره چي انبياؤ نه درهم چاته په ميراث کې پريښودلي دي اونه دينار بلکه صرف خپل احاديث يي په ميراث کې پريښودلي دي چاته چي په دي احاديثو کې هر څومره حصه ملاو شوه نوهغه ته پوره حصه ملاو شوه (يعني پوره ميراث ورته ملاؤ شو) په حديث کې لفظ دما دحصر دپاره دي (مطلب دادي چي دانبياؤ ميراث مال نه وي دعلم نه سيوا دهغوئ هيڅ قسم ترکه په طور دميراث نشي تقسيميدي.

پاتي شو دايت کريمه : وَوَرِثَ دَاوُدُ سُلَيْمٰنَ. جواب نوپه دي کې دعلم ميراث مراد دي ايت هم په دي باندي دلالت کوي خکه چي سليمان عليه السلام فرمائيلي وو : وَقَالَ يَا أَيُّهَا النَّاسُ عُلِّمْنَا مَنْطِقَ الطَّيْرِ. په دي ايت کې د علمنا نه مراد دعلمي ميراث بيان دي ، دزکريا عليه السلام په دعا کې هم دداسي هلك دپاره دعا غوښتلي شوي ده څوك چي به دعلمي ميراث وارث وي خکه چي ددي خو امکان نشته چي يحيي بن زکريا عليهما السلام دتمامو بني اسرائيلو دمال وارث شوي وي مګر دعلم وارث کيدي شو او شوي وو (اوددي علمي ميراث دعا زکريا عليه السلام کړي وه) والله اعلم (تفسير مظهري).

***************

١٦٠٩_ حَدَّثَنَا بِذَلِكَ عَلِيُّ بْنُ عِيسَى، قَالَ: حَدَّثَنَا عَبْدُ الوَهَّابِ بْنُ عَطَاءٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَمْرٍو، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ فَاطِمَةَ جَاءَتْ أَبَا بَكْرٍ، وَعُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، تَسْأَلُ مِيرَاثَهَا مِنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَا: سَمِعْنَا رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: "إِنِّي لَا أُورَثُ"، قَالَتْ: وَاللَّهِ لَا أُكَلِّمُكُمَا أَبَدًا، فَمَاتَتْ وَلَا تُكَلِّمُهُمَا، قَالَ عَلِيُّ بْنُ عِيسَى: مَعْنَى لَا أُكَلِّمُكُمَا تَعْنِي: فِي هَذَا

الْمِيرَاثِ أَبَدًا أَلْبَتَّةً صَادِقَانِ، وَقَدْ رُوِيَ هَذَا الْحَدِيثُ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ عَنْ أَبِي بَكْرٍ الصِّدِّيقِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. (١)

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي چي فاطمه رضي الله عنها ابوبكر او عمر رضي الله عنهما ته ورغله او درسول الله صلي الله عليه وسلم په ميراث كي يي خپله حصه طلب كوله دوئ دواړه اووئيل مونږ درسول الله صلي الله عليه وسلم نه اوريدلي دي زما څوك وارث نشته فاطمي رضي الله عنها اووئيل په الله قسم زه به تاسو دواړو سره كله هم خبري نه كوم چنانچي فاطمه وفات شوه ليكن ددوئ دواړو سره يي خبري اونكړي دحديث راوي علي بن عيسي وائي د "لااكلمكما" مطلب دادي چي ميراث په سلسله كي به ستاسو سره خبري اونكړم او تاسو دواړه رښتوني يئ (امام ترمذي وائي) داحديث په يو څو سندونو دابوبكر رضي الله عنه په واسطه درسول الله صلي الله عليه وسلم نه مروي دي.

***************

١٦١٠ـ حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ الْخَلَّالُ، أَخْبَرَنَا بِشْرُ بْنُ عُمَرَ، حَدَّثَنَا مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ مَالِكِ بْنِ أَوْسِ بْنِ الْحَدَثَانِ، قَالَ: دَخَلْتُ عَلَى عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ، وَدَخَلَ عَلَيْهِ عُثْمَانُ بْنُ عَفَّانَ، وَالزُّبَيْرُ بْنُ الْعَوَّامِ، وَعَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ عَوْفٍ، وَسَعْدُ بْنُ أَبِي وَقَّاصٍ، ثُمَّ جَاءَ عَلِيٌّ، وَالْعَبَّاسُ، يَخْتَصِمَانِ، فَقَالَ عُمَرُ لَهُمْ: أَنْشُدُكُمْ بِاللَّهِ الَّذِي بِإِذْنِهِ تَقُومُ السَّمَاءُ وَالأَرْضُ، تَعْلَمُونَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "لَا نُورَثُ مَا تَرَكْنَا صَدَقَةٌ؟". قَالُوا: نَعَمْ، قَالَ عُمَرُ: فَلَمَّا تُوُفِّيَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ أَبُو بَكْرٍ: أَنَا وَلِيُّ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَجِئْتَ أَنْتَ وَهَذَا إِلَى أَبِي بَكْرٍ تَطْلُبُ أَنْتَ مِيرَاثَكَ مِنَ ابْنِ أَخِيكَ، وَيَطْلُبُ هَذَا مِيرَاثَ امْرَأَتِهِ مِنْ أَبِيهَا، فَقَالَ أَبُو بَكْرٍ: إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "لَا نُورَثُ مَا تَرَكْنَا صَدَقَةٌ"، وَاللَّهُ يَعْلَمُ إِنَّهُ صَادِقٌ بَارٌّ رَاشِدٌ تَابِعٌ لِلْحَقِّ، قَالَ أَبُو عِيسَى: وَفِي الْحَدِيثِ قِصَّةٌ طَوِيلَةٌ، وَهَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ مِنْ حَدِيثِ مَالِكِ بْنِ أَنَسٍ. (٢)

---

1 ـ (تحفة الأشراف: ٦٦٢٥) وانظر: اخرجه البخاري في الصحيح_ الخمس ١(٣٠٩٢، ٣٠٩٣)، والنفقات ٣(٦٧٢٥ و ٦٧٢٦)

2 ـ البخاري_ الخمس ١ (٣٠٩٤)، والمغازي ١٣ (٤٠٣٣)، والنفقات ٣ (٥٣٥٧)، والفرائض ٣ (٦٧٢٨)، والاعتصام ٥ (٧٣٠٥)، صحيح مسلم_ الجهاد ١٥ (١٧٥٧_ ٤٩)، سنن ابي داود_ الخراج والإمارة ١٩ (٢٩٦٣)، (تحفة الأشراف: ١٠٦٣٢)، و احمد في المسند (١_ ٢٥)

**ترجمه** : دمالك بن اوس بن حدثان بيان دي فرماني چي زه او عمر بن خطاب رضي الله عنه ته ورغلم او په دي دوران كي هغوئ ته عثمان بن عفان، زبير بن عوام، عبدالرحمن بن عوف، او سعد بن ابي وقاص رضي الله عنهم هم راغلل او بيا علي او عباس رضي الله عنهما دجګړي كولو په حالت كي راغلل، عمر رضي الله عنه ددوئ نه تپوس اوكړو زه تاسو ته په هغه الله قسم دركوم دچا په حكم چي زمكه او اسمان قائم دي او تاسو ته معلومه ده چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي زمونږ «دانبياؤ» څوك وارث نه وي او كوم څيز چي مونږ پريږدو هغه صدقه وي خلقو اوونيل هو همداسي ده عمر رضي الله عنه اوفرمانيل هر كله چي رسول الله وفات شو نو ابوبكر اوونيل زه درسول الله قائم مقام يم بيا ته «عباس» دخپل وراره په ميراث كي دخپلي حصي غوښتل غواړي، او دي «علي» دخپلي ښځي دپلار په ميراث كي دحصي طلب كول غواړي نو ابوبكر اوونيل بيشكه رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي وو زمونږ يعني دانبياؤ څوك وارث نه وي او مونږ چي څه پريږدو هغه صدقه وي عمررضي الله عنه اوونيل الله تعالي ښه پوهيږي چي ابوبكر رښتوني او نيك او دنيكئ پيروي كونكي دي.

امام ترمذي وايي : په دي حديث كي تفصيل دي، او داحديث دمالك بن اوس په روايت حسن صحيح غريب دي.

***************

## ٤٥_ بَاب مَا جَاءَ مَا قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ فَتْحِ مَكَّةَ إِنَّ هَذِهِ لَا تُغْزَى بَعْدَ الْيَوْمِ

### دفتح مكي په ورځ دا ارشاد نبوي چي په مكه كي به د نن نه پس جهاد نه كيږي

١٦١١_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا زَكَرِيَّا بْنُ أَبِي زَائِدَةَ، عَنِ الشَّعْبِيِّ، عَنِ الْحَارِثِ بْنِ مَالِكِ بْنِ الْبَرْصَاءِ، قَالَ: سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ فَتْحِ مَكَّةَ يَقُولُ: " لَا تُغْزَى هَذِهِ بَعْدَ الْيَوْمِ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَفِي الْبَابِ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، وَسُلَيْمَانَ بْنِ صُرَدٍ، وَمُطِيعٍ، وَهَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَهُوَ حَدِيثُ زَكَرِيَّا بْنِ أَبِي زَائِدَةَ، عَنِ الشَّعْبِيِّ، فَلَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِهِ. (1)

---

1 _ تفرد بذكره المؤلف (تحفة الأشراف: ٣٢٨٠)

**ترجمه** : دحارث بن مالك بن برصاء رضي الله عنه بيان دي چي دفتح مكي په ورځ مي دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه اوريدلي دي فرمائيل يې چي په مكه كي به دنن نه پس دقيامت دورځي پوري دكافرانو سره جهاد نه كيږي.
امام ترمذي وايي : داحديث حسن صحيح دي يعني دزكريا بن ابي زائده حديث كوم چي هغه دشعبي په واسطه نقل كړي دي او داحديث مونږ ته صرف ددي په روايت رارسيدلي دي، او په دي باب كي دابن عباس، سليمان بن صرد او مطيع رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي.

***************

## ٤٦ـ باب مَا جَاءَ فِي السَّاعَةِ الَّتِي يُسْتَحَبُّ فِيهَا الْقِتَالُ

### دجهاد دمستحب وخت بيان

١٦١٢ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا مُعَاذُ بْنُ هِشَامٍ، حَدَّثَنِي أَبِي، عَنْ قَتَادَةَ، عَنِ النُّعْمَانِ بْنِ مُقَرِّنٍ، قَالَ: " غَزَوْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَكَانَ إِذَا طَلَعَ الْفَجْرُ، أَمْسَكَ حَتَّى تَطْلُعَ الشَّمْسُ، فَإِذَا طَلَعَتْ، قَاتَلَ، فَإِذَا انْتَصَفَ النَّهَارُ، أَمْسَكَ حَتَّى تَزُولَ الشَّمْسُ، فَإِذَا زَالَتِ الشَّمْسُ، قَاتَلَ حَتَّى الْعَصْرِ، ثُمَّ أَمْسَكَ حَتَّى يُصَلِّيَ الْعَصْرَ، ثُمَّ يُقَاتِلُ، قَالَ: وَكَانَ يُقَالُ: عِنْدَ ذَلِكَ تَهِيجُ رِيَاحُ النَّصْرِ، وَيَدْعُو الْمُؤْمِنُونَ لِجُيُوشِهِمْ فِي صَلَاتِهِمْ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَقَدْ رُوِيَ هَذَا الْحَدِيثُ عَنِ النُّعْمَانِ بْنِ مُقَرِّنٍ بِإِسْنَادٍ أَوْصَلَ مِنْ هَذَا، وَقَتَادَةُ لَمْ يُدْرِكْ النُّعْمَانَ بْنَ مُقَرِّنٍ، وَمَاتَ النُّعْمَانُ بْنُ مُقَرِّنٍ فِي خِلَافَةِ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ. (1)

**ترجمه** : دنعمان بن مقرن رضي الله عنه بيان دي فرمائي چي ما درسول الله صلي الله عليه وسلم سره جهاد كړي دي كله چي به سحر نمر راختلو رسول الله صلي الله عليه وسلم به جنګ بندولو تردي چي نمر به پوره راوختلو كله چي به نمر پوره راوختلو نو رسول الله به په جهاد كي مشغول شو بيا چي به كله ماسپخين شو نو جنګ به يې بند كړو تردي پوري چي نمر پوره واوړي نمر چي به پوره واوړيدو نو دمازيګر پوري به يې جهاد جاري ساتلو او بيابه يې جنګ بند كړو تردي چي دمازيګر مونځ به يې اوكړو نو بيا به يې جهاد شروع كړو او دا خبره به كيدله چي دي وخت كي دنصرت الهى هوا چليږي او مومنانو به پخپلو مونځونو كي دمجاهدينو دپاره دعاګاني غوښتلي.

---

1 ـ تفرد بذكره المؤلف وانظر الحديث الآتي (تحفة الأشراف : ١١٦٢٩)

امام ترمذي وايي دنعمان بن مقرن دا حديث په نورو سندونو هم مروي دي او موصول دي او دنعمان سره د قتاده ملاقات نه دي شوي او نعمان بن مقرن دعمر رضي الله عنه دخلافت په زمانه كي وفات شوي دي.

## دابوعمرو يا ابو حكيم نعمان بن مقرن رضي الله عنه حالات

نوم نعمان دپلار نوم عمرو بن مقرن يا عائذ مزني دى كنيه يي ابوعمرو ده او بعضو خلقو ابو الحكيم كنيه بيان كري ده نعمان مشهور صحابي دى داسلام دراوړلوواقعه يي داسي وه چي درسول الله صلي الله عليه وسلم په خدمت كي دځلور سوه كسانو سره حاضر شو او مسلمان شو په بصره كي اوسيدو بيا كوفي ته منتقل شو او عمر رضي الله عنه دنهاون مقام حاكم مقرر كړو دهجرت په شلم كال په نهاون كي شهيد شوتوټل ورنه شپږ روايات مروي دي.

***************

١٦١٣_ حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ الْخَلَّالُ، حَدَّثَنَا عَفَّانُ بْنُ مُسْلِمٍ، وَالْحَجَّاجُ بْنُ مِنْهَالٍ، قَالَا: حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ، حَدَّثَنَا أَبُو عِمْرَانَ الْجَوْنِيُّ، عَنْ عَلْقَمَةَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ الْمُزَنِيِّ، عَنْ مَعْقِلِ بْنِ يَسَارٍ، أَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ، بَعَثَ النُّعْمَانَ بْنَ مُقَرِّنٍ إِلَى الْهُرْمُزَانِ، فَذَكَرَ الْحَدِيثَ بِطُولِهِ، فَقَالَ النُّعْمَانُ بْنُ مُقَرِّنٍ: شَهِدْتُ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " فَكَانَ إِذَا لَمْ يُقَاتِلْ أَوَّلَ النَّهَارِ، انْتَظَرَ حَتَّى تَزُولَ الشَّمْسُ وَتَهُبَّ الرِّيَاحُ وَيَنْزِلَ النَّصْرُ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَعَلْقَمَةُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ هُوَ أَخُو بَكْرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ الْمُزَنِيِّ. [1]

**ترجمه** : دمعقل بن يسار رضي الله عنه بيان دي فرمائي چي عمر رضي الله عنه نعمان بن مقرن هرمزان ته اوليږلو او بيا هغوئ پوره حديث بيان كړو نعمان بن مقرن اووئيل زه درسول الله صلي الله عليه وسلم سره په كوم جهاد كي حاضر وم او رسول الله به دورځي دشروع په حصه كي نه جګيدلو او انتظار به يي كولو تردي چي نمر به پوره راوختلو او هوا به لګيدله او نصرت الهي به نازليدو.

امام ترمذي وايي : داحديث حسن صحيح دي.

## د معقل بن يسار رضي الله عنه حالات

نوم معقل كنيه ابو عبدالله دپلار نوم يساربن عبدالله بن صغير بن حراق ، دصلح حديبيه نه مخكي مسلمان شوى وو او بيايي په صلح حديبيه كي درسول الله صلي الله عليه وسلم سره ملګرتيا هم وكړه كله چي رسول الله صلي الله عليه وسلم دصحابه كرامو نه په مرګ بيعت

---

[1] _ البخاري_ الجزية ١ (٣١٦٠) . سنن ابي داود_ الجهاد ١١١ (٢٦٥٥) . (تحفة الأشراف : ٩٣٠٤)

اخستلو نو يوه لخته يي راواخستله او په رسول الله يي سوري اوكړو رسول الله ده لره دمزينه قبيلي قاضي مقررول اوغوښتل ليكن ده دوه پيري انكار اوكړو بيا رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل الله دقاضي سره وي خو چي ظلم نه كوي بيا ددينه پس قاضي مقرر شو عمر فاروق رضي الله عنه به دده ډير عزت كولو او په اهمو كارونو كي به يي ورسره مشوره هم كوله كله چي عمر رضي الله عنه ابو موسي اشعري ته په بصره كي ديو نهر كنستلو حكم اوكړو نو بيايي اوفرمائيل چي دكنستلو نه پس دمعقل په لاسونو په دي كي اوبه جاري كړئ او بيا څه موده پس دامير معاويه په زمانه كي زياد دا نهر درست كړو او دمعقل په لاسونو يي په دي كي اوبه جاري كړي غرض دا چي دامير معاويه په زمانه كي وفات شو او عمر يي دشپيتو او اويا كالو په مينځ كي وو (اصابه).

دده دمروياتو شمير ۱۳۴ دی چي يو پكي متفق عليه دی او په يو كي بخاري او مسلم متفرد دي.

***************

## ٤٧_ باب مَا جَاءَ فِي الطِّيَرَةِ وَالْفَأْلِ

### دبدفالئ او نيك فالئ بيان

١٦١٤_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ سَلَمَةَ بْنِ كُهَيْلٍ، عَنْ عِيسَى بْنِ عَاصِمٍ، عَنْ زِرٍّ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " الطِّيَرَةُ مِنَ الشِّرْكِ وَمَا مِنَّا، وَلَكِنَّ اللَّهَ يُذْهِبُهُ بِالتَّوَكُّلِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَفِي الْبَابِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، وَحَابِسٍ التَّمِيمِيِّ، وَعَائِشَةَ، وَابْنِ عُمَرَ، وَسَعْدٍ، وَهَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ سَلَمَةَ بْنِ كُهَيْلٍ، وَرَوَى شُعْبَةُ أَيْضًا، عَنْ سَلَمَةَ هَذَا الْحَدِيثَ، قَالَ: سَمِعْت مُحَمَّدَ بْنَ إِسْمَاعِيل، يَقُولُ: كَانَ سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ، يَقُولُ فِي هَذَا الْحَدِيثِ: " وَمَا مِنَّا وَلَكِنَّ اللَّهَ يُذْهِبُهُ بِالتَّوَكُّلِ "، قَالَ سُلَيْمَانُ: هَذَا عِنْدِي قَوْلُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ: " وَمَا مِنَّا ".[1]

**ترجمه** : دعبدالله بن مسعود رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي بدفالي نيول شرك دي (ابن مسعودرضي الله عنه وائي په مونږ كي هيڅوك داسي نشته دچا په زړه كي چي ددي خبري وهم او خيال نه پيدا كيږي ليكن الله تعالي دي وهم او خيال لره دتوكل په وجه زائل كوي.

---

[1] _ ابي داود_ الطب ٢٣ (٣٩١٠) ، ابن ماجه_ الطب ٤٣ (٣٥٣٨) . (تحفة الأشراف : ٩٢٠٧)

امام ترمذي وايي : داحديث حسن صحيح دي او دامونږ ته صرف دسلمه بن كهيل په سند رارسيدلي دي اوشعبه هم دسلمه نه دا حديث نقل كړي دي، امام ترمذي وائي ما دامام بخاري نه اوريدلي دي چي د سليمان بن حرب په دي حديث كي "وما منا ولكن الله يذهبه بالتوكل" متعلق يي ونيل چي وما منا زما په نزد دعبدالله بن مسعود قول دي، او په دي باب كي دابوهريره، حابس تميمي، عائشه، ابن عمر، او سعد رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي.

**تشريح** : په پورتني حديث كي مسلمانان دجاهليت دزماني ديو څو كارونو نه منع كړی شوي دي چي په دي باندي اعتماد كول حرام ګرځولی شوي دي.

چي يو په دوئ كي : الطيرة: دمرغو په ذريعه فال ويستل مرغئ به يي والوزوله او كه چري په ښئ طرف به لاړه نو نيك فال به يي نيولو او كه په چپ طرف به لاړه نو بدفالي به يي نيولو.

دطيرة معني فال نيول دي برابره خبره ده چي نيك فال وي او كه بد وي خو بيا رسول الله په بدفالئ پوري خاص كړي دي او دنيك فالئ دپاره يي فال لفظ استعمال كړي دي په راتلونكي حديث كي راروان دي چي په اسلام كي دعدوي او طيره هيڅ حيثيت نشته مګر زه فال خوښوم صحابه كرامو عرض اوكړو فال څه څيز دي؟ دي سوال ته څكه ضرورت پيښ شو چي رسول الله دايونوي لفظ استعمال كړي دي.

***************

١٦١٥ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عَدِيٍّ، عَنْ هِشَامٍ الدَّسْتُوَائِيِّ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَنَسٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "لَا عَدْوَى وَلَا طِيَرَةَ، وَأُحِبُّ الْفَأْلَ". قَالُوا: يَا رَسُولَ اللَّهِ، وَمَا الْفَأْلُ؟ قَالَ: "الْكَلِمَةُ الطَّيِّبَةُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (1)

**ترجمه** : انس رضي الله عنه نه روايت دی چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي ديو چانه مرض بل چاته لګيدل او بدفالي نيول هيڅ شی نه دی البته نيك فالي مي خوښه ده خلقو عرض اوكړو نيك فالي څه شی دی هغوئ اوفرمائيل ښه خبره لكه څوك اووائي داشی ډير بختور دی ډير ښائسته دی الله تعالي دی يی درپوری بختور كړي.

امام ترمذي وايي : دا حديث حسن صحيح دی.

**لغات** : طير: الطائر جمع دطائر ده اود مفرد دپاره هم راځي اسم دي دتطير په معني دبد فالئ نيولو دي لكه چي عرب وايي لاطير الاطير الله.

---

[1] ـ اخرجه البخاري في الصحيح ـ الطب ٤٣ (٥٧٥٦)، و ٥٣ (٥٧٧٦). صحيح مسلم ـ السلام ٣٤ (٢٢٢٤). (تحفة الأشراف: ١٣٥٨)، واحمد في المسند (٣ـ ١١٨)

**تشريح**: "لا عدوي" يعني د يونه بل ته دبيمارۍ لګيدل او منتقل کيدل نشته، مطلب دادي چي د يوکس نه بل کس ته بيماري نشي لګيدلي. يا دلته دنفي په معني دي يعني تاسو کومه بيماري پدي معني متعدي مه ګڼۍ چي فلاني کس دفلاني دبيمارۍ په وجه بيمار شوي دي.

الکلمة الطيبة. يعني نيک فال نيول درست دي، او بد فال نيول منع دي، د ښي کلمي مطلب دادي چي کوم کس داسي جمله واوري دکوم په سبب چي دخپل مقصود دحاصليدو اميدوار شي او دا جمله يو نيک فال وګڼي.

***************

١٦١٦ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ رَافِعٍ، حَدَّثَنَا أَبُو عَامِرٍ الْعَقَدِيُّ، عَنْ حَمَّادِ بْنِ سَلَمَةَ، عَنْ حُمَيْدٍ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "كَانَ يُعْجِبُهُ إِذَا خَرَجَ لِحَاجَةٍ، أَنْ يَسْمَعَ يَا رَاشِدُ يَا نَجِيحُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ صَحِيحٌ. (1)

**ترجمه**: دانس رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم به د ياراشد، يانجيح لفظ اوريدل خوښول.

امام ترمذي وايي: داحديث حسن غريب صحيح دي.

***************

## ٤٨ـ باب مَا جَاءَ فِي وَصِيَّتِهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْقِتَالِ

### دجهاد باره کي درسول الله صلي الله عليه وسلم وصيت

١٦١٧ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ عَلْقَمَةَ بْنِ مَرْثَدٍ، عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ بُرَيْدَةَ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا بَعَثَ أَمِيرًا عَلَى جَيْشٍ، أَوْصَاهُ فِي خَاصَّةِ نَفْسِهِ بِتَقْوَى اللَّهِ وَمَنْ مَعَهُ مِنَ الْمُسْلِمِينَ خَيْرًا، وَقَالَ: "اغْزُوا بِسْمِ اللَّهِ، وَفِي سَبِيلِ اللَّهِ قَاتِلُوا مَنْ كَفَرَ بِاللَّهِ، وَلَا تَغُلُّوا، وَلَا تَغْدِرُوا، وَلَا تُمَثِّلُوا، وَلَا تَقْتُلُوا وَلِيدًا، فَإِذَا لَقِيتَ عَدُوَّكَ مِنَ الْمُشْرِكِينَ، فَادْعُهُمْ إِلَى إِحْدَى ثَلَاثِ خِصَالٍ أَوْ خِلَالٍ، أَيَّتُهَا أَجَابُوكَ فَاقْبَلْ مِنْهُمْ وَكُفَّ عَنْهُمْ وَادْعُهُمْ إِلَى الْإِسْلَامِ وَالتَّحَوُّلِ مِنْ دَارِهِمْ إِلَى دَارِ الْمُهَاجِرِينَ، وَأَخْبِرْهُمْ أَنَّهُمْ إِنْ فَعَلُوا ذَلِكَ، فَإِنَّ لَهُمْ مَا لِلْمُهَاجِرِينَ وَعَلَيْهِمْ مَا عَلَى الْمُهَاجِرِينَ، وَإِنْ أَبَوْا أَنْ يَتَحَوَّلُوا،

(1) ـ تفرد به كره المؤلف (تحفة الأشراف: ٦٢٢)

فَأَخْبِرْهُمْ أَنَّهُمْ يَكُونُوا كَأَعْرَابِ الْمُسْلِمِينَ يَجْرِي عَلَيْهِمْ مَا يَجْرِي عَلَى الأَعْرَابِ، لَيْسَ لَهُمْ فِي الْغَنِيمَةِ وَالْفَيْءِ شَيْءٌ إِلاَّ أَنْ يُجَاهِدُوا، فَإِنْ أَبَوْا، فَاسْتَعِنْ بِاللَّهِ عَلَيْهِمْ وَقَاتِلْهُمْ، وَإِذَا حَاصَرْتَ حِصْنًا فَأَرَادُوكَ أَنْ تَجْعَلَ لَهُمْ ذِمَّةَ اللَّهِ وَذِمَّةَ نَبِيِّهِ، فَلاَ تَجْعَلْ لَهُمْ ذِمَّةَ اللَّهِ وَلاَ ذِمَّةَ نَبِيِّهِ، وَاجْعَلْ لَهُمْ ذِمَّتَكَ وَذِمَمَ أَصْحَابِكَ، لأَنَّكُمْ إِنْ تَخْفِرُوا ذِمَّتَكُمْ وَذِمَمَ أَصْحَابِكُمْ خَيْرٌ مِنْ أَنْ تَخْفِرُوا ذِمَّةَ اللَّهِ وَذِمَّةَ رَسُولِهِ، وَإِذَا حَاصَرْتَ أَهْلَ حِصْنٍ فَأَرَادُوكَ أَنْ تُنْزِلَهُمْ عَلَى حُكْمِ اللَّهِ، فَلاَ تُنْزِلُوهُمْ، وَلَكِنْ أَنْزِلْهُمْ عَلَى حُكْمِكَ، فَإِنَّكَ لاَ تَدْرِي أَتُصِيبُ حُكْمَ اللَّهِ فِيهِمْ أَمْ لاَ أَوْ نَحْوَ هَذَا ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَفِي الْبَابِ، عَنِ النُّعْمَانِ بْنِ مُقَرِّنٍ، وَحَدِيثُ بُرَيْدَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.[1]

**ترجمه** : دبريده رضي الله عنه بيان دي فرمائي چي کله به رسول الله صلي الله عليه وسلم په کوم لښکر باندي امير مقررولو نو هغه ته به يي دهغه دنفس په باره کي دالله تعالي نه دويري کولو او چي کوم مسلمانان به ورسره وو دهغوئ سره به يي ورته دښيګړي کولو وصيت کولو اوبيا به يي ددينه پس فرمائيل دالله په لاره کي او دالله په نوم جهاد شروع کړئ دهغه خلقو سره ځوك چي دالله تعالي نه انکار کونکي دي، او دغنيمت په مال کي خيانت مه کوئ، او عهد مه ماتوئ او مثله مه کوئ او ماشومان مه قتل کوئ او کله چي تاسو دخپلو مشرکانو دشمنانو سره مخامخ شئ نو دوئ ته په دري خبرو کي ديوي خبري دعوت ورکوئ که په دي خبرو کي کومه يوه هم اومني نو قبول يي کړه او جنګ ورسره مه کوه اول دوئ ته داسلام راوړلو او دخپل وطن نه دمهاجرينو طرف ته دهجرت دعوت ورکړئ او دوئ ته اووائي که چري تاسو داسي اوکړل نو ستاسو دپاره به هغه حقوق وي کوم چي دمهاجرينو دپاره دي او په دوئ به هغه ذمه واريانې نافذ وي کومي چي دمهاجرينو دي او که دوئ دهجرت کولو نه انکار اوکړي نو دوئ ته اووائي چي دا باندچيان به دمسلمانانو پشان وي او په دوئ به هغه احکام جاري وي کوم چي په باندچيانو مسلمانانو جاري وي او په مال في او غنيمت کي ددي هيڅ حصه نشته مګر هله چي دوئ دمسلمانانو سره شريك شي او جهاد اوکړي بيا که چري دوئ دداسي کولو نه انکاراوکړي نو په دوئ باندي دغالب کيدلو دپاره دالله تعالي نه مدد اوغواړئ او جهاد ورسره شروع کړئ بيا چي کله تاسو کومه قلامحاصره کړئ او هغوئ ستاسو نه دالله او دهغه درسول پناه اوغواړي نو تاسو ورته دالله او دهغه درسول پناه مه ورکوئ بلکه دخپل ځان او دخپلو ملګرو پناه ورته ورکړئ (ددي خلاف مه کوئ) او دا ځکه که چري تاسو خپله او دخپلو ملګرو

---

[1] _ صحيح مسلم_ الجهاد ۲ (۱۷۳۱) . سنن ابي داود_ الجهاد ۹۰ (۲۶۱۲) . سنن ابن ماجه_ الجهاد ۳۸ (۲۸۵۸) . (تحفة الأشراف : ۱۹۲۹) . و احمد في المسند (۵_ ۳۵۲، ۳۵۸) . سنن الدارمي_ السير ۵ (۲۴۸۳)

عهد مات کړی نودا به ددینه زیات بهتر وي چي تاسو دالله او دهغه د رسول عهد مات کړئ او کله چي تاسو کومه قلامحاصره کړئ او هغوئ غواړي چي تاسو دوئ لره دالله په فیصلي راکوز کړئ نو دوئ دالله په فیصلي مه راکوزوئ بلکه پخپله فیصله یي راکوز کړئ او دا ځکه چي تاسو ته نه ده معلومه چي په دي سلسله کي به تاسو دالله فیصلي ته ورسیږئ او کنه رسول الله ددي پشان بعضي نور ارشادات هم اوفرمائیل.

امام ترمذي وایي : دبریده حدیث حسن صحیح دي او په دي باب کي دنعمان بن مقرن رضي الله عنه نه هم روایت وارد دي.

## دبریده رضي الله عنه حالات

نوم بریده کنیه ابو عبدالله او دپلار نوم مصیب بن عبدالله.

کله چي رسول الله صلي الله علیه وسلم مدیني ته ورسیدو نو بریده یي په خدمت کي حاضر شو نو رسول الله ورته داسلام دعوت ورکړو نو دی فورا مسلمان شو او دده سره دبني اسلم اتیا کسان په اسلام کي داخل شول (طبقات ابن سعد).

په صلح حدیبیه او بیعة الرضوان کي یي هم شرکت کړی دی (اسد الغابه).

او په فتح مکه کي یي هم ملګرتیا کړي وه (مسند احمد).

تقریبا په شپاړسو غزواتو کي شریك پاتي شوی دی (بخاري کتاب المغازي).

کله چي رسول الله صلي الله علیه وسلم داسامه په مشرئ کي اخر لښکر تیار کړو نو په دي کي هم شریك وو (طبقات ابن سعد).

غرض دا چي دده په رګ رګ کي دجهاد جذبي توپونه وهل او دژوند مزه به یي داسونو په زغلولو کي لیدله (طبقات ابن سعد).

دیزید په زمانه کي دهجرت په ۶۳ کال وفات شو چي دمرویاتو شمیر یي ۱۲۴ دی یو متفق علیه دی او دوه په بخاري کي دي یولس په مسلم کي دي (تهذیب الکمال).

**************

حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ. حَدَّثَنَا أَبُو أَحْمَدَ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ عَلْقَمَةَ بْنِ مَرْثَدٍ، نَحْوَهُ بِمَعْنَاهُ، وَزَادَ فِيهِ: " فَإِنْ أَبَوْا، فَخُذْ مِنْهُمُ الْجِزْيَةَ. فَإِنْ أَبَوْا، فَاسْتَعِنْ بِاللَّهِ عَلَيْهِمْ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَكَذَا رَوَاهُ

وَكِيعٌ، وَغَيْرُ وَاحِدٍ، عَنْ سُفْيَانَ، وَرَوَى غَيْرُ مُحَمَّدِ بْنِ بَشَّارٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ مَهْدِيٍّ، وَذَكَرَ فِيهِ أَمْرَ الجِزْيَةِ. (١)

**ترجمه** : دعلقمه بن مرثد نه هم دماقبل هم معني روايت مروي دي مگر دعلقمه په روايت کي دومره اضافه ده که چري دوئ انکار اوکړي نو جزيه وره واخلئ او که دجزيه ورکولو نو هم انکار اوکړي نو دالله تعالي نه په دوئ باندي دغالب کيدو دپاره مدد اوغواړه.

امام ترمذي وايي : دارنگي روايت وکيع او نورو راويانو هم دسفيان نه نقل کړي دي او دمحمد بن بشارنه علاوه راويانو دعبدالرحمن بن مهدي نه هم دا روايت نقل کړي دي او په هغه روايت کي يي دجزيه معامله ذکر کړي ده.

****************

١٦١٨_ حَدَّثَنَا الحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ الخَلَّالُ، حَدَّثَنَا عَفَّانُ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ، حَدَّثَنَا ثَابِتٌ، عَنْ أَنَسٍ، قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يُغِيرُ إِلَّا عِنْدَ صَلَاةِ الفَجْرِ، فَإِنْ سَمِعَ أَذَانًا أَمْسَكَ وَإِلَّا أَغَارَ، فَاسْتَمَعَ ذَاتَ يَوْمٍ فَسَمِعَ رَجُلًا يَقُولُ: اللهُ أَكْبَرُ، اللهُ أَكْبَرُ، فَقَالَ: " عَلَى الفِطْرَةِ "، فَقَالَ: أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ، فَقَالَ: " خَرَجْتَ مِنَ النَّارِ "، قَالَ الحَسَنُ: وَحَدَّثَنَا أَبُو الوَلِيدِ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ بِهَذَا الإِسْنَادِ مِثْلَهُ، قَالَ أَبُو عِيسَى: وَهَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (٢)

**ترجمه** : دانس رضي الله عنه بيان دي فرمائي چي نبي کريم صلي الله عليه وسلم به خاص دسحر دمونځ وخت کي حمله کوله او که اذان به يي واوريدو نو حمله به يي نه کوله او که اذان به يي وانوريدو نو حمله به يي اوکړه يوه ورځ يي غوږ نيولي وو چي ديو کس نه يي الله اکبر الله اکبر کلمات واوريدل رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل دوئ په فطرت (اسلام) باندي دي او چي کله يي اووئيل اشهدان لااله الاالله رسول الله اوفرمائيل ته دجهنم نه خارج شولي، حسن وائي مونږ ته ابوالوليد روايت بيان کړي دي او هغه دحماد بن سلمه نه په همدي سند ددي هم معني روايت نقل کړي دي.

امام ترمذي وايي : داحديث حسن صحيح دي.

****************

---

[1] _ صحيح مسلم_ الجهاد ٢ (١٧٣١) ، سنن ابي داود_ الجهاد ٩٠ (٢٦١٢) ، سنن ابن ماجه_ الجهاد ٣٨ (٢٨٥٨) . (تحفة الأشراف : ١٩٢٩) ، و احمد في المسند (٥_ ٣٥٢، ٣٥٨) ، سنن الدارمي_ السير ٥ (٢٤٨٣)

[2] _ مسلم_ الصلاة ٦ (٣٨٢) ، سنن ابي داود_ الجهاد ١٠٠ (٢٦٣٤) . (تحفة الأشراف : ٣١٢)

# كتاب فضائل الجهاد عن رسول الله صلى الله عليه وسلم

## دجهاد متعلق احكام او مسائل

### ١ـ بَاب مَا جَاءَ فِي فَضْلِ الْجِهَادِ

### دجهاد دفضائلو بيان

١٦١٩ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، عَنْ سُهَيْلِ بْنِ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قِيلَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، مَا يَعْدِلُ الْجِهَادَ ؟ قَالَ: "إِنَّكُمْ لَا تَسْتَطِيعُونَهُ". فَرَدُّوا عَلَيْهِ مَرَّتَيْنِ أَوْ ثَلَاثًا كُلُّ ذَلِكَ، يَقُولُ: "لَا تَسْتَطِيعُونَهُ". فَقَالَ فِي الثَّالِثَةِ: "مَثَلُ الْمُجَاهِدِ فِي سَبِيلِ اللَّهِ، مَثَلُ الْقَائِمِ الصَّائِمِ الَّذِي لَا يَفْتُرُ مِنْ صَلَاةٍ وَلَا صِيَامٍ حَتَّى يَرْجِعَ الْمُجَاهِدُ فِي سَبِيلِ اللَّهِ". وَفِي الْبَاب، عَنِ الشِّفَاءِ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ حُبْشِيٍّ، وَأَبِي مُوسَى، وَأَبِي سَعِيدٍ، وَأُمِّ مَالِكٍ الْبَهْزِيَّةِ، وَأَنَسٍ، وَهَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رُوِيَ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. [1]

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه بيان دي فرماني چي يو خل اوونيلي شول اي دالله رسوله كوم يو عمل په اجراو ثواب كي دجهاد سره برابر دي؟ رسول الله اوفرمائيل تاسو ددي طاقت نه لرئ، صحابه كرامو دوه يا دري پيري دهغوئ په وړاندي دا سوال تكرار كړو او رسول الله به ورته هر خل دا جواب وركولو تاسو ددي طاقت نه لرئ نو په دريم خل يې اوفرمائيل دالله په لار كي دجهاد كونكي مثال دهغه مونځ گذار او روژه دار پشان دي څوك چي مونځ او روژه نه بندوي (او دا دواړه عملونه مسلسل جاري ساتي) تردي پوري چي دالله دلاري مجاهد واپس راشي.

امام ترمذي وايي : داحديث حسن صحيح دي، او دا حديث دابوهريره په واسطه په يو څو سندونو مرفوعا مروي دي، او په دي باب كي دشفاء ، عبدالله بن حبشي ، ابوموسي، ابوسعيد ، ام مالك بهزيه ، او انس رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي.

**تشريح** : اودبخاري يو روايت په دی الفاظو دی چي يو سړي عرض اوكړو يا رسول الله صلي الله عليه وسلم داسی عمل راته اوښايه چي جهاد سره برابر وي، رسول الله صلي الله عليه وسلم

---

[1] ـ مسلم ـ الإمارة ٢٩ (١٨٧٨) ، (تحفة الأشراف : ١٢٧٩١) ، واحمد في المسند (٢ـ ٣٢٢، ٣٢٨، ٣٦٥) (وانظر أيضا: اخرجه البخاري في الصحيح ـ الجهاد ٢ (٢٧٨٤) ، وسنن النسائي ـ الجهاد ١٣ (٣١٣٦)

اوفرمائيل داسي عمل راته ندی معلوم بيايي اوفرمائيل ايا ستاسو دا طاقت شته چي كله چي مجاهد جهاد ته لاړ شي ته جومات ته ننوزی په مانځه اودريږي نه ستړی کيږي او روژی نيسی نه يی ماتوی ترڅو چي هغه نه وي واپس شوی هغه اوونيل دومره طاقت دچا دی
په پورتني حديث کې دمجاهد فضيلت خودلی شوی دی چي مثال يي دهغه کس پشان دی څوك چي دشپي مونځونه کوي او دورځي روژي نيسي دا دهغه وخته پوري مسلسل اوشي ترڅو چي مجاهد واپس نه وي راغلی، ددي حديث نه علماء استدلال کوي چي دفرائضو نه پس جهاد په ټولو اعمالو کې افضل دی او يو عبادت ګذار هغه اجر په کور کې دناستي په حالت کې نشي حاصلولی کوم چي مجاهد دجنګ په ميدان کې حاصلوي.

****************

١٦٢٠ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ بَزِيعٍ. حَدَّثَنَا الْمُعْتَمِرُ بْنُ سُلَيْمَانَ. حَدَّثَنِي مَرْزُوقٌ أَبُو بَكْرٍ. عَنْ قَتَادَةَ. عَنْ أَنَسٍ. قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَعْنِي: يَقُولُ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ: "الْمُجَاهِدُ فِي سَبِيلِ اللَّهِ هُوَ عَلَيَّ ضَامِنٌ. إِنْ قَبَضْتُهُ. أَوْرَثْتُهُ الْجَنَّةَ. وَإِنْ رَجَعْتُهُ. رَجَعْتُهُ بِأَجْرٍ أَوْ غَنِيمَةٍ". قَالَ: هُوَ صَحِيحٌ غَرِيبٌ مِنْ هَذَا الْوَجْهِ. (1)

**ترجمه** : دانس رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي الله تعالي فرمائي دالله په لاره کې دجهاد کونکي ضامن زه يم که چري زه دده روح قبض کړم نو ده لره به دجنت وارث اوګرځوم او که کور ته يي واپس راوليږم نو داجر او غنيمت سره يي واپس راليږم
امام ترمذي وايي . داحديث په دي سند صحيح غريب دي.

****************

## ٢ـ بَاب مَا جَاءَ فِي فَضْلِ مَنْ مَاتَ مُرَابِطًا

### بيان دفضيلت دهغه چا څوك چي دسرحداتو په محافظت کې مړ شي

١٦٢١ـ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدٍ. أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ الْمُبَارَكِ. أَخْبَرَنَا حَيْوَةُ بْنُ شُرَيْحٍ. قَالَ: أَخْبَرَنِي أَبُو هَانِئٍ الْخَوْلَانِيُّ. أَنَّ عَمْرَو بْنَ مَالِكٍ الْجَنْبِيَّ أَخْبَرَهُ. أَنَّهُ سَمِعَ فَضَالَةَ بْنَ عُبَيْدٍ يُحَدِّثُ. عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ قَالَ: "كُلُّ مَيِّتٍ يُخْتَمُ عَلَى عَمَلِهِ إِلَّا الَّذِي مَاتَ مُرَابِطًا فِي سَبِيلِ اللَّهِ. فَإِنَّهُ يُنْمَى لَهُ عَمَلُهُ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ. وَيَأْمَنُ مِنْ فِتْنَةِ الْقَبْرِ". وَسَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ

---

1 ـ تفرد بذكره المؤلف (تحفة الأشراف : ١٣٢٢)

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: " الْمُجَاهِدُ مَنْ جَاهَدَ نَفْسَهُ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَفِي الْبَابِ، عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ، وَجَابِرٍ، وَحَدِيثُ فَضَالَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [1]

**ترجمه** دفضاله بن عبيد رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دهر يو مړي دعمل سلسله په مړه كيدوبنديږي مګر علاوه دهغه چا نه څوك چي دالله په لاره كي دسرحدونو حفاظت كولو په حالت كي مړ شي او دده عمل به دقيامت دورځي پورې زياتيږي او دي به دقبر دفتني نه محفوظ وي او مادرسول الله صلي الله عليه وسلم نه دا هم اوريدلي دي چي فرمائيل اصل كامل مجاهد هغه څوك دي څوك چي دخپل نفس سره جهاد اوكړي

امام ترمذي وايي : دفضاله حديث حسن صحيح دي، او په دي باب كي دعقبه بن عامر، او جابر رضي الله عنهما نه هم احاديث وارد دي.

***************

## ٣_ باب مَا جَاءَ فِي فَضْلِ الصَّوْمِ فِي سَبِيلِ اللَّهِ

### دالله په لاره كي دروژي نيولو دفضيلت بيان

١٦٢٢_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا ابْنُ لَهِيعَةَ، عَنْ أَبِي الأَسْوَدِ، عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ، وَسُلَيْمَانَ بْنِ يَسَارٍ، أنهما حدثاه، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " مَنْ صَامَ يَوْمًا فِي سَبِيلِ اللَّهِ، زَحْزَحَهُ اللَّهُ عَنِ النَّارِ سَبْعِينَ خَرِيفًا ". أَحَدُهُمَا يَقُولُ: " سَبْعِينَ "، وَالآخَرُ يَقُولُ: " أَرْبَعِينَ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ مِنْ هَذَا الْوَجْهِ، وَأَبُو الأَسْوَدِ اسْمُهُ مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ نَوْفَلٍ الأَسَدِيُّ الْمَدَنِيُّ، وَفِي الْبَابِ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ، وَأَنَسٍ، وَعُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ، وَأَبِي أُمَامَةَ. [2]

**ترجمه** : دابو هريره رضي الله عنه نه روايت دى چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چاچي دجهاد په دوران كي يوه ورځ روژه اونيوله الله تعالي به دهغه اوددوزخ ترمينځه د يو راوي په قول اويا خريفه فاصله راولي، او ددي حديث د بل راوي په قول څلويښت خريفه فاصله راولي.

---

[1] _ سنن ابي داود_ الجهاد ١٦(٢٥٠٠). (تحفة الأشراف: ١١٠٣٢)

[2] _ سنن النسائي_ الصيام ٤٤(٢٢٤٦، ٢٢٤٨). سنن ابن ماجه_ الصيام ٣٤(١٧١٨). (تحفة الأشراف: ١٣٣٨٦)

امام ترمذي وايي دا حديث په دي سند غريب دي اود ابو الاسود نوم محمد بن عبد الرحمن بن نوفل الاسدي مدني دي، او په دي باب كي د ابو سعيد ، انس، عقبه بن عامر. او ابو امامه رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي

**لغات** : جعل دفتح نه جعل يجعل په معني دجوړولو او پيدا كولو . جُعل او جعاله مزدوري . صفت بدلول، مقررول، انعام ، كميشن

********************

١٦٢٣ـ حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْمَخْزُومِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ الْوَلِيدِ الْعَدَنِيُّ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ، قَالَ: وحَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ مُوسَى، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ سُهَيْلِ بْنِ أَبِي صَالِحٍ، عَنِ النُّعْمَانِ بْنِ أَبِي عَيَّاشٍ الزُّرَقِيِّ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا يَصُومُ عَبْدٌ يَوْمًا فِي سَبِيلِ اللَّهِ، إِلَّا بَاعَدَ ذَلِكَ الْيَوْمُ النَّارَ عَنْ وَجْهِهِ سَبْعِينَ خَرِيفًا". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [1]

**ترجمه** دابوسعيدخدري رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي دالله په لار كي چي څوك يوه ورځ روژه هم اونيسي نو دغه ورځ به دده دمخ نه دجهنم اور داويا كالو دمسافي پوري لرې كري.

امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي.

**لغات** : باعد: باعد يباعد مباعدة معني لري كول دباب مفاعلي نه اوپه مجردو كي دباب كرم نه مستعمل دي په معني دلرې والي

********************

١٦٢٤ـ حَدَّثَنَا زِيَادُ بْنُ أَيُّوبَ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، أَخْبَرَنَا الْوَلِيدُ بْنُ جَمِيلٍ، عَنِ الْقَاسِمِ أَبِي عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ أَبِي أُمَامَةَ الْبَاهِلِيِّ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "مَنْ صَامَ يَوْمًا فِي سَبِيلِ

---

[1] ـ البخاري ـ الجهاد ٣٦ (٢٨٤٠) . صحيح مسلم ـ الصوم ٣١ (١١٥٣) . سنن النسائي ـ الصيام ٤٤ (٢٢٤٧) . ٢٢٤٩٢٢٥٢)، و ٤٥ ٢٢٥٣٢٢٥٥) . سنن ابن ماجه ـ الصوم ٣٤ (١٧١٧) . (تحفة الأشراف : ٤٣٨٨) . و احمد في المسند (٣ـ ٢٦. ٤٥. ٥٩. ٨٣) . سنن الدارمي ـ الجهاد ١٠ (٢٤٠٢)

اللَّهِ، جَعَلَ اللَّهُ بَيْنَهُ وَبَيْنَ النَّارِ خَنْدَقًا كَمَا بَيْنَ السَّمَاءِ وَالأَرْضِ". هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ مِنْ حَدِيثِ أَبِي أُمَامَةَ. (۱)

**ترجمه** دابوامامه رضي الله عنه نه روايت دی چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي چاچي دجهاد په دوران کې يوه ورځ روژه اونيوه الله تعالي به دهغه اودوزخ ترمينځه دومره کنده جوړه کړي چي دده او اور ترمينځه به دومره فاصله وي څومره چي دزمکی او اسمان ترمينځه ده.

امام ترمذي وايي دا حديث دابو امامه په سند غريب الاسناد دی

**لغات**: جعل: دفتح نه جعل يجعل په معني دجوړولو او پيدا کولو . جُعل او جعاله مزدوري . صفت بدلول، مقررول، انعام ، کميشن.

**تشريح**: په دي حديث کې دا بيان شول چي دخندق په مقدار به لري شي خندق خو عموما دلري والي نه کنايه وي چي دروژي په نيولو سره دی دجهنم نه لري شو دانسان دپوهولو دپاره دمسافي لري والي مثال ورکړی شوی دی، بعضي علماء وائي دصوم نه مراد شرعي روژه نه ده بلکه لغوي روژه ده کوم چي منع کولو ته وئيلی شي مطلب دا دی چاچي خپل خان دالله په لار کې يوه ورځ حصار کړونو دی به دجهنم نه ډير لري شي.

***************

## ٤ـ باب مَا جَاءَ فِي فَضْلِ النَّفَقَةِ فِي سَبِيلِ اللَّهِ

## دالله په لارکې دمال خرچ کولو فضيلت

١٦٢٥ـ حَدَّثَنَا أَبُو كُرَيْبٍ، حَدَّثَنَا الحُسَيْنُ بْنُ عَلِيٍّ الجُعْفِيُّ، عَنْ زَائِدَةَ، عَنِ الرُّكَيْنِ بْنِ الرَّبِيعِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ يُسَيْرِ بْنِ عَمِيلَةَ، عَنْ خُرَيْمِ بْنِ فَاتِكٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ أَنْفَقَ نَفَقَةً فِي سَبِيلِ اللَّهِ، كُتِبَتْ لَهُ بِسَبْعِ مِائَةِ ضِعْفٍ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَفِي البَابِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، وَهَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ، إِنَّمَا نَعْرِفُهُ مِنْ حَدِيثِ الرُّكَيْنِ بْنِ الرَّبِيعِ. (۲)

**ترجمه** دابو يحيي خريم بن فاتك رضي الله عنه نه روايت دی چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي چاچي جهاد في سبيل الله کې څه خرچ اوکړو دهغه ثواب به ورته اوه سوه چنده ليکلی شي

[1] ـ تفرد به المؤلف. (تحفة الأشراف: ٤٩٠٢)

[2] ـ سنن النسائي_ الجهاد ٤٥ (٣١٨٨). (تحفة الأشراف: ٣٥٢٦)، واحمد في المسند (٤_ ٣٢٢، ٣٤٥، ٣٤٦)

امام ترمذي روايت کړی دی اوحديث حسن يې ورته ونيلی دی، امام ترمذي وايې په دي باب کي د ابو هريره رضي الله عنه نه هم حديث وارد دی، او مونږ دا صرف د رکين بن الربيع په سند پيژنو.

**لغات** : کتب يکتب کتابة معني تحرير او تصنيف کول نقش وغيره جوړول ، کتب الله عليه يعني الله ورباندي فرض کړو، تکاتبوا يعني مراسله يي وکړله.

**تشريح** : دلته دالله په لاره کي دمال خرچ کولو فضيلت بيانولی شي او هغه دادی چي څوك يوه روپۍ خرچ کړي نو ده ته به کم از کم ددي اوه سوه چنده اجر ملاويږي او په قران کريم کي راغلي دي "والله يضاعف لمن يشاء".

## دابو يحيي خريم بن فاتك رضي الله عنه حالات

نوم خريم دپلار نوم فاتك دبنو اسد قبيلي سره تعلق لري او کنيه يي ابو يحی ده په صلحه حديبيه کي شريك شوی وو او دشام اوسيدونکی وو ليکن بعضو په کوفيانو کي شميرلی دی لس روايات ورنه منقول دي چي په سنن کي موجود دی بخاري او مسلم ورنه نقل دروايت نه دی کړی.

****************

## ٥_ بَاب مَا جَاءَ فِي فَضْلِ الْخِدْمَةِ فِي سَبِيلِ اللَّهِ

## دالله په لاره کي دخدمت کولو فضيلت

١٦٢٦_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ رَافِعٍ، حَدَّثَنَا زَيْدُ بْنُ حُبَابٍ، حَدَّثَنَا مُعَاوِيَةُ بْنُ صَالِحٍ، عَنْ كَثِيرِ بْنِ الْحَارِثِ، عَنِ الْقَاسِمِ أَبِي عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ عَدِيِّ بْنِ حَاتِمٍ الطَّائِيِّ، أَنَّهُ سَأَلَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَيُّ الصَّدَقَةِ أَفْضَلُ؟ قَالَ: " خِدْمَةُ عَبْدٍ فِي سَبِيلِ اللَّهِ، أَوْ ظِلُّ فُسْطَاطٍ، أَوْ طَرُوقَةُ فَحْلٍ فِي سَبِيلِ اللَّهِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَقَدْ رُوِيَ عَنْ مُعَاوِيَةَ بْنِ صَالِحٍ هَذَا الْحَدِيثُ مُرْسَلًا. وَخُولِفَ زَيْدٌ فِي بَعْضِ إِسْنَادِهِ. (1)

**ترجمه** : دعدي بن حاتم رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چي درسول الله صلي الله عليه وسلم نه مي سوال اوکړو چي کومه يوه صدقه افضل ده نو وېي فرمائيل دالله په لاره کي کوم مجاهد ته غلام ورکول او دمجاهدينو دپاره دخيمي سوري کول يا دالله په لاره کي خوانه اوښه ورکول.

---

1 _ تفرد به المؤلف. (تحفة الأشراف: ٩٨٦٣)

امام ترمذي وايي دمعاويه بن صالح نه هم داحديث په مرسل سند مروي دي په بعضي سندونو كي دزيد بن حباب مخالفت شوي دي

***************

١٦٢٧_: وَرَوَى الْوَلِيدُ بْنُ جَمِيلٍ هَذَا الْحَدِيثَ، عَنِ الْقَاسِمِ أَبِي عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ أَبِي أُمَامَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. حَدَّثَنَا بِذَلِكَ زِيَادُ بْنُ أَيُّوبَ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، أَخْبَرَنَا الْوَلِيدُ بْنُ جَمِيلٍ، عَنِ الْقَاسِمِ أَبِي عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ أَبِي أُمَامَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَفْضَلُ الصَّدَقَاتِ: ظِلُّ فُسْطَاطٍ فِي سَبِيلِ اللهِ، وَمَنِيحَةُ خَادِمٍ فِي سَبِيلِ اللهِ، أَوْ طَرُوقَةُ فَحْلٍ فِي سَبِيلِ اللهِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ، وَهُوَ أَصَحُّ عِنْدِي مِنْ حَدِيثِ مُعَاوِيَةَ بْنِ صَالِحٍ. [1]

**ترجمه** وليد بن جميل هم دا حديث دقاسم ابوعبدالرحمن نه نقل كړي دي او هغه دابوامامه نه او هغه دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه چي افضله صدقه دالله تعالي په لاره كي د مجاهدينو دپاره خيمه اودرول دي او خوانه اوښه دالله په لار كي وركول دي.

امام ترمذي وايي : داحديث حسن صحيح غريب دي او دمعاويه بن صالح دحديث نه زيات صحيح دي.

***************

## ٦_ بَاب مَا جَاءَ فِي فَضْلِ مَنْ جَهَّزَ غَازِيًا

### دمجاهد كوم غازي دپاره دسامان تيارولو فضيلت

١٦٢٨_ حَدَّثَنَا أَبُو زَكَرِيَّا يَحْيَى بْنُ دُرُسْتَ الْبَصْرِيُّ، حَدَّثَنَا أَبُو إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ أَبِي كَثِيرٍ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ بُسْرِ بْنِ سَعِيدٍ، عَنْ زَيْدِ بْنِ خَالِدٍ الْجُهَنِيِّ، عَنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "مَنْ جَهَّزَ غَازِيًا فِي سَبِيلِ اللهِ فَقَدْ غَزَا، وَمَنْ خَلَفَ غَازِيًا فِي أَهْلِهِ فَقَدْ غَزَا". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رُوِيَ مِنْ غَيْرِ هَذَا الْوَجْهِ. [2]

---

[1] _ تفرد بذكره المؤلف (تحفة الأشراف : ٤٩٠٥)

[2] _ البخاري_ الجهاد ٣٨ (٢٨٤٣) . و مسلم_ الإمارة ٣٨ (١٨٩٥) . سنن ابي داود_ الجهاد (٢٥٠٩) . سنن النسائي_ الجهاد ٤٤ (٣١٨٢) . سنن ابن ماجه_ الجهاد ٣ (٢٧٥٩) (تحفة الأشراف : ٣٧٤٧) . و احمد في المسند (٤_ ١١٥. ١١٦. ١١٧) . و (١٩٣ ١٩٢) سنن الدارمي_ الجهاد ٢٧ (٢٤٦٣).

**ترجمه** دزيد بن خالد رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چاچي دالله په لار كي دوتلي مجاهد دپاره دسامان انتظام اوكړو نو په حقيقت كي ده جهاد اوكړو او څوك چي دغازي داهل او عيال دپاره دغازي قائم مقام جوړ شو نو جهاد په حقيقت كي ده اوكړو
امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي او دا په نورو سندونو هم مروي دي.

*****************

١٦٢٩_ حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنِ ابْنِ أَبِي لَيْلَى، عَنْ عَطَاءٍ، عَنْ زَيْدِ بْنِ خَالِدٍ الْجُهَنِيِّ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ جَهَّزَ غَازِيًا فِي سَبِيلِ اللَّهِ أَوْ خَلَفَهُ فِي أَهْلِهِ، فَقَدْ غَزَا". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ. [1]

**ترجمه** : دزيد بن خالد جهني رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چاچي دمجاهد دپاره سامان تيار كړو او يايي دهغه داهل او عيال خبر واخستلو نو په حقيقت كي ده جهاد اوكړو.
امام ترمذي وايي : داحديث حسن دي.

*****************

١٦٣٠_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْمَلِكِ بْنُ أَبِي سُلَيْمَانَ، عَنْ عَطَاءٍ، عَنْ زَيْدِ بْنِ خَالِدٍ الْجُهَنِيِّ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، نَحْوَهُ. [2]

**ترجمه** : په دي سند باندي هم د زيد بن خالد جهني په واسطه د نبي كريم صلي الله عليه وسلم نه دماقبل هم معني روايت مروي دي.

*****************

---

[1] _ انظر ما قبله (تحفة الأشراف: ٣٧٦١)

[2] _ البخاري_ الجهاد ٣٨ (٢٨٤٣) . و مسلم_ الإمارة ٣٨ (١٨٩٣) . سنن ابي داود_ الجهاد (٢٥٠٩) . سنن النسائي_ الجهاد ٤٤ (٣١٨٢) . سنن ابن ماجه_ الجهاد ٣ (٢٧٥٩) (تحفة الأشراف: ٣٧٤٧) . و احمد في المسند (٤_ ١١٥. ١١٦. ١١٧) . و (٥. ١٩٢، ١٩٣) . سنن الدارمي_ الجهاد ٢٧ (٢٤٦٣)

١٦٣١_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ، حَدَّثَنَا حَرْبُ بْنُ شَدَّادٍ، عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي كَثِيرٍ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ بُسْرِ بْنِ سَعِيدٍ، عَنْ زَيْدِ بْنِ خَالِدٍ الْجُهَنِيِّ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ جَهَّزَ غَازِيًا فِي سَبِيلِ اللَّهِ فَقَدْ غَزَا، وَمَنْ خَلَفَ غَازِيًا فِي أَهْلِهِ فَقَدْ غَزَا". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.[1]

**ترجمه** دزيد بن خالد جهني رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چاچي دغازي دپاره دالله په لاره كي سامان تيار كړو نو ده په حقيقت كي جهاد اوكړو او چاچي دغازي دكور خبر واخستلو نو ده په حقيقت كي جهاد اوكړو.
امام ترمذي وايي : داحديث حسن صحيح دي

****************

## ٧_ باب مَا جَاءَ فِي فَضْلِ مَنِ اغْبَرَّتْ قَدَمَاهُ فِي سَبِيلِ اللَّهِ

## فضيلت دهغه چا دچا په خپو چي دالله په لاره كي ګرد پريوتلي وي

١٦٣٢_ حَدَّثَنَا أَبُو عَمَّارٍ الْحُسَيْنُ بْنُ حُرَيْثٍ، حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ بْنُ مُسْلِمٍ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي مَرْيَمَ، قَالَ: لَحِقَنِي عَبَايَةُ بْنُ رِفَاعَةَ بْنِ رَافِعٍ وَأَنَا مَاشٍ إِلَى الْجُمُعَةِ، فَقَالَ: أَبْشِرْ، فَإِنَّ خُطَاكَ هَذِهِ فِي سَبِيلِ اللَّهِ، سَمِعْتُ أَبَا عَبْسٍ، يَقُولُ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنِ اغْبَرَّتْ قَدَمَاهُ فِي سَبِيلِ اللَّهِ، فَهُمَا حَرَامٌ عَلَى النَّارِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ صَحِيحٌ، وَأَبُو عَبْسٍ اسْمُهُ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ جَبْرٍ، وَفِي الْبَابِ، عَنْ أَبِي بَكْرٍ، وَرَجُلٍ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَيَزِيدُ بْنُ أَبِي مَرْيَمَ رَجُلٌ شَامِيٌّ، رَوَى عَنْهُ الْوَلِيدُ بْنُ مُسْلِمٍ، وَيَحْيَى بْنُ حَمْزَةَ، وَغَيْرُ وَاحِدٍ مِنْ أَهْلِ الشَّامِ، وَبُرَيْدُ بْنُ أَبِي مَرْيَمَ كُوفِيٌّ أَبُوهُ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ

---

[1] _ البخاري_ الجهاد ٣٨ (٢٨٤٣)، ومسلم_ الإمارة ٣٨ (١٨٩٣)، سنن ابي داود_ الجهاد (٢٥٠٩)، سنن النسائي_ الجهاد ٤٤ (٣١٨٢)، سنن ابن ماجه_ الجهاد ٣ (٢٧٥٩) (تحفة الأشراف : ٣٧٤٨)، واحمد في المسند (٤/١١٥، ١١٦، ١١٧)، و(٥/١٩٢، ١٩٣)، سنن الدارمي_ الجهاد ٢٧ (٢٤٦٣).

وَسَلَّمَ وَاسْمُهُ: مَالِكُ بْنُ رَبِيعَةَ. وَيَزِيدُ بْنُ أَبِي مَرْيَمَ. سَمِعَ مِنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ. وَرَوَى عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي مَرْيَمَ أَبُو إِسْحَاقَ الْهَمْدَانِيُّ. وَعَطَاءُ بْنُ السَّائِبِ. وَيُونُسُ بْنُ أَبِي إِسْحَاقَ. وَشُعْبَةُ. أَحَادِيثَ. (١)

**ترجمه** ديزيد بن ابي مريم بيان دي فرمائي چي زه دجمعي مونځ ته روان وم چي عبايه بن رفاعه مي اوليدو هغه راته اوونيل خوشحاله شه ستا دا قدمونه دالله په لار كي دي. ما دابوعبس نه اوريدلي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دچا په دواړه خپو چي دالله په لار كي گرد پريوځي هغه ته دجهنم اور رسيدي نشي

**دابومريم ازدي رضي الله عنه مختصر حالات**

په ابومريم الازدي او ابومريم غساني كي داسماء الرجال والا كي اختلاف دى چي دا دواړه ديو كس نومونه دي كه دجدا جدا كسانو نومونه دي دواړه اقوال موجود دي (ابن الاثير)

دابن حجر قول دى دابو مريم نوم عمرو بن مره الجهني دى بهر حال دده په باره كي اختلاف موجود دى دده نه صرف يو روايت مروي دى او په صحيحينو كي ورنه هيڅ روايت منقول نه دى او دا روايت په سنن كي موجود دى.

****************

## ٨ـ بَاب مَا جَاءَ فِي فَضْلِ الْغُبَارِ فِي سَبِيلِ اللَّهِ

## دالله په لاركي په جهاد كرد پريوتلو فضيلت

١٦٣٣ـ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ. حَدَّثَنَا ابْنُ الْمُبَارَكِ. عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ الْمَسْعُودِيِّ. عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ. عَنْ عِيسَى بْنِ طَلْحَةَ. عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ. قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا يَلِجُ النَّارَ رَجُلٌ بَكَى مِنْ خَشْيَةِ اللَّهِ حَتَّى يَعُودَ اللَّبَنُ فِي الضَّرْعِ. وَلَا يَجْتَمِعُ غُبَارٌ فِي سَبِيلِ اللَّهِ وَدُخَانُ جَهَنَّمَ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَمُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ هُوَ مَوْلَى أَبِي طَلْحَةَ مَدَنِيٌّ. (٢)

---

[1] ـ البخاري ـ الجمعة ١٨ (٩٠٧). والجهاد ١٦ (٢٨١١). سنن النسائي ـ الجهاد ٩ (٣١١٨). (تحفة الأشراف: ٩٦٩٢). واحمد في المسند (٣ـ ٤٧٩)

[2] ـ النسائي ـ الجهاد (٣١٠٩). سنن ابن ماجه ـ الجهاد ٩ (٢٧٧٤). (تحفة الأشراف: ١٤٢٨٣). واحمد في المسند (٢ـ ٥٠٥). ويأتي في الزهد برقم (٢٣١١)

**ترجمه** دابوهريره رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دالله دويري نه ژړيدونكي به جهنم ته داخل نشي تر څو پوري چي پئ واپس غلانز ته داخل شوي نه وي دجهاد ګرد او غبار او دجهنم لوګي دواړه يو ځاي جمع كيدي نشي.
امام ترمذي وائي داحديث حسن صحيح دي
**لغات** : دخانا الدخان معني لوګي جمع يې ادخنة او دواخن او دواخين راځي . د مورخينو په اصطلاح كې سګرټ او تمباكو نوشئ ته وئيلي شي دخنت دنصر او ضرب نه دخنا او دخونا وادّخنت النار يعني د اور نه لوګي پورته شو.
**تشريح** : "لايلج النار" يعني جهنم ته به داخل نشي هغه كس څوك چي دالله تعالي د ويري نه ژړا كوي په يوبل حديث كې راغلي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم به اكثر دا دعا وئيله "اللهم ارزقني عينين حطألتين حطأ تسقيان القلب بذروف الدمع من خشيتك قبل ان تكون الدموع دما والاضراس جمرا" (الجامع الصغير).
ترجمه اي الله، ماته داسي دوه سترګي راكړه چي ستا ديري نه ژړيدونكي وي دخشيت الهي اوښكي زړونو ته شفا وركونكي وي مخكې ددينه چي اوښكي دجهنم په عذاب سره وينې جوړي شي او دغاښونو نه سكروتي جوړي شي
ددي حديث په باره كې دجامع صغير مشهور شارح علامه عبدالروف مناري ليكلي دي قال الحافظ العراقي اسناده حسن .
مطلب دادی چي هغه سترګي دمباركئ قابلي دي كومي چي دالله ديري نه ژاړي او همدارنګي حال دزړونو هم دی دا اوښكي دالله په نزد ډيري محبوبې دي
حتي يعود اللبن في الضرع، تردي چي دغلانزو نه وتلي شوده واپس شي دا مثال په هغه وخت كې وركولی شي كله چي يو كار محال وي لكه دالله تعالي دا قول حتي يلج الجمل في سم الخياط . يعني تردي پوري چي اوښ دستني په سوري كې تير شي
ولايجتمع غبار في سبيل الله، په دي جمله كې دالله په لار كې دوتونكي فضيلت بيانولی شي چي دالله په لار كې دوتلو نه پس په جسم كوم غبار اوګرد پريوځي ددي ګرد سره دجهنم لوګی جمع كيدی نشي
دمشكواة په يو روايت كې راځي په يو سفر كې صحابه كرام جدا جدا روان وو رسول الله صلي الله عليه وسلم ورنه دوجي تپوس اوكړو نو معلومه شوه چي دګرد نه بچ كيدل غواړي ليكن كله چي رسول الله ددي ګرد فضيلت بيان كړو نو بيا به دوئ ته ددي ګرد نه زيات بل څه محبوب نه وو.

حتى يعود اللبن في الضرع. يعني تردي پوري چي شوده غلانز ته واپس شوي نه وي. دا مثال په هغه وخت کې ورکولی شي چې کله کوم کار محال وي او ددي پشان دالله تعالي قول هم دی "حتی یلج الجمل في سم الخیاط".

ولايجتمع غبار في سبيل الله. په دي جمله کې دالله په لار کې دوتلو فضيلت بيانولی شي چې دالله په لار کې دوتلو نه پس په چا باندي کوم گرد او غبار پريوځي هغه گرد او غبار او دجهنم لوګی يوځاي کيدی نشي چې مجاهد في سبيل الله به جهنم ته نه ځي.

*****************

## ٩_ باب مَا جَاءَ فِي فَضْلِ مَنْ شَابَ شَيْبَةً فِي سَبِيلِ اللَّهِ

### فضيلت دهغه چا څوک چي ذ الله په لاره کي ځواني تيره کري او بوډا شي

١٦٣٤_ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ عَمْرِو بْنِ مُرَّةَ، عَنْ سَالِمِ بْنِ أَبِي الجَعْدِ، أَنَّ شُرَحْبِيلَ بْنَ السِّمْطِ قَالَ: يَا كَعْبُ بْنَ مُرَّةَ، حَدِّثْنَا عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَاحْذَرْ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: "مَنْ شَابَ شَيْبَةً فِي الإِسْلَامِ، كَانَتْ لَهُ نُورًا يَوْمَ القِيَامَةِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَفِي البَابِ، عَنْ فَضَالَةَ بْنِ عُبَيْدٍ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، وَحَدِيثُ كَعْبِ بْنِ مُرَّةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ، هَكَذَا رَوَاهُ الأَعْمَشُ، عَنْ عَمْرِو بْنِ مُرَّةَ، وَقَدْ رُوِيَ هَذَا الحَدِيثُ عَنْ مَنْصُورٍ، عَنْ سَالِمِ بْنِ أَبِي الجَعْدِ، وَأَدْخَلَ بَيْنَهُ وَبَيْنَ كَعْبِ بْنِ مُرَّةَ فِي الإِسْنَادِ رَجُلًا، وَيُقَالُ: كَعْبُ بْنُ مُرَّةَ، وَيُقَالُ: مُرَّةُ بْنُ كَعْبٍ البَهْزِيُّ، وَالمَعْرُوفُ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُرَّةُ بْنُ كَعْبٍ البَهْزِيُّ، وَقَدْ رَوَى عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَحَادِيثَ. [1]

**ترجمه** : دسالم بن ابو الجعد بيان دي فرمائي چي شرحبيل بن سمط اوونيل اي كعب بن مره مونږ ته درسول الله صلي الله عليه وسلم كوم حديث بيان كره او دكمي زياتي نه ځان اوساته كعب اوونيل مادرسول الله صلي الله عليه وسلم نه اوريدلي دي چي فرمائيل يي څوك چي په اسلام كي بوډا شي نو دا به په قيامت كي دده دپاره نور وي

امام ترمذي وايي : په دي باب كي دفضاله بن عبيد او عبدالله بن عمررضي الله عنهما نه هم احاديث مروي دي او دكعب بن مره حديث حسن دي دارنگي دا روايت اعمش دعمرو بن مره نه هم نقل كړي دي او همدا رنگي داحديث دمنثور نه نقل دي او هغه دسالم بن ابي الجعد نه نقل

[1] _ النسائي_ الجهاد ٣٦ (٣١٤٦). (تحفة الأشراف: ١١١٦٣). و احمد في المسند (٢_ ٢٢٥٣٦).

کړي دي او د خپل خان او كعب بن مره په مينځ کې يي په سند کې يو بل كس داخل کړي دي ده ته كعب بن مره هم ونيلي شي او مره بن كعب بهزي هم ورته ويلي شي او كوم چې په صحابه كرامو کې مشهور دي هغه مره بن كعب بهزي دي او هغه د رسول الله صلي الله عليه وسلم نه ډير احاديث هم نقل کړي دي.

*****************

١٦٣٥ـ حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ مَنْصُورٍ الْمَرْوَزِيُّ، أَخْبَرَنَا حَيْوَةُ بْنُ شُرَيْحٍ الْحِمْصِيُّ، عَنْ بَقِيَّةَ، عَنْ بَحِيرِ بْنِ سَعْدٍ، عَنْ خَالِدِ بْنِ مَعْدَانَ، عَنْ كَثِيرِ بْنِ مُرَّةَ، عَنْ عَمْرِو بْنِ عَبَسَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "مَنْ شَابَ شَيْبَةً فِي سَبِيلِ اللَّهِ، كَانَتْ لَهُ نُورًا يَوْمَ الْقِيَامَةِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ، وَحَيْوَةُ بْنُ شُرَيْحٍ ابْنُ يَزِيدَ الْحِمْصِيُّ. [1]

**ترجمه** دعمروبن عبسه نه روايت دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي څوك چې د الله په لاره کې بوډا شي د قيامت په ورځ به دا دده دپاره يو نور وي.

امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح غريب دي

### ابو نجيح عمروبن عبسه حالات

نوم عمرو كنيه ابو نجيح دپلار نوم عبسه بن عامر اودمور نوم يي رمله بن دقيعه وو عمرو بن عبه ابوذر غفاري رضي الله عنه مور شريك ورور وو.

داسلام په ابتداء کې مسلمان شوی وو چې واقعه يي په پورتني حديث کې موجود ده دطائف او فتح مكه وغيره په غزواتو کې درسول الله سره شركت کړی دی

دطائف په محاصره کې چې كله رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل كه څوك يو غشی اولي هغه ته به دجنت يوه دروازه پرانيستلې شي ددي بشارت په اوريدوسره عمرو شپاړس غشي اوويشتل

صاحب داصابه ليكلي دي چې عمرو دخلافت عثماني په اخرکې وفات شوی دی

مرويات چونكه دنبي كريم صلي الله عليه وسلم صحبت موقعه ورته كمه ملاؤشوي وه ليكن ددي باوجود دحديث په كتابونو کې دده نه ۴۸ روايات مروي دي تهذيب الكمال.

****************

## ١٠ـ بَابُ مَا جَاءَ فِي فَضْلِ مَنِ ارْتَبَطَ فَرَسًا فِي سَبِيلِ اللَّهِ

---

[1] ـ تفرد بذكره المؤلف (تحفة الأشراف: ١٠٧٦٦)

## دالله په لاره کي دتلو دپاره داس ساتلو فضيلت

١٦٣٦ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا عَبْدُ العَزِيزِ بْنُ مُحَمَّدٍ، عَنْ سُهَيْلِ بْنِ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " الخَيْلُ مَعْقُودٌ فِي نَوَاصِيهَا الخَيْرُ إِلَى يَوْمِ القِيَامَةِ، الخَيْلُ لِثَلَاثَةٍ: هِيَ لِرَجُلٍ أَجْرٌ، وَهِيَ لِرَجُلٍ سِتْرٌ، وَهِيَ عَلَى رَجُلٍ وِزْرٌ، فَأَمَّا الَّذِي لَهُ أَجْرٌ، فَالَّذِي يَتَّخِذُهَا فِي سَبِيلِ اللَّهِ فَيُعِدُّهَا لَهُ هِيَ لَهُ أَجْرٌ، لَا يَغِيبُ فِي بُطُونِهَا شَيْءٌ إِلَّا كَتَبَ اللَّهُ لَهُ أَجْرًا". وَفِي الحَدِيثِ قِصَّةٌ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رَوَى مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ، عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، نَحْوَ هَذَا. [1]

**ترجمه** . دابوهريره رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي داسونو په تندو کي دقيامت دورځي پوري خير ايخودلي شوي دي او اسونه په دري قسمه دي يو هغه دي کوم چي دسړي دپاره باعث داجر دي ، او بل هغه دي کوم چي دسړي دعزت ساتلو دپاره دپرده پوشئ باعث دي او بل هغه دي کوم چي دسړي دپاره باعث دګناه دي او دچا دپاره چي اس باعث داجر وي دا داسي کس وي چاچي اس دجهاد دپاره ساتلي وي نو دا اس دده دپاره داجر باعث دي دده خيټي ته چي څه قسم خوراك ځي الله تعالي په هغي باندي دده دپاره اجر او ثواب ليکي او په دي حديث کي يوه قصه هم مذکور ده.

امام ترمذي وايي : داحديث حسن صحيح دي او مالك بن انس په سند د زيد بن اسلم عن ابي صالح عن ابي هريرة عن النبي صلي الله عليه وسلم سره ددي هم معني روايت نقل کړي دي

**لغات** : الخير: اسم تفضيل دي داخير نه مخفف دي دنيکئ کار ته ويلي شي جمع يي خيوز او اخيار ده او استخاره دخير طلب کولو ته ويلي شي

**تشريح** : ددي حديث نه معلوميږي چي دجهاد په نيت اسونه ساتلو کي دهغه وخته پوري خير او برکت دی تر څو چي دا په صحيح نيت او صحيح جذبي سره ساتلی شي او که چري په غلط نيت او غلطي جذبي سره اوساتلی شي نو بيا خو په دي کي خير او برکت نشته بلکه ددينه به شر په وجود کي راځي.

نواصيها تندي، علماء وائي دتندي نه صرف تندی مراد نه دی بلکه ذات ورنه مراد دی يعني

---

[1] ـ البخاری ـ الشرب والمساقاة ١٢ (٢٣٧١) . والجهاد ٤٨ (٢٨٦٠) . والمناقب ٢٨ (٣٦٤٦) . وتفسير الزلزلة ١ (٤٩٦٢) . والاعتصام ٢٢ (٧٣٥٦) . صحيح مسلم ـ الزكاة ٦ (٩٨٧) . سنن النسائي ـ الخيل ١ (٣٥٩٢، ٣٥٩٣) . سنن ابن ماجه ـ الجهاد ١٤ (٢٧٨٨) . (تحفة الأشراف : ١٢٧٤١) . واحمد في المسند (٢ـ ٢٦٢، ٢٨٣)

پوره اس ورنه مراد دی الله تعالي په اس کې خير او برکت اچولی دی ځکه چي ددي په ذريعه جهاد کيږي په کوم کې چي ددنيا او اخرت خير دی، الاجر معني ثواب دا په اخرت کې ملاويدونکی څيز دی ، المغنم يعني غنيمت دا په دنيا کې ملاويدونکی څيز دی
مطلب دادی چاچي اس په دي نيت اوساتلو چي صرف دالله رضا حاصله کړي نو الله تعالي دده سره داجر او ثواب وعده کړي ده.

عن أبي هريرة ، قَالَ : قَالَ رسولُ الله ﷺ : ((مَنِ احْتَبَسَ فَرَساً فِي سَبِيلِ اللهِ ، إِيمَاناً بِاللهِ ، وَتَصْدِيقاً بِوَعْدِهِ ، فَإِنَّ شِبَعَهُ ، وَرِيَّهُ وَرَوْثَهُ ، وَبَوْلَهُ فِي مِيزَانِهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ)) رواه البخاري.
ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دی چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي چاچي دجهاد په نيت اس اوساتلو چي په الله تعالي يی ايمان وي نو ددی اس ګيا او اوبه اوخاشنړه اومتيازی هر څه به يی دقيامت په ورځ دنيکئ په تله کې اچولی شي

ايمانا بالله وتصديقا : يعني په الله باندي دايمان په وجه اود الله دوعدو رښتيا ګڼړلو په وجه يعني ددی اس چي څومره خدمت کوي ګياه ورکول اوبه ورکول ددی ډيران سنبالول دا ټول دنيکئ کارونه دي او دقيامت په ورځ به يی دنيکئ په تله کې اچولی شي، دا مطلب يی نه دی چي دا ګياه اوخاشنړه به هم دغه شان دنيکئ تله کې اچولی شي

***************

## ١١ـ بابُ مَا جَاءَ فِي فَضْلِ الرَّمْيِ فِي سَبِيلِ اللَّهِ
### دالله په لاره کي دغشو ويشتلو فضيلت

١٦٣٧ـ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ. حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ. أَخْبَرَنَا مُحَمَّدُ بْنُ إِسْحَاقَ. عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي حُسَيْنٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "إِنَّ اللَّهَ لَيُدْخِلُ بِالسَّهْمِ الْوَاحِدِ ثَلَاثَةً الْجَنَّةَ. صَانِعَهُ يَحْتَسِبُ فِي صَنْعَتِهِ الْخَيْرَ. وَالرَّامِيَ بِهِ. وَالْمُمِدَّ بِهِ. وَقَالَ: ارْمُوا وَارْكَبُوا. وَلَأَنْ تَرْمُوا أَحَبُّ إِلَيَّ مِنْ أَنْ تَرْكَبُوا. كُلُّ مَا يَلْهُو بِهِ الرَّجُلُ الْمُسْلِمُ بَاطِلٌ إِلَّا رَمْيَهُ بِقَوْسِهِ. وَتَأْدِيبَهُ فَرَسَهُ. وَمُلَاعَبَتَهُ أَهْلَهُ. فَإِنَّهُنَّ مِنَ الْحَقِّ".[1]

ترجمه دعبد الرحمن بن ابو حسين رضي الله عنه نه روايت دی چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي الله تعالي به ديوغشي په برکت دري کسان جنت ته استوي غشي جوړونکی که دثواب په نيت يی جوړوي او غشي ويشتونکی او ويشتونکی ته غشي

---

[1] ـ تفرد بذكره المؤلف (تحفة الأشراف : ١٨٩١٣)

ورکوونکی او تیراندازي زده کړئ او په اس سوریدل زده کړئ اوتیراندازي زده کول می د اس سوریدلو نه زیات خوښ دي، مسلمان انسان چي هره یوه لوبه کوي نو باطله ده مګر په ویشتل ده په لینده باندي او تعلیم ورکول ده اس خپل ته، او لوبي کول ده د ښځي خپلي سره، ددا باطلي لوبي نه دي، ځکه چي دا حق دي.

**تشریح** : دلته دغشو اهمیت بیانولي شي لیکن ددي په ذریعه دري کسان جنت ته رسیدلی شي

اول دغشي جوړونکی ځوک چي دي لره په صحیح نیت سره جوړ کړي

دویم دغشي ویشتونکی ځوک چي ددشمن طرف ته ولي

دریم دغشي نیونکی.

والمدد به: علماؤ ددي یو څو ترجمي کړي دي مثلا هغه کس ځوک چي غشي واپس راوړي یا هغه کس چي غشی نیسي یا هغه کس ځوک چي ویشتونکی دپاره غشي تیاروي

*****************

حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، أَخْبَرَنَا هِشَامٌ الدَّسْتُوَائِيُّ، عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي كَثِيرٍ، عَنْ أَبِي سَلَّامٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الأَزْرَقِ، عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ الجُهَنِيِّ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، مِثْلَهُ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَفِي البَابِ، عَنْ كَعْبِ بْنِ مُرَّةَ، وَعَمْرِو بْنِ عَبَسَةَ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، وَهَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (1)

**ترجمه** : عقبه بن عامر الجهني رضي الله عنه دنبي کریم صلي الله علیه وسلم نه دماقبل هم معني روایت نقل کړي دي.

امام ترمذي وایي : په دي باب کي دکعب بن مره او عمرو بن عنبسه او عبدالله بن عمرو رضي الله عنهم نه هم احادیث وارد دي او دا حدیث حسن صحیح دي.

*****************

١٦٣٨_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا مُعَاذُ بْنُ هِشَامٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ سَالِمِ بْنِ أَبِي الجَعْدِ، عَنْ مَعْدَانَ بْنِ أَبِي طَلْحَةَ، عَنْ أَبِي نَجِيحٍ السُّلَمِيِّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: " مَنْ رَمَى بِسَهْمٍ فِي سَبِيلِ اللَّهِ، فَهُوَ لَهُ عَدْلُ مُحَرَّرٍ ". قَالَ أَبُو عِيسَى:

---

[1] _ ابي داود_ الجهاد ٢٣ (٢٥١٣) . سنن النسائي_ الجهاد ٢٧ (٣١٤٨) . والخيل ٨ (٣٦٠٨) . سنن ابن ماجه_ الجهاد ١٩ (٢٨١١) . (تحفة الأشراف : ٩٩٢٢) . واحمد في المسند (٤_١٤٦) . سنن الدارمي_ الجهاد ١٤ (٢٤٤٩)

هَذَا حَدِيثٌ صَحِيحٌ. وَأَبُو نَجِيحٍ هُوَ عَمْرُو بْنُ عَبَسَةَ السُّلَمِيُّ، وَعَبْدُ اللَّهِ بْنُ الأَزْرَقِ هُوَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ زَيْدٍ. (1)

**ترجمه** دعمرو بن عنبسه رضي الله عنه بيان دي فرماني چي ما درسول الله صلي الله عليه وسلم نه اوريدلي دي فرمائيل يي چاچي دالله په لاره كي يو غشي اوويشتلو نو دده دا عمل دثواب په لحاظ دغلام ازادولو سره برابر دي

امام ترمذي وايي : داحديث صحيح دي او دابونجيح نوم عمرو بن عبسه سلمي دي او دعبدالله بن ازرق نه مراد عبدالله بن زيد دي

**ابو نجيح عمرو بن عبسه حالات**

نوم عمرو كنيه ابو نجيح دپلار نوم عبسه بن عامر اودمور نوم يي رمله بن دقيعه وو عمرو بن عبه ابوذر غفاري رضي الله عنه مور شريك ورور وو

داسلام په ابتداء كي مسلمان شوى وو چي واقعه يي په پورتني حديث كي موجود ده دطائف او فتح مكه وغيره په غزواتو كي درسول الله سره شركت كړى دى.

دطائف په محاصره كي چي كله رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل كه څوك يو غشي اولي هغه ته به دجنت يوه دروازه پرانيستلى شي ددي بشارت په اوريدو سره عمرو شپاړس غشي اوويشتل.

صاحب داصابه ليكلي دي چي عمرو دخلافت عثماني په اخر كي وفات شوى دى

مرويات چونكه دنبي كريم صلي الله عليه وسلم صحبت موقعه ورته كمه ملاؤ شوي وه ليكن ددي باوجود دحديث په كتابونو كي دده نه ۴۸ روايات مروي دي تهذيب الكمال

***************

## ۱۲ـ باب مَا جَاءَ فِي فَضْلِ الْحَرْسِ فِي سَبِيلِ اللَّهِ

**دالله په لار كي دڅوكيدارئ او پهرې كولو دفضيلت بيان**

۱۶۳۹ـ حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ الْجَهْضَمِيُّ، حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ عُمَرَ، حَدَّثَنَا شُعَيْبُ بْنُ رُزَيْقٍ أَبُو شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا عَطَاءٌ الْخُرَاسَانِيُّ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ أَبِي رَبَاحٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: " عَيْنَانِ لَا تَمَسُّهُمَا النَّارُ: عَيْنٌ بَكَتْ مِنْ خَشْيَةِ اللَّهِ، وَعَيْنٌ بَاتَتْ تَحْرُسُ فِي

---

1 ـ سنن ابي داود ـ العتق ۱۴ (۳۹۶۵). سنن النسائي ـ الجهاد ۲۶ (۳۱۴۵). (تحفة الأشراف: ۱۰۷۶۸). و احمد في المسند (۴ـ ۱۱۳، ۳۸۶)

سَبِيلِ اللهِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَفِي الْبَابِ، عَنْ عُثْمَانَ، وَأَبِي رَيْحَانَةَ، وَحَدِيثُ ابْنِ عَبَّاسٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ، لاَ نَعْرِفُهُ إِلاَّ مِنْ حَدِيثِ شُعَيْبِ بْنِ رُزَيْقٍ. ([1])

**ترجمه** ابن عباس رضي الله عنه نه روايت دی چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دوه سترګی داسي دي چي ددوزخ داور نه په امان دي يوه هغه سترګی چي دالله دويری اوژاړي او بل هغه سترګی چي في سبيل الله جهاد کې دشپې څوکئ اوکړي، امام ترمذي روايت کړی دی او حديث حسن غريب يی ورته ونيلی دی . او په دي باب کي د عثمان او ابو ريحانه نه هم روايات وارد دي، او دا حديث مونږ ته صرف د شعيب بن رزيق په سند رارسيدلي دی

**لغات** : باتت بات يبيت بيتا دضرب او سمع نه معني شپه تيرول

**تشريح** : په پورتني حديث کي دوه قسمه کسانو ته دجهنم نه برائت ورکړی شوی دی يو هغه کس دی چي دالله تعالي عظمت او جلال او خپلو ګناهونو لره يادونکی وي او بل هغه کس دی څوك چي دالله په لار کې دوتونکو خلقو پهره داري کوي ددي دواړه قسمه کسانو دپاره دجهنم نه دنجات ورکولو اعلان دی او په دي شرط چي دا کار په اخلاص باندي شوی وي.

***************

## ١٣ـ بَاب مَا جَاءَ فِي ثَوَابِ الشُّهَدَاءِ

### دشهيد داجر بيان

١٦٤٠ـ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ طَلْحَةَ الْيَرْبُوعِيُّ الْكُوفِيُّ، حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرِ بْنُ عَيَّاشٍ، عَنْ حُمَيْدٍ، عَنْ أَنَسٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " الْقَتْلُ فِي سَبِيلِ اللهِ يُكَفِّرُ كُلَّ خَطِيئَةٍ ". فَقَالَ جِبْرِيلُ: إِلاَّ الدَّيْنَ. فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " إِلاَّ الدَّيْنَ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَفِي الْبَابِ، عَنْ كَعْبِ بْنِ عُجْرَةَ، وَجَابِرٍ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَأَبِي قَتَادَةَ، وَهَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ، لاَ نَعْرِفُهُ مِنْ حَدِيثِ أَبِي بَكْرٍ، إِلاَّ مِنْ حَدِيثِ هَذَا الشَّيْخِ. قَالَ: وَسَأَلْتُ مُحَمَّدَ بْنَ إِسْمَاعِيلَ عَنْ هَذَا الْحَدِيثِ فَلَمْ يَعْرِفْهُ، وَقَالَ: أُرَى أَنَّهُ أَرَادَ حَدِيثَ حُمَيْدٍ، عَنْ أَنَسٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ قَالَ: " لَيْسَ أَحَدٌ مِنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ يَسُرُّهُ أَنْ يَرْجِعَ إِلَى الدُّنْيَا إِلاَّ الشَّهِيدُ ". ([2])

---

[1] ـ تفرد بذكره المؤلف (تحفة الأشراف : ٥٩٣٥)

[2] ـ تفرد بذكره المؤلف (تحفة الأشراف : ٨١٨)

**ترجمه** انس رضي الله عنه وائي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل : الله په لاره کې قتل کيدل د هري ګناه دپاره کفاره ده، نو جبريل عليه السلام اوفرمائيل "الا الدين" يعني د قرض نه علاوه، نو رسول الله هم اوفرمائيل الا الدين يعني د قرض نه علاوه

امام ترمذي وايي داحديث غريب دي او مونږ ته دا دابوبکر په روايت صرف ددي شيخ يحی بن طلحه، په واسطه رارسيدلي دي دامام بخاري نه مي ددي حديث باره کې تپوس اوکړو نو هغه دلاعلمۍ اظهار اوکړو او وئيل يي زما خيال دي يحی بن طلحه د حميد حديث بيانول غوښتل کوم چې هغه دانس نه نقل کړي دي او انس دنبي کريم صلي الله عليه وسلم نه چې فرمائيل يي دشهيد نه علاوه بل هيڅوک داسي جنتي نشته څوک چې دنيا ته دواپس راتلو خواهش لري، په دي باب کې دکعب بن عجره جابر، ابوهريره، او ابوقتاده رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي.

**تشريح** : په دي حديث کې دحقوق العباد په ادائګۍ زور ورکړي شوي دي يعني دحقوق العباد معامله ډيره سخته ده څکه چې کله کله الله تعالي خپل حقوق يعني عبادات او طاعات معاف کوي مګر د بندګانو حقوق نه معاف کوي اګر که ددشمن په مقابله کې دشجاعت کولو په حالت کې ولي نه وي مړ شوي.

" قال جبريل " ددينه معلومه شوه چې جبريل عليه السلام به صرف قران نه راوړلو بلکه ددي سره سره به يي نور احکام هم راوړل.

دبعضي علماؤ قول دي چې شهيد ته هم حقوق العباد نه معاف کيږي خو دا هغه شهيد دي چې په بري يعني دوچې په جنګ کې شهيد شوي وي دبحري جنګ شهيد ددينه مستثني دي . لکه چې رسول الله فرمائيلي دي چې دبحري جنګ تمام شهيدانو ته ټول ګناهونه معاف کيږي اګر که قرض ولي نه وي.

***************

١٦٤١ـ حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنْ عَمْرِو بْنِ دِينَارٍ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنِ ابْنِ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " إِنَّ أَرْوَاحَ الشُّهَدَاءِ فِي طَيْرٍ خُضْرٍ تَعْلُقُ مِنْ ثَمَرِ الْجَنَّةِ أَوْ شَجَرِ الْجَنَّةِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [1]

[1] ـ النسائي ـ الجنائز ١١٧ (٢٠٧٥) . سنن ابن ماجه ـ الجنائز ٢ ((١٤٤٩) . والزهد ٣٢ (٤٢٧١) . (تحفة الأشراف : ١١١٤٨) . والمؤطاء الجنائز ١٦ (٤٩) . و احمد في المسند (٣ـ ٤٥٥، ٤٥٦، ٤٦٠)

**ترجمه** دكعب بن مالك رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي دشهيدانو روحونه په جنت كي دشنو مرغو په شكل دي چي دجنت په ميوو يا ونو كي خوري او خريږي

امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي.

***************

١٦٤٢_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ. حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ عُمَرَ. أَخْبَرَنَا عَلِيُّ بْنُ الْمُبَارَكِ. عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي كَثِيرٍ. عَنْ عَامِرٍ الْعُقَيْلِيِّ. عَنْ أَبِيهِ. عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ. أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " عُرِضَ عَلَيَّ أَوَّلُ ثَلاثَةٍ يَدْخُلُونَ الْجَنَّةَ: شَهِيدٌ، وَعَفِيفٌ مُتَعَفِّفٌ، وَعَبْدٌ أَحْسَنَ عِبَادَةَ اللَّهِ وَنَصَحَ لِمَوَالِيهِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ. [1]

**ترجمه** دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي ماته دري كسان پيش كړي شول چي جنت ته به دټولو نه مخكي ځي يو شهيد دي، دويم دحرامو نه لري اوسيدونكي، او دنامناسبو كارونو نه ځان ساتونكي، او دريم هغه غلام دي څوك چي په ښه طريقه عبادت اوكړي او دخپلو مالكانو خيرخواهي اوكړي او يا ددوئ حقوق اداء كړي.

امام ترمذي وايي داحديث حسن دي.

**لغات** يعف عفي يعفو عفوا دنصر نه په معني معاف كولو او ساقطولو دي.

يستغن استغني استغناء دباب استفعال نه په معني دبي نيازه او بي حاجته كيدو دي

يتصبر صبر صبرا په معني دبر داشت كولو دي په بهادرئ سره لكه چي محاوره ده من صبر ظفر يعني چاچي صبر وكړو هغه كامياب شو ، او الصبر حيلة لمن لاحيلة له يعني صبر دهغه چا حيله ده دچا چي څه حيله نه وي.

**تشريح**: په دي موضوع صحيحينو د ابو سعيد خدري رضي الله عنه نه يو بل روايت پدي الفاظو نقل كړى دى:

((وَمَنْ يَسْتَغْنِ يُغْنِهِ اللهُ ، وَمَنْ يَتَصَبَّرْ يُصَبِّرْهُ اللهُ . وَمَا أُعْطِيَ أَحَدٌ عَطَاءً خَيْرًا وَأَوْسَعَ مِنَ الصَّبْرِ ))

دابو سعيد خدري رضي الله عنه نه روايت دى ياد لرئ څوك چي دالله تعالي نه پاكي غواړي هغه پاكي وركوي او څوك چي سوال نه ځان ساتي الله تعالي يي بچ كوي او څوك چي صبر كوي الله تعالي ورته دصبر طاقت وركوي او هيچاته يي دصبر نه ښه او فراخه څيز نه دى

[1] تفرد بذكره المؤلف (لم يذكره المزي) وانظر: مسند احمد (٢_ ٤٢٥)

وركړی (بخاري او مسلم)

"ومن يستعفف يعفه الله" څوك چې دسوال نه خان بچ كوي نو الله به يې بچ كړي . دخلقو په وړاندې لاس نه غوړول هم اخلاق فاضله دي په قران كريم كې هم دداسې كسانو تعريف راغلى دي يحسبهم الجاهل اغنياء من التعفف تعرفهم بسيماهم لايسئلون الناس الحافاً.

"ومن يستغن يغنه الله" يعني څوك چې استغناء اختياروي يعني اګرچې لاس يې خالي وي مګر اعتماد يې صرف په الله وي نو خلقو ته يې نه غوړوي، اوهمدا په يوبل حديث كې وارد دي فان الغنى غنى النفس ، ددينه بعضې كسانو داسې تعبير كړې دي: الغني هو الفقير الى الله. او همدې خبرې ته درسول الله په دې ارشاد كې اشاره ده: رب قنعني بما رزقتني وبارك لي فيما اعطيتني.

"اوسع من الصبر" يعني څوك چې صبر كوي الله هغه ته دخپلو خزانونه وركوي . په همدې وجه په يو حديث كې راغلي دي څوك چې درې ورځې صبر وكړي اود چا په وړاندې خپل فقر بيان نكړي نو الله ورته ديوكال حلال رزق دروازه كولاوي.

****************

١٦٤٣_ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ، أَخْبَرَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ جَعْفَرٍ، عَنْ حُمَيْدٍ، عَنْ أَنَسٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ قَالَ: " مَا مِنْ عَبْدٍ يَمُوتُ لَهُ عِنْدَ اللَّهِ خَيْرٌ يُحِبُّ أَنْ يَرْجِعَ إِلَى الدُّنْيَا وَأَنَّ لَهُ الدُّنْيَا وَمَا فِيهَا إِلَّا الشَّهِيدُ، لِمَا يَرَى مِنْ فَضْلِ الشَّهَادَةِ، فَإِنَّهُ يُحِبُّ أَنْ يَرْجِعَ إِلَى الدُّنْيَا فَيُقْتَلَ مَرَّةً أُخْرَى ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. قَالَ ابْنُ أَبِي عُمَرَ: قَالَ سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ: كَانَ عَمْرُو بْنُ دِينَارٍ أَسَنَّ مِنَ الزُّهْرِيِّ. (١)

**ترجمه** دانس رضي الله عنه بيان دى رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمائيلي دي هيڅ يو داسې بنده نشته چې مړ شي او دهغه دپاره دالله تعالى سره ثواب وي او هغه دنيا ته واپس راتلل غواړي مګر علاوه دشهيد نه څكه چې هغه مرتبه او مقام دشهادت ليدلي دي چنانچې دى به غواړي چې دنيا ته واپس لاړ شي او دوباره شهيد شي او بيا راشي

امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي.

****************

[1] ـ البخاري_ الجهاد ٦ (٢٧٩٥) ، و ٢١ (٢٨١٧) . مسلم_ الإمارة ٢٩ (١٨٧٧) ، (تحفة الأشراف : ٥٨٨) . و احمد في المسند (٣_ ١٠٣. ١٢٦. ١٥٣. ١٧٣. ٢٥١. ٢٧٦. ٢٧٨. ٢٨٤. ٢٨٩) ويأتي برقم ١٦٦١

## ١٤_ باب مَا جَاءَ فِي فَضْلِ الشُّهَدَاءِ عِنْدَ اللَّهِ

## د الله تعالی په نزد دشهید فضیلت

١٦٤٤_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا ابْنُ لَهِيعَةَ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ دِينَارٍ، عَنْ أَبِي يَزِيدَ الْخَوْلَانِيِّ، أَنَّهُ سَمِعَ فَضَالَةَ بْنَ عُبَيْدٍ، يَقُولُ: سَمِعْتُ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ، يَقُولُ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: "الشُّهَدَاءُ أَرْبَعَةٌ: رَجُلٌ مُؤْمِنٌ جَيِّدُ الإِيمَانِ لَقِيَ الْعَدُوَّ فَصَدَقَ اللَّهَ حَتَّى قُتِلَ، فَذَلِكَ الَّذِي يَرْفَعُ النَّاسُ إِلَيْهِ أَعْيُنَهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ هَكَذَا"، وَرَفَعَ رَأْسَهُ حَتَّى وَقَعَتْ قَلَنْسُوَتُهُ، قَالَ: فَمَا أَدْرِي أَقَلَنْسُوَةَ عُمَرَ أَرَادَ أَمْ قَلَنْسُوَةَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "وَرَجُلٌ مُؤْمِنٌ جَيِّدُ الإِيمَانِ لَقِيَ الْعَدُوَّ فَكَأَنَّمَا ضُرِبَ جِلْدُهُ بِشَوْكِ طَلْحٍ مِنَ الْجُبْنِ أَتَاهُ سَهْمٌ غَرْبٌ فَقَتَلَهُ، فَهُوَ فِي الدَّرَجَةِ الثَّانِيَةِ، وَرَجُلٌ مُؤْمِنٌ خَلَطَ عَمَلًا صَالِحًا وَآخَرَ سَيِّئًا لَقِيَ الْعَدُوَّ فَصَدَقَ اللَّهَ حَتَّى قُتِلَ، فَذَلِكَ فِي الدَّرَجَةِ الثَّالِثَةِ، وَرَجُلٌ مُؤْمِنٌ أَسْرَفَ عَلَى نَفْسِهِ لَقِيَ الْعَدُوَّ فَصَدَقَ اللَّهَ حَتَّى قُتِلَ، فَذَلِكَ فِي الدَّرَجَةِ الرَّابِعَةِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ، لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ عَطَاءِ بْنِ دِينَارٍ، قَالَ: سَمِعْت مُحَمَّدًا، يَقُولُ: قَدْ رَوَى سَعِيدُ بْنُ أَبِي أَيُّوبَ هَذَا الْحَدِيثَ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ دِينَارٍ، وَقَالَ: عَنْ أَشْيَاخٍ مِنْ خَوْلَانَ وَلَمْ يَذْكُرْ فِيهِ عَنْ أَبِي يَزِيدَ، وَقَالَ عَطَاءُ بْنُ دِينَارٍ: لَيْسَ بِهِ بَأْسٌ. [1]

**ترجمه** : دعمر رضي الله عنه بيان دي فرمائي چي درسول الله صلي الله عليه وسلم نه مي اوريدلي دي فرمائيل يې چي شهيد په څلور قسمه دي اول هغه دي چي يو مضبوط ايمان والا انسان ددشمن سره مخامخ شي او مقابله ورسره اوکړي او هغه سره کړي وعده رښتيا کړي تردي پوري چي قتل کړي شي پس همدا هغه کس دي چاته چي به دقيامت په ورځ دخلقو سترګي پورته کيږي (فضاله بن عبيد راوي ددي دکيفيت بيانولو دپاره) خپل سر پورته کړو تردي پوري چي ټوپۍ يې دسر نه پريوتله، راوي ابويزيد خولاني وائي ماته معلومه نه ده چي فضاله دعمر رضي الله عنه ټوپۍ مراد وه او که درسول الله صلي الله عليه وسلم، دويم هغه انسان دي چي په ښه شان سره يې ايمان راوړي وي او ددشمن سره داسي مقابله اوکړي چي دبزدلي په وجه يې څرمن په غنو زخمي شوي وي او يو نا اشنا غشي راشي دي ورباندي اولګي، دريم هغه بنده دي څوك چي مومن وي او دنيك عمل سره يې بد عمل هم کړي وي او ددشمن سره مقابله اوکړي او الله تعالي سره کړي وعده رښتوني ثابته کړي تردي پوري چي شهيد شي دا په دريمه درجه کي دي، څلورم هغه مومن دي چاچي پخپل ځان باندي دګناهونو

[1] _ تفرد بذكره المؤلف (تحفة الأشراف: ١٠٦٢٣)

دكثرت په وجه ظلم كړي وي او په بهادرئ سره جنګ كوي ترديي پوري چې شهيد شي داشهيد په څلورمه درجه كې دي
امام ترمذي وايي - داحديث حسن غريب دي دامونږ ته صرف دعطاء بن دينار په سند رارسيدلي دي، مادامام بخاري نه اوريدلي دي چې داحديث سعد بن ابي ايوب دعطاء بن دينار نه نقل كړي دي او هغه دخولان دمشانخو نه نقل كړي دي او په دې سند كې امام بخاري دابويزيد ذكر اونكړو، او عطاء بن دينار وائي چې په دې كې هيڅ حرج نشته
***************

## ١٥_ بَابُ مَا جَاءَ فِي غَزْوِ الْبَحْرِ
### په سمندر كې دجهاد كولو بيان

١٦٤٥_ حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ مُوسَى الأَنْصَارِيُّ، حَدَّثَنَا مَعْنٌ، حَدَّثَنَا مَالِكٌ، عَنْ إِسْحَاقَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي طَلْحَةَ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، أَنَّهُ سَمِعَهُ يَقُولُ: كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدْخُلُ عَلَى أُمِّ حَرَامٍ بِنْتِ مِلْحَانَ فَتُطْعِمُهُ، وَكَانَتْ أُمُّ حَرَامٍ تَحْتَ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ، فَدَخَلَ عَلَيْهَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمًا فَأَطْعَمَتْهُ، وَجَلَسَتْ تَفْلِي رَأْسَهُ، فَنَامَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، ثُمَّ اسْتَيْقَظَ وَهُوَ يَضْحَكُ، قَالَتْ: فَقُلْتُ: مَا يُضْحِكُكَ يَا رَسُولَ اللَّهِ؟ قَالَ: "نَاسٌ مِنْ أُمَّتِي عُرِضُوا عَلَيَّ غُزَاةً فِي سَبِيلِ اللَّهِ، يَرْكَبُونَ ثَبَجَ هَذَا الْبَحْرِ مُلُوكٌ عَلَى الأَسِرَّةِ أَوْ مِثْلَ الْمُلُوكِ عَلَى الأَسِرَّةِ". قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، ادْعُ اللَّهَ أَنْ يَجْعَلَنِي مِنْهُمْ، فَدَعَا لَهَا، ثُمَّ وَضَعَ رَأْسَهُ فَنَامَ، ثُمَّ اسْتَيْقَظَ وَهُوَ يَضْحَكُ، قَالَتْ: فَقُلْتُ: مَا يُضْحِكُكَ يَا رَسُولَ اللَّهِ، قَالَ: "نَاسٌ مِنْ أُمَّتِي عُرِضُوا عَلَيَّ غُزَاةً فِي سَبِيلِ اللَّهِ". نَحْوَ مَا قَالَ فِي الأَوَّلِ، قَالَتْ: فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، ادْعُ اللَّهَ أَنْ يَجْعَلَنِي مِنْهُمْ، قَالَ: "أَنْتِ مِنَ الأَوَّلِينَ". قَالَ: فَرَكِبَتْ أُمُّ حَرَامٍ الْبَحْرَ فِي زَمَانِ مُعَاوِيَةَ بْنِ أَبِي سُفْيَانَ، فَصُرِعَتْ عَنْ دَابَّتِهَا حِينَ خَرَجَتْ مِنَ الْبَحْرِ فَهَلَكَتْ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَأُمُّ حَرَامٍ بِنْتُ مِلْحَانَ هِيَ أُخْتُ أُمِّ سُلَيْمٍ وَهِيَ خَالَةُ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ. ([1])

---

[1] _ البخاري_ الجهاد ٣ (٢٧٨٨)، و ٨ (٢٧٩٩)، و ٦٣ (٢٨٧٧)، و ٧٥ (٢٨٩٤)، والاستئذان ٤١ (٦٢٨٢)، والتعبير ١٢ (٧٠٠١)، صحيح مسلم_ الإمارة ٤٩ (١٩١٢)، سنن ابي داود_ الجهاد ١٠ (٢٤٩٠)، سنن النسائي_ الجهاد ٤٠ (٣١٧٣)، سنن ابن ماجه الجهاد ١٠ (٢٧٧٦)، (تحفة الأشراف: ١٩٩) و موطا امام مالک_ الجهاد ١٨ (٣٩)، و احمد في المسند (٣/ ٢٦٤) وانظر أيضا ٦_٣٦١، ٤٢٣، ٤٣٥)

**ترجمه** دانس بن مالك رضي الله عنه بيان دي فرمائي كله چي به رسول الله صلي الله عليه وسلم دام حرام بنت ملحان كور ته تلو نو هغي به ورته خوراك پيش كولو ام حرام رضي الله عنها دعباده بن صامت په عقد كي وه يوه ورځ رسول الله صلي الله عليه وسلم دوئ ته ورغلو نو هغوئ ورباندي خوراك اوكړو او درسول الله صلي الله عليه وسلم په سر كي يې سپږي لټولي او رسول الله صلي الله عليه وسلم اوده وو هر كله چي رابيدار شو نو خندل يې دام حرام رضي الله عنها بيان دي ما عرض اوكړو اي دالله رسوله په څه خبره خاندي نو هغوئ په جواب كي اوونيل ماته زما دامت څه مجاهدين پيش كړي شول چي دسمندر په سينه سواره وواو په تختو ناست وو او بادشاهانو پشان ښكاريدل، دراوي شك دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم "ملوك علي الاسرة" اووئيل او كه "مثل الملوك علي الاسرة" يي اوونيل ماعرض اوكړو اي دالله رسوله دالله تعالي نه دعا اوغواړه چي ما هم په هغه خلقو كي شامل كړي چنانچي رسول الله دهغي دپاره دعا اوغوښتله او بيا رسول الله سر كيخودو او اوده شو بيا دخندا په حالت كي بيدار شو ما عرض اوكړو اي دالله رسوله په څه خبره خاندي نو ويي فرمائيل زما دامت څه كسان دالله په لاره كي جهاد ته تلي دي او ماته پيش كړي شول او بيا يې دماقبل پشان حديث بيان كړو ماعرض اوكړو اي دالله رسوله دعا اوكړه چي الله تعالي ما هم په هغوئ كي شامل كړي رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل ته به په سمندر كي داولنو جهاد كونكو نه يې. دانس رضي الله عنه بيان دي چي دمعاويه بن ابي سفيان په زمانه كي ام حرام رضي الله عنها په سمندري سفر په يو جهاد كي تلي وه او دسمندر نه دوتلو په وخت كي دخپلي سورلئ نه پريوتله او وفات شوه.

امام ترمذي وايي : داحديث حسن صحيح دي، ام حرام بنت ملحان دام سليم خور ده او دانس بن مالك ترور ده.

*****************

## ١٦_ بَاب مَا جَاءَ فِيمَنْ يُقَاتِلُ رِيَاءً وَلِلدُّنْيَا

### درياكارئ او دنيا كتلو دپاره دجهاد كولو بيان

١٦٤٦_ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ شَقِيقِ بْنِ سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي مُوسَى، قَالَ: سُئِلَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الرَّجُلِ يُقَاتِلُ شَجَاعَةً، وَيُقَاتِلُ حَمِيَّةً، وَيُقَاتِلُ رِيَاءً،

فَأَيُّ ذَلِكَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ ؟ قَالَ: " مَنْ قَاتَلَ لِتَكُونَ كَلِمَةُ اللَّهِ هِيَ الْعُلْيَا، فَهُوَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَفِي الْبَابِ، عَنْ عُمَرَ. وَهَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. ([1])

**ترجمه** دابوموسي اشعري رضي الله عنه بيان دي فرماني چي درسول الله صلي الله عليه وسلم نه دهغه چا باره كي تپوس اوكړي شو ځوك چي خلقو ته دشجاعت او بهادرئ خودلو دپاره جهاد كوي او يا د غيرت په وجه جنګيږي او يا درياكارئ دپاره جنګيږي په دوئ كي كوم يو دالله تعالي په لار كي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل ځوك چي دالله تعالي دكلمي دلوړوالي او جاري كيدودپاره جهاد كوي هغه دالله تعالي په لار كي دي.

امام ترمذي وايي : داحديث حسن صحيح دي او په دي باب كي دعمر رضي الله عنه نه هم روايت وارد دي.

**لغات:** "يقاتل" قاتل مقاتلة ديو بل سره جنګ كول "شجاعة" بهادري "حمية غيرت "العليا" لوړه.

## داعمالو دقبوليت دپاره دالله تعالى رضا شرط دي

"سئل رسول الله صلى الله عليه وسلم" دلته د رسول الله صلي الله عليه وسلم نه دسوال كونكي صحابي نه مراد لاحق بن ضمره الباهلي رضي الله عنه دى.

"من قاتل لتكون كلمة الله هي العليا" يعني چونكه دالله تعالىٰ په نزد هر عمل لره صحيح نيت معتبر دى نو په جهاد كې خو به په طريقه اولي دا ضروري وي اوپه همدي وجه يې اوفرمائيل چي مجاهد به هغه ځوك وي ځوك چي د دين دغلبي دپاره جنګيږي مګر الله تعالىٰ انسانان په ظاهر مكلف كړي دي اوهمداوجه ده چي دجهاد په ميدان كې دهر مقتول مسلمان سره دشهيد معامله كولى شي اود نيت او ارادي مسئله يې الله تعالىٰ ته سپارلى شوي ده خكه چي دزړونو په حال هم هغه خبردار دى اودي حديث لره هم علماؤ په جوامع الكلم كې شميرلى دى.

***************

١٦٤٧ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ الثَّقَفِيُّ، عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ عَلْقَمَةَ بْنِ وَقَّاصٍ اللَّيْثِيِّ، عَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ

---

[1] ـ اخرجه البخاري في الصحيح ـ العلم ٤٥ (١٢٣) . والجهاد ١٥ (٢٨١٠) . والخمس ١٠ (٣١٢٦) . والتوحيد ٢٨ (٧٤٥٨) . صحيح مسلم ـ الإمارة ٤٢ (١٩٠٤) : سنن ابي داود ـ الجهاد ٢٦ (٢٥١٧) . سنن النسائي ـ الجهاد ٢١ (٣١٣٨) . سنن ابن ماجه ـ الجهاد ١٣ (٢٧٨٣) . (تحفة الأشراف : ٨٩٩٩) . واحمد في المسند (٤ـ ٣٩٢ ، ٣٩٧ ، ٤٠٢ ، ٤٠٥ ، ٤١٧)

وَسَلَّمَ: "إِنَّمَا الأَعْمَالُ بِالنِّيَّةِ، وَإِنَّمَا لِامْرِئٍ مَا نَوَى، فَمَنْ كَانَتْ هِجْرَتُهُ إِلَى اللَّهِ وَإِلَى رَسُولِهِ، فَهِجْرَتُهُ إِلَى اللَّهِ وَإِلَى رَسُولِهِ، وَمَنْ كَانَتْ هِجْرَتُهُ إِلَى دُنْيَا يُصِيبُهَا أَوِ امْرَأَةٍ يَتَزَوَّجُهَا، فَهِجْرَتُهُ إِلَى مَا هَاجَرَ إِلَيْهِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رُوِيَ عَنْ مَالِكِ بْنِ أَنَسٍ، وَسُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ، وَغَيْرِ وَاحِدٍ مِنَ الأَئِمَّةِ هَذَا، عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ، وَلَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ الأَنْصَارِيِّ، قَالَ: قَالَ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ: يَنْبَغِي أَنْ نَضَعَ هَذَا الحَدِيثَ فِي كُلِّ بَابٍ. ([1])

**ترجمه** د امير المؤمنين عمر فاروق ﷺ نه روايت دى چي رسول كريم فرمائيلي دي چي دتمامو اعمالو دارو مدار چي (ښه وي اوكه بد) وي په نيتونو باندى دى ، هركس ته به دهغه دنيت (چي ښه وي اوكه بدوي) په مطابق بدله ملاوېږي پس دچا هجرت چي دالله اودرسول دپاره وي نودده هجرت به دالله اودرسول دپاره وګڼل شي ،اوچاچي ددنيا دحصول دپاره ،يادكومي ښځي سره دواده كولو دپاره هجرت وكړو، نودده هجرت به هم ددغه مقاصدو دپاره وګڼلى شي.

امام ترمذي وايي : دا حديث حسن صحيح دي مالك بن انس، سفيان ثوري، او بعضي نورو محدثينو دارروايت ديحيىٰ بن سعيد نه نقل كړي دي او دا مونږ ته صرف ديحيىٰ بن سعيد انصاري په روايت رارسيدلي دي، عبدالرحمن بن مهدي وائي مونږ لره دا حديث په هر باب كي اچول پكار دي.

**لغات** الاعمال د عمل جمع ده په معني دكار، النيات جمع دنيّة قصددزړه ته وئيلي شي، او كله كله دياء په تخفيف سره نية هم وئيلي شي، هجرة ، معني جدايي ، ينكحها ، ينكحها نكاح يعني دښځي سره نكاح كول، يا لكه نكح المطر الارض يعني باران زمكي جذب كړو.

**تشريح:** امام شافعي دا حديث ثلث العلم والاحديث ګڼلى دى، د ابن دقيق العيد قول دى چي علماؤ دي حديث ته د ثلث الاسلام لقب وركړي دي ، همدارنګي امام ابوداود ورته دنصف فقه لقب وركړي دي ، د امام عبد الرحمن بن مهدي قول دي من اراد ان يصنف كتابا فليبتدي بهذا الحديث.

---

[1] _ اخرجه البخاري في الصحيح_ بدء الوحي ١ (١) . والإيمان ٤١ (٥٤) . والعتق ٦ (٢٥٢٩) . ومناقب الأنصار ٤٥ (٣٨٩٨) . والنكاح ٥ (٥٠٧٠) . والنذور ٢٣ (٦٦٨٩) . والحيل ١ (٦٩٥٣) . صحيح مسلم_ الإمارة ٤٥ (١٩٠٧) . سنن ابي داود_ الطلاق ١١ (٢٢٠١) . سنن النسائي_ الطهارة ٦٠ (٧٥) . والطلاق ٢٤ (٣٤٦٧) والأيمان والنذور ١٨ (٣٨٢٥) . سنن ابن ماجه_ الزهد ٢١ (٤٢٢٧) . (تحفة الأشراف : ١٠٦١٢) . و احمد في المسند (١_ ٢٥، ٤٣)

په بعض رواياتوکې ددی حديث شان نزول هم بيان کړی شوی دی ،چې يوکس ،ام قيس، نومې زنانه ته دنکاح پيغام وليږلونوهغی ددې وخته پوری دنکاح کولونه انکار وکړو، ترڅوچې دی هجرت ونه کړي نوده ددی شرط په وجه هجرت وکړواوهلته دتلونه پس ددواړو نکاح وتړلی شوه چنانچې په صحابووکې دده نوم هم په مهاجر ام قيس سره مشهور شو نوېدی واقعه کې کومه چې په حديث شريف کې ذکرده داخلاص اودنيت داهميت فضيلت بيان شوی دی چې دانسان داعمالوقبوليت اوپدی باندی داجر اوثواب استحقاق د نيت په درست والي باندی بناء دی،مثلادچانيت چې دهجرت په وخت کې دالله تعالي رضااودرسول الله اطاعت اواتباع وي نوده ته به ددی هجرت اجر اوثواب ملاويږي اودچانيت چې دهجرت په وخت کې دنيا ګټل يادنياکوم بل مقصدحاصلول وي لکه واده کول وغيره نوده ته به هرهغه څه ملاويږي دکوم چې ده اراده يانيت کړی وي.نوددی وجې نه دانسان مقصود اونيت په تمامو اعمالوکې الله تعالىٰ راضي کول اودرسول الله اطاعت کول پکاردي. اوداهم چې نيت ئې دزړه نه وي نه صرف په خوله باندی ولي چې نيت دزړه فعل اودعمل نوم دی اوداضروري شي دي.نولهذاپه مانځه په ژبه باندی په مختلفو الفاظوسره دنيت الفاظ لوستل غير ضروري دي.(امام يحيىٰ بن شرف النووي)

## دنيت اقسام ثلاثه

اول: تميز عبادة عن العادة، يعني دنيت په ذريعه عبادت لره دعادت نه جدا کول مثلا يوکس دمونځ په حالت کې ولاړ وي اونيت يې کړي وي نو دده دا عمل به مونځ ګڼرلي شي ورنه عبث ولاړه به وګڼرلی شي.

دويم: تميز عبادة عن العبادة: يعني دنيت په ذريعه يو عبادت لره دبل عبادت نه جدا کول، مثلا دمازيګر او ماښام په مينځ کې فرق کول.

دريم تميز معبود عن المعبود، يعني دنيت په ذريعه د يومعبود دعبادت نه دبل معبود عبادت جدا کول مثلا څوک مونځ کوي نو دده دنيت نه به دا معلوميږي چې دالله دپاره يې کوي اوکه دکوم بل معبود دپاره ، دالله په نزد به هغه عمل قابل قبول وي کوم چې په صحيح نيت سره وکړي شي.

سوال په "انما الاعمال بالنيات" انما دحصر دپاره دي نو ددي معني دا شوه چې لا عمل الا بالنية . يعني دنيت نه بغير عمل په وجود کې نشي راتلي او حال دادي چې انسانان اعمال دنيت نه بغير هم کوي

جواب دنيت نه بغير دعمل نه موجود کيدو مطلب شرعي موجوديت دي ترددي چې په کتو کې ښکاري مګر په شرعي اعتبار سره به عمل هله معتبر وي کله چې په دي کې د الله تعالىٰ دپاره نيت موجود وي

د "انما الاعمال بالنيات" نه پس لكل امرئ مانوي خكه ذكر كړل چي هر يو كس ته به داعمالو بدله دخپل نيت په اعتبار سره وركولي شي

علامه قرطبي ويلي دي چي دنيت معامله ډيره عظيم الشان او اهميت والاده ، نو خكه يې دوباره په دي جملي سره دنيت تاكيد وكړو

**د دنيا دذكر نه پس دښځي ذكر ولي شوي دي؟**

"او الي امرئة ينكحها" يعني يا ديوي ښځي سره دنكاح كولو اراده لري

سوال په اولني "الي الدنيا" كي ښځه هم داخله وه نو بيا مستقل ولي بيان كړي شوه

جواب دزيات اهتمام په وجه ، يا داچي دمديني انصارو به دمهاجرينو په حق دډير ايثار اوقربانۍ مظاهره كوله په مال او دولت دواړو سره ، نو په دي وجه يې اوفرمائيل چي هيڅوك دي ددنيا اودښځي دحصول دپاره هجرت نه كوي، يا داچي دشان نزول په طور دښځي تذكره مستقلا شوي ده ، يا دا چي دښځي فتنه مهتم بالشان ده نو خكه يې دوباره ذكر كړه

*****************

## ١٧ـ بَاب مَا جَاءَ فِي فَضْلِ الْغُدُوِّ وَالرَّوَاحِ فِي سَبِيلِ اللَّهِ

**په جهادكي دتيريدونكي سحر اوماښام فضيلت**

١٦٤٨ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا الْعَطَّافُ بْنُ خَالِدٍ الْمَخْزُومِيُّ، عَنْ أَبِي حَازِمٍ، عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ السَّاعِدِيِّ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "غَدْوَةٌ فِي سَبِيلِ اللَّهِ خَيْرٌ مِنَ الدُّنْيَا وَمَا فِيهَا، وَمَوْضِعُ سَوْطٍ فِي الْجَنَّةِ خَيْرٌ مِنَ الدُّنْيَا وَمَا فِيهَا". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَفِي الْبَاب، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، وَابْنِ عَبَّاسٍ، وَأَبِي أَيُّوبَ، وَأَنَسٍ، وَهَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [1]

**ترجمه**: د سهل بن سعد الساعدي رضي الله عنه نه روايت دى چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي: يقينا د سحر وخت كي د الله تعالي په لاره كي تلل ددنيا او ما فيها نه بهتر دي. او په جنت كي دليندى برابر خاي يا د ليندي دموټي هومره خاى ددنيا او ما فيها نه بهتر دي

---

[1] ـ اخرجه البخاري في الصحيح ـ الجهاد ٥ (٢٧٩٢) ، و ٧٣ (٢٨٩٢) . وبدء الخلق ٨ (٣٢٥) . والرقاق ٢ (٦٤١٥) . صحيح مسلم ـ الإمارة ٣٠ (١٨٨١) . سنن النسائي ـ الجهاد ١١ (٣١٢٠) . سنن ابن ماجه ـ الجهاد ٢ (٢٧٥٦) . والزهد ٣٩ (٤٣٣٠) . (تحفة الأشراف : ٤٧٤٢) . واحمد في المسند (٣ـ ٤٣٣) ، و (٥ـ ٣٣٠ ، ٣٣٧ ، ٣٣٩) . سنن الدارمي ـ الجهاد ٩ (٢٤٤٣)

امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي اوپه دي باب كي دابوهريره.ابن عباس. ابوايوب. اوانس رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي.

**لغات** : خير د اسم تفضيل صيغه ده د اخير مخفف دي او خيرة يي مونث راځي او جمع يي خيور ده معني نيكياني خير. جمع اخيار ډير نيكي كونكي

**تشريح** : موضع سوط احدكم : علماؤ ددي حديث دوه مطلبونه بيان كړي دي چي په جهاد كي يوه ورځ څوكيداري كول دهغه مال نه بهتره ده كوم چي دالله په لار كي وركړى شي دويم مطلب دادى چي په جهاد كي يوه ورځ څوكيداري كول ددنيا دتمامو څيزونو نه بهتر دى كوږه عموما وړوكى شى وي او لږ شان ځاي راګيروي په دي كي ددنيا حقارت ته اشاره ده چي دنيا دالله تعالي په نزد څومره حقيره ده او جنت ورته څومره عزيز دى.

***************

١٦٤٩_ حَدَّثَنَا أَبُو سَعِيدٍ الأَشَجُّ، حَدَّثَنَا أَبُو خَالِدٍ الأَحْمَرُ، عَنِ ابْنِ عَجْلَانَ، عَنْ أَبِي حَازِمٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَالحَجَّاجُ، عَنِ الحَكَمِ، عَنْ مِقْسَمٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "غَدْوَةٌ فِي سَبِيلِ اللَّهِ أَوْ رَوْحَةٌ خَيْرٌ مِنَ الدُّنْيَا وَمَا فِيهَا". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ، وَأَبُو حَازِمٍ الَّذِي رَوَى عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ هُوَ أَبُو حَازِمٍ الزَّاهِدُ وَهُوَ مَدَنِيٌّ وَاسْمُهُ: سَلَمَةُ بْنُ دِينَارٍ، وَأَبُو حَازِمٍ هَذَا الَّذِي رَوَى عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ هُوَ أَبُو حَازِمٍ الأَشْجَعِيُّ الكُوفِيُّ وَاسْمُهُ: سَلْمَانُ وَهُوَ مَوْلَى عَزَّةَ الأَشْجَعِيَّةِ. [1]

**ترجمه** : د ابو هريره رضي الله عنه نه روايت دى چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي : يقينا د سحر وخت كي د الله تعالي په لاره كي تلل يا د ماښام وخت كي ددنيا او ما فيها نه بهتر دي،

امام ترمذي وايي : داحديث حسن غريب دي كوم ابوحازم چي دسهل بن سعدنه روايت كړي دي هغه ابوحازم زاهد دي او دمديني اوسيدونكي دي او نوم يي سلمه بن ديناردي او هغه ابوحازم كوم چي دابوهريره نه روايت كړي دي دا ابوحازم اشجعي دي دكوفي اوسيدونكي دي او دده نوم سلمان دي او دا د عزه اشجعيه ازاد كړي غلام دي.

**لغات** : خير د داسم تفضيل صيغه ده د اخير مخفف دي او خيرة يي مونث راځي او جمع يي خيور ده معني نيكياني خير. جمع اخيار ډير نيكي كونكي

[1] ـ تفرد به المؤلف. (تحفة الأشراف: ٦٤٧٣). وانظر: مسند احمد (١ـ ٢٥٦)

**تشريح**: لغدوة او روحة: مطلب دادی چې پوره سحر يا پوره مابنام وتلی نه وي بلکه دسحر او دمابنام نه په لږ وخت کې وتلی وي نو دپورتنې حديث فضيلت به ورته حاصل شي او دا فضيلت دتمامې دنيا نه بهتر دی ځکه چې دنياوي نعمتونه به ختم شي او دا فضيلت ختميدو والانه دی
ابن حجر وائي دحديث مطلب دادی که چرې چاته تول دنيا هم ملاؤ شي او دالله په لار کې يې خرچ کړي نو بيابه هم په يو سحر يامابنام کې وتل دالله په لار کې ددينه بهتر وي لکه چې دعبدالله بن رواحه روايت هم ددې تائيد کوي.

***************

١٦٥٠_ حَدَّثَنَا عُبَيْدُ بْنُ أَسْبَاطِ بْنِ مُحَمَّدٍ الْقُرَشِيُّ الْكُوفِيُّ، حَدَّثَنَا أَبِي، عَنْ هِشَامِ بْنِ سَعْدٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي هِلَالٍ، عَنِ ابْنِ أَبِي ذُبَابٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: مَرَّ رَجُلٌ مِنْ أَصْحَابِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِشِعْبٍ فِيهِ عُيَيْنَةٌ مِنْ مَاءٍ عَذْبَةٌ، فَأَعْجَبَتْهُ لِطِيبِهَا، فَقَالَ: لَوِ اعْتَزَلْتُ النَّاسَ فَأَقَمْتُ فِي هَذَا الشِّعْبِ، وَلَنْ أَفْعَلَ حَتَّى أَسْتَأْذِنَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. فَذَكَرَ ذَلِكَ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: "لَا تَفْعَلْ، فَإِنَّ مُقَامَ أَحَدِكُمْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ أَفْضَلُ مِنْ صَلَاتِهِ فِي بَيْتِهِ سَبْعِينَ عَامًا، أَلَا تُحِبُّونَ أَنْ يَغْفِرَ اللَّهُ لَكُمْ وَيُدْخِلَكُمُ الْجَنَّةَ؟ اغْزُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ، مَنْ قَاتَلَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ فَوَاقَ نَاقَةٍ، وَجَبَتْ لَهُ الْجَنَّةُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ. [1]

**ترجمه**: دابوهريره رضي الله عنه بيان دی فرمائي چې په صحابه کرامو کې يو کس ديو غريه غونډۍ باندې تير شو په کوم کې چې دخوږو اوبويوه وړه غونډۍ چينه وه نو دغه مقام او دا چينه ددوی دلتافت په وجه دده خوښه شوه ده په سوچ کې افسوس اوکړو چې کاش زه دملګرو نه جدا شوی وی او دلته مې اوسيدل اختيار کړي وي ليکن زه هغه وخته پورې هرګز داسې نه کوم ترڅو چې مې درسول الله صلي الله عليه وسلم نه اجازت اخستلې نه وي غرض دا چې درسول الله صلي الله عليه وسلم په وړاندې يې ددې واقعې تذکره اوکړه رسول الله ورته اوفرمائيل داسې مه کوه ځکه چې په تاسو کې ديو کس دالله په لاره کې وتل په کور کې داويا کاله مونځ کولو نه بهتردی ايا تاسو ته معلومه نه ده چې الله تعالى تاسو ته ستاسو ګناهونه بخښلي دي او تاسو به جنت ته داخلوي، دالله په لارکې جهاد کوئ او هر چاچې دوه پيرې دالله په لاره کې داوښې دلوشلو په مقداروخت دالله په لاره کې جهاد اوکړو دهغه دپاره جنت واجب شو.

---

[1] _ تفرد به المؤلف، (تحفة الأشراف: ١٣٥٤٩)، وانظر: مسند احمد (٢_ ٣٣٢، ٥٢٤)

امام ترمذي وايي داحديث حسن دي

**تشريح**: فواق ناقة: فواق دومره وخت ته ونيلى شي كوم چي داوښې ديو خل لوشلو نه دبل خل لوشلو مينځ کې وي دا معمولي شان وقفه وي او په دي شان سره بيا خاروي ډير شوده کوي دا جمله ددينه کنايه ده يعني که چا لږ شان جهاد هم اوکړو نو دهغه دپاره هم جنت واجب دى خو په دي شرط چي اخلاص وي او ددي سره سره دده په ذمه دبندگانو حقوق واجب نه وي

***************

١٦٥١_ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ جَعْفَرٍ، عَنْ حُمَيْدٍ، عَنْ أَنَسٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "لَغَدْوَةٌ فِي سَبِيلِ اللَّهِ أَوْ رَوْحَةٌ خَيْرٌ مِنَ الدُّنْيَا وَمَا فِيهَا، وَلَقَابُ قَوْسِ أَحَدِكُمْ أَوْ مَوْضِعُ يَدِهِ فِي الجَنَّةِ خَيْرٌ مِنَ الدُّنْيَا وَمَا فِيهَا، وَلَوْ أَنَّ امْرَأَةً مِنْ نِسَاءِ أَهْلِ الجَنَّةِ اطَّلَعَتْ إِلَى الأَرْضِ، لَأَضَاءَتْ مَا بَيْنَهُمَا وَلَمَلَأَتْ مَا بَيْنَهُمَا رِيحًا، وَلَنَصِيفُهَا عَلَى رَأْسِهَا خَيْرٌ مِنَ الدُّنْيَا وَمَا فِيهَا". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ صَحِيحٌ.

عن أبي هريرة ﷺ: أنَّ رسول الله ﷺ قال: ((لقَابُ قَوْسٍ في الجَنَّةِ خَيْرٌ مِمَّا تَطْلُعُ عَلَيْهِ الشَّمْسُ أَوْ تَغْرُبُ)) متفق عليه. [1]

**ترجمه** د انس رضي الله عنه نه روايت دى چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي يقينا د سحر وخت کې د الله تعالي په لاره کې تلل يا د ماښام وخت کې ددنيا او ما فيها نه بهتر دي. او په جنت کې دليندی برابر خاي يا د ليندي دموټي هومره خاى دهغى تولو څيزونو نه بهتر دى چي نمر پرى راخيژي (يعنى تولى دنيا نه بهتر دى) او که د اهل جنت په ښځو کي يوه ښځه دنيا ته راښکاره شي نو د زمکي او اسمان مينځ کې به هر څه روښانه کړي او هرڅه به د خوشبو يې نه ډك کړي، او صرف دهغوئ د سر لوپټه ددنيا او ما فيها نه بهتره ده

امام ترمذي وايي دا حديث حسن صحيح دى

**لغات**: خير داسم تفضيل صيغه ده داخير نه مخفف دي او مونث يي خيرة راخي او جمع يي خيور دي په معني دنيکئ سره

[1] _ اخرجه البخاري في الصحيح_ الجهاد ٥ (٢٧٩٢)، و ٦ (٢٧٩٦)، والرقاق ٥١ (٦٥٥٨)، صحيح مسلم_ الإمارة ٣٠ (١٨٨٠) سنن ابن ماجه_ الجهاد ٢ (٢٧٥٧)، (تحفة الأشراف: ٥٨٧)، واحمد في المسند (٣_ ١٣٢، ١٤١، ١٥٣، ١٥٧، ٢٠٧، ٢٦٣، ٢٦٤)

**تشريح**: لقاب قوس في الجنة خير مما تطلع عليه الشمس. يعني په جنت کې د يوې ليندې په مقدار ځاې دهغه تمام جهان نه بهتر دی په کوم چې نمر راخيژي. ددينه مراد تمامه دنيا او ددنيا تمام خيزونه دي ځکه چې نمر په دې ټولو راخيژي.

"اوتغرب" دراوي شك دی چې رسول الله طلوع لفظ استعمال کړو او که غروب. بعضي وائي چې او دتعجب داظهار دپاره دی يا او په معني د واو دی ددې مثالونه په احاديثو کې نور هم موندلی شي لکه موضع سوط في الجنة خير من الدنيا ومافيها.

يعني دجنت معمولي شان ځاې هم دتمامې دنيا او ددنيا دخيزونو نه بهتر دی ځکه چې ددنيا تمام خيزونه فاني دي او دجنت نعمتونه هميشه دي.

***************

## ١٨ــ بَابُ مَا جَاءَ أَيُّ النَّاسِ خَيْرٌ

## په خلقوکې ښه او بهتر څوک دي

١٦٥٢ــ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا ابْنُ لَهِيعَةَ، عَنْ بُكَيْرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الأَشَجِّ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " أَلاَ أُخْبِرُكُمْ بِخَيْرِ النَّاسِ؟ رَجُلٌ مُمْسِكٌ بِعِنَانِ فَرَسِهِ فِي سَبِيلِ اللَّهِ، أَلاَ أُخْبِرُكُمْ بِالَّذِي يَتْلُوهُ؟ رَجُلٌ مُعْتَزِلٌ فِي غُنَيْمَةٍ لَهُ يُؤَدِّي حَقَّ اللَّهِ فِيهَا، أَلاَ أُخْبِرُكُمْ بِشَرِّ النَّاسِ؟ رَجُلٌ يُسْأَلُ بِاللَّهِ وَلاَ يُعْطِي بِهِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ مِنْ هَذَا الوَجْهِ. وَيُرْوَى هَذَا الحَدِيثُ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.[1]

**ترجمه**: دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما بيان دي نبي کريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي ايا په خلقو کې بهتر انسان تاسو ته اونه ښايم؟ او دا هغه کس دي چاچې دالله په لاره کې دخپل اس واګې نيولې وي اوايا په خلقوکې هغه کس تاسو ته اونه ښايم څوك چې په مرتبه کې ددينه وروسته وي؟ او دا هغه کس دي څوك چې دخلقو نه جدا شي او دخپلوچيلو سره اوسيږي او دالله حق اداء کوي او ايا په خلقو کې بدترين انسان تاسو ته اونه ښايم؟ او دا هغه کس دي دچانه چې دالله په نوم څه څيز اوغوښتلې شي او دې يې ورته ورنکړي

---

[1] ــ سنن النسائي ــ الزكاة ٧٤ (٢٥٧٠). (تحفة الأشراف: ٥٩٨٠). وأحمد في المسند (١ــ ٢٣٧، ٣١٩، ٣٢٢). سنن الدارمي ــ الجهاد ٦ (٢٤٠٠)

امام ترمذي وايي په دي سند باندي دا حديث حسن غريب دي او دا حديث په يو څو سندونو دابن عباس رضي الله عنهما په واسطه مرفوع هم منقول دي

***************

## ١٩_ باب مَا جَاءَ فِيمَنْ سَأَلَ الشَّهَادَةَ

### دشهادت دمرګ غوښتلو بيان

١٦٥٣_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَهْلِ بْنِ عَسْكَرٍ الْبَغْدَادِيُّ، حَدَّثَنَا الْقَاسِمُ بْنُ كَثِيرٍ الْمِصْرِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ شُرَيْحٍ، أَنَّهُ سَمِعَ سَهْلَ بْنَ أَبِي أُمَامَةَ بْنِ سَهْلِ بْنِ حُنَيْفٍ يُحَدِّثُ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " مَنْ سَأَلَ اللَّهَ الشَّهَادَةَ مِنْ قَلْبِهِ صَادِقًا، بَلَّغَهُ اللَّهُ مَنَازِلَ الشُّهَدَاءِ وَإِنْ مَاتَ عَلَى فِرَاشِهِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ سَهْلِ بْنِ حُنَيْفٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ، لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ شُرَيْحٍ، وَقَدْ رَوَاهُ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ صَالِحٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ شُرَيْحٍ، وَعَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ شُرَيْحٍ يكنى أبا شريح وهو إسكندراني، وفي الباب، عَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ. ([1])

**ترجمه** : دسهل بن حنيف رضي الله عنه نه مروي دي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي څوك چي په صدق او اخلاص دشهادت دعا اوغواړي نو الله تعالي هغه لره دشهيدانو مرتبي ته رسوي اګر که هغه پخپله بستره کي مړولي نه وي.

امام ترمذي وايي : دسهل بن حنيف حديث حسن غريب دي او دا مونږ ته صرف دعبدالرحمن بن شريح په سند رارسيدلي دي دا حديث عبدالرحمن بن شريح نه عبدالله بن صالح هم نقل کړي دي او دعبدالرحمن بن شريح اسم کنيه ابوشريح ده او دي داسکندريه اوسيدونکي دي او په دي باب کي دمعاذ بن جبل رضي الله عنه نه هم حديث وارد دي

**لغات**: الشهادة ، شهِد وشهُد شهادة دسمع او کرم نه په معني دګواهي ورکولو ، استشهد دالله په لاره کي شهيد شو ، ددي جمع شهداء راځي.

بلغه: بلغ بلوغا دنصر نه په معني درسيدلو دي اود کرم نه په معني دفصيح او بليغ کيدو دي.

مات: مات موتا دنصر نه په معني دمړ کيدو اود کېږو زړيدو دي.

فراشه : فرش فرشا دنصر او ضرب نه په معني دغوړولو الفراش بستري او جالي ته ونيلي شي.

---

[1] _ صحيح مسلم_ الإمارة ٤٦ (١٩٠٩) . سنن ابي داود_ الصلاة ٣٦١ (١٥٢٠) . سنن النسائي_ الجهاد ٣٦ (٣١٦٣) . سنن ابن ماجه_ الجهاد ١٥ (٢٧٩٧) . (تحفة الأشراف : ٤٦٥٥) . سنن الدارمي_ الجهاد ١٦ (٢٤٥١)

**تشريح** : "وهو بدري" سهل بن حنيف رضي الله عنه يو بدري صحابي دي بدري كيدل دلته په خصوصيت سره بيان شوي دي ځکه چې داد صحابه کرامو دپاره ديره دفخر او خصوصيت خبره وه . او هغه خصوصيت دادي ، اطلع اهل بدر فقالوا اعملوا ماشئتم فقد وجبت لكم الجنة.

"الشهادة بصدق بلغه الله منازل الشهداء" په دي حديث پاك كې داخلاص فضيلت بيان شوي دي چې داخلاص په وجه الله تعالى دشهادت درجه وركوي، يعني دجنګ په ميدان كې دشهيد كيدو نه بغير صرف په صدق او اخلاص سره دومره درجه وركوي ، ددي په خلاف كه دچا نيت خراب وي نو په ميدان جنګ كې دجنګيدو نه پس به هم جهنم ته رسيږي.

****************

١٦٥٤ـ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا رَوْحُ بْنُ عُبَادَةَ، حَدَّثَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ، عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ مُوسَى، عَنْ مَالِكِ بْنِ يُخَامِرَ السَّكْسَكِيِّ، عَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " مَنْ سَأَلَ اللَّهَ الْقَتْلَ فِي سَبِيلِهِ صَادِقًا مِنْ قَلْبِهِ، أَعْطَاهُ اللَّهُ أَجْرَ الشَّهِيدِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (١)

**ترجمه** : دمعاذ بن جبل رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي څوك چې دزړه په صدق دالله په لاره كې دقتل كيدو دپاره دعا اوغواړي نو الله تعالي ورته دشهادت ثواب وركوي.

امام ترمذي وايي : دا حديث حسن صحيح دي.

****************

## ٢٠ـ باب مَا جَاءَ فِي الْمُجَاهِدِ وَالنَّاكِحِ وَالْمُكَاتَبِ وَعَوْنِ اللَّهِ إِيَّاهُمْ

**دمجاهد او نكاح كونكي او مكاتب غلام سره دالله تعالي مدد شامل وي**

١٦٥٥ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنِ ابْنِ عَجْلَانَ، عَنْ سَعِيدٍ الْمَقْبُرِيِّ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " ثَلَاثَةٌ حَقٌّ عَلَى اللَّهِ عَوْنُهُمْ: الْمُجَاهِدُ فِي سَبِيلِ اللَّهِ، وَالْمُكَاتَبُ الَّذِي يُرِيدُ الْأَدَاءَ، وَالنَّاكِحُ الَّذِي يُرِيدُ الْعَفَافَ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ. (٢)

---

[1] ـ سنن ابي داود ـ الجهاد ٣٢ (٢٥٤١) . سنن النسائي ـ الجهاد ٢٥ (٣١٤٣) . سنن ابن ماجه ـ الجهاد ١٥ (٢٧٩٢) . (تحفة الأشراف : ١١٣٥٩) . و احمد في المسند (٥ـ ٢٣٠، ٢٤٥، ٢٤٤) . سنن الدارمي ـ الجهاد ٥ (٢٤٣٩) . ويأتي برقم ١٦٥٤

[2] ـ سنن النسائي ـ الجهاد ١٢ (٣١٢٢) . والنكاح ٥ (٣٢٢٠) . سنن ابن ماجه ـ العتق ٣ (٢٥١٨) . (تحفة الأشراف : ١٣٠٢٩)

**ترجمه** دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي د دري كسانو امداد كول دالله تعالي په ذمه ثابت دي يو دالله په لاركي جهاد كونكي دي او دويم هغه مكاتب غلام دي څوك چي زر دكتابت اداء كول غواړي او بل هغه نكاح كونكي دي څوك چي پاكدامني حاصلول غواړي

امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي.

***************

## ٢١_ بَاب مَا جَاءَ فِيمَنْ يُكْلَمُ فِي سَبِيلِ اللَّهِ

## فضيلت دهغه كس څوك چي دالله په لاره كي زخمي شي

١٦٥٦_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ مُحَمَّدٍ، عَنْ سُهَيْلِ بْنِ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " لَا يُكْلَمُ أَحَدٌ فِي سَبِيلِ اللَّهِ وَاللَّهُ أَعْلَمُ بِمَنْ يُكْلَمُ فِي سَبِيلِهِ، إِلَّا جَاءَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ اللَّوْنُ لَوْنُ الدَّمِ، وَالرِّيحُ رِيحُ الْمِسْكِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رُوِيَ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.(1)

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي هيڅوك دالله په لاره كي نه زخمي كيږي او الله تعالي په هغه ښه خبردار دي څوك چي دهغه په لاره كي زخمي شي مگر رابشي دي دقيامت په ورخ باندي (چي په وينو به رنگ وي) رنگ به دويني وي خو بوي به يي دمشكو وي.

امام ترمذي وايي : داحديث حسن صحيح دي او ددي سند نه علاوه په نورو سندونو هم داحديث دابوهريره په واسطه دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه مروي دي

***************

١٦٥٧_ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا رَوْحُ بْنُ عُبَادَةَ، حَدَّثَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ، عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ مُوسَى، عَنْ مَالِكِ بْنِ يُخَامِرَ، عَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " مَنْ قَاتَلَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ مِنْ رَجُلٍ مُسْلِمٍ فُوَاقَ نَاقَةٍ، وَجَبَتْ لَهُ الْجَنَّةُ، وَمَنْ جُرِحَ جُرْحًا فِي سَبِيلِ اللَّهِ أَوْ نُكِبَ نَكْبَةً.

---

1 _ اخرجه البخاري في الصحيح_ الجهاد ١٠ (٢٨٠٣). صحيح مسلم_ الإمارة ٢٨ (١٨٧٦). سنن النسائي_ الجهاد ٢ (٣١٣٩). سنن ابن ماجه_ الجهاد ١٥ (٢٧٩٥). (تحفة الأشراف: ١٢٧٢٠). واحمد في المسند (٢_ ٢٤٢، ٣٩٨، ٤٠٠، ٥١٢، ٥٣١، ٥٣٧). سنن الدارمي_ الجهاد ١٥ (٢٤٥٠)

فَإِنَّهَا تَجِيءُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ كَأَغْزَرِ مَا كَانَتْ، لَوْنُهَا الزَّعْفَرَانُ، وَرِيحُهَا كَالْمِسْكِ ". هَذَا حَدِيثٌ صَحِيحٌ. ([1])

**ترجمه** دمعاذ بن جبل رضي الله عنه نه مروي دي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي څوك چي دالله په لاره كي د دوه پيري اوښي لوشلو د درمياني وخت په مقدار لاړشي او جهاد اوكړي دده دپاره به جنت واجب شي او څوك چي دالله په لاره كي زخمي شي دي به دقيامت په ورځ په داسي حال كي راځي چي زخم به يي ددنيادزخم نه لږ زيات وي او رنګ به يي دزعفرانو وي او خوشبو به يي دمشكو وي.
امام ترمذي وايي . داحديث حسن صحيح دي.

****************

## ٢٢ـ بَاب مَا جَاءَ أَيُّ الأَعْمَالِ أَفْضَلُ

### په عملونو كي كوم يو عمل افضل او بهتر دي

١٦٥٨ـ حَدَّثَنَا أَبُو كُرَيْبٍ، حَدَّثَنَا عَبْدَةُ بْنُ سُلَيْمَانَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرٍو، حَدَّثَنَا أَبُو سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: سُئِلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَيُّ الأَعْمَالِ أَفْضَلُ، أَوْ أَيُّ الأَعْمَالِ خَيْرٌ؟ قَالَ: " إِيمَانٌ بِاللَّهِ وَرَسُولِهِ ". قِيلَ: ثُمَّ أَيُّ شَيْءٍ؟ قَالَ: " الْجِهَادُ سَنَامُ الْعَمَلِ ". قِيلَ: ثُمَّ أَيُّ شَيْءٍ يَا رَسُولَ اللَّهِ؟ قَالَ: " ثُمَّ حَجٌّ مَبْرُورٌ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، قَدْ رُوِيَ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. ([2])

**ترجمه** دابوهريره رضي الله عنه بيان دي فرمائي چي درسول الله صلي الله عليه وسلم نه تپوس اوكړي شو په عملونو كي كوم يو عمل افضل دي يا په عملونو كي كوم يو عمل دټولو نه بهتر دي؟ رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل په الله تعالي او دهغه په رسول ايمان راوړل بيا تپوس اوكړي شو په دي پسي وروسي كوم يو عمل دنورو اعمالو نه بهتر دي رسول الله

---

[1] ـ سنن ابي داود ـ الجهاد ٤٢ (٢٥٤١) . سنن النسائي ـ الجهاد ٢٥ (٣١٤٣) . سنن ابن ماجه ـ الجهاد ١٥ (٢٧٩٢) . (تحفة الأشراف : ١١٣٥٩) . واحمد في المسند (٥ـ ٢٣٠، ٢٤٥، ٢٤٤) . سنن الدارمي ـ الجهاد ٥ (٢٤٣٩) . ويأتي برقم ١٦٥٧

[2] ـ تفرد بذكره المؤلف (تحفة الأشراف : ١٥٠٦٠) (وراجع: اخرجه البخاري في الصحيح ـ الإيمان ١٨ (٢٦) . والحج ٤ (١٥١٩) . صحيح مسلم ـ الإيمان ٣٦ (٨٣) . سنن النسائي ـ الحج ٤ (٢٦٢٥) . والجهاد ١٧ (٣١٣٢) . واحمد في المسند (٢ـ ٢٨٧)

اوفرمائیل جهاد کول دا دنیکئ کوف دي. بیا تپوس اوکړي شو اي دالله رسوله په دي پسي کوم یو عمل دنوروعملونو نه بهتر دي رسول الله اوفرمائیل حج مبرور (مقبول)
امام ترمذي وایي داحدیث حسن صحیح دي او دا حدیث دابوهریره په واسطه په بو څو سندونو مرفوعا هم دنبي کریم صلي الله علیه وسلم نه مروي دي

**لغات** مبرور معني دخیانت نه خالي، سبیل معني لاره جمع یي سبل راخي

**تشریح** : "اي العمل افضل" یعني په عملونو کې کوم یو عمل ډیر افضل دی په دي جمله کې سوال یو دی مګر رسول الله ددي مختلف جوابونه ورکړي دي کله دحالاتو په مناسبت جواب ورکړی دی او کله یي دسائل دحالت په اعتبار جواب ورکړی دی . حج مبرور مقبول حج ته ونیلی شي داسي حج چي نه پکې ګناه وي او نه ریا او نه بل نقصان

***************

## ٢٣_ بَاب مَا ذُكِرَ أَنَّ أَبْوَابَ الْجَنَّةِ تَحْتَ ظِلَالِ السُّيُوفِ

### دجنت دروازي دتورو دسوري دلاندي دي

١٦٥٩_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا جَعْفَرُ بْنُ سُلَيْمَانَ الضُّبَعِيُّ، عَنْ أَبِي عِمْرَانَ الْجَوْنِيِّ، عَنْ أَبِي بَكْرِ بْنِ أَبِي مُوسَى الْأَشْعَرِيِّ، قَالَ: سَمِعْتُ أَبِي بِحَضْرَةِ الْعَدُوِّ، يَقُولُ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " إِنَّ أَبْوَابَ الْجَنَّةِ تَحْتَ ظِلَالِ السُّيُوفِ ". فَقَالَ رَجُلٌ مِنَ الْقَوْمِ رَثُّ الْهَيْئَةِ: آأَنْتَ سَمِعْتَ هَذَا مِنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَذْكُرُهُ ؟ قَالَ: نَعَمْ. فَرَجَعَ إِلَى أَصْحَابِهِ. فَقَالَ: أَقْرَأُ عَلَيْكُمُ السَّلَامَ. وَكَسَرَ جَفْنَ سَيْفِهِ فَضَرَبَ بِهِ حَتَّى قُتِلَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ. لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ جَعْفَرِ بْنِ سُلَيْمَانَ الضُّبَعِيِّ، وَأَبُو عِمْرَانَ الْجَوْنِيُّ اسْمُهُ: عَبْدُ الْمَلِكِ بْنُ حَبِيبٍ، وَأَبُو بَكْرِ ابْنُ أَبِي مُوسَى. قَالَ أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ: هُوَ اسْمُهُ. [1]

**ترجمه** دابوبکر بن ابوموسي اشعري رضي الله عنهما بیان دي فرمائي چي ما د دشمنانو په موجودګئ کي دخپل پلارنه اوریدلي دي چي رسول الله صلي الله علیه وسلم فرمائیلي دي بیشکه دجنت دروازي د تورو په سوري کي دي په خلقو کي یو ګډوډ او خیرن حالت والا کس تپوس اوکړو ایا تا درسول الله صلي الله علیه وسلم نه دا حدیث اوریدلي دي هغوئ اوونیل هو چنانچي دا کس واپس شو او خپلو مقابلینو ته ورغلو او ورته یي اوونیل زه تاسو ټولو ته سلام

[1] ـ مسلم_الإمارة ٤١ (١٩٠٢) . (تحفة الأشراف : ٩١٣٩) . واحمد في المسند (٤_٣٩٦، ٤١١)

کوم او بیا هغه دخپلې توري تیکې مات کړو او دهغوئ سره یې جنګ شروع کړو تردې پورې چې شهید شو.
امام ترمذي وايي : داحديث حسن غريب دي دا مونږ ته صرف دجعفربن سليمان ضبعي په سند رارسيدلي دي
**لغات**: ظلال ظلال دظل جمع ده په معنى دسورې سره. السيوف: جمع دسيف ده توري ته وئيلې شي او سيف يو قسم سمندري مهي ته هم وئيلې شي چې دتوري پشان مخوکه یې وي.

***************

## ٢٤_ باب مَا جَاءَ أَيُّ النَّاسِ أَفْضَلُ

### په خلقو کې افضل او بهتر څوک دي

١٦٦٠_ حَدَّثَنَا أَبُو عَمَّارٍ، حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ بْنُ مُسْلِمٍ، عَنِ الأَوْزَاعِيِّ، حَدَّثَنَا الزُّهْرِيُّ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَزِيدَ اللَّيْثِيِّ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، قَالَ: سُئِلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَيُّ النَّاسِ أَفْضَلُ ؟ قَالَ: " رَجُلٌ يُجَاهِدُ فِي سَبِيلِ اللَّهِ ". قَالُوا: ثُمَّ مَنْ ؟ قَالَ: " ثُمَّ مُؤْمِنٌ فِي شِعْبٍ مِنَ الشِّعَابِ يَتَّقِي رَبَّهُ، وَيَدَعُ النَّاسَ مِنْ شَرِّهِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (1)

**ترجمه** : دابوسعيدخدري رضي الله عنه بيان دي فرمائي چې درسول الله صلي الله عليه وسلم نه تپوس اوکړې شو په خلقو کې افضل څوک دي نو وېې فرمائيل هغه کس څوک چې دالله په لاره کې جهاد کوي صحابه کرامو تپوس اوکړو بيا څوک افضل دي نو وېې فرمائيل بيا هغه مومن دي څوک چې په کومه ديرکئ کې يواځې پاتې کيږي او دخپل رب نه ويريږي او خلقو لره دخپل شر نه بچ کوي.
امام ترمذي وايي : داحديث حسن صحيح دي.
**لغات**: معتزل: اعتزل يعتزل اعتزالا معني جدا کيدل دنصر او ضرب نه راځي او په مزيدو کې دباب افتعال وغيره نه مستعمل دي.
شعب: دغر لاره ، داوبو لارې او درې ته هم وئيلې شي اولويې قبيلې ته هم وئيلې شي، جمع يې شعاب راځي.

---

[1] _ اخرجه البخاري في الصحيح_ الجهاد ٢ (٢٧٨٦) . والرقاق ٣٤ (٦٤٩٤) . صحيح مسلم_ الإمارة ٣٤ (١٨٨٨) . سنن ابي داود_ الجهاد ٥ (٢٤٨٥) . سنن النسائي_ الجهاد ٧ (٣١٠٧) . سنن ابن ماجه_ الفتن ١٣ (٣٩٧٨) . (تحفة الأشراف : ٤١٥١) . و احمد في المسند (٣_ ١٦، ٣٧، ٥٦، ٨٨)

**تشريح** : "اي الناس افضل" يعني په خلقو كې څوك ډير بهتر دى په بعضي روايتونو كې ددې په ځاي "خير الناس منزلا" لفظ راغلى دى او په بعضي روايتونو كې "اي الناس اكمل ايمانا" لفظ راغلى دى.

رجل يجاهد في سبيل الله : يوهغه مومن دى څوك چې دالله په لاره كې په مال او جان سره جهاد كوي او په بل روايت كې ددې په ځاي رجل يجاهد في سبيل الله بنفسه وماله لفظ راغلى دى يعني نفس او مال لفظ وړاندې وروسته دې، سوال دادى چې په احاديثو كې مروي دي چې ډيرو صحاب كرامو تپوس اوكړو چې كوم يو عمل افضل دى مګر رسول الله ورته جدا جدا جواب وركړو او افضل ترين عمل خو صرف يو كيدى شي؟

جواب دادى په دغه وخت كې چې سائل ته دكوم څيز ضرورت وو دهغې په اعتبارسره ورته رسول الله جواب وركړى دى.

"رجل معتزل في شعب من الشعاب يتقي ربه"يعني څوك چې دغر په كومه غونډۍ كې كيني اوهلته دخپل رب عبادت كوي، شعب دغرلاړې ياد دوه غرونو په مينځ كې لاري ته ونيلى شي، په يو بل روايت كې د يعبد ربه لفظ په ځاي باندې يتقي الله لفظ راغلى دى، مطلب دادى كه په چاكې همت نه وي چې دخلقو نه خپل ايمان محفوظ كړي نو داسې كس دې خلق پريږدي او غرته دې لاړشي اوهلته دې دخلوت ژوند اختياركړي اودالله په عبادت كې دې مشغول شي ترڅو چې خلق دده دشر نه محفوظ شي اودى هم دخلقو دشر نه محفوظ شي.

تنبيه: دادرهبانيت تعليم نه دى ځكه چې په رهبانيت كې په مستقل طور سره ځنګل ته تلل وي او دلته خو په وختي او هنګامي طورسره حكم شوى دى اوچې كله داحالات او مجبوري ختمه شي نودى به واپس بيرته راځي.

****************

## ٢٥_ باب فِي ثَوَابِ الشَّهِيدِ

### دشهيد داجر بيان

١٦٦١_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا مُعَاذُ بْنُ هِشَامٍ، حَدَّثَنِي أَبِي، عَنْ قَتَادَةَ، حَدَّثَنَا أَنَسُ بْنُ مَالِكٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَا مِنْ أَحَدٍ مِنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ يَسُرُّهُ أَنْ يَرْجِعَ إِلَى

الدُّنْيَا غَيْرُ الشَّهِيدِ، فَإِنَّهُ يُحِبُّ أَنْ يَرْجِعَ إِلَى الدُّنْيَا، يَقُولُ: حَتَّى أُقْتَلَ عَشْرَ مَرَّاتٍ فِي سَبِيلِ اللَّهِ، مِمَّا يَرَى مِمَّا أَعْطَاهُ مِنَ الْكَرَامَةِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [1]

**ترجمه** انس بن مالك رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي دشهيد نه علاوه هيڅ يو جنتي داسي نشته څوك چي دنيا ته واپس تلل غواړي او شهيد دنيا ته واپس تلل غواړي او په زړه كي داسي وائي چي دالله په لاره كي لس پيري قتل كړي شم او دا ارمان په دي وجه كوي چي ده هغه مقام ليدلي وي كوم چي الله تعالي شهيد ته وركړي دي

امام ترمذي وايي : داحديث حسن صحيح دي.

****************

١٦٦٢_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَنَسٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، نَحْوَهُ بِمَعْنَاهُ، قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [2]

**ترجمه** : په دي سند هم دانس رضي الله عنه نه ددي هم معني روايت مروي دي

امام ترمذي وايي : داحديث حسن صحيح دي.

**لغات** : شهيد: جمع شهداء معني دالله په لاره كي ځان وركول ، گواهي وركول، اقرار كول، شهادت تصديق كول جمع يي شهادات راځي.

**تشريح** : ما من احد من اهل الجنة : جنت ته دداخليدونه پس به هيڅوك دانه خوښوي چي دنياته واپس لاړ شي ، علماؤ ددي حديث دوه مطلبونه بيان كړي دي شهيدان چي به دنيا ته دراتلو كومه تمني كوي ددي اولنى مطلب خو دادى چي دوئ به وائي اى الله ته مونږ دنيا ته واپس كړي چي مونږ نوره زياته قرباني ستاپه لار كي وركړو، دويم مطلب دادى چي اى الله زمونږ روحونه زمونږ جسمونو ته واپس كړي ترڅو چي مونږ په دنيا كي ستادانعاماتو شكريه ادا كړو كوم چي تاپه مونږ باندي كړي دي او دا شكريه به داسي اداكيدىشي چي مونږ ستا په لار كي ستا درضا دپاره بيا بيا قربانياني وركړو.

*****************

١٦٦٣_ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، حَدَّثَنَا نُعَيْمُ بْنُ حَمَّادٍ، حَدَّثَنَا بَقِيَّةُ بْنُ الْوَلِيدِ، عَنْ بَحِيرِ بْنِ سَعْدٍ، عَنْ خَالِدِ بْنِ مَعْدَانَ، عَنِ الْمِقْدَامِ بْنِ مَعْدِي كَرِبَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى

---

[1] _ تفرد بذكره المؤلف (لم يذكره المزي) وانظر: مسند احمد (٢_٣٢٥)

[2] _ انظر حديث رقم ١٦٢٣ (تحفة الأشراف : ١٢٥٢)

اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لِلشَّهِيدِ عِنْدَ اللهِ سِتُّ خِصَالٍ: يُغْفَرُ لَهُ فِي أَوَّلِ دَفْعَةٍ، وَيَرَى مَقْعَدَهُ مِنَ الْجَنَّةِ، وَيُجَارُ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ، وَيَأْمَنُ مِنَ الْفَزَعِ الأَكْبَرِ، وَيُوضَعُ عَلَى رَأْسِهِ تَاجُ الْوَقَارِ لَيَاقُوتَةٌ مِنْهَا خَيْرٌ مِنَ الدُّنْيَا وَمَا فِيهَا، وَيُزَوَّجُ اثْنَتَيْنِ وَسَبْعِينَ زَوْجَةً مِنَ الْحُورِ الْعِينِ، وَيُشَفَّعُ فِي سَبْعِينَ مِنْ أَقَارِبِهِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ. (1)

**ترجمه** دمقدام بن معديكرب رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي دالله تعالي سره دشهيد دپاره شپږ انعامات دي

(۱) دويني داولني څاڅکي دپريوتو سره ده ته مغفرت کوي.

(۲) دي په جنت کي خپل مقام ويني.

(۳) دقبر دعذاب نه محفوظ وي.

(۴) فزع الاكبر (دلوي يرونكي ورځي) نه مامون وي.

(۵) دده په سر به دعزت تاج ايخودلي شي چي يو ياقوت يي ددنيا او مافيها نه بهتر دي

(۶) د ۷۲جنتي حورو سره دده واده کيږي او د اويا رشته دارانو په باره کي به دده شفاعت قبليږي.

امام ترمذي وايي : داحديث حسن غريب دي.

***************

## ٢٦ـ بَابُ مَا جَاءَ فِي فَضْلِ الْمُرَابِطِ

## دسرحدونو دحفاظت کولو دفضيلت بيان

١٦٦٤ـ حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرِ بْنُ أَبِي النَّضْرِ، حَدَّثَنَا أَبُو النَّضْرِ الْبَغْدَادِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ عَبْدِ اللهِ بْنِ دِينَارٍ، عَنْ أَبِي حَازِمٍ، عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ، أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "رِبَاطُ يَوْمٍ فِي سَبِيلِ اللهِ خَيْرٌ مِنَ الدُّنْيَا وَمَا فِيهَا، وَمَوْضِعُ سَوْطِ أَحَدِكُمْ فِي الْجَنَّةِ خَيْرٌ مِنَ الدُّنْيَا وَمَا فِيهَا، وَلَرَوْحَةٌ يَرُوحُهَا الْعَبْدُ فِي سَبِيلِ اللهِ أَوْ لَغَدْوَةٌ خَيْرٌ مِنَ الدُّنْيَا وَمَا فِيهَا". هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (٢)

---

1 ـ سنن ابن ماجه ـ الجهاد ١٦ (٢٧٩٩) . (تحفة الأشراف : ١١٥٥٦) . واحمد في المسند (٤ـ١٣١)

2 ـ اخرجه البخاري في الصحيحـ الجهاد ٥ (٢٧٩٣) . و ٧٣ (٢٨٩٢) . وبدء الخلق ٨ (٣٢٥٠) والرقاق ٢ (٦٤١٥) . صحيح مسلمـ الإمارة ٣٠ (١٨٨١) . سنن النسائيـ الجهاد ١١ (٣١٢٠) . سنن ابن ماجهـ الجهاد ٢ (٢٧٥٦) . والزهد ٣٩

**ترجمه** د سهل بن سعد الساعدي رضي الله عنه نه روايت دی چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي يقينا د الله تعالي په لاره کي يوه ورځ پهره کول ددنيا او ما فيها نه بهتر دي.

امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي

**لغات** : خير د اسم تفضيل صيفه ده د اخير مخفف دي او خيرة يي مونث راځي او جمع يي خيور ده معني نيکياني خير، جمع اخيار ډير نيکي کونکي

**تشريح** : موضع سوط احدکم : علماؤ ددي حديث دوه مطلبونه بيان کړي دي چي په جهاد کې يوه ورځ څوکيداري کول دهغه مال نه بهتره ده کوم چي دالله په لار کې ورکړی شي دويم مطلب دادی چي په جهاد کې يوه ورځ څوکيداري کول ددنيا دتمامو څيزونو نه بهتر دی کوږه عموما وړوکی شی وي او لږ شان ځاي راګيروي په دي کې ددنيا حقارت ته اشاره ده چي دنيا دالله تعالي په نزد څومره حقيره ده او جنت ورته څومره عزيز دی.

**************

١٦٦٥_ حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُنْكَدِرِ، قَالَ: مَرَّ سَلْمَانُ الْفَارِسِيُّ بِشُرَحْبِيلَ بْنِ السِّمْطِ وَهُوَ فِي مُرَابَطٍ لَهُ، وَقَدْ شَقَّ عَلَيْهِ وَعَلَى أَصْحَابِهِ، قَالَ: أَلَا أُحَدِّثُكَ يَا ابْنَ السِّمْطِ بِحَدِيثٍ سَمِعْتُهُ مِنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟ قَالَ: بَلَى، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: " رِبَاطُ يَوْمٍ فِي سَبِيلِ اللَّهِ أَفْضَلُ، وَرُبَّمَا قَالَ: خَيْرٌ، مِنْ صِيَامِ شَهْرٍ وَقِيَامِهِ، وَمَنْ مَاتَ فِيهِ وُقِيَ فِتْنَةَ الْقَبْرِ، وَنُمِّيَ لَهُ عَمَلُهُ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ. ([1])

**ترجمه** : دمحمد بن منکدر بيان دي سلمان فارسي رضي الله عنه دشرحبيل بن سمط په خوا کي تير شو او هغه دخپل مرابط (دسرحد دحفاظت کولو په ځاي) کي وو او هلته هغه ته او دهغه ملګرو ته اوسيدل ګران شوي وو سلمان فارسي اوونيل اي ابن سمط ايا هغه حديث درته بيان نکړم کوم چي ما درسول الله صلي الله عليه وسلم نه اوريدلي دي ابن سمط اوونيل ولي نه سلمان رضي الله عنه اوونيل ما درسول الله صلي الله عليه وسلم نه اوريدلي دي دالله په لاره کي

(٣٣٣٠) . (تحفة الأشراف : ٣٤٣٣) . و احمد في المسند (٣_ ٤٣٣) . و (٥_ ٣٣٠، ٣٣٨، ٣٣٩) . سنن الدارمي_ الجهاد ٩ (٢٤٤٣)

[1] _ مسلم_ الإمارة ٥٠ (١٩١٣) . سنن النسائي_ الجهاد ٣٩ (٣١٦٩) . (تحفة الأشراف : ٤٥١٠)

يوه ورځ پهره داري كول ديوي مياشتي روژې نيولو او تهجد كولو نه افضل دي اوهغه به دافضل په ځاي كله كله خير لفظ ذكر كولو او څوك چي په داسي حالت كي وفات شي دي به دقبر دعذاب نه محفوظ وي او دقيامت دورځي پوري به دده عمل زياتيږي

امام ترمذي وايي : داحديث حسن صحيح دي

**لغات** : مات: مات يموت موتا مړ كيدل ، مات الريح معني هوا ودريدله جمع يې اموات ، موتي او ميتون راځي.

**تشريح** : درباط معني ددشمن په نقل او حركت نظر ساتل دي او دخپلو سرحدونو حفاظت كول دي په پورتني حديث كي تير شول چي دسرحدونو په حفاظت كي خان شريكونكي كسان دا خصوصيت لري چي دقيامت دورځي پوري به ددوئ صالح اعمال ليكلى كيږي او هيڅ كله به نه ختميږي، پهرداري كونكى به دقبر دعذاب نه محفوظ وي او دازمانش نه به محفوظ وي ددينه مراد دقبر فرشتي دي منكر او نكير څوك چي به په قبر كي دري سوالونه كوي دا مرحله دانسان دپاره سخته خطرناكه ده ليكن په سرحدونو شهادت وركونكي به د ... ازمانش نه محفوظ وي.

***************

١٦٦٦_حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ، حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ بْنُ مُسْلِمٍ، عَنْ إِسْمَاعِيلَ بْنِ رَافِعٍ، عَنْ سُمَيٍّ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَنْ لَقِيَ اللَّهَ بِغَيْرِ أَثَرٍ مِنْ جِهَادٍ، لَقِيَ اللَّهَ وَفِيهِ ثُلْمَةٌ». قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ مِنْ حَدِيثِ الْوَلِيدِ بْنِ مُسْلِمٍ، عَنْ إِسْمَاعِيلَ بْنِ رَافِعٍ، وَإِسْمَاعِيلُ بْنُ رَافِعٍ قَدْ ضَعَّفَهُ بَعْضُ أَهْلِ الْحَدِيثِ، قَالَ: وَسَمِعْتُ مُحَمَّدًا، يَقُولُ: هُوَ ثِقَةٌ مُقَارِبُ الْحَدِيثِ، وَقَدْ رُوِيَ مِنْ غَيْرِ هَذَا الْوَجْهِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَحَدِيثُ سَلْمَانَ إِسْنَادُهُ لَيْسَ بِمُتَّصِلٍ، مُحَمَّدُ بْنُ الْمُنْكَدِرِ لَمْ يُدْرِكْ سَلْمَانَ الْفَارِسِيَّ، وَقَدْ رُوِيَ هَذَا الْحَدِيثُ عَنْ أَيُّوبَ بْنِ مُوسَى، عَنْ مَكْحُولٍ، عَنْ شُرَحْبِيلَ بْنِ السِّمْطِ، عَنْ سَلْمَانَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، نَحْوَهُ.[1]

**ترجمه** دابوهريره رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي څوك چي دجهاد دځه اثر نه بغير دالله تعالي سره مخامخ شي نو دي به ورسره په داسي حال كي مخامخ كيږي چي په ده كي به نقصان او عيب وي

[1] _ سنن ابن ماجه_الجهاد ٥ (٢٧٦٣) . (تحفة الأشراف : ١٢٥٥٢)

امام ترمذي وايي داحديث دمحمد بن مسلم په واسطه داسماعيل بن رافع په سند ضعيف دي، او بعضي محدثينو داسماعيل بن رافع تضعيف کړي دي. ما د امام بخاري نه اورېدلي دي چي اسماعيل ثقه دي، مقارب الحديث دي. داحديث په نورو سندونو هم دابوهريره نه مروي دي، او دسلمان دحديث سند متصل نه دي دسلمان فارسي سره دمحمد بن منکدر ملاقات ثابت نه دي او داحديث په سند دايوب بن موسي عن مکحول عن شرحبيل الصمد عن سلمان عن النبي صلي الله عليه وسلم سره هم مروي دي.

***************

١٦٦٧_ حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ الْخَلَّالُ. حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ عَبْدِ الْمَلِكِ. حَدَّثَنَا اللَّيْثُ بْنُ سَعْدٍ. حَدَّثَنِي أَبُو عَقِيلٍ زُهْرَةُ بْنُ مَعْبَدٍ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ مَوْلَى عُثْمَانَ. قَالَ: سَمِعْتُ عُثْمَانَ وَهُوَ عَلَى الْمِنْبَرِ. يَقُولُ: إِنِّي كَتَمْتُكُمْ حَدِيثًا سَمِعْتُهُ مِنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَرَاهِيَةَ تَفَرُّقِكُمْ عَنِّي. ثُمَّ بَدَا لِي أَنْ أُحَدِّثَكُمُوهُ لِيَخْتَارَ امْرُؤٌ لِنَفْسِهِ مَا بَدَا لَهُ. سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: " رِبَاطُ يَوْمٍ فِي سَبِيلِ اللَّهِ، خَيْرٌ مِنْ أَلْفِ يَوْمٍ فِيمَا سِوَاهُ مِنَ الْمَنَازِلِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ. وقَالَ مُحَمَّدُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ: أَبُو صَالِحٍ مَوْلَى عُثْمَانَ اسْمُهُ: تُرْكَانُ. (1)

**ترجمه** د ابو صالح بيان دی چي د عثمان رضي الله عنه نه مي په منبر اوريدلي فرمائيل يي چي ما ددي ويري په وجه ستاسو نه د رسول الله صلي الله عليه وسلم يو حديث پټ کړی وو چي چرته تاسو زما نه جدا نشئ خو اوس مي مناسب وګنړله چي درته بيان يي کړم ددي دپاره چي څوك وړباندي عمل کول غواړي عمل وړباندي وکړي درسول الله صلي الله عليه وسلم نه مي اوريدلي دي چي في سبيل الله يوه ورځ داسلام دسرحدونو په حفاظت کي تيرول بل ځايی کي دزرو ورځو نه بهتره ده.

امام ترمذي روايت وايي دا حديث حسن صحيح غريب دی اود امام بخاري نه مي اوريدلي دي چي ابو صالح د عثمان رضي الله عنه ازاد کړي غلام وو او دده نوم ترکان دی.

**لغات** : خير داسم تفضيل صيغه ده داخير نه مخفف دي او مونث يي خيرة راځي او جمع يي خيور دي په معني دنيکئ سره.

**تشريح** : رباط: رباط په حديث کي په دوه معنو مستعمل دي اول، مونځ، ديو مونځ نه پس دبل مونځ پوري انتظار کول، دويم دسرحدونو حفاظت کول او دلته هم دا دويمه معني مراد ده په

[1] _ سنن النسائي_ الجهاد ٣٩ (٣١٧١) . (تحفة الأشراف: ٩٨٣٢) . و احمد في المسند (١_ ٦٢، ٦٥، ٦٦، ٧٥) . سنن الدارمي_ الجهاد ٣٢ (٢٤٦٨)

پورتني حديث کې دالله په لار کې دپهره کونکي اجر او انعام بيان شوی دی کوم چې دانفرادي عبادت په مقابله کې ډير زيات دی څکه چې دانفرادي عبادت فائده صرف دخپل خان دپاره وي او دسرحدونو حفاظت اجتماعي عبادت دی ددي فائده عامه وي نو په دي وجه به ددي اجر هم ډير زيات وي.

****************

١٦٦٨ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، وَأَحْمَدُ بْنُ نَصْرٍ النَّيْسَابُورِيُّ، وغير واحد، قَالُوا: حَدَّثَنَا صَفْوَانُ بْنُ عِيسَى، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَجْلَانَ، عَنِ الْقَعْقَاعِ بْنِ حَكِيمٍ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَا يَجِدُ الشَّهِيدُ مِنْ مَسِّ الْقَتْلِ، إِلَّا كَمَا يَجِدُ أَحَدُكُمْ مِنْ مَسِّ الْقَرْصَةِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ. [1]

**ترجمه** ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي شهيد دقتل کولو په وخت کې دومره تکليف هم نه محسوسوي لکه ميږی چې په چاچك اولګوي.

امام ترمذي روايت وايي دا حديث حسن صحيح غريب دی

**لغات**: القرصة: دميږي دچيچلو تکليف ته ويلي شي.

**تشريح**: طيبي دمشکواة په شرح کې ددي حديث دا مطلب بيان کړی دی چې په پورتني حديث کې دهغه شهيد ذکر دی څوك چې پخپل شهادت کې لذت محسوسوي او په شهادت يې زړه خوشحاليږي بعضي نورو علماؤ ددي بل مطلب بيان کړی دی چې شهيد ته دمرګ نه پس کوم نعمتونه ملاويږي او دهغي کوم لذت وي دهغي په مقابله کې ورته دمرګ تکليف دميږي دچيچلو برابر ښکاري.

****************

١٦٦٩ـ حَدَّثَنَا زِيَادُ بْنُ أَيُّوبَ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، أَنْبَأَنَا الْوَلِيدُ بْنُ جَمِيلٍ الْفِلَسْطِينِيُّ، عَنِ الْقَاسِمِ أَبِي عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ أَبِي أُمَامَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "لَيْسَ شَيْءٌ أَحَبَّ إِلَى اللَّهِ مِنْ قَطْرَتَيْنِ، وَأَثَرَيْنِ: قَطْرَةٌ مِنْ دُمُوعٍ فِي خَشْيَةِ اللَّهِ، وَقَطْرَةُ دَمٍ تُهَرَاقُ فِي سَبِيلِ اللَّهِ،

[1] ـ سنن النسائي ـ الجهاد ٣٥ (٣١٦٣)، سنن ابن ماجه ـ الجهاد ١٦ (٢٨٠٢)، (تحفة الأشراف: ١٢٨٦١)، واحمد في المسند (٢ـ٢٩٧)

وَأَمَّا الأَثَرَانِ: فَأَثَرٌ فِي سَبِيلِ اللهِ، وَأَثَرٌ فِي فَرِيضَةٍ مِنْ فَرَائِضِ اللهِ". قَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ.
([1])

**ترجمه** د ابو امامه صدي بن عجلان رضي الله عنه نه روايت دی چي رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل چي الله تعالي ته د دوو څاڅکو او دوو علامو نه زيات هيڅ يو څيز محبوب نشته يو هغه اوښکه چي دالله تعالي دويری نه دسترګو نه اوبهيږي، دويم دويني هغه څاڅکی چي دالله تعالي په لاره کي تويی شي او دعلامو نه يوه هغه علامه ده چي دالله تعالي په لاره کي لګيدلی وي او بله هغه علامه (ننبه) چي دالله تعالي دفرائضو نه ديو فرض په سلسله کي لګيدلی وي . امام ترمذي وايي دا حديث حسن غريب دی .

**لغات** : اثرين: اثر دسمع نه اثراً يعني په کوم کارکي په توجه سره شروع کول.

**تشريح** : احب الي الله تعالي من قطرتين. يعني دالله تعالي په نزد ددوه څاڅکو نه زيات محبوب دی بل هيڅ يو شی نشته .

### الله تعالي ته داوښکود څاڅکي دمحبوب کيدو باره کي مولانا قاسم نانوتوي يوه حکيمانه نکته وائي

داوښکو څاڅکی الله تعالي ته ډير محبوب دی مولانا قاسم نانوتوي ددي يومثال وائي چي کوم بادشاه دخپلي خزاني دپاره قيمتي غمي راوړي دي نو دهغي ډير قدر کولی شي همدا رنګي دمومن اوښکي چي کله په شاهي دربار کي قبليږي ددي هم ډير قدر کيږي ځکه چي دالله تعالي په خزانه کي دندامت اوښکي نشته. دويم څاڅکی کوم چي الله تعالي ته محبوب دی دا دهغه ويني څاڅکی دی کوم چي دالله په لاره کي بهيدلي وي وينه دانسان په جسم کي يو ډير قيمتي عنصر دی کله چي يو قيمتي څيز دالله په لاره کي بهيږي نو دا به ضرور محبوب ګرځي لکه چي مولانا رومي هم ددي حديث مضمون پخپل يو شعر کي بيان کړی دی.

اشق راه دروزن باخون شهيد     که برابر مي کند شاه مجيد

واما الاثران، هغه دوه نهي کومي چي الله تعالي ته محبوب دي اوله داده چي الله لاري ته ورسيدو او اووتلو او بيا زخمي شو يا همدا رنګي دفرائضو په پوره کولو کي زخمي شي نو ددي زخمونو علامات هم الله تعالي ته محبوب دي او په قيامت کي به الله تعالي دطرفه ددي ډير اجر ملاويږي.

[1] ـ تفرد بذكره المؤلف (تحفة الأشراف: ٤٩٠٦)

***************

# كتاب الجهاد عن رسول الله صلى الله عليه وسلم

## جهاد متعلق د رسول الله صلي الله عليه وسلم ارشادات

امام نووي ليكلي دي د جهاد متعلق قراني قاطع او صريح نصوص او متواتر احاديث په كثرت سره وارد دي يو څو ورنه په طورد نموني ستاسو د فائدي دپاره پيش كوو

قال تَعَالَى : ﴿ كُتِبَ عَلَيْكُمُ الْقِتَالُ وَهُوَ كُرْهٌ لَكُمْ وَعَسَى أَنْ تَكْرَهُوا شَيْئاً وَهُوَ خَيْرٌ لَكُمْ وَعَسَى أَنْ تُحِبُّوا شَيْئاً وَهُوَ شَرٌّ لَكُمْ وَاللهُ يَعْلَمُ وَأَنْتُمْ لاَ تَعْلَمُونَ ﴾ [ البقرة : ٢١٦ ] .

مسلمانانو،په تاسو باندي جهاد فرض كړي شوي دي، او دا تاسو ته بد بنكاري نزدي ده چي بد به ګڼئ تاسو يوشي او هغه به ستاسو دپاره غوره وي اوډير كرته به خوښوئ تاسو يوشي او هغه به بد وي تاسو لره الله پاك پوهيږي او تاسو نه پوهيږئ

په پورتني ايت كي دجهاد دفرضيت اعلان شوى دى، مفسرين وائي ددي ايت نه په ظاهري طور سره معلوميږي چي جهاد په هر مسلمان باندي فرض دى ليكن په قران كي په نورو ايتونو كي او په ارشادات نبوي كي راغلي دي چي جهاد په هر حال كي فرض عين نه دى بلكه فرض كفايه دى چي دمسلمانانو يو جماعت كه دا فرض ادا كړي نو دباقي مسلمانانو ذمه به فارغه وي ليكن كه په هيڅ زمانه او هيڅ ملك كي هيڅ يو جماعت ددي فرض ادا كونكى نه وي نو بيا به ټول ګنهګار وي

وقال تَعَالَى : ﴿ انْفِرُوا خِفَافاً وَثِقَالاً وَجَاهِدُوا بِأَمْوَالِكُمْ وَأَنْفُسِكُمْ فِي سَبِيلِ اللهِ ﴾ [التوبة:٤١].

لاړشئ سپك او درانه او جهاد وكړئ په مالونو خپلو اونفسونو خپلو په لاره د الله كي

"خفافا وثقالا" ددي مختلف تفسيرونه بيان شوي دي حسن بصري، ضحاك، مجاهد، قتاده، او عكرمه په قول ددينه مراد ځوانان يا بوډاګان دي او ابن عباس رضي الله عنهما دخفاف او ثقال مطلب دا بيان كړى دى چي اسلحه ورسره كمه وي يا زياته وي او دعطيه په قول ددينه مراد سواره او پيدل دي او دابن زيد په قول ددينه مراد جائيداد او بي جائيداده خلق دي دچا پريخودل چي تاسو نه خوښوئ دبعضو په قول ددينه چالاك او ناراسته مراد دي او دبعضو په نزد ددينه تنګ دست او مالداران مراد دي او دبعضو په نزد مشغول او فارغ مراد دي او دبعضو په نزد تندرست او بيماران مراد دي او دبعضو په نزد بال بچي دار او بي اولاده مراد دي بهر حال مختلفو مفسرينو ددي جملي مختلف تفسيرونه كړي دي خو مراد دټولو يو دى چي په هر حال كي به تاسو جهاد كوئ درانه يئ او كه سپك يئ ليكن وروسته ورنه معذورين مستثني كړى شوي دي

وقال تعالى: ﴿إِنَّ اللَّهَ اشْتَرَى مِنَ الْمُؤْمِنِينَ أَنفُسَهُمْ وَأَمْوَالَهُم بِأَنَّ لَهُمُ الْجَنَّةَ يُقَاتِلُونَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ فَيَقْتُلُونَ وَيُقْتَلُونَ وَعْداً عَلَيْهِ حَقّاً فِي التَّوْرَاةِ وَالإِنجِيلِ وَالْقُرْآنِ وَمَنْ أَوْفَى بِعَهْدِهِ مِنَ اللَّهِ فَاسْتَبْشِرُوا بِبَيْعِكُمُ الَّذِي بَايَعْتُم بِهِ وَذَلِكَ هُوَ الْفَوْزُ الْعَظِيمُ﴾ [التوبة: ١١١].

[پس خوشحاله شئ په بيعي خپلي باندي هغه چي معامله كړي ده تاسو په هغي سره اودا كار (خرڅول) هم كاميابي ده لويه] دكوم حصول چي انتهائي عظيم ترين مقصد دي]

دبيعت عقبه دشركاؤ متعلق دا ايت نازل شوى دى "ان الله اشتري" ددي ايت په اوريدو سره اول براء بن معرور او ابو الهيثم او اسعد رضي الله عنهم وغيره درسول الله صلي الله عليه وسلم په لاسونو كې خپل لاسونه وركړل او دا لوظ يې اوكړو چي مونږ دي معاملي ته تيار يو چي ته كله مديني ته راځي نو مونږ به ستا حفاظت كوو او داسي حفاظت به دي كوو لكه څرنګه چي مونږ دخپلو ښځو او بچو كوو او په دي باره كې به دهر چا مقابله كوو.

فاستبشروا ببيعكم الذي بايعتم به: په بيعت عقبه كې دا معامله ظاهرا دحفاظت دبيع او شراء په صورت جوړشوېنو ځكه په شروع كې ددينه په ان الله اشتري سره تعبير اوشو او اوس دا بيانيږي چي دا سودا تاسو دفائدي كړي ده ځكه چي جان او مال ختميدونكي دي او جنت هميشه باقي پاتي كيدونكى دى.

حسن بصري ددي ايت باره كې فرمائي واورئ دا څنګه د ګټي تجارت دى دكوم چي الله تعالي هر مومن ته موقعه وركړي ده او فرمائيلي يې دي چي الله تعالي تاسو ته جان او مال دركړى دى تاسو په دي كې لږ شان خرچ كړئ او جنت ورباندي واخلئ.

وقال الله تعالى: ﴿لاَّ يَسْتَوِي الْقَاعِدُونَ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ غَيْرُ أُوْلِي الضَّرَرِ وَالْمُجَاهِدُونَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ بِأَمْوَالِهِمْ وَأَنفُسِهِمْ فَضَّلَ اللَّهُ الْمُجَاهِدِينَ بِأَمْوَالِهِمْ وَأَنفُسِهِمْ عَلَى الْقَاعِدِينَ دَرَجَةً وَكُلاًّ وَعَدَ اللَّهُ الْحُسْنَى وَفَضَّلَ اللَّهُ الْمُجَاهِدِينَ عَلَى الْقَاعِدِينَ أَجْراً عَظِيماً دَرَجَاتٍ مِّنْهُ وَمَغْفِرَةً وَرَحْمَةً وَكَانَ اللَّهُ غَفُوراً رَّحِيماً﴾ [النساء: ٩٦٩٥].

مفسرينو ددي ايت دا مطلب بيان كړى دى چي كوم كسان بغير دعذر نه جهاد پريږدي دوئ دهغه كسانو سره برابر نه دي څوك چي په جهاد كې مشغول دي علماء وائي ددي ايت نه دا هم معلوميږي چي جهاد فرض كفايه دى كه بعضي كسان يې ادا كړي نو دنورو ذمه به فارغه شي خو شرط دادى چي كوم كسان په جهاد كې مشغول وي هغوئ دجهاد دپاره كافي وي او كه كافي نه وي نو ددوئ چارچاپير چي كوم مسلمانان پراته دي په هغوئ دا فرض دي چي ددي مجاهدينو مدد اوكړي او كه هغوئ هم كافي نه وي نو بيا چي ددوئ خواته نور څوك نږدي وي په هغوئ فرض دي تردي پوري چي دمشرق او مغرب په هر مسلمان به دا فرض اوګرځي.

وقال تعالى : ﴿ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا هَلْ أَدُلُّكُمْ عَلَى تِجَارَةٍ تُنْجِيكُمْ مِنْ عَذَابٍ أَلِيمٍ تُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَرَسُولِهِ وَتُجَاهِدُونَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ بِأَمْوَالِكُمْ وَأَنْفُسِكُمْ ذَلِكُمْ خَيْرٌ لَكُمْ إِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُونَ يَغْفِرْ لَكُمْ ذُنُوبَكُمْ وَيُدْخِلْكُمْ جَنَّاتٍ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الأَنْهَارُ وَمَسَاكِنَ طَيِّبَةً فِي جَنَّاتِ عَدْنٍ ذَلِكَ الْفَوْزُ الْعَظِيمُ وَأُخْرَى تُحِبُّونَهَا نَصْرٌ مِنَ اللَّهِ وَفَتْحٌ قَرِيبٌ وَبَشِّرِ الْمُؤْمِنِينَ ﴾ [ الصف : ١٠ ١٣ ] .

[اي ايمان والو ايااوښايم تاسوته يوداسي تجارت چي بچ کوی تاسولره دعذاب دردناك نه ، ايمان به راوړي په الله تعالي باندي اوپه رسول دهغه باندي اوجهاد به کوی تاسو په لاري دالله تعالي کې په مالونوخپلوسره اونفسونوخپلوسره داکارغوره دي تاسولره که چري تاسو پوهه لري بخښنه به اوکړي تاسوته دګناهونوستاسو اوداخل به کړي تاسوجنتونوته چي بهيږي لاندي دهغي نه ولي اوکورونه داوسيدلو مزيدار په باغونودهميش والي کې داکاميابي لويه ده ، اوبل نعمت چي خوښوي تاسوهغه مدد دي دطرف دالله تعالي نه اوګټه نږدي اوزيري ورکړه مومنانولره] .

"علي تجارة تنجيكم من عذاب اليم" يعني يوه داسي سوداګري کومه چي تاسو لره ديو دردناك عذاب نه بچ کوي ، په پورتني ايت کې ايمان او جهاد بالمال يو تجارت ګڼړلی شوی دی لکه څرنګه چي په تجارت کولو او محنت کولو په صله کې مالي نفع حاصليږي نو همدارنګي په الله باندي په ايمان لرلو او دالله په لار کې جان او مال خرچ کولو په بدله کې دالله تعالي رضا او په اخرت کې دجنت وعده شوي ده همدارنګي په قران کې په يو بل ځاي کې هم راغلي دي"ان الله اشتري من المؤمنين انفسهم واموالهم بأن لهم الجنة " يعني الله تعالي دمومنانو نه ددوئ مالونه او جانونه اخستلي دي او ددي په بدل کې يي ورسره دجنت سودا کړي ده.

واخري تحبونها نصرمن الله وفتح قريب" او تاسو ته به يو بل نعمت هم درکړي کوم چي تاسو غواړي او هغه دالله تعالي مدد او دير زر فتح موندل دي لکه چي په يو بل قراني ارشاد کې راغلي دي "ان تنصروالله ينصركم " يعني که تاسو دالله تعالي مدد اوکړئ نو الله تعالي به ستاسو مدد اوکړي ددي فتح او نصرت اولنی مصداق خيبر وو او ددينه پس فتح مکه وه او بعضو دروم او فارس عظيم الشان جنګونه ددي مصداق ګرځولي دي.

خلاصه داده چي اصل څيز خو داخرت نعمتونه دي ليکن انسان جلتي کونکی دی دی په دنيا کې نقد نعمت غواړي نو دده دپاره په دنيا کې فتح موندل الله تعالي مقرر کړل ليکن داخرت وعدي يي پرتې دي.

په قران کريم کې ددي عنوان لاندي ډير نور ايتونه هم شته مثلاً:

(١) فاقتلوا المشركين حيث وجدتموهم وخذوهم واحصروهم واقعدوا لهم كل مرصد.

يعني دا مشركان چي هرچرته بيامومئ نو قتل يي كړئ، اوپه هره موقعه كي ددوئ ترصد وكړئ.

(٢) وقاتلوا في سبيل الله واعلموا ان الله سميع عليم.

(٣) ولولا دفع الله الناس بعضهم ببعض لفسدت الارض ولكن الله ذو فضل علي العالمين.

(٤) ولولا دفع الله الناس بعضهم ببعض لهدمت صوامع وبيع وصلوات ومساجد يذكر فيها اسم الله كثيرا ولينصرن الله من ينصره ان الله لقوي عزيز.

(٥) قاتلوا الذين لا يؤمنون بالله ولا باليوم الاخر ولا يحرمون ما حرم الله ورسوله ولا يدينون دين الحق من الذين اتوا الكتاب حتي يعطوا الجزية عن يد وهم صاغرون.

****************

## ١ـ باب مَا جَاءَ فِي الرُّخْصَةِ لأَهْلِ الْعُذْرِ فِي الْقُعُودِ

### دمعذورو خلقو دپاره په جهاد كي دشركت نه كولو درخصت بيان

١٦٧٠ـ حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ الْجَهْضَمِيُّ، حَدَّثَنَا الْمُعْتَمِرُ بْنُ سُلَيْمَانَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " ائْتُونِي بِالْكَتِفِ أَوِ اللَّوْحِ، فَكَتَبَ: لا يَسْتَوِي الْقَاعِدُونَ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ (النساء : ٩٥)"، وَعَمْرُو بْنُ أُمِّ مَكْتُومٍ خَلْفَ ظَهْرِهِ، فَقَالَ: هَلْ لِي مِنْ رُخْصَةٍ؟ فَنَزَلَتْ: غَيْرُ أُولِي الضَّرَرِ (النساء : ٩٥)، وَفِي الْبَابِ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، وَجَابِرٍ، وَزَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ، وَهَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَهُوَ حَدِيثٌ غَرِيبٌ مِنْ حَدِيثِ سُلَيْمَانَ التَّيْمِيِّ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، وَقَدْ رَوَى شُعْبَةُ، وَالثَّوْرِيُّ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، هَذَا الْحَدِيثَ. [1]

**ترجمه**: دبراء بن عازب رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي ماته داوږي هډوكي يايوه تخته راوړه او بيا يي په دي باندي دا ايت اوليكل "لايستوي القاعدون من المؤمنين" يعني دجهاد نه پاتي كيدونكي مومنان دمجاهدينو سره برابر نشي كيدي، په دي وخت كي يو نابينا صحابي عمرو ابن ام مكتوم په رسول الله صلي الله عليه

---

[1] ـ اخرجه البخاري في الصحيح ـ الجهاد ٣١ (٢٨٣١) . وتفسير سورة النساء ١٨ (٤٥٩٣) . وفضائل القرآن ٣ (٤٩٩٠) . صحيح مسلم ـ الإمارة ٤٠ (١٨٩٨)، سنن النسائي ـ الجهاد ٤ (٣١٠٢) . (تحفة الأشراف : ١٨٥٩) . و احمد في المسند (٤ـ ٢٨٣، ٢٩٠، ٣٠٠) . سنن الدارمي ـ الجهاد ٢٨ (٢٤٦٣)

وسلم پسې وو هغه تپوس اوکړو ايا زما دپاره اجازت شته چنانچې دې وخت کې دا يت دا حصه "غير اولي الضرر" نازل شو يعني دمعذورينو نه علاوه

امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دې او دا حديث په سند دسليمان التيمي عن ابي اسحاق غريب دې او داحديث شعبه او ثوري هم داسحاق نه نقل کړې دې، او په دې باب کې دابن عباس، جابر، او زيد بن ثابت رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي

***************

## ٢_ بَابُ مَا جَاءَ فِيمَنْ خَرَجَ فِي الْغَزْوِ وَتَرَكَ أَبَوَيْهِ

### دمور او پلار دپريخودو په حالت کې جهاد ته دتلو بيان

١٦٧١_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، عَنْ سُفْيَانَ، وَشُعْبَةَ، عَنْ حَبِيبِ بْنِ أَبِي ثَابِتٍ، عَنْ أَبِي الْعَبَّاسِ، عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو، قَالَ: جَاءَ رَجُلٌ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَسْتَأْذِنُهُ فِي الْجِهَادِ، فَقَالَ: "أَلَكَ وَالِدَانِ؟". قَالَ: نَعَمْ، قَالَ: "فَفِيهِمَا فَجَاهِدْ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَفِي الْبَابِ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، وَهَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَأَبُو الْعَبَّاسِ هُوَ الشَّاعِرُ الأَعْمَى الْمَكِّيُّ وَاسْمُهُ: السَّائِبُ بْنُ فَرُّوخَ. [1]

**ترجمه** دعبدالله بن عمرو رضي الله عنه بيان دې چې يو کس جهاد ته دتلو داجازت دطلب کولو دپاره دنبي کريم صلي الله عليه وسلم په خدمت کې حاضر شو او رسول الله ورنه تپوس اوکړو ايا ستا مور او پلار ژوندي دي هغه اووئيل هو، ورته يې اوفرمائيل ددوئ په خدمت کې کوشش کوه (او په دې کې مشغول اوسه)

امام ترمذي وايي : داحديث حسن صحيح دې او په دې باب کې دابن عباس نه هم يو روايت وارد دې

**تشريح** : شرح السنة کې ليکلي دي چې ددې حديث حکم دنفلي جهاد دپاره ثابت دې چې دچا والدين ژوندي وي نو دهغوئ داجازت نه بغير جهاد ته نشي تلي اوکه جهاد فرض وي نو بيا خو دوالدينو اجازت ته ضرورت نشته بلکه که هغوئ يې منع کوي نو هم به په فرض جهاد کې شرکت کوي، علماؤ په دې حديث نور مسائل هم تفريع کړي دي چې په تمامو نفلي اعمالو کې

---

[1] _ اخرجه البخاري في الصحيح_ الجهاد ١٣٨ (٣٠٠٤) . والأدب ٣ (٥٩٧٢) . صحيح مسلم_ البر والصلة ١ (٢٥٤٩) . سنن ابي داود_ الجهاد ٣٣ (٢٥٢٩) . سنن النسائي_ الجهاد ٥ (٣١٠٥) . (تحفة الأشراف : ٨٦٣٤) . و احمد في المسند (٢_ ١٦٥، ١٧٢، ١٨٨، ١٩٣، ١٩٧، ٢٢١)

دمور او پلار اجازت ضروري دي

په دي حديث باندي په قياس كولو سره علماؤ ويلي دي لكه څنګه چي په نفلي جهاد كي دمور او پلار نه اجازت اخستل ضروري دي نو همدارنګي په تمامو نفلي عباداتو كي هم ضروري دي

*****************

## ٣ـ بَابُ مَا جَاءَ فِي الرَّجُلِ يُبْعَثُ وَحْدَهُ سَرِيَّةً

### په سريه كي ديو كس يواځي ليږلو بيان

١٦٧٢ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى النَّيْسَابُورِيُّ، حَدَّثَنَا الحَجَّاجُ بْنُ مُحَمَّدٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ فِي قَوْلِهِ: أَطِيعُوا اللَّهَ وَأَطِيعُوا الرَّسُولَ وَأُولِي الأَمْرِ مِنْكُمْ (النساء : ٥٩)، قَالَ: عَبْدُ اللَّهِ بْنُ حُذَافَةَ بْنِ قَيْسِ بْنِ عَدِيٍّ السَّهْمِيُّ: " بَعَثَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى سَرِيَّةٍ. أَخْبَرَنِيهِ يَعْلَى بْنُ مُسْلِمٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ. لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ ابْنِ جُرَيْجٍ. [1]

**ترجمه** عبدالله بن عباس رضي الله عنهما دا ايت كريمه " أَطِيعُوا اللَّهَ وَأَطِيعُوا الرَّسُولَ وَأُولِي الأَمْرِ مِنْكُمْ " په تفسير كي وائي عبدالله بن حذافه بن قيس بن عدي سهمي رسول الله صلي الله عليه وسلم يواځي په سريه كي ليږلي وو.

*****************

## ٤ـ بَابُ مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ أَنْ يُسَافِرَ الرَّجُلُ وَحْدَهُ

### يواځي دسفر كولو دكراهت بيان

[1] ـ اخرجه البخاري في الصحيح ـ تفسير سورة النساء ١١ (٤٥٨٤) . صحيح مسلم ـ الإمارة ٨ (١٨٣٤) . سنن ابي داود ـ الجهاد ٩٦ ، ٢٦٢٤ . سنن النسائي ـ البيعة ٢٨ (٤٢٠٥) . (تحفة الأشراف : ٥٦٥١)

١٦٧٣_ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ عَبْدَةَ الضَّبِّيُّ الْبَصْرِيُّ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنْ عَاصِمِ بْنِ مُحَمَّدٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "لَوْ أَنَّ النَّاسَ يَعْلَمُونَ مَا أَعْلَمُ مِنَ الْوَحْدَةِ، مَا سَرَى رَاكِبٌ بِلَيْلٍ". يَعْنِي: وَحْدَهُ. (1)

**ترجمه** دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي که چري خلقو ته ديواخي والي هغه نقصان معلوم شي کوم چي ماته معلوم دي نو هيڅوک به په سورلۍ دشپي يواخي لانه شي.

امام ترمذي وايي . دابن عمر حديث حسن صحيح دي.

**لغات** : الوحدة: وحد يحد وحدة وحِدة ووحودا ووُحُد يحِد وحادة ووحودة يواخي کيدل. صفت يې وحيد راځي.

**تشريح** په يواخي سفر کولو کې ديني او دنيوي نقصانونه دي ديني نقصان خو دادی چي ديواخي کيدو په وجه به دجماعت دمونځ نه محروم شي او دنياوي نقصان دادی که خداناخواسته څه نقصان ورته ورسيږي نو هيڅوک مدد کونکی به يې نه وي.

خاص کر په پخوانۍ زمانه کې چي به کله څوک په اوښ يا په اس باندي وو او په لاره کې به تيريدو نو دغلو او ډاکوانو خطره به هم وه نو په دي وجه رسول الله د يواخي تلو نه منع فرمائيلي ده ليکن امام بخاري سير الرجل وحده باب قائم کړی دی او ديواخي تلو اجازت يې ورکړی دی که چري دکوم ضرورت په وجه اچانک يواخي تللو ته مجبوري پيښه شي نو دا هم بلا کراهت جائز دي

****************

١٦٧٤_ حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ مُوسَى الأَنْصَارِيُّ، حَدَّثَنَا مَعْنٌ، حَدَّثَنَا مَالِكٌ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ حَرْمَلَةَ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "الرَّاكِبُ شَيْطَانٌ، وَالرَّاكِبَانِ شَيْطَانَانِ، وَالثَّلاَثَةُ رَكْبٌ". قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ عُمَرَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، لاَ نَعْرِفُهُ إِلاَّ مِنْ هَذَا الْوَجْهِ مِنْ حَدِيثِ عَاصِمٍ وَهُوَ ابْنُ مُحَمَّدِ بْنِ زَيْدِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ

---

[1] ـ اخرجه البخاري في الصحيح_ الجهاد ١٣ (٢٩٩٨) . سنن ابن ماجه_ الأدب ٤٥ (٣٧٦٨) . (تحفة الأشراف : ٧٤١٩)

بْنِ عُمَرَ. وَحَدِيثُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو حَدِيثٌ حَسَنٌ. قَالَ مُحَمَّدٌ: هُوَ ثِقَةٌ صَدُوقٌ، وَعَاصِمُ بْنُ عُمَرَ الْعُمَرِيُّ ضَعِيفٌ فِي الْحَدِيثِ لَا أَرْوِي عَنْهُ شَيْئًا. (1)

**ترجمه** دعبدالله بن عمرو رضي الله عنه نه روايت دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي يواخي سور شيطان وي او دوه سواره دوه شيطانان وي البته دري سواره قافله ده

امام ترمذي وايي دعبدالله بن عمرو حديث حسن دي

**لغات**: الراكب سور جمع يي ركاب او ركبان وركوب وركبة وركبٌ راخي

**تشريح**: يواخي او دوه كسانو دپاره په سفر تلل ممنوع دي پكار ده چي كم از كم دري كسان وي يواخي سفر كې به دا نقصان وي چي دجماعت دمونځ نه به محروم وي او كه دوه كسان هم وي نو په يو تن په څه كار پسي لاړ شي نو هغه هم يواخي لاړو او چي كوم پاتي شي هغه هم يواخي پاتي شو او كه چري څه حادثه پيښه شي نو دى به يواخي ددي دويم كس سره څه كوي پريشان به شي او شيطان چي دى په پريشانۍ كې اوويني نو خوشحاله به شي

بعضي محدثين وائي ددي مطلب دادى چي يو او دوه كسان شيطان په اسانه دوكه كولى شي او پوره جماعت خو نشي دوكه كولى ځكه چي دجماعت سره دالله مدد وي نو په دي وجه د شيطان مكاري په هغوئ نشي چليدلى.

****************

## ٥ـ بَابُ مَا جَاءَ فِي الرُّخْصَةِ فِي الْكَذِبِ وَالْخَدِيعَةِ فِي الْحَرْبِ

## په جنګ کې د دروغ ويلو او دهوکې او فريب کولو داجازت بيان

١٦٧٥ـ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، وَنَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ، قَالَا: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنْ عَمْرِو بْنِ دِينَارٍ، سَمِعَ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ، يَقُولُ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "الْحَرْبُ خُدْعَةٌ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَفِي الْبَابِ، عَنْ عَلِيٍّ، وَزَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ، وَعَائِشَةَ، وَابْنِ عَبَّاسٍ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَأَسْمَاءَ بِنْتِ يَزِيدَ بْنِ السَّكَنِ، وَكَعْبِ بْنِ مَالِكٍ، وَأَنَسٍ، وَهَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (2)

---

[1] ـ سنن ابي داود ـ الجهاد ٨٦ (٢٦٠٧). (تحفة الأشراف: ٨٧٤٠). والمؤطاء الاستئذان ١٣ (٣٥). واحمد في المسند (٢ـ ١٨٦، ٢١٣)

[2] ـ اخرجه البخاري في الصحيح ـ الجهاد ١٥٧ (٣٠٣٠). صحيح مسلم ـ الجهاد ٥ (١٧٤٠). سنن ابي داود ـ الجهاد ١٠١ (٢٦٣٦). (تحفة الأشراف: ٢٥٢٣)

**ترجمه** دجابر بن عبدالله رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي جنګ د دهوکي ورکولو او فريب نوم دي.
امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي، او په دي باب کي دعلي، زيد بن ثابت. عائشه، ابن عباس، اسماء بنت يزيد بن سکن، کعب بن مالك او انس رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي.
**لغات**: الحرب: جمع يي حروب راځي معني جنګ کول الحربي الاهلية معني خانه جنګي .
خدعه: جمع خُدع راځي معني دوکه کول.
**تشريح** : "جنګ ددوکي نوم دی" لکه چي نن سبا ورته حکمت عملي ونيلی شي او بهترين سفه سالار هغه څوك دی څوك چي دجنګ په ميدان کي دخپل عملي حکمت سره دشمن ته شکست ورکړي جمهور علماء وائي چي دکفارو سره په جنګ کي مکر او فريب جائز دی ليکن په دي کي د دوه خبرو خيال ساتل پکار دي اول دا چي ښکاره او صفا دروغ به نه وائي دويم داچي داسي صورت به نه اختياروي چي په هغي کي مسلمانان کومه وعده اوکړي او هغه ماته شي.
حکمت عملي خو حالاتو ته په کتو سره کيدی شي ددي دقبيلي نه دا هم کيدی شي مثلا اسلامي لښکر دجنګ دميدان نه لاړ شي او جنګ بندي اوکړي ددينه دشمن ته دا اندازه اولګيده چي اسلامي لښکر دميدان نه تختيدلی دی کله چي هغوئ په دي دوکه شي نو بيا ورباندي يو دم حمله اوکړي او شکست ورکړي.

***************

## ٦ ـ باب مَا جَاءَ فِي غَزَوَاتِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَكَمْ غَزَا

### رسول الله صلي الله عليه وسلم څومره غزوات کړي دي

١٦٧٦ ـ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا وَهْبُ بْنُ جَرِيرٍ، وَأَبُو دَاوُدَ الطَّيَالِسِيُّ، قَالَا: حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، قَالَ: كُنْتُ إِلَى جَنْبِ زَيْدِ بْنِ أَرْقَمَ، فَقِيلَ لَهُ: كَمْ غَزَا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ غَزْوَةٍ؟ قَالَ: "تِسْعَ عَشْرَةَ". فَقُلْتُ: كَمْ غَزَوْتَ أَنْتَ مَعَهُ؟ قَالَ: "سَبْعَ عَشْرَةَ".

قُلْتُ: أَيَّتُهُنَّ كَانَ أَوَّلَ؟ قَالَ: "ذَاتُ الْعُشَيْرِ، أَوِ الْعُشَيْرَةِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (1)

**ترجمه** دابواسحاق سبيعي بيان دي فرمائي چي زه دزيد بن ارقم رضي الله عنه په ترخ کي وم چي تپوس مي ورنه اوکړو رسول الله صلي الله عليه وسلم څومره غزوات کړي دي زيد بن ارقم اووئيل نولس ماتپوس اوکړو ته ورسره په څومره جهادونو کي شريک شوي يې؟ هغه اووئيل په اولسو کي ما ورته اووئيل دي کي کومه يوه غزوه مخکي وه نو هغه اووئيل ذات العشير يا ذات العُشير.

امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي.

*****************

## ٧ـ بَاب مَا جَاءَ فِي الصَّفِّ وَالتَّعْبِئَةِ عِنْدَ الْقِتَالِ

### دجنګ وخت کي دصفونو جوړولو او لښکر مرتب کولو بيان

١٦٧٧ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ حُمَيْدٍ الرَّازِيُّ، حَدَّثَنَا سَلَمَةُ بْنُ الْفَضْلِ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَوْفٍ، قَالَ: "عَبَّأَنَا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِبَدْرٍ لَيْلًا". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَفِي الْبَابِ، عَنْ أَبِي أَيُّوبَ، وَهَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ هَذَا الْوَجْهِ، وَسَأَلْتُ مُحَمَّدَ بْنَ إِسْمَاعِيلَ، عَنْ هَذَا الْحَدِيثِ فَلَمْ يَعْرِفْهُ، وَقَالَ: مُحَمَّدُ بْنُ إِسْحَاقَ، سَمِعَ مِنْ عِكْرِمَةَ، وَحِينَ رَأَيْتُهُ كَانَ حَسَنَ الرَّأْيِ فِي مُحَمَّدِ بْنِ حُمَيْدٍ الرَّازِيِّ، ثُمَّ ضَعَّفَهُ بَعْدُ. (2)

**ترجمه** دعبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه بيان دي چي نبي کريم صلي الله عليه وسلم په بدر مقام کي دشپې مونږ په مناسب ځايونو مقرر کړو.

امام ترمذي وايي: په دې باب کي دابوايوب رضي الله عنه نه هم روايت وارد دي او دا حديث غريب دي دا مونږ ته صرف په همدي سند رارسيدلي دي، ما دامام بخاري نه دې حديث باره کي تپوس اوکړو نو هغه دلاعلمۍ اظهار اوکړو او وئيل يې دمحمد بن اسحاق سماع دعکرمه نه ثابت نه ده او کله چي ما دامام بخاري سره ملاقات کړي وو نو هغه دمحمد بن حميد الرازي په باره کي ښه رائي قائموله او بيا يې روسته دهغه تضعيف اوکړو.

---

[1] ـ اخرجه البخاري في الصحيح ـ المغازي ١ (٣٩٤٩)، و ٧٧ (٤٤٠٤)، و ٨٩ (٤٤٧١). صحيح مسلم ـ الحج ٣٥ (١٢٥٤). والجهاد ٤٩ (١٢٥٤ ـ ١٤٣). (تحفة الأشراف: ٣٦٧٩)

[2] ـ تفرد بذكره المؤلف (تحفة الأشراف: ٩٧٢٤)

****************

## ٨_ بَاب مَا جَاءَ فِي الدُّعَاءِ عِنْدَ الْقِتَالِ

### دجنګ وخت کې ددعا غوښتلو بيان

١٦٧٨_ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، أَنْبَأَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ أَبِي خَالِدٍ، عَنِ ابْنِ أَبِي أَوْفَى، قَالَ: سَمِعْتُهُ يَقُولُ: يَعْنِي النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدْعُو عَلَى الأَحْزَابِ، فَقَالَ: " اللَّهُمَّ مُنْزِلَ الْكِتَابِ، سَرِيعَ الْحِسَابِ، اهْزِمِ الأَحْزَابَ، اللَّهُمَّ اهْزِمْهُمْ وَزَلْزِلْهُمْ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: فِي الْبَابِ، عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ، وَهَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.[1]

**ترجمه** دعبدالله بن ابي اوفي رضي الله عنه بيان دي فرمائي چي ما دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه (په غزوه احزاب كي) دكافرانو لښكرونو ته خيري كول اوريدلي دي او رسول الله صلي الله عليه وسلم په دي الفاظو " اللَّهُمَّ مُنْزِلَ الْكِتَابِ، سَرِيعَ الْحِسَابِ، اهْزِمِ الأَحْزَابَ، اللَّهُمَّ اهْزِمْهُمْ وَزَلْزِلْهُمْ "دعا اوغوښتله يعني اي دكتاب نازلونكيه او ډير زر حساب كونكيه دكافرانو لښكرونو ته شكست وركړه او ددوئ جرړي اوباسي

امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي، او په دي باب كي عبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه هم روايت وارد دي.

****************

## ٩_ بَاب مَا جَاءَ فِي الأَلْوِيَةِ

### په جنګ کې دجهنډي نيولو بيان

١٦٧٩_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُمَرَ بْنِ الْوَلِيدِ الْكِنْدِيُّ الْكُوفِيُّ، وَأَبُو كُرَيْبٍ، وَمُحَمَّدُ بْنُ رَافِعٍ، قَالُوا: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ آدَمَ، عَنْ شَرِيكٍ، عَنْ عَمَّارٍ يَعْنِي: الدُّهْنِيَّ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " دَخَلَ مَكَّةَ وَلِوَاؤُهُ أَبْيَضُ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ، لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ يَحْيَى بْنِ آدَمَ، عَنْ شَرِيكٍ، قَالَ: وَسَأَلْتُ مُحَمَّدًا عَنْ هَذَا الْحَدِيثِ فَلَمْ يَعْرِفْهُ، إِلَّا مِنْ

---

[1] _ اخرجه البخاري في الصحيح _ الجهاد ٩٨ (٢٩٣٣) و ١١٢ (٢٩٦٥) و ١٥٦ (٣٠٢٥)، والمغازي ٢٩ (٤١١٥)، والدعوات ٥٨ (٦٣٩٢) والتوحيد ٣٢ (٧٤٨٩)، صحيح مسلم _ الجهاد ٧ (١٧٤٢) سنن ابي داود _ الجهاد ٩٨ (٢٦٣١)، سنن النسائي _ عمل اليوم و الليلة (٦٠٢)، سنن ابن ماجه _ الجهاد ١٥ (٢٧٩٦)، (تحفة الأشراف : ٥١٥٢)، و احمد في المسند (٤/ ٣٥٣)

حَدِيثِ يَحْيَى بْنِ آدَمَ، عَنْ شَرِيكٍ. وقَالَ: حَدَّثَنَا غَيْرُ وَاحِدٍ، عَنْ شَرِيكٍ، عَنْ عَمَّارٍ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " دَخَلَ مَكَّةَ وَعَلَيْهِ عِمَامَةٌ سَوْدَاءُ ". قَالَ مُحَمَّدٌ: وَالحَدِيثُ هُوَ هَذَا. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَالدُّهْنُ بَطْنٌ مِنْ بَجِيلَةَ، وَعَمَّارٌ الدُّهْنِيُّ هُوَ عَمَّارُ بْنُ مُعَاوِيَةَ الدُّهْنِيُّ وَيُكْنَى أَبَا مُعَاوِيَةَ وَهُوَ كُوفِيٌّ وَهُوَ ثِقَةٌ عِنْدَ أَهْلِ الحَدِيثِ. [1]

**ترجمه** دجابر رضي الله عنه نه روايت دی چي رسول الله صلي الله عليه وسلم چي مكي ته داخل شو نو جهنډه يې سپينه وه.

امام ترمذي وايي : دا حديث غريب دي او دا مونږ ته صرف ديحيىٰ بن ادم په سند رارسيدلي دي چي ديحيىٰ بن شريك نه يي نقل كوي مادامام بخاري نه ددي حديث باره كي تپوس اوكړو نو هغه اوونيل يحيىٰ بن ادم دشريك نه روايت نقل كوي او بيا يي اوونيل مونږ ته ډيرو راويانو دا روايت عن شريك عن عمار عن ابي الزبير عن جابر په سند نقل كړي دي چي دجابر رضي الله عنه نه روايت دی رسول الله صلي الله عليه وسلم دفتح مكی په ورځ مكی معظمی ته ننوتو نو تور پټكی يی په سرو و.

امام ترمذي وايي : امام بخاري وائي محفوظ حديث همدا دي او "الدهن" د بجليه قبيلي يو شاخ دي. او عمار دهني دمعاويه دهني خوي دي دده اسم كنيه ابومعاويه ده او دكوفي اوسيدونكي دي او دمحدثينو په نزد ثقه دي.

**لغات** : سوداء: توره، العمامة السوداء يعني تور پټكي، سوداء او سويداء داطباؤ په نزد ديو خلط نوم دي، ماليخوليا بيماري ، يادزړه توري نقطي ته ويلي شي.

**تشريح**: دعمامي درنګ باره كي شريعت كوم قيد نه دی لګولی چي هر رنګ والاوي باك نشته ممانعت به په هغه وخت كي وي كله چي يو مخصوص رنګ سنت اوګنړلی شي او ددي تارك ملامت اوګنړلی شي همدارنګي دجابر رضي الله عنه په روايت كي دي چي رسول الله به داخترونو په ورځ تور پټكی استعمالولو چي شملو به يي په شا اچولي وه او همدارنګي تور پټكی دصحابه كرامو نه هم ثابت دی علي رضي الله عنه هم دخيبر په جنګ كي تور پټكی تړلی وو اوشمله يي شاته ياپه ګس طرف زوړنده كړي وه يوخل حسن بن علي رضي الله عنه خطبه وركوله او تور پټكی يي تړلی وو راوي وائي چي ما عبدالله بن زبير اوليدو چي تور پټكی يي تړلی وو همدارنګي دعمار بن ياسر، ابوالدرداء، عبدالرحمن بن عوف رضي الله

[1] ـ سنن ابي داود ـ الجهاد ٧٦ (٢٥٩٢) . سنن النسائي ـ الحج ١٠٦ (٢٨٦٩) . سنن ابن ماجه ـ الجهاد ٢٠ (٢٨١٧) (تحفة الأشراف ٢٨٨٩)

عنهم او سعيد بن المسيب او حسن بصري او ابو عبيده او اسود وغيره نه دتور پتهکي تړل ثابت دي

****************

## ١٠_ باب مَا جَاءَ فِي الرَّايَاتِ

### دجهندوبيان

١٦٨٠_ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ. حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ زَكَرِيَّا بْنِ أَبِي زَائِدَةَ. حَدَّثَنَا أَبُو يَعْقُوبَ الثَّقَفِيُّ. حَدَّثَنَا يُونُسُ بْنُ عُبَيْدٍ مَوْلَى مُحَمَّدِ بْنِ الْقَاسِمِ. قَالَ: بَعَثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ الْقَاسِمِ إِلَى الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ أَسْأَلُهُ عَنْ رَايَةِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. فَقَالَ: "كَانَتْ سَوْدَاءَ مُرَبَّعَةً مِنْ نَمِرَةٍ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَفِي الْبَابِ. عَنْ عَلِيٍّ. وَالْحَارِثِ بْنِ حَسَّانَ. وَابْنِ عَبَّاسٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَهَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ. لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ ابْنِ أَبِي زَائِدَةَ. وَأَبُو يَعْقُوبَ الثَّقَفِيُّ اسْمُهُ: إِسْحَاقُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ. وَرَوَى عَنْهُ أَيْضًا عُبَيْدُ اللهِ بْنُ مُوسَى. (1)

امام نووي په رياض الصالحين کي وايي : النَّمِرَةُ هِيَ كِسَاءٌ مِنْ صُوفٍ مُخَطَّطٌ.

**ترجمه** : ديونس بن عبيد چي دمحمد بن قاسم ازاد کړي غلام دي نه مروي دي فرمائي چي محمد بن قاسم زه براء بن عازب رضي الله عنه ته درسول الله صلي الله عليه وسلم دجهندي باره کي دتپوس کولو دپاره اوليږلم نوبراء بن عازب اووئيل درسول الله صلي الله عليه وسلم جهنده کرخو والا څلورګوټي توره جهنده وه.

امام ترمذي وايي : داحديث حسن غريب دي او دا مونږ ته صرف دابن ابي زائده په سند رارسيدلي دي،او په دي باب کي دعلي، حارث بن حسان، او ابن عباس رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي او دابو يعقوب ثقفي نوم اسحاق بن ابراهيم دي او دده نه عبيدالله بن موسي هم نقل درروايت کړي دي.

****************

١٦٨١_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ رَافِعٍ. حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ إِسْحَاقَ وَهُوَ السَّالِحَانِيُّ. حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ حَيَّانَ. قَالَ: سَمِعْتُ أَبَا مِجْلَزٍ لَاحِقَ بْنَ حُمَيْدٍ يُحَدِّثُ. عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ. قَالَ: "كَانَتْ رَايَةُ رَسُولِ اللهِ صَلَّى

---

1 _ سنن ابي داود_ الجهاد ٧٦ (٢٥٩١) . (تحفة الأشراف : ١٩٢٢)

اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَوْدَاءَ، وَلِوَاؤُهُ أَبْيَضَ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ مِنْ هَذَا الْوَجْهِ، مِنْ حَدِيثِ ابْنِ عَبَّاسٍ. (1)

**ترجمه** دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما بيان دي فرمائي چي درسول الله صلي الله عليه وسلم لويه جهنډه توره وه او وړي جهنډي يې سپين رنګ والاوي

امام ترمذي وايي : دابن عباس داحديث په دي سند حسن غريب دي.

****************

## ١١_ باب مَا جَاءَ فِي الشِّعَارِ

### په جنګ کي دشعار (دکوډلفظ ) داستعمال بيان

١٦٨٢_ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنِ الْمُهَلَّبِ بْنِ أَبِي صُفْرَةَ، عَمَّنْ سَمِعَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: " إِنْ بَيَّتَكُمُ الْعَدُوُّ فَقُولُوا: " حم " لَا يُنْصَرُونَ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَفِي الْبَابِ، عَنْ سَلَمَةَ بْنِ الْأَكْوَعِ، وَهَكَذَا رَوَى بَعْضُهُمْ عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، مِثْلَ رِوَايَةِ الثَّوْرِيِّ، وَرُوِيَ عَنْهُ، عَنِ الْمُهَلَّبِ بْنِ أَبِي صُفْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُرْسَلًا. (2)

**ترجمه** : مهلب بن ابي صفره دهغه چا نه روايت نقل كوي چاچي درسول الله سلي الله عليه وسلم نه اوريدلي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيل كله چي تاسو دشپي په دشمن حمله كوئ نو "حم لاينصرون" وائي.

امام ترمذي وايي : بعضي راويانو ددي مفهوم روايت د ثوري درروايت مطابق دابواسحاق سبيعي نه نقل كړي د ي او دابواسحاق سبيعي نه دا حديث په واسطه دمهلب بن ابي صفرة عن النبي صلي الله عليه وسلم سره مرسل هم مروي دي، او په دي باب كي دسلمه بن الاكوع رضي الله عنه نه هم روايت وار دي.

****************

## ١٢_ باب مَا جَاءَ فِي صِفَةِ سَيْفِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

### درسول الله صلي الله عليه وسلم دتوري بيان

---

1 _ سنن ابن ماجه_الجهاد ٢٠ (٢٨١٨) . (تحفة الأشراف : ٦٥٤٢)

2 _ سنن ابي داود_الجهاد ٧٨ (٢٥٩٧) . (تحفة الأشراف : ١٥٦٧٩) . و احمد في المسند (٤_٢٨٩)

١٦٨٣_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ شُجَاعٍ الْبَغْدَادِيُّ، حَدَّثَنَا أَبُو عُبَيْدَةَ الْحَدَّادُ، عَنْ عُثْمَانَ بْنِ سَعْدٍ، عَنِ ابْنِ سِيرِينَ، قَالَ: صَنَعْتُ سَيْفِي عَلَى سَيْفِ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدَبٍ، وَزَعَمَ سَمُرَةُ أَنَّهُ صَنَعَ سَيْفَهُ عَلَى سَيْفِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَكَانَ حَنَفِيًّا " قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ هَذَا الْوَجْهِ، وَقَدْ تَكَلَّمَ يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ الْقَطَّانُ، فِي عُثْمَانَ بْنِ سَعْدٍ الْكَاتِبِ، وَضَعَّفَهُ مِنْ قِبَلِ حِفْظِهِ. (١)

**ترجمه** : دابن سيرين بيان دي فرمائي چي ما خپله توره دسمره بن جندب رضي الله عنه دتوري پشان جوړه کړه او دسمره بن جندب دا خيال وو چي هغه خپله توره رسول الله صلي الله عليه وسلم دتوري پشان جوړه کړي وه او درسول الله صلي الله عليه وسلم توره د بنو حنيفه په طرز باندي جوړه شوي وه.

امام ترمذي وايي : داحديث غريب دي داموږ ته صرف په همدي سند رارسيدلي دي او يحى بن سعيد القطان په عثمان بن سعد كاتب باندي كلام كړي دي او دحافظي په اعتبار يې ضعيف ګڼرلي دي.

***************

## ١٣_ بَاب مَا جَاءَ فِي الْفِطْرِ عِنْدَ الْقِتَالِ

### دجنګ وخت کي دروژي ماتولو بيان

١٦٨٤_ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ مُوسَى، أَنْبَأَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ الْمُبَارَكِ، أَنْبَأَنَا سَعِيدُ بْنُ عَبْدِ الْعَزِيزِ، عَنْ عَطِيَّةَ بْنِ قَيْسٍ، عَنْ قَزَعَةَ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، قَالَ: " لَمَّا بَلَغَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَامَ الْفَتْحِ، مَرَّ الظَّهْرَانِ، فَآذَنَنَا بِلِقَاءِ الْعَدُوِّ، فَأَمَرَنَا بِالْفِطْرِ، فَأَفْطَرْنَا أَجْمَعُونَ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَفِي الْبَابِ، عَنْ عُمَرَ. (٢)

**ترجمه** : دابوسعيد خدري رضي الله عنه بيان دي دفتحي مکي په كال چي كله رسول الله صلي الله عليه وسلم مرالظهران ته ورسيدو او موږ ته يي ددشمن دمقابلي خبر راکړو نو دروژي ماتولو حکم يي اوکړو لهذا موږ تولو روژه ماته کړه

---

[1] _ تفرد بذكره المؤلف (تحفة الأشراف : ٢٦٢٢)

[2] _ تفرد به المؤلف. (تحفة الأشراف : ٤٢٨٢) وأخرجه: صحيح مسلم_ الصيام ١٦ (١١٢٠) . سنن ابي داود_ الصيام ٤٢ (٢٤٠٦) . سنن النسائي_ الصيام ٥٩ (٢٣١١)

امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي او په دي باب کي دعمر رضي الله عنه نه هم روايت وارد دي

***************

## ١٤_ باب مَا جَاءَ فِي الْخُرُوجِ عِنْدَ الْفَزَعِ

### دويري وخت کي دبهر وتلو بيان

١٦٨٥_ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ الطَّيَالِسِيُّ، قَالَ: أَنْبَأَنَا شُعْبَةُ، عَنْ قَتَادَةَ، حَدَّثَنَا أَنَسُ بْنُ مَالِكٍ، قَالَ: رَكِبَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَرَسًا لِأَبِي طَلْحَةَ يُقَالُ لَهُ: مَنْدُوبٌ، فَقَالَ: "مَا كَانَ مِنْ فَزَعٍ وَإِنْ وَجَدْنَاهُ لَبَحْرًا". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَفِي الْبَابِ، عَنِ ابْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ، وَهَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (1)

**ترجمه** : دانس بن مالك رضي الله عنه بيان دي فرمائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم دابوطلحه په اس سور شو او دا اس په مندوب ياديدو د هيڅ قسم ويري خبره نه وه خو بيا هم دا اس مونږ په رفتارکي دسمندر پشان اوموندلو.

امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي اوپه دي باب کي دعبدالله بن عمرو بن العاص رضي الله عنهما نه هم روايت مروي دي.

***************

١٦٨٦_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ، وَابْنُ أَبِي عَدِيٍّ، وأبو داود، قَالُوا: حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: كَانَ فَزَعٌ بِالْمَدِينَةِ، فَاسْتَعَارَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَرَسًا لَنَا يُقَالُ لَهُ: مَنْدُوبٌ، فَقَالَ: "مَا رَأَيْنَا مِنْ فَزَعٍ وَإِنَّا وَجَدْنَاهُ لَبَحْرًا". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (2)

---

[1] _ اخرجه البخاري في الصحيح_ الهبة ٣٣ (٢٦٢٧) . والجهاد ٥٥ (٢٨٦٢) . صحيح مسلم_ الفضائل ١١ (٢٣٠٧_ ٤٩) . سنن ابي داود_ الأدب ٨٧ (٤٩٨٨) . (تحفة الأشراف ١٢٣٨)

[2] _ اخرجه البخاري في الصحيح_ الهبة ٣٣ (٢٦٢٧) . والجهاد ٥٥ (٢٨٦٢) . صحيح مسلم_ الفضائل ١١ (٢٣٠٧_ ٤٩) . سنن ابي داود_ الأدب ٨٧ (٤٩٨٨) . (تحفة الأشراف : ١٢٣٨)

**ترجمه** دانس رضي الله عنه بيان دي فرمائي چي يو خل مديني والادويري سره مخامخ شول نو رسول الله صلي الله عليه وسلم دابوقتاده په مندوب نوم اس باندي سور شو او فرمائيل يي هيڅ خطره نشته او مونږ خو دا اس دسمندر پشان اوموندلو
امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي

****************

١٦٨٧_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ ثَابِتٍ، عَنْ أَنَسٍ، قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ أَحْسَنِ النَّاسِ، وَأَجْوَدِ النَّاسِ، وَأَشْجَعِ النَّاسِ، قَالَ: وَقَدْ فَزِعَ أَهْلُ الْمَدِينَةِ لَيْلَةً سَمِعُوا صَوْتًا، قَالَ: فَتَلَقَّاهُمُ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى فَرَسٍ لِأَبِي طَلْحَةَ عُرْيٍ وَهُوَ مُتَقَلِّدٌ سَيْفَهُ، فَقَالَ: "لَمْ تُرَاعُوا، لَمْ تُرَاعُوا". فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "وَجَدْتُهُ بَحْرًا". يَعْنِي: الْفَرَسَ.
قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ صَحِيحٌ. ([1])

**ترجمه** : دانس رضي الله عنه بيان دي فرمائي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم دهر چانه زيات زړه ور او دهر چانه زيات سخي او دهر چانه زيات بهادر وو يوه شپه مديني والا اوويريدل او هغوئ كوم اواز اوريدلي وو چنانچي نبي كريم صلي الله عليه وسلم توره په خان پوري زوړنده كړه او دابوطلحه په يو برېندي خيتي والااس باندي سور شو او خلقو ته ورسيدو او ويي فرمائيل تاسو هيڅ فكر اوپريشاني مه كوئ او تاسو هيڅ فكر او پريشاني مه كوئ. رسول الله اوفرمائيل ما دا اس په رفتار كي سمندر اوموندلو
امام ترمذي وايي : داحديث حسن صحيح دي.

****************

## ١٥_ باب مَا جَاءَ فِي الثَّبَاتِ عِنْدَ الْقِتَالِ

## په جنګ کي د دشمن سره دمقابلي په وخت کي دثابت قدم اوسيدو بيان

١٦٨٨_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ، حَدَّثَنَا أَبُو إِسْحَاقَ، عَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ، قَالَ: قَالَ لَنَا رَجُلٌ: أَفَرَرْتُمْ عَنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا أَبَا عُمَارَةَ؟ قَالَ: لَا وَاللهِ، مَا وَلَّى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَلَكِنْ وَلَّى سَرَعَانُ النَّاسِ تَلَقَّتْهُمْ

---

[1] _ اخرجه البخاري في الصحيح_ الجهاد ٢٤ (٢٨٢٠)، و٨٢ (٢٩٠٨)، و ١٦٥ (٣٠٤٠)، والأدب ٣٩ (٦٠٣٣). صحيح مسلم_ الفضائل ١١ (٢٣٠٧_ ٤٨). سنن ابن ماجه_ الجهاد ٩ (٢٧٧٢). (تحفة الأشراف : ٢٨٩). (وانظر ماتقدم برقم ١٦٨٥)

هَوَازِنُ بِالنَّبْلِ، وَرَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى بَغْلَتِهِ، وَأَبُو سُفْيَانَ بْنُ الْحَارِثِ بْنِ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ آخِذٌ بِلِجَامِهَا، وَرَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: " أَنَا النَّبِيُّ لَا كَذِبْ، أَنَا ابْنُ عَبْدِ الْمُطَّلِبْ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَفِي الْبَابِ، عَنْ عَلِيٍّ، وَابْنِ عُمَرَ، وَهَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (١)

**ترجمه** دبراء بن عازب رضي الله عنه بيان دي فرمائي چي ماته يو كس اووئيل اي ابو عماره ايا تاسو درسول الله صلي الله عليه وسلم نه تختيدلي وئ؟ ما اووئيل نه په الله قسم رسول الله صلي الله عليه وسلم جنګ ته شاه کړي نه ده بلکه جلدبازو خلقو جنګ ته شاکړي وه دهوازن قبيلي خلقو رباندي په غشو حمله کړي وه رسول الله صلي الله عليه وسلم پخپله قچره سور وو او ابوسفيان بن حارث بن عبدالمطلب دقچر واګي نيولي وي او رسول الله صلي الله عليه وسلم داسي فرمائيل زه نبي يم دروغژن نه يم او دعبدالمطلب خوي يم.

امام ترمذي وايي : داحديث حسن صحيح دي او په دي باب کي دعلي او ابن عمر رضي الله عنهما نه هم احاديث مروي دي.

****************

١٦٨٩ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُمَرَ بْنِ عَلِيٍّ الْمُقَدَّمِيُّ الْبَصْرِيُّ، حَدَّثَنِي أَبِي، عَنْ سُفْيَانَ بْنِ حُسَيْنٍ، عَنْ عُبَيْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: " لَقَدْ رَأَيْتُنَا يَوْمَ حُنَيْنٍ وَإِنَّ الْفِئَتَيْنِ لَمُوَلِّيَتَانِ، وَمَا مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِائَةُ رَجُلٍ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ، لَا نَعْرِفُهُ مِنْ حَدِيثِ عُبَيْدِ اللهِ إِلَّا مِنْ هَذَا الْوَجْهِ. (٢)

**ترجمه** : دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما بيان دي فرمائي چي دغزوه حنين په ورځ زمونږ حالت دا وو چي دمسلمانانو دوارو جماعتونو (جنګ ته) شاکړي وه او درسول الله صلي الله عليه وسلم سره په دي وخت کي سل کسان هم نه پوره کيدل

امام ترمذي وايي : داحديث حسن غريب دي او دا مونږ ته دعبيدالله په روايت صرف په همدي سند رارسيدلي دي.

****************

## ١٦ـ بَابُ مَا جَاءَ فِي السُّيُوفِ وَحِلْيَتِهَا

---

[1] ـ : اخرجه البخاري في الصحيح_الجهاد ٦١ (٢٨٨٣)، و٩٧ (٢٩٣٠)، والمغازي ٥٤ (٤٣١٥-٤٣١٧)، صحيح مسلم الجهاد ٢٨ (١٧٧٦)، (تحفة الأشراف: ١٨٣٨)، واحمد في المسند (٤_٢٨٩)

[2] ـ تفرد بذكره المؤلف (تحفة الأشراف: ٧٨٩٣)

## دتورو او دتورو دښالست بيان

١٦٩٠_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ صُدْرَانَ أَبُو جَعْفَرٍ الْبَصْرِيُّ، حَدَّثَنَا طَالِبُ بْنُ حُجَيْرٍ، عَنْ هُودِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ سَعْدٍ، عَنْ جَدِّهِ مَزِيدَةَ، قَالَ: دَخَلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ الْفَتْحِ وَعَلَى سَيْفِهِ ذَهَبٌ وَفِضَّةٌ، قَالَ طَالِبٌ: فَسَأَلْتُهُ عَنِ الْفِضَّةِ، فَقَالَ: "كَانَتْ قَبِيعَةُ السَّيْفِ فِضَّةً". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَفِي الْبَابِ، عَنْ أَنَسٍ، وَهَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ، وَجَدُّ هُودٍ اسْمُهُ: مَزِيدَةُ الْعَصَرِيُّ. (1)

**ترجمه** : مزيده رضي الله عنه وائي دفتح مكي په ورځ رسول الله صلي الله عليه وسلم مكي ته داخل شو او دهغه توره په سرو او سپينو زرو مزين كړي شوي وه دحديث راوي طالب وائي ما د هود بن عبدالله نه دسپينو زرو په باره كي تپوس اوكړو نو هغه اوويل دقبضي موټي يي دسپينو زرو دي.

امام ترمذي وايي : داحديث حسن غريب دي او دهود دنيكه نوم مزيده عصري دي او په دي باب كي دانس رضي الله عنه نه هم روايت وارد دي.

****************

١٦٩١_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا وَهْبُ بْنُ جَرِيرِ بْنِ حَازِمٍ، حَدَّثَنَا أَبِي، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَنَسٍ، قَالَ: "كَانَتْ قَبِيعَةُ سَيْفِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ فِضَّةٍ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ، وَهَكَذَا رُوِيَ عَنْ هَمَّامٍ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَنَسٍ، وَقَدْ رَوَى بَعْضُهُمْ عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي الْحَسَنِ، قَالَ: "كَانَتْ قَبِيعَةُ سَيْفِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ فِضَّةٍ". (2)

**ترجمه** : دانس رضي الله عنه بيان دي فرمائي چي درسول الله صلي الله عليه وسلم دتوري دقبضي غوټه دسپينو زرو ده.

امام ترمذي وايي : داحديث حسن غريب دي دارنګي دا حديث حمام دقتاده نه او قتاده دانس نه نقل كړي دي او بعضي راويانو دقتاده په واسطه دسعيد بن ابي الحسن نه هم نقل كړي دي چي درسول الله صلي الله عليه وسلم دتوري موټي دسپينو زرو دي.

****************

[1] _ سنن ابي داود_ الجهاد ٧١ (٢٥٨٣، ٢٥٨٤) . سنن النسائي_ الزينة ١٢٠ (٥٣٨٦) . (تحفة الأشراف : ١١٢٦) . سنن الدارمي_ السير ٢١ (٢٥٠١)

[2] _ سنن ابي داود_ الجهاد ٧١ (٢٥٨٣، ٢٥٨٤) . سنن النسائي_ الزينة ١٢٠ (٥٣٨٦) . (تحفة الأشراف : ١١٢٦) . سنن الدارمي_ السير ٢١ (٢٥٠١)

## ١٧_ باب مَا جَاءَ فِي الدِّرْعِ

### دزغري بيان

١٦٩٢_ حَدَّثَنَا أَبُو سَعِيدٍ الأَشَجُّ، حَدَّثَنَا يُونُسُ بْنُ بُكَيْرٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنْ يَحْيَى بْنِ عَبَّادِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الزُّبَيْرِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الزُّبَيْرِ، عَنِ الزُّبَيْرِ بْنِ الْعَوَّامِ، قَالَ: "كَانَ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دِرْعَانِ يَوْمَ أُحُدٍ، فَنَهَضَ إِلَى الصَّخْرَةِ فَلَمْ يَسْتَطِعْ، فَأَقْعَدَ طَلْحَةَ تَحْتَهُ، فَصَعِدَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَيْهِ حَتَّى اسْتَوَى عَلَى الصَّخْرَةِ". فَقَالَ: سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: "أَوْجَبَ طَلْحَةُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَفِي الْبَابِ، عَنْ صَفْوَانَ بْنِ أُمَيَّةَ، وَالسَّائِبِ بْنِ يَزِيدَ، وَهَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ، لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ. [1]

**ترجمه** دزبير بن عوام رضي الله عنه بيان دي فرمائي چي دغزوه احد په ورځ دنبي كريم صلي الله عليه وسلم په جسم دوه زغره پرته وه رسول الله په يو ګټه ختلو ليكن اونه ختلي شو نو هغوئ طلحه بن عبيدالله دځان نه لاندي كينولو او بيا په هغه باندي اودريدو تردي چي كاڼږي ته سيده وروختلو او ورباندي اودريدو زبير وائي مادنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه اوريدلي دي چي طلحه (پخپل عمل جنت) دځان دپاره واجب كړو.

امام ترمذي وايي: داحديث حسن غريب دي او دا مونږ ته صرف دمحمد بن اسحاق په روايت رارسيدلي دي، او په دي باب كي دصفوان بن اميه او سائب بن يزيد رضي الله عنهما نه هم احاديث وارد دي.

****************

## ١٨_ باب مَا جَاءَ فِي الْمِغْفَرِ

### دخود بيان

١٦٩٣_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: "دَخَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَامَ الْفَتْحِ وَعَلَى رَأْسِهِ الْمِغْفَرُ، فَقِيلَ لَهُ: ابْنُ خَطَلٍ مُتَعَلِّقٌ بِأَسْتَارِ

---

[1] _ تفرد بذكره المؤلف وأعاده في المناقب برقم ٣٨، ٢٧ (تحفة الأشراف: ٣٦٢٨)

الْكَعْبَةِ". فَقَالَ: "اقْتُلُوهُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ. لَا نَعْرِفُ كَبِيرَ أَحَدٍ رَوَاهُ غَيْرَ مَالِكٍ، عَنِ الزُّهْرِيِّ. (١)

**ترجمه** دانس رضي الله عنه بيان دي فرمائي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم چي دفتح مكي په كال مكي ته داخل شو نو په سر يي خود وو، دي وخت كي رسول الله ته اوونيلي شول ابن خطل دكعبي په پردو پوري انختلي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمانيل قتل يي كړئ.

امام ترمذي وايي داحديث حسن غريب دي په مونږ كي داكثرو په نزد دزهري نه دمالك نه علاوه بل هيچا دا روايت نه دي نقل كړي.

*****************

## ١٩_ باب مَا جَاءَ فِي فَضْلِ الْخَيْلِ

### داسونو دفضيلت بيان

١٦٩٤_ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا عَبْثَرُ بْنُ الْقَاسِمِ، عَنْ حُصَيْنٍ، عَنِ الشَّعْبِيِّ، عَنْ عُرْوَةَ الْبَارِقِيِّ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "الْخَيْرُ مَعْقُودٌ فِي نَوَاصِي الْخَيْلِ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ، الْأَجْرُ وَالْمَغْنَمُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَفِي الْبَابِ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، وَأَبِي سَعِيدٍ، وَجَرِيرٍ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَأَسْمَاءَ بِنْتِ يَزِيدَ، وَالْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ، وَجَابِرٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَهَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَعُرْوَةُ هُوَ ابْنُ أَبِي الْجَعْدِ الْبَارِقِيُّ وَيُقَالُ: هُوَ عُرْوَةُ بْنُ الْجَعْدِ. قَالَ أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ: وَفِقْهُ هَذَا الْحَدِيثِ: أَنَّ الْجِهَادَ مَعَ كُلِّ إِمَامٍ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ. (٢)

**ترجمه** دعروه بارقي رضي الله عنه نه روايت دى چي رسول الله صلي الله عليه وسلم

---

[1] _ اخرجه البخاري في الصحيح_ جزاء الصيد ١٨ (١٨٤٦)، والجهاد ١٦٩ (٣٠٤٤)، والمغازي ٤٨ (٤٢٨٦)، واللباس ١٧ (٥٨٠٨)، صحيح مسلم_ الحج ٨٤ (١٣٥٧)، سنن ابي داود_ الجهاد ١٢٧ (٢٦٨٥)، سنن النسائي_ الحج ١٠٧ (٢٨٧٠)، سنن ابن ماجه_ الجهاد ١٨ (١٨٠٥)، (تحفة الأشراف: ١٥٢٧)، والموطاء الحج ٨١ (٢٤٧)، و احمد في المسند (٣_ ١٠٩، ١٦٤، ١٨٠، ١٨٦، ٢٢٤، ٢٣١، ٢٣٢، ٢٤٠) سنن الدارمي_ المناسك ٨٨ (١٩٨١)

[2] _ اخرجه البخاري في الصحيح_ الجهاد ٤٣ (٢٨٥٠)، و٤٤ (٢٨٥٢)، والخمس ٨ (٣١١٩)، والمناقب ٢٨ (٣٦٤٣)، صحيح مسلم_ الإمارة ٢٦ (١٨٧٣)، سنن النسائي_ الخيل ٧ (٣٦٠٤، ٣٦٠٥)، سنن ابن ماجه_ التجارات ٦٩ (٢٣٠٥)، والجهاد ١٤ (٢٧٨٦)، (تحفة الأشراف: ٩٨٩٧)، و احمد في المسند (٤_ ٣٧٥، ٣٧٦)، سنن الدارمي_ الجهاد ٣٤ (٣١١٩)

فرمانيلي دي بيشكه داسونو په تندو پوري خير ترلى دى دقيامت ترورځى پوري يعني دجهاد ثواب او مال غنيمت

امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي او په دي باب كي دابن عمر، ابوسعيد خدري، جرير، ابوهريره، اسماء بنت يزيد، مغيره بن شعبه او جابر رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي. امام احمد بن حنبل وائي ددي حديث مفهوم دادي چي دجهاد حكم دهر امام سره ترقيامت پوري باقي دي

**لغات**: الخير. اسم تفضيل دي داخير نه مخفف دي دنيكئ كار ته ويلي شي جمع يي خيور او اخيار ده او استخاره دخير طلب كولوته ويلي شي.

**تشريح**: ددي حديث نه معلوميږي چي دجهاد په نيت اسونو ساتلو كي دهغه وخته پوري خير او بركت دى تر څو چي دا په صحيح نيت او صحيح جذبي سره ساتلى شي او كه چري په غلط نيت او غلطي جذبي سره اوساتلى شي نو بيا خو په ذي كي خير او بركت نشته بلكه ددينه به شر په وجود كي راځي.

نواصي: تندي، علماء وائي دتندي نه صرف تندى مراد نه دى بلكه ذات ورنه مراد دى يعني پوره اس ورنه مراد دى الله تعالي په اس كي خير او بركت اچولى دى ځكه چي ددي په ذريعه جهاد كيږي په كوم كي چي ددنيا او اخرت خير دى، الاجر معني ثواب دا په اخرت كي ملاويدونكى څيز دى ، المغنم يعني غنيمت دا په دنيا كي ملاويدونكى څيز دى.

مطلب دادى چاچي اس په دي نيت اوساتلو چي صرف دالله رضا حاصله كړي نو الله تعالي دده سره داجر او ثواب وعده كړي ده.

## دعروه بارقي رضي الله عنه حالات

نوم عروه دپلار نوم ابوجهد اسدي دقبيله بارق سره يي تعلق دى كومه چي په يمن كي وه عمر رضي الله عنه عزوه دكوفي قاضي مقرر كړى وو دده شمير په كوفيانو كي شوى دى او دده روايات هم اكثر داهل كوفه نه موندلى شي.

ابن مديني وائي دبعضي خلقو قول دى چي عروه او ابو جهد ديوكس نومونه دي خو دا بالكل غلط قول دى ځكه چي عروه خوي دى او جهد دده پلاره دى دده دمروياتو شمير ۱۳ دى چي يو په بخاري كي دى او دوه په مسلم كي (فتح الباري)

***************

## ۲۰_ بَاب مَا جَاءَ مَا يُسْتَحَبُّ مِنَ الْخَيْلِ

### دښه نسل والا اسونو بيان

١٦٩٥_ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ الصَّبَّاحِ الْهَاشِمِيُّ الْبَصْرِيُّ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، أَخْبَرَنَا شَيْبَانُ يَعْنِي ابْنَ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، حَدَّثَنَا عِيسَى بْنُ عَلِيِّ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَبَّاسٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "يُمْنُ الْخَيْلِ فِي الشُّقْرِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ، لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ هَذَا الْوَجْهِ مِنْ حَدِيثِ شَيْبَانَ. (١)

**ترجمه** : دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي په سرو اسونو كي بركت وي.

امام ترمذي وايي : داحديث حسن غريب دي او داموږ ته صرف دشيبان په سند رارسيدلي دي

****************

١٦٩٦_ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدٍ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ الْمُبَارَكِ، أَخْبَرَنَا ابْنُ لَهِيعَةَ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي حَبِيبٍ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ رَبَاحٍ، عَنْ أَبِي قَتَادَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "خَيْرُ الْخَيْلِ: الأَدْهَمُ الأَقْرَحُ الأَرْثَمُ، ثُمَّ الأَقْرَحُ الْمُحَجَّلُ طَلْقُ الْيَمِينِ، فَإِنْ لَمْ يَكُنْ أَدْهَمَ، فَكُمَيْتٌ عَلَى هَذِهِ الشِّيَةِ". (٢)

**ترجمه** : دابوقتاده نه روايت دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي بهتر اسونه هغه دي كوم چي تور رنګ والا وي او ددوئ تندي او پورتنۍ شونډه يي سپينه وي. او بيا په دي پسې هغه اسونه دي دكومو چي څلور واړه خپي اوتندي سپين وي، او كوم اسونه چي تور رنګ والانه وي نو بيا دنورو نه سور توربخن بهتردي.

****************

١٦٩٧_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا وَهْبُ بْنُ جَرِيرٍ، حَدَّثَنَا أَبِي، عَنْ يَحْيَى بْنِ أَيُّوبَ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي حَبِيبٍ بِهَذَا الإِسْنَادِ نَحْوَهُ بِمَعْنَاهُ. قَالَ: أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ صَحِيحٌ. (٣)

**ترجمه** ديزيد بن ابي حبيب نه هم په دي سند دسابقه روايت هم معني حديث مروي دي.

امام ترمذي وايي داحديث حسن غريب صحيح دي

---

[1] _ سنن ابي داود_ الجهاد ٤٣ (٢٥٤٥). (تحفة الأشراف ٦٢٩٠). واحمد في المسند (١_ ٢٧٢)

[2] _ سنن ابن ماجه_ الجهاد ١٤ (٢٧٨٩). (تحفة الأشراف ١٢١٢١). واحمد في المسند (٥_ ٣٠٠)

[3] _ سنن ابن ماجه_ الجهاد ١٤ (٢٧٨٩). (تحفة الأشراف : ١٢١٢١). واحمد في المسند (٥_ ٣٠٠)

****************

## ٢١_ باب مَا جَاءَ مَا يُكْرَهُ مِنَ الْخَيْلِ

### د ناكاره اسونو بيان

١٦٩٨_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، قَالَ: حَدَّثَنِي سَلْمُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ النَّخَعِيُّ، عَنْ أَبِي زُرْعَةَ بْنِ عَمْرِو بْنِ جَرِيرٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَنَّهُ كَرِهَ الشِّكَالَ مِنَ الْخَيْلِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رَوَاهُ شُعْبَةُ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ يَزِيدَ الْخَثْعَمِيِّ، عَنْ أَبِي زُرْعَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، نَحْوَهُ، وَأَبُو زُرْعَةَ بْنُ عَمْرِو بْنِ جَرِيرٍ اسْمُهُ: هَرِمٌ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ حُمَيْدٍ الرَّازِيُّ، حَدَّثَنَا جَرِيرٌ، عَنْ عُمَارَةَ بْنِ الْقَعْقَاعِ، قَالَ: قَالَ لِي إِبْرَاهِيمُ النَّخَعِيُّ، إِذَا حَدَّثْتَنِي فَحَدِّثْنِي عَنْ أَبِي زُرْعَةَ، فَإِنَّهُ حَدَّثَنِي مَرَّةً بِحَدِيثٍ ثُمَّ سَأَلْتُهُ بَعْدَ ذَلِكَ بِسِنِينَ، فَمَا أَخْرَمَ مِنْهُ حَرْفًا. (١)

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم په اسونو كي "شكال" اسونه نه خوښول.

امام ترمذي وايي : داحديث حسن صحيح دي، شعبه دعبدالله بن يزيد خثعمي نه دابوذرعه په سند عن ابي هريرة عن النبي صلي الله عليه وسلم سره ددي هم معني روايت نقل كړي دي او دابوذرعه عمرو بن جرير نوم هرم دي.

**تشريح**: شكال هغه پړي ته وئيلي شي په كوم چي داس يوه مخكني خپه او يوه وروستنۍ خپه ترلي شي دا هغه وخت كي ترل كيږي كله چي اسونه څريدو دپاره پريخودلي شي پاتي شوه دا چي په حديث كي څه مراد دي په دي كي اختلاف دي دمسلم په يو روايت كي ددي دوه صورتونه بيان شوي دي په اولني صورت كي داس په وروستنۍ خپه كي او مخكنۍ خپه كي سپين والي مراد دي او په دويم صورت كي په ښي لاس او وروستۍ خپه كي سپين والي مراد دي او علماؤ ددينه علاوه داشكال نور تفسيرونه هم كړي دي كوم چي شارحينو دحديث ذكر كړي دي.

****************

---

[1] _ مسلم_ الإمارة ٢٧ (١٨٧٥). سنن ابي داود_ الجهاد ٣٦ (٢٥٤٧). سنن النسائي_ الخيل ٢ (٢٥٩٦). سنن ابن ماجه_ الجهاد ١٤ (٢٧٩٠). (تحفة الأشراف: ١٣٨٩٠). واحمد في المسند (٢_ ٢٥٠، ٤٣٦، ٤٦١، ٤٧٦)

## ٢٢_ باب مَا جَاءَ فِي الرِّهَانِ وَالسَّبَقِ

### په اسونو دشرط لګولو بيان

١٦٩٩_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ وَزِيرٍ الْوَاسِطِيُّ، حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ يُوسُفَ الأَزْرَقُ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ عُبَيْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَجْرَى الْمُضَمَّرَ مِنَ الْخَيْلِ مِنَ الْحَفْيَاءِ إِلَى ثَنِيَّةِ الْوَدَاعِ وَبَيْنَهُمَا سِتَّةُ أَمْيَالٍ، وَمَا لَمْ يُضَمَّرْ مِنَ الْخَيْلِ مِنْ ثَنِيَّةِ الْوَدَاعِ إِلَى مَسْجِدِ بَنِي زُرَيْقٍ وَبَيْنَهُمَا مِيلٌ، وَكُنْتُ فِيمَنْ أَجْرَى، فَوَثَبَ بِي فَرَسِي جِدَارًا". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَفِي الْبَابِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، وَجَابِرٍ، وَعَائِشَةَ، وَأَنَسٍ، وَهَذَا حَدِيثٌ صَحِيحٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ. مِنْ حَدِيثِ الثَّوْرِيِّ. ([1])

**ترجمه** : دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما بيان دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم دحفياء مقام نه تر ثنية الوداع پوري مضمر اس اوزغلولو او ددي دواړو په مينخ کي شپږ ميله مصافه ده او کوم اس چي به مضمر نه وو هغه به يي دثنية الوداع نه تر دبني زريق مسجده پوري زغلول او ددوئ دواړو په مينخ کي يو ميل مسافه ده او زه هم په هغه کسانو کي وم چي اسونه يي زغلول چنانچي زما اس زه يوړم او ديو ديوال نه يي اودانګل.

امام ترمذي وايي : دسفيان ثوري په روايت دا حديث صحيح حسن غريب دي، او په دي باب کي دابوهريره، جابر، عائشه، او انس رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي.

***************

١٧٠٠_ حَدَّثَنَا أَبُو كُرَيْبٍ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنِ ابْنِ أَبِي ذِئْبٍ، عَنْ نَافِعِ بْنِ أَبِي نَافِعٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "لَا سَبَقَ إِلَّا فِي نَصْلٍ، أَوْ خُفٍّ، أَوْ حَافِرٍ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ. ([2])

---

[1] _ اخرجه البخاري في الصحيح_ الجهاد ٥٦ (٢٨٦٨)، و٥٧ (٢٨٦٩)، و ٥٨ (٢٨٧٠)، والاعتصام ٦ (٧٣٣٦)، صحيح مسلم_ الإمارة ٢٥ (١٨٧٠)، سنن ابي داود_ الجهاد ٦٧ (٢٥٧٥)، سنن النسائي_ الخيل ١٢ (٣٦١٣)، و ١٣ (٣٦١٤)، سنن ابن ماجه_ الجهاد ٤٤ (٢٨٧٧)، (تحفة الأشراف : ٨٩٥٧)، والمؤطاء الجهاد ١٩ (٤٥)، واحمد في المسند (٢، ٥، ٥٥٥٦) سنن الدارمي_ الجهاد ٣٦ (٢٤٧٣)

[2] _ ابي داود_ الجهاد ٦٧ (٢٥٧٤)، و النسائي_ الخيل ١٤ (٣٦١٥، ٣٦١٦، ٣٦١٩)، سنن ابن ماجه_ الجهاد ٤٤ (٢٨٧٨)، (تحفة الأشراف : ١٤٦٣٨)، واحمد في المسند (٢_ ٢٥٦، ٢٥٨، ٤٢٥، ٤٧٤)

**ترجمه** دابوهريره رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي مقابله صرف په غشو ويشتلو، او اوښانو او اسونو زغلولو كي جائز دي
امام ترمذي وايي داحديث حسن دي.

***************

## ٢٣_ باب مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ أَنْ تُنْزَى الْحُمُرُ عَلَى الْخَيْلِ

### اسپي ته دخر پريښودلو دكراهت بيان

١٧٠١_ حَدَّثَنَا أَبُو كُرَيْبٍ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا أَبُو جَهْضَمٍ مُوسَى بْنُ سَالِمٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عَبَّاسٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَبْدًا مَأْمُورًا، مَا اخْتَصَّنَا دُونَ النَّاسِ بِشَيْءٍ إِلَّا بِثَلَاثٍ: " أَمَرَنَا أَنْ نُسْبِغَ الْوُضُوءَ، وَأَنْ لَا نَأْكُلَ الصَّدَقَةَ، وَأَنْ لَا نُنْزِيَ حِمَارًا عَلَى فَرَسٍ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَفِي الْبَابِ، عَنْ عَلِيٍّ، وَهَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَرَوَى سُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ هَذَا، عَنْ أَبِي جَهْضَمٍ، فَقَالَ: عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَبَّاسٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: وَسَمِعْتُ مُحَمَّدًا، يَقُولُ: حَدِيثُ الثَّوْرِيِّ غَيْرُ مَحْفُوظٍ وَوَهِمَ فِيهِ الثَّوْرِيُّ، وَالصَّحِيحُ مَا رَوَى إِسْمَاعِيلُ ابْنُ عُلَيَّةَ، وَعَبْدُ الْوَارِثِ بْنُ سَعِيدٍ، عَنْ أَبِي جَهْضَمٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عَبَّاسٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ. (1)

**ترجمه** دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم دالله تعالي دحكم يو تابع او مامور انسان وو او هغوئ مونږ ته دنورو په نسبت په دري ځيزونو خصوصي حكم كړي دي مونږ ته يي دا حكم كړي دي چي كامل اودس اوكړو او صدقه اونه خورو او اسپو ته خره پري نږدو .

امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي، سفيان ثوري دابوجهضم په روايت ددي حديث سند داسي بيان كړي دي عن عبيدالله بن عبدالله بن عباس عن ابن ابن عباس، ما دامام بخاري نه اوريدلي دي چي دثوري حديث غير محفوظ دي په دي كي ثوري دوهم ښكار شوي دي صحيح روايت هغه دي كوم چي اسماعيل بن عليه او عبدالوارث بن سعيد دابوجهضم نه او هغه دعبدالله بن عبدالله بن عباس نه او د عبيدالله بن عباس نه نقل كړي دي، او په دي باب كي دعلي رضي الله عنه نه هم روايت وارد دي

---

1 _ سنن ابي داود_ الصلاة ١٣١ (٨٠٨) . سنن النسائي_ الطهارة ١٠٦ (١٣١) . والخيل ١٠ (٣٦١١) . سنن ابن ماجه_ الطهارة ٤٩ (٤٢٦) . (تحفة الأشراف : ٥٧٩١) . واحمد في المسند (١_ ٢٢٥، ٢٣٥، ٢٤٩)

*****************

## ٢٤_ باب مَا جَاءَ فِي الِاسْتِفْتَاحِ بِصَعَالِيكِ الْمُسْلِمِينَ

### دغريبو او مسکينا نو مسلمانانو ددعا په ذريعه دمدد طلب کولو بيان

١٧٠٢_ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ مُوسَى، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ الْمُبَارَكِ، قَالَ: أَخْبَرَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ يَزِيدَ بْنِ جَابِرٍ، حَدَّثَنَا زَيْدُ بْنُ أَرْطَاةَ، عَنْ جُبَيْرِ بْنِ نُفَيْرٍ، عَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ، قَالَ: سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: "ابْغُونِي فِي ضُعَفَائِكُمْ، فَإِنَّمَا تُرْزَقُونَ وَتُنْصَرُونَ بِضُعَفَائِكُمْ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (١)

**ترجمه**: دابودرداء عويمر رضي الله عنه نه روايت دی چي ما د رسول الله صلي الله عليه وسلم نه دا فرمان اوريدلی دی چي خما رضا په خپلو بی خوکو او ضعيفانو کي تلاش کړئ خکه چي تاسو ته امداد او رزق دضعيفانو په ذريعه درکولی شي.

امام ترمذي وايي: دا حديث حسن صحيح دي.

**لغات**: ترزقون: دنصر نه رزقه رزقا معني چاته رزق ورکول.

**تشريح**: په يو روايت کي ابتغوني في الضعفاء لفظ راغلي دي او په بل روايت کي ابتغوني الي الضعفاء لفظ راغلي دي... په يو بل روايت کي في لفظ نشته دی مطلب يي دادی چي ماله په کمزورو مسلمانانو کي ولټوئ لکه چي په يو روايت کي راغلي دي الله تعالي چي ستاسو مدد کوي نو دکمزورو ددعاګانو او مونځونو او اخلاص په وجه يي درسره کوي

پدي حديث کي هم دغرباؤ اوضعفاؤ فضيلت بيان شوي دي چي دوئ اګرچي په دنياوي اعتبار سره کمزوري دي ليکن ديقين په اعتبار سره مالامال دي او ددولت مندو په مقابل کي يي مرتبه لويه ده.

"هل تنصرون وترزقون الا بضعفائكم" او په يو بل روايت کي ددي وجه خودلی شوي ده "انما نصر الله هذه الامة بضعيفها بدعوتهم وصلاتهم واخلاصهم".

اوپه يو بل روايت کي انما تنصرون وترزقون بضعفائكم. الفاظ راغلي دي يعني تاسوته رزق او مدد ستاسو دکمزورو په وجه ملاويږي.

د حديث مطلب دادی ستاسو دا سوچ دي غلط دی کوم خلق چي ستا سو نه په طاقت اومال کي

---

١_ سنن ابي داود_ الجهاد ٧٧ (٢٥٩٤). سنن النسائي_ الجهاد ٤٣ (٣١٨١). (تحفة الأشراف: ١٠٩٢٣). و احمد في المسند (٥_١٩٨)

کم دي دهغوی عزت او اکرام کوی خکه چي هم ددوی په برکت خلقو ته رزق او مال ورکولی شي

***************

## ٢٥_ باب مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ الأَجْرَاسِ عَلَى الْخَيْلِ

### داسونو په غړی کي دکنتي او شرنګنوزورندولو دکراهت بیان

١٧٠٣_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ مُحَمَّدٍ، عَنْ سُهَيْلِ بْنِ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "لَا تَصْحَبُ الْمَلَائِكَةُ رُفْقَةً فِيهَا كَلْبٌ، وَلَا جَرَسٌ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَفِي الْبَابِ، عَنْ عُمَرَ، وَعَائِشَةَ، وَأُمِّ حَبِيبَةَ، وَأُمِّ سَلَمَةَ، وَهَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.

([1])

**ترجمه** : دابوهریره رضي الله عنه نه روایت دی چي رسول الله صلي الله علیه وسلم فرمائیلي دي درحمت فرشتی داسی قافلی سره نه ملګري کیږي کومه کي چي سپی وي یا جرس وي.

امام ترمذي وايي : داحدیث حسن صحیح دي، په دي باب کي دعمر ، عائشه، ام حبیبه او ام سلمه رضي الله عنهم نه هم احادیث مروي دي.

**لغات** : جرس؛ معني ګنتي یا تلئ، یا شرنګني جمع یې اجراس راځي ذات الاجراس هغه مار ته ویلي شي چي دتلئ پشان اواز کوي.

**مختصر تشریح** : "لاتصحب الملائکة" یعني فرشتي ملګرتیا نه کوي، ددینه هغه فرشتي مراد دي کومي چي داعمالو لیکونکو او حفاظت کونکو نه علاوه وي.

"جرس" یعني تلئ ددي په وجه هم فرشتي لري تختي خکه چي دا د ناقوس سره مشابه دی کوم چي دغیرمسلمو علامه ده یا داچي ددي اواز په شریعت کي بد ګڼرلی شوی دی، په یو روایت کي راځي چي یو هلك عائشه رضي الله عنها ته راغلو او داسي څیز ورسره وو چي شرنګا یې کوله ام المؤمنین ورته اوفرمائیل داسي څیز زما خواته مه راوړه کوم چي فرشتو لره لري شړونکی وي. مظاهر حق ٧٧٩/٣

په یو بل روایت کي وارد دي شرنګني دشیطان باجه ده:

عن ابي هريرة: أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ. قَالَ: ((الْجَرَسُ مَزَامِيرُ الشَّيْطَانِ)). رواه مسلم.

---

[1] _ صحيح مسلم_ اللباس ٢٧ (٢١١٣)، سنن ابي داود_ الجهاد ٥١ (٢٥٥٥). (تحفة الأشراف: ١٢٦٠٢). و احمد في المسند (٢_ ٢٦٣، ٣١١، ٣٢٧، ٣٤٣، ٣٨٥، ٣٩٢، ٤١٤، ٤٤٤، ٤٧٦). سنن الدارمي_ الاستئذان ٤٤ (٢٧١٨)

ابو هريره رضي الله عنه نه روايت دی چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي جرس دشيطان دسرود سامان دی، امام ابو داود دامام مسلم په شرطونو صحيح سند سره روايت کړی دی

مزامير دمزمار جمع ده معني ستار ، ډول باجه وغيره ده يعني دموسيقي الات

په دي کي دګاني بجامي تمام اوزار شامل دي ، مزامير يي دجمع لفظ څکه استعمال کړي دي چي ددي اواز مسلسل وي او دهري سلسلي نه يي په مزمار سره تعبير کړي دي. په يو روايت کي راغي چي دهر جرس سره شيطان وي ، يا ددي وجه داده چي ددي په سبب سړي دالله دذکر نه منع کيږي

امام شافعي وايي چي د ستار ايجاد زنديقانو کړي دي ددي دپاره چي په دي باندي خلق دقران او نوافلو نه غافل کړي.

***************

## ٢٦ـ باب مَا جَاءَ مَنْ يُسْتَعْمَلُ عَلَى الْحَرْبِ

### دجنګ دپاره به امير څوک مقررولي شي

١٧٠٤ـ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ أَبِي زِيَادٍ، حَدَّثَنَا الأَحْوَصُ بْنُ الْجَوَّابِ أَبُو الْجَوَّابِ، عَنْ يُونُسَ بْنِ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنِ الْبَرَاءِ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " بَعَثَ جَيْشَيْنِ وَأَمَّرَ عَلَى أَحَدِهِمَا عَلِيَّ بْنَ أَبِي طَالِبٍ، وَعَلَى الآخَرِ خَالِدَ بْنَ الْوَلِيدِ ". فَقَالَ: " إِذَا كَانَ الْقِتَالُ، فَعَلِيٌّ ". قَالَ: فَافْتَتَحَ عَلِيٌّ حِصْنًا فَأَخَذَ مِنْهُ جَارِيَةً. فَكَتَبَ مَعِي خَالِدُ بْنُ الْوَلِيدِ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَشِي بِهِ. فَقَدِمْتُ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. فَقَرَأَ الْكِتَابَ. فَتَغَيَّرَ لَوْنُهُ ثُمَّ قَالَ: " مَا تَرَى فِي رَجُلٍ يُحِبُّ اللَّهَ وَرَسُولَهُ، وَيُحِبُّهُ اللَّهُ وَرَسُولُهُ ". قَالَ: قُلْتُ: أَعُوذُ بِاللَّهِ مِنْ غَضَبِ اللَّهِ وَغَضَبِ رَسُولِهِ، وَإِنَّمَا أَنَا رَسُولٌ. فَسَكَتَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَفِي الْبَابِ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ. وَهَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ الأَحْوَصِ بْنِ جَوَّابٍ. قَوْلُهُ يَشِي بِهِ، يَعْنِي: النَّمِيمَةَ. [1]

**ترجمه** : دبراء رضي الله عنه بيان دي فرماني چي نبي کريم صلي الله عليه وسلم دوه لښکرونه اوليږل او په يو لښکر يي علي بن ابي طالب رضي الله عنه او په بل لښکر يي خالد بن وليد رضي الله عنه امير مقرر کړو او ويي فرمانيل کله چي جنګ وي نو علي به امير وي. علي رضي الله عنه يوه قلا فتح کړه او ددېنه يي يوه وينځه واخستله راوي وائي چي خالد بن وليد

[1] ـ تفرد بذكره المؤلف واعاده في المناقب برقم ٣٧٢٥. (تحفة الأشراف: ١٩٠١)

رضي الله عنه زه ديو خط سره رسول الله صلي الله عليه وسلم ته راوليږلم رسول الله صلي الله عليه وسلم ته چي راغلم نو خط يي اولوستلو او دمخ رنګ يي بدل شو او ويي فرمائيل دهغه چا باره کي دي څه خيال دي څوك چي دالله او دهغه درسول سره محبت کوي او الله او دهغه رسول هم دده سره محبت کوي؟ ما عرض اوکړو زه دالله او دهغه په رسول دغصي نه په الله باندي پناه غواړم زه خو صرف قاصد يم لهذا رسول الله صلي الله عليه وسلم خاموش شو

امام ترمذي وايي : داحديث حسن غريب دي او دا مونږ ته صرف داحوس بن جواب په روايت رارسيدلي دي، او په دي باب کي دابن عمر رضي الله عنهما نه هم حديث مروي دي او د "يشي به" معني چغل خوري ده.

***************

## ٢٧ـ باب مَا جَاءَ فِي الإِمَامِ

### دامام او حاکم دذمه واريا نو بيان

١٧٠٥ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " أَلَا كُلُّكُمْ رَاعٍ، وَكُلُّكُمْ مَسْئُولٌ عَنْ رَعِيَّتِهِ، فَالأَمِيرُ الَّذِي عَلَى النَّاسِ رَاعٍ وَمَسْئُولٌ عَنْ رَعِيَّتِهِ، وَالرَّجُلُ رَاعٍ عَلَى أَهْلِ بَيْتِهِ وَهُوَ مَسْئُولٌ عَنْهُمْ، وَالمَرْأَةُ رَاعِيَةٌ عَلَى بَيْتِ بَعْلِهَا وَهِيَ مَسْئُولَةٌ عَنْهُ، وَالعَبْدُ رَاعٍ عَلَى مَالِ سَيِّدِهِ وَهُوَ مَسْئُولٌ عَنْهُ، أَلَا فَكُلُّكُمْ رَاعٍ، وَكُلُّكُمْ مَسْئُولٌ عَنْ رَعِيَّتِهِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَفِي البَابِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، وَأَنَسٍ، وَأَبِي مُوسَى، وَحَدِيثُ أَبِي مُوسَى غَيْرُ مَحْفُوظٍ، وَحَدِيثُ أَنَسٍ غَيْرُ مَحْفُوظٍ، وَحَدِيثُ ابْنِ عُمَرَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. قَالَ: حَكَاهُ إِبْرَاهِيمُ بْنُ بَشَّارٍ الرَّمَادِيُّ، عَنْ سُفْيَانَ بْنِ عُيَيْنَةَ، عَنْ بُرَيْدِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي بُرْدَةَ، عَنْ أَبِي بُرْدَةَ، عَنْ أَبِي مُوسَى، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. أَخْبَرَنِي بِذَلِكَ مُحَمَّدُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ بْنِ بَشَّارٍ، قَالَ: وَرَوَى غَيْرُ وَاحِدٍ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ بُرَيْدٍ، عَنْ أَبِي بُرْدَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُرْسَلًا وَهَذَا أَصَحُّ. قَالَ مُحَمَّدٌ: وَرَوَى إِسْحَاقُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ مُعَاذِ بْنِ هِشَامٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَنَسٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " إِنَّ اللَّهَ سَائِلٌ كُلَّ رَاعٍ عَمَّا اسْتَرْعَاهُ ". قَالَ: سَمِعْتُ مُحَمَّدًا، يَقُولُ: هَذَا غَيْرُ

**مَحْفُوظٍ. وَإِنَّمَا الصَّحِيحُ عَنْ مُعَاذِ بْنِ هِشَامٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنِ الحَسَنِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُرْسَلًا.** [1]

**ترجمه** دابن عمر رضي الله عنه نه روايت دی چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي په تاسو کي هر يو نګهبان دی او دخپل رعيت تپوس به تری کيږي، نو حاکم نګهبان دی دخپلی علاقی او سړی نګهبان دی دخپل کور دخلقو (ښخی او اولاد) او ښخه نګهبانه ده دخاوند دکور او د اولاد نو هريو نګهبان دی او دهر يو نه به تپوس کيږي

امام ترمذي وايي: او په دي باب کي دابوهريره، انس، او ابو موسي رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي او دابوموسي حديث غيرمحفوظ دي او حديث دانس هم غير محفوظ دي او حديث دابن عمر حسن صحيح دي، امام ترمذي وائي داحديث ابراهيم بن بشار رمادي په سند دسفيان بن عيينه عن بريده بن عبدالله بن ابي بردة عن ابي بردة عن ابي موسي عن النبي صلي الله عليه وسلم سره نقل کړي دي او دا حديث يو څو راويانو په سند دسفيان عن بريده عن ابي بردة عن النبي صلي الله عليه وسلم سره په مرسل سند نقل کړي دي مګر دا مرسل روايت زيات صحيح دي محمد بن اسماعيل بخاري وائي اسحاق بن ابراهيم داحديث په سند د معاذ بن هشام عن ابيه عن قتادة عن انس عن النبي صلي الله عليه وسلم سره نقل کړي دي، بيشکه الله تعالي دهر يو نګهبان نه تپوس کوي دهغه څيز په باره کي دکوم دنګرانۍ دپاره چي دي مقرر شوي دي ، امام ترمذي وائي ما دامام بخاري نه اوريدلي دي دا روايت غير محفوظ دي او صحيح روايت هغه دي کوم چي په سند دمعاذ بن هشام عن ابيه عن قتادة عن الحسن عن النبي صلي الله عليه وسلم سره مرسل مروي دي.

**لغات** : راع: رعيٰ يرعيٰ رعيا: دفتح نه څاروو لره په ګياګانو کي څرولو ته وئيلي شي، او همدارنګي په خپل رعيت باندي سياست کولو ته هم وئيلي شي

**تشريح**: رعيت هغه څيز ته وئيلی شي کوم چي دنګهبان او نګرانۍ او حفاظت کي وي لکه چي عموما وئيلی شي دفلاني ملك رعايا مطلب دادی چي ددي ملك دحکمران په ذمه کي او حفاظت کي دي.

الامير راع الخ، علامه خطابي وائي پورتنی حديث په دي لحاظ انتهائي اهميت لري چي په دي حديث کي ذکر شول چي دمعاشري هر فرد لره پکار دي چي يو حاکم وي يا ملازم وي سړی وي

---

[1] _ اخرجه البخاري في الصحيح_ الجمعة ١١ (٨٩٣) . والاستقراض ٢٠ (٢٤٠٩) . والعتق ١٧ (٢٥٥٤) . والوصايا ٩ (٢٧٥١) . والنكاح ٨١ (٥٢٠٠) . والأحكام ١ (٧١٣٨) . صحيح مسلم_ الإمارة ٥ (١٨٢٩) . سنن ابي داود_ الخراج ١ (٢٩٢٨) . (تحفة الأشراف: ٢٩٥) . واحمد في المسند (٢_ ٥. ٥٤. ١١١. ١٢١)

او که ښخه وي خو هر يو تن دخپل کار په اعتبار سره ذمه وار گرځولی شوی دی

## دانسان نه به دخپلو اعضاء په باره کښې هم تپوس کيږي

بعضي علماؤ ددي حديث لاندي ليکلي دي چي هر څوك ذمه وار دی يعني تردي پوري چي هر کس دخپل جسم داعضاؤ هم ذمه وار دی لهذا دقيامت په ورځ به دهر کس نه دده داعضاؤ په باره کښې هم سوال کيږي چي دا دي چرته چرته استعمال کړي وو

***************

# ٢٨_ باب مَا جَاءَ فِي طَاعَةِ الإِمَامِ

## دامام نه داطاعت کولو بيان

١٧٠٦_حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى النَّيْسَابُورِيُّ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوسُفَ، حَدَّثَنَا يُونُسُ بْنُ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنِ العَيْزَارِ بْنِ حُرَيْثٍ، عَنْ أُمِّ الحُصَيْنِ الأَحْمَسِيَّةِ، قَالَتْ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَخْطُبُ فِي حَجَّةِ الوَدَاعِ، وَعَلَيْهِ بُرْدٌ قَدِ التَفَعَ بِهِ مِنْ تَحْتِ إِبْطِهِ، قَالَتْ: فَأَنَا أَنْظُرُ إِلَى عَضَلَةِ عَضُدِهِ تَرْتَجُّ، سَمِعْتُهُ يَقُولُ: "يَا أَيُّهَا النَّاسُ، اتَّقُوا اللَّهَ، وَإِنْ أُمِّرَ عَلَيْكُمْ عَبْدٌ حَبَشِيٌّ مُجَدَّعٌ، فَاسْمَعُوا لَهُ، وَأَطِيعُوا مَا أَقَامَ لَكُمْ كِتَابَ اللَّهِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَفِي البَابِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، وَعِرْبَاضِ بْنِ سَارِيَةَ، وَهَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رُوِيَ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ عَنْ أُمِّ حُصَيْنٍ.[1]

**ترجمه** : دام حصين احمسيه رضي الله عنها بيان دي فرمائي چي ما درسول الله صلي الله عليه وسلم نه په حجة الوداع کي دخطبي ورکولو په وخت کي اوريدلي دي او درسول الله صلي الله عليه وسلم په جسم په دغه وخت کي يو څادر وو کوم چي يي دترخونو دلاندي دطرف ن په خان راتاؤ کړي دي گويا کي ما درسول الله صلي الله عليه وسلم دمټو غوښه ليدله اودا مي ورنه واوريدل اي خلقو دالله نه اوويريږئ او که چري يوغوږ پري کړي شوي بوجئ غلام په تاسو باندي حاکم مقرر کړي شي نو دهغه خبره به هم منئ او اطاعت به يي کوئ څو پوري چي هغه ستاسو دپاره کتاب الله لره قائمو (يعني دالله تعالي دکتاب موافق حکم کوي).

امام ترمذي وايي : دا حديث حسن صحيح دي، او دا حديث په نورو سندونو هم دام حصين نه مروي دي او په دي باب کي دابوهريره، او عرباض بن ساريه رضي الله عنهما نه هم احاديث مروي دي.

**تشريح** : "وان تأمر عليکم عبد حبشي" په دي حديث کښې مبالغه شوي ده يعني که غلام هم امير

---

1 _ صحيح مسلم_ الحج ٥١ (١٢٩٨_ ٣١١) ، والإمارة (١٨٣٨_ ٣٧) . (تحفة الأشراف : ١٨٣١٢) . واحمد في المسند (٦_ ٤٠٢)

شو په تاسو خو نافرماني به يي نه کوئ او نه دهغه نه بغاوت کول جائز دي دهغه په اطاعت جمع کيدل پکار دي ددي مثال داسي دی لکه چي په يو روايت کي راغلي دي که څوك دمرغئ دجالي برابر مسجد جوړ کړي نو دهغه دپاره به هم په جنت کي يو محل تيار کړی شي نو دمرغئ دجالي په برابر جوړولو نه مراد دمسجد اهميت بيانول دي نو همدارنګي په دي حديث کي هم په عبد حبشي سره يي دامير داطاعت اهميت ته اشاره کړي ده

سوال په شريعت کي خو دغلام خليفه مقرريدل جائز ندي نو دده داطاعت به څه مطلب وي

اول جواب مخکي تير شوي دي دلته غلام په طور دمثال او مبالغي ذکر شوی دی يعني بالفرض که غلام هم حاکم شي نو بيا به هم دده نه بغاوت کول جائز نه وي، دويم جواب دحاکم نه مراد حليفه نه دی بلکه دعلاقي عامل دی نو غلام لره دتول ملك خليفه کول جائز نه دي مګر دعلاقي عامل جوړيدی شي.

خليفه کول يي جائز ندي ليکن د کومي علاقي والي جوړيدي شي ، په حديث کي همدا مراد دي يا په مبالغه محمول دي يعني که حاکم حبشي غلام هم وي نو اطاعت به يي کوئ

تامر عليکم عبد حبشي. که په تاسو باندي حبشي غلام بادشاه شي نو ترڅو پوري چي دده امارت په شرعي طريقي سره نافض وي ترهغي به تاسو په جائزکارونو کي دده اطاعت کوي او په همدي باندي دعلماؤ اجماع ده.

***************

## ٢٩_ بَاب مَا جَاءَ لَا طَاعَةَ لِمَخْلُوقٍ فِي مَعْصِيَةِ الْخَالِقِ

### دالله په معصيت کي دمخلوق اطاعت جائز نه دي

١٧٠٧_حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " السَّمْعُ وَالطَّاعَةُ عَلَى الْمَرْءِ الْمُسْلِمِ فِيمَا أَحَبَّ وَكَرِهَ، مَا لَمْ يُؤْمَرْ بِمَعْصِيَةٍ، فَإِنْ أُمِرَ بِمَعْصِيَةٍ، فَلَا سَمْعَ عَلَيْهِ وَلَا طَاعَةَ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَفِي الْبَاب، عَنْ عَلِيٍّ، وَعِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ، وَالْحَكَمِ بْنِ عَمْرٍو الْغِفَارِيِّ، وَهَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [1]

---

[1] _ اخرجه البخاري في الصحيح_ الجهاد ١٠٨ (٢٩٥٥) ، والأحكام ٤ (٧١٤٤) . صحيح مسلم_ الإمارة ٨ (١٨٣٩) . سنن ابي داود_ الجهاد ٩٦ (٢٦٢٦) . سنن النسائي_ البيعة ٣٤ (٤٢١١) . سنن ابن ماجه_ الجهاد ٤٠ (٢٨٦٤) . (تحفة الأشراف : ٨٠٨٨) . واحمد في المسند (٢_١٧، ٤٢)

**ترجمه** عبدالله بن عمر رضي الله عنهما درسول الله صلي الله عليه وسلم فرمان نقل كوي چي مسلمان باندي اوريدل اومنل لازم دي اگر كه هغه حكم ورته ښه لگي يا بد خو كه چرى دگناه حكم وركړى شي نو مه هغه اورئ اومه يې منئ.
امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي او په دي باب كي دعلي، عمران بن حصين، او حكم بن عمرو غفاري رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي

**لغات** السمع داوريدلو حاسه (غوږ) يااوريدلي شوي خبره قبلول. جمع يي اسماع راځي او جمع الجمع يي اسامع او اساميع راځي، الطاعة: فرمانبرداري كول، په مجردو كې دنصر نه مستعمل دي.

**تشريح** : امام نووي په دي خبره دعلماؤ اجماع نقل كړي ده چي كله امير او حاكم په شرعي طور سره مقرر كړى شي نو په جائزو كارونو كې به يي اطاعت ضروري وي او واجب به وي ليكن كه چري دكوم ناجائز كار حكم اوكړي نو بيا يي خبره منل جائز نه دي.

## دحاكم دومره اطاعت جائز دي څومره چي دسړي طاقت وي

عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: كُنَّا إِذَا بَايَعْنَا رسول الله ﷺ عَلَى السَّمْعِ وَالطَّاعَةِ، يَقُولُ لَنَا: ((فِيمَا اسْتَطَعْتُمْ)) متفقٌ عَلَيْهِ.

عبدالله بن عمررضي الله عنهما نه روايت دى چي مونږ به رسول الله صلي الله عليه وسلم سره په اوريدلو اومنلو باندي بيعت كولونو رسول الله صلي الله عليه وسلم به مونږ ته فرمائيل چي (داوريدلو او منلو دا بيعت هغه كارونو دپاره دى چه) دكوم تاسو كې طاقت دي.

علماء وائي په دي حديث كې خو يو طرف ته رعيت ته حكم شوى دى چي دمسلمان حاكم اطاعت به كوئ او په دي شرط چي هغه دالله او درسول دحكم خلاف نه وي خو دويم طرف ته په دي كې حاكمانو ته هم خطاب دى چي تاسو به عوام په داسي مشقت كې نه اچوئ چي دهغي بوج دوئ اوړى نشي بلكه داسي قانون اختيارول پكار دي په كوم باندي چي عمل كول اسان وي او دوئ يي زور اولري، درسول الله ارشادات جوامع الكلم وي نو په دي وجه دلته دا دواړه معني مراد كيدى شي.

****************

## ٣٠_ بَاب مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ التَّحْرِيشِ بَيْنَ الْبَهَائِمِ وَالضَّرْبِ وَالْوَسْمِ فِي الْوَجْهِ

## پخپل مينځ كي دځارو جنګولو او دوئ ته په مخونو باندي دوهلو اود داغ وركولو دكراهت بيان

١٧٠٨_حَدَّثَنَا أَبُو كُرَيْبٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ آدَمَ، عَنْ قُطْبَةَ بْنِ عَبْدِ الْعَزِيزِ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي يَحْيَى، عَنْ مُجَاهِدٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ التَّحْرِيشِ بَيْنَ الْبَهَائِمِ".[1]

**ترجمه** : دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه مروي دي فرماني چي رسول الله صلي الله عليه وسلم څاروو لره پخپل مينځ کي دجنګولو نه منع فرمانيلي ده.

*****************

١٧٠٩_حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي يَحْيَى، عَنْ مُجَاهِدٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "نَهَى عَنِ التَّحْرِيشِ بَيْنَ الْبَهَائِمِ". وَلَمْ يَذْكُرْ فِيهِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، وَيُقَالُ: هَذَا أَصَحُّ مِنْ حَدِيثِ قُطْبَةَ، وَرَوَى شَرِيكٌ هَذَا الْحَدِيثَ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ مُجَاهِدٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، نَحْوَهُ، وَلَمْ يَذْكُرْ فِيهِ عَنْ أَبِي يَحْيَى، حَدَّثَنَا بِذَلِكَ أَبُو كُرَيْبٍ، عَنْ يَحْيَى بْنِ آدَمَ، عَنْ شَرِيكٍ، وَرَوَى أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ مُجَاهِدٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، نَحْوَهُ، وَأَبُو يَحْيَى هُوَ الْقَتَّاتُ الْكُوفِيُّ وَيُقَالُ اسْمُهُ: زَاذَانُ، قَالَ أَبُو عِيسَى: وَفِي الْبَابِ، عَنْ طَلْحَةَ، وَجَابِرٍ، وَأَبِي سَعِيدٍ، وَعِكْرَاشِ بْنِ ذُؤَيْبٍ.[2]

**ترجمه** : دمجاهد نه روايت چي رسول الله صلي الله عليه وسلم دڅاروو جنګولو نه منع فرمانيلي ده.

امام ترمذي وايي : په دي سند کي راوي دابن عباس ذکر نه دي کړي ونيلي شوي دي چي دقتبه دحديث نه دا حديث زيات صحيح دي او دا حديث شريك په سند دمجاهد عن ابن عباس عن النبي صلي الله عليه وسلم سره دماقبل هم معني نقل کړي ده او په دي کي يي ابويحيٰ نه دي ذکر کړي، او ابو معاويه دا حديث په سند داعمش عن مجاهد عن النبي صلي الله عليه وسلم سره ددي هم معني نقل کړي ده او دا ابو يحيٰ نه مراد ابو يحيٰ قتات کوفي دي، ونيلي شوي دي چي دده نوم زاذان دي، او په دي باب کي دطلحه ، جابر ابو سعيد ، او عکراش بن ذويب رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي.

*****************

---

[1] ـ سنن ابي داود_ الجهاد ٥٦ (٢٥٦٢) . (تحفة الأشراف : ٦٤٢١)

[2] ـ سنن ابي داود_ الجهاد ٥٦ (٢٥٦٢) . (تحفة الأشراف : ٦٤٢١)

۱۷۱۰_ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ. حَدَّثَنَا رَوْحُ بْنُ عُبَادَةَ، عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "نَهَى عَنِ الوَسْمِ فِي الوَجْهِ وَالضَّرْبِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (۱)

**ترجمه** دجابر رضي الله عنه نه مروي دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم په مخ باندي دوهلو او د داغ وركولو نه منع فرمائيلي ده.

امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي.

***************

## ۳۱_ بَاب مَا جَاءَ فِي حَدِّ بُلُوغِ الرَّجُلِ وَمَتَى يُفْرَضُ لَهُ

**هلك كله باغ كيږي او په غنيمت كي د حصي حقدار كله جوړيږي؟ (يعني فوج كي به كله اخستلى شي)**

۱۷۱۱_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْوَزِيرِ الْوَاسِطِيُّ، حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ يُوسُفَ الْأَزْرَقُ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: "عُرِضْتُ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي جَيْشٍ وَأَنَا ابْنُ أَرْبَعَ عَشْرَةَ فَلَمْ يَقْبَلْنِي، ثُمَّ عُرِضْتُ عَلَيْهِ مِنْ قَابِلٍ فِي جَيْشٍ وَأَنَا ابْنُ خَمْسَ عَشْرَةَ فَقَبِلَنِي". قَالَ نَافِعٌ: فَحَدَّثْتُ بِهَذَا الحَدِيثِ عُمَرَ بْنَ عَبْدِ العَزِيزِ، فَقَالَ: "هَذَا حَدُّ مَا بَيْنَ الصَّغِيرِ وَالكَبِيرِ. ثُمَّ كَتَبَ أَنْ يُفْرَضَ لِمَنْ بَلَغَ الخَمْسَ عَشْرَةَ". (۲)

**ترجمه** : دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت دي چي زه درسول الله صلي الله عليه وسلم په وړاندي په يو لښكر كي پيش كړي شوم او دغه وخت كي زما عمر څوارلس كاله وو نو رسول الله زه په لښكر كي قبول نكړم بيا په راتلونكي كال زه دهغوئ په وړاندي په يو بل لښكر كي پيش كړي شوم او دغه وخت كي زما عمر پنځلس كاله وو نورسول الله زه په لښكر كي قبول كړم. نافع واني ما عمر بن عبدالعزيز ته داحديث بيان كړو نوهغوئ اووئيل دبالغ او نابالغ په مينځ كي همدا حد دي، او هغوئ خپلو عاملانو ته اوليكل څوك چي پنځلس كالو ته ورسيږي نو د غنيمت دمال نه دي هغوئ ته حصي وركړي شي.

---

1 _ صحيح مسلم_ اللباس ۲۹ (۲۱۱۶) . (تحفة الأشراف : ۲۸۱۶) . و احمد في المسند (۳_ ۳۱۸، ۳۷۸)

2 _ البخاري_ الشهادات ۱۸ (۲۶۶۳) . سنن ابي داود_ المغازي ۲۹ (۳۰۹۷) . صحيح مسلم_ الإمارة ۲۳ (۱۸۶۸_ ۹۱) سنن ابن ماجه_ الحدود ۴ (۲۵۴۳) . (تحفة الأشراف : ۷۹۰۰) ويأتي عند المؤلف في الجهاد ۳۲ (۱۷۱۱)

امام ترمذي وائي دا حديث حسن صحيح دي او دا هل علمو عمل هم په دي باندي دي

****************

حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ. حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنْ عُبَيْدِ اللهِ. نَحْوَهُ بِمَعْنَاهُ إِلَّا أَنَّهُ قَالَ: قَالَ عُمَرُ بْنُ عَبْدِ الْعَزِيزِ: "هَذَا حَدٌّ مَا بَيْنَ الذُّرِّيَّةِ وَالْمُقَاتِلَةِ". وَلَمْ يَذْكُرْ أَنَّهُ كَتَبَ "أَنْ يُفْرَضَ". قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ إِسْحَاقَ بْنِ يُوسُفَ. حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ مِنْ حَدِيثِ سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ.[1]

**ترجمه** په دي سند هم عبيدالله دماقبل روايت هم معني روايت نقل كړي دي مگر دومره اضافه يې كړي ده چي دي وائي عمر بن عبدالعزيز اوونيل همدا حد دي په مينځ دبالغ جنگيدونكي او نابالغه كسانو كي او دعمر بن عبدالعزي خپلو عاملانو ته دخط ليږلو ذكر يې نه دي كړي چي ددوئ دپاره دي په غنيمت كي حصه مقرر شي.

امام ترمذي وايي : داسحاق بن يوسف حديث حسن صحيح غريب دي په سند دسفيان ثوري

****************

## ٣٢_ بَاب مَا جَاءَ فِيمَنْ يُسْتَشْهَدُ وَعَلَيْهِ دَيْنٌ

### حكم دهغه چا په چاچي قرض وي او دالله په لاره كي شهيد شي

١٧١٢_حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ. حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي سَعِيدٍ الْمَقْبُرِيِّ، عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ أَبِي قَتَادَةَ، عَنْ أَبِيهِ. أَنَّهُ سَمِعَهُ يُحَدِّثُ عَنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. أَنَّهُ قَامَ فِيهِمْ فَذَكَرَ لَهُمْ: أَنَّ الْجِهَادَ فِي سَبِيلِ اللهِ، وَالْإِيمَانَ بِاللهِ. أَفْضَلُ الْأَعْمَالِ. فَقَامَ رَجُلٌ. فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللهِ. أَرَأَيْتَ إِنْ قُتِلْتُ فِي سَبِيلِ اللهِ. يُكَفِّرُ عَنِّي خَطَايَايَ؟ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "نَعَمْ. إِنْ قُتِلْتَ فِي سَبِيلِ اللهِ وَأَنْتَ صَابِرٌ مُحْتَسِبٌ مُقْبِلٌ غَيْرُ مُدْبِرٍ". ثُمَّ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "كَيْفَ قُلْتَ؟". قَالَ: أَرَأَيْتَ إِنْ قُتِلْتُ فِي سَبِيلِ اللهِ. أَيُكَفِّرُ عَنِّي خَطَايَايَ؟ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "نَعَمْ. وَأَنْتَ صَابِرٌ مُحْتَسِبٌ مُقْبِلٌ غَيْرُ مُدْبِرٍ. إِلَّا الدَّيْنَ. فَإِنَّ جِبْرِيلَ قَالَ لِي ذَلِكَ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَفِي الْبَابِ. عَنْ أَنَسٍ. وَمُحَمَّدِ بْنِ جَحْشٍ. وَأَبِي هُرَيْرَةَ. وَهَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَرَوَى بَعْضُهُمْ هَذَا الْحَدِيثَ عَنْ سَعِيدٍ الْمَقْبُرِيِّ. عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ. عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى

---

[1] _ البخاري_ الشهادات ١٨ (٢٦٦٣) . سنن ابي داود_ المغازي ٢٩ (٢٠٩٤) . صحيح مسلم_ الإمارة ٢٣ (١٨٦٨_٩١) سنن ابن ماجه_ الحدود ٤ (٢٥٤٣) . (تحفة الأشراف : ٧٩٠٠) ويأتي عند المؤلف في الجهاد ٣٢ (١٧١١)

اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَ هَذَا. وَرَوَى يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ الأَنْصَارِيُّ، وَغَيْرُ وَاحِدٍ هَذَا، عَنْ سَعِيدٍ الْمَقْبُرِيِّ، عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ أَبِي قَتَادَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. وَهَذَا أَصَحُّ مِنْ حَدِيثِ سَعِيدٍ الْمَقْبُرِيِّ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ. (1)

**ترجمه** ابوقتاده حارث بن ربعي رضي الله عنه وائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم يوه ورځ دصحابه كرامو په مجمع كې اودريدو او ويې فرمائيل چي دالله په لاره كې جهاد او الله تعالي باندي ايمان دټولو نه غوره اعمال دي دغه وخت يو كس پاڅيدو ويې وئيل اى دالله رسوله! ستاسو څه خيال دى كه چري زه په جهاد في سبيل الله كې قتل كړى شم نو ايا خما ګناهونه به معاف كړى شي ؟ رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل كه چري ته دالله په لاره كې اووژلى شى او ته صابر او دثواب په اميد سره وړاندي تلونكى يې او په شاكيدونكى نه يې او مضبوط ولاړ يې نو ستا ګناه به معاف كړى شي دى نه پس رسول الله صلي الله عليه وسلم دهغه نه پوښتنه اوكړه چي تا اوس څه تپوس كړى وو ؟ هغه اووئيل ستاسو څه خيال دى كه څه چرته جهاد كې قتل كړى شم نو ايا خما ګناهونه به معاف كړى شي؟ رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل او، كه ته صبركونكى، دثواب په اميد سره وړاندي كيدونكى يې او په شا اونه تختې نو ستا ګناهونه به معاف كړى شي خو قرض نه معاف كيږي دا ماته جبرائيل عليه السلام وئيلي دي.

امام ترمذي وايي : دا حديث حسن صحيح دي او بعضي راويانو داحديث په سند دسعيد المقبري عن ابي هريره عن النبي صلي الله عليه وسلم سره ددي پشان مرفوع نقل كړي دي، او يحىٰ بن سعيد انصاري او بعضي نورو راويانو دا په سند دسعيد مقبري عن عبدالله بن ابي قتادة عن ابيه عن النبي صلي الله عليه وسلم سره نقل كړي دي او دا روايت دسعيد مقبري دهغه روايت نه كوم چي هغه دابوهريره په واسطه نقل كوي زيات صحيح دي، او په دي باب كي دانس، محمد بن جحش، او ابوهريره رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي.

**لغات:** اتكفر كفر الله له الذنوب يعني الله ورته ګناهونه معاف كړل.

مقبل: القُبُل دهر شي مخكني او مخامخ حصه.

مدبر: الدبر دهر شي وروستنۍ حصه او جمع يي ادبار راځي.

**تشريح** : په دي حديث كې دحقوق العباد په ادائګۍ زور وركړي شوي دي يعني دحقوق العباد معامله ډيره سخته ده، څكه چي كله كله الله تعالي خپل حقوق يعني عبادات او طاعات معاف

[1] ـ صحيح مسلم ـ الإمارة ۳۲ (۱۸۸۵) . (تحفة الأشراف : ۱۲۰۹۸) . والموطاء الجهاد ۱۴ (۳۱) . و احمد في المسند (۵ـ ۲۹۷، ۳۰۲، ۳۰۸) . سنن الدارمي ـ الجهاد ۲۱ (۲۴۵۶)

کوي مګر د بندګانو حقوق نه معاف کوي اګر که ددشمن په مقابله کې دشجاعت کولو په حالت کې ولې نه وي مړ شوي.

"فان جبريل قال لي" ددينه معلومه شوه چې جبريل عليه السلام به صرف قران نه راوړلو بلکه ددې سره سره به نور احکامات هم راوړل

دبعضې علماؤ قول دې چې شهيد ته هم حقوق العباد نه معاف کيږي خو دا هغه شهيد دې چې په بري يعني دوچې په جنګ کې شهيد شوي وي دبحري جنګ شهيد ددينه مستثنى دي لکه چې رسول الله فرمائيلي دي چې دبحري جنګ تمام شهيدانو ته ټول ګناهونه معاف کيږي اګر که قرض ولې نه وي.

****************

## ٣٣_ باب مَا جَاءَ فِي دَفْنِ الشُّهَدَاءِ

### دشهيدانو ددفن کولو بيان

١٧١٣_ حَدَّثَنَا أَزْهَرُ بْنُ مَرْوَانَ الْبَصْرِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ بْنُ سَعِيدٍ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ حُمَيْدِ بْنِ هِلَالٍ، عَنْ أَبِي الدَّهْمَاءِ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عَامِرٍ، قَالَ: ذُكِيَ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْجِرَاحَاتُ يَوْمَ أُحُدٍ فَقَالَ: "احْفِرُوا، وَأَوْسِعُوا، وَأَحْسِنُوا، وَادْفِنُوا الِاثْنَيْنِ وَالثَّلَاثَةَ فِي قَبْرٍ وَاحِدٍ، وَقَدِّمُوا أَكْثَرَهُمْ قُرْآنًا". فَمَاتَ أَبِي، فَقُدِّمَ بَيْنَ يَدَيْ رَجُلَيْنِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَفِي الْبَابِ، عَنْ خَبَّابٍ، وَجَابِرٍ، وَأَنَسٍ. وَهَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَرَوَى سُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ، وَغَيْرُهُ هَذَا الْحَدِيثَ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ حُمَيْدِ بْنِ هِلَالٍ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عَامِرٍ، وَأَبُو الدَّهْمَاءِ اسْمُهُ: قِرْفَةُ بْنُ بُهَيْسٍ أَوْ بَيْهَسٍ. [1]

**ترجمه**: دهشام بن عامر رضي الله عنه بيان ذي فرمائي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم ته داحد په ورځ دزخميانو (يعني دشهيدانو د دفن کولو) تذکره اوکړې شوه نو ويې فرمائيل قبرونه جوړ کړئ او ازاد ازاد يې جوړ کړئ او ښه يې جوړ کړئ او په يو يو قبر کې دوه دوه او درې درې کسان دفن کړئ او چاته چې قران زيات ياد وي دهغه مخ قبلې ته مخامخ کړئ، دهشام بن عامر بيان دي چې زما پلار هم وفات شوي وو چنانچې هغه يې په يو دوه ملګرو مقدم کړو يعني قبلې طرف ته يې مخامخ کړو.

---

[1] _ سنن ابي داود_ الجنائز ٧١ (٣٢١٥). سنن النسائي_ الجنائز ٨٦ (٢٠١٢)، و ٩٠ (٢٠١٧)، و ٩١ (٢٠٢٠). سنن ابن ماجه_ الجنائز ٤١ (١٥٦٠). (تحفة الأشراف: ١١٧٣١)، واحمد في المسند (٤_١٩، ٢٠)

امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي سفيان ثوري اوبعضي نورو راويانو داحديث په سند دايوب عن حميد بن هلال عن هشام بن عامر سره نقل كري دي، او په دي باب كي دخباب، جابر، انس رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي. او د ابو الدهماء نوم فرقه بن بهيس يا بيهس دی.

***************

## ٣٤_ باب مَا جَاءَ فِي الْمَشُورَةِ

### په جنګ کي دمشوري کولو بيان

١٧١٤_حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ عَمْرِو بْنِ مُرَّةَ، عَنْ أَبِي عُبَيْدَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: لَمَّا كَانَ يَوْمُ بَدْرٍ، وَجِيءَ بِالأُسَارَى، قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " مَا تَقُولُونَ فِي هَؤُلاَءِ الأُسَارَى ؟ ". فَذَكَرَ قِصَّةً فِي هَذَا الْحَدِيثِ طَوِيلَةً. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَفِي الْبَابِ، عَنْ عُمَرَ، وَأَبِي أَيُّوبَ، وَأَنَسٍ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَهَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ، وَأَبُو عُبَيْدَةَ لَمْ يَسْمَعْ مِنْ أَبِيهِ، وَيُرْوَى عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: مَا رَأَيْتُ أَحَدًا أَكْثَرَ مَشُورَةً لِأَصْحَابِهِ مِنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. ([1])

**ترجمه** : دعبدالله بن مسعود رضي الله عنه بيان دي فرمائي كله چي دجنګ بدر په ورځ قيديان راوستلي شول نو رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل ستاسو ددوی باره کي څه رائي ده او بيا راوي په دي حديث کي يوه اوږده قصه بيان کړه.

امام ترمذي وايي : داحديث حسن دي او دابوعبيده سماع دخپل پلار نه ثابت نه ده، دابوهريره رضي الله عنه بيان دي ما درسول الله صلي الله عليه وسلم نه زيات بل څوك داسي نه دي ليدلي چي دملګرو نه مشوري اخلي، او په دي باب کي دعمر، ابوايوب، انس، ابوهريره رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي.

***************

## ٣٥_ باب مَا جَاءَ لاَ تُفَادَى جِيفَةُ الأَسِيرِ

### قيدي مړي به نشي خرڅولی

١٧١٥_حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلاَنَ، حَدَّثَنَا أَبُو أَحْمَدَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ ابْنِ أَبِي لَيْلَى، عَنِ الْحَكَمِ، عَنْ مِقْسَمٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ " أَنَّ الْمُشْرِكِينَ أَرَادُوا أَنْ يَشْتَرُوا جَسَدَ رَجُلٍ مِنَ الْمُشْرِكِينَ، فَأَبَى

[1] _ تفرد بذكره المؤلف وأعاده في تفسير الأنفال (٣٠٨٤). (تحفة الأشراف : ٩٦٢٨)

النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يَبِيعَهُمْ إِيَّاهُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ، لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ الحَكَمِ، وَرَوَاهُ الحَجَّاجُ بْنُ أَرْطَاةَ أَيْضًا عَنِ الحَكَمِ، وقَالَ أَحْمَدُ بْنُ الحَسَنِ: سَمِعْتُ أَحْمَدَ بْنَ حَنْبَلٍ، يَقُولُ: ابْنُ أَبِي لَيْلَى لَا يُحْتَجُّ بِحَدِيثِهِ، وقَالَ مُحَمَّدُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ: ابْنُ أَبِي لَيْلَى صَدُوقٌ وَلَكِنْ لَا نَعْرِفُ صَحِيحَ حَدِيثِهِ مِنْ سَقِيمِهِ وَلَا أَرْوِي عَنْهُ شَيْئًا، وَابْنُ أَبِي لَيْلَى صَدُوقٌ فَقِيهٌ، وَرُبَّمَا يَهِمُ فِي الإِسْنَادِ، حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ، قَالَ: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ دَاوُدَ، عَنْ سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ، قَالَ: فُقَهَاؤُنَا ابْنُ أَبِي لَيْلَى عَبْدُ اللَّهِ بْنُ شُبْرُمَةَ. (1)

**ترجمه** : دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه مروي دي چي مشركانو درسول الله صلي الله عليه وسلم نه ديو مشرك مړي اخستلو مطالبه اوکړله نو رسول الله صلي الله عليه وسلم ددي دخرخولو نه انکار اوکړو.

امام ترمذي وايي : داحديث حسن غريب دي او دا مونږ ته صرف دحكيم په سند رارسيدلي دي او دا حديث حجاج بن ارطات هم دحكم په سند نقل کړي دي ، احمد بن حنبل واني دابن ابي ليلي حديث داستدلال قابل نه دي او حجت نه دي، امام بخاري وائي ابن ابي ليلي صدوق دي ليکن مونږ دده ضعيف احاديث دده دصحيح احاديثو نه جداکولي نشو او زه دده نه اخذ دروايت نه کوم ابن ابي ليلي صدوق او فقيه دي ليکن ډير کرته دهغه په سندونو کي وهم پيداکيږي سفيان ثوري وائي زمونږ فقهاء ابن ابي ليلي او عبدالله بن شبرمه دي

****************

## ٣٦ـ بَابُ مَا جَاءَ فِي الْفِرَارِ مِنَ الزَّحْفِ

### دجنګ دميدان نه دتختيدو بيان

١٧١٦ـ حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي زِيَادٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي لَيْلَى، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: " بَعَثَنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي سَرِيَّةٍ، فَحَاصَ النَّاسُ حَيْصَةً، فَقَدِمْنَا المَدِينَةَ، فَاخْتَبَيْنَا بِهَا وَقُلْنَا: هَلَكْنَا، ثُمَّ أَتَيْنَا رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْنَا: يَا رَسُولَ اللَّهِ، نَحْنُ الفَرَّارُونَ ". قَالَ: " بَلْ أَنْتُمُ العَكَّارُونَ وَأَنَا فِئَتُكُمْ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ يَزِيدَ بْنِ أَبِي زِيَادٍ، وَمَعْنَى قَوْلِهِ: فَحَاصَ النَّاسُ حَيْصَةً. يَعْنِي: أَنَّهُمْ

---

[1] ـ تفرد به المؤلف. (تحفة الأشراف: ٦٣٤٥)

فَرُّوا مِنَ الْقِتَالِ. وَمَعْنَى قَوْلِهِ: "بَلْ أَنْتُمُ الْعَكَّارُونَ". وَالْعَكَّارُ: الَّذِي يَفِرُّ إِلَى إِمَامِهِ لِيَنْصُرَهُ. لَيْسَ يُرِيدُ الْفِرَارَ مِنَ الزَّحْفِ. (1)

**ترجمه** : دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما بيان دي فرمائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم مونږ په يوه سريه كي اوليږلو او بيا مونږ دجنګ نه اوتختيدو او مديني ته راغلو نو دشرم په وجه پټ شو او مونږ وئيل چي مونږ خو هلاك شو، مګر كله چي درسول الله په خدمت كي حاضر شو نو عرض مو اوكړو اي دالله رسوله مونږ تختيدونكي يو رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل بلكه تاسو دحملي كولو دپاره شاته وروسته كيدونكي يئ او زه ستاسو پناه ګاه يم.

امام ترمذي وايي : داحديث حسن دي او دا مونږ ته صرف ديزيد بن ابي زياد په سند رارسيدلي دي او د "فحاص الناس حيصة" معني داده چي دجنګ نه اوتختيدلو او "بل انتم العكارون" ديته وئيلي شي چي څوك اوتختي او خپل امير ته ځان راورسوي ترڅو چي هغه ددوئ مدد اوكړي او دجنګ نه يي دتختيدو اراده نه وي.

****************

## ٣٧_ بَاب مَا جَاءَ فِي دَفْنِ الْقَتِيلِ فِي مَقْتَلِهِ

## دقتل په ځاي كي دمقتول د دفن كولو بيان

١٧١٧_حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ، أَخْبَرَنَا شُعْبَةُ، عَنِ الْأَسْوَدِ بْنِ قَيْسٍ، قَالَ: سَمِعْتُ نُبَيْحًا الْعَنَزِيَّ يُحَدِّثُ، عَنْ جَابِرٍ، قَالَ: لَمَّا كَانَ يَوْمُ أُحُدٍ، جَاءَتْ عَمَّتِي بِأَبِي لِتَدْفِنَهُ فِي مَقَابِرِنَا، فَنَادَى مُنَادِي رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "رُدُّوا الْقَتْلَى إِلَى مَضَاجِعِهِمْ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَنُبَيْحٌ ثِقَةٌ. (2)

**ترجمه** : دجابر رضي الله عنه بيان دي فرمائي چي داحد په ورځ زما ترور راغله ددي دپاره چي زما پلاروړي او زمونږ په قبرستان كي يي دفن كړي نو درسول الله صلي الله عليه وسلم په اعلان كونكو كي يو كس اواز اوكړو چي قتل كړي شوي كسان دقتل كيدو ځايونو ته واپس راوړئ او دلته يي دفن كړئ.

---

[1] _ سنن ابي داود_ الجهاد ١٠٦ (٢٦٤٧). (تحفة الأشراف: ٧٢٩٨)

[2] _ سنن ابي داود_ الجنائز ٤٢ (٣١٦٥). سنن النسائي_ الجنائز ٨٣ (٢٠٠٦). سنن ابن ماجه_ الجنائز ٢٨ (١٥١٦). (تحفة الأشراف: ٣١١٧). سنن الدارمي_ المقدمة ٧ (٤٦)

امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي او نبيح ثقه دي

***************

## ۳۸_ باب مَا جَاءَ فِي تَلَقِّي الْغَائِبِ إِذَا قَدِمَ

### دبهر نه دراتلونكي كس داستقبال كولو بيان

۱۷۱۸_حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ، وَسَعِيدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْمَخْزُومِيُّ، قَالَا: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنِ السَّائِبِ بْنِ يَزِيدَ، قَالَ: "لَمَّا قَدِمَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ تَبُوكَ، خَرَجَ النَّاسُ يَتَلَقَّوْنَهُ إِلَى ثَنِيَّةِ الْوَدَاعِ"، قَالَ السَّائِبُ: فَخَرَجْتُ مَعَ النَّاسِ وَأَنَا غُلَامٌ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.[1]

**ترجمه** : دسائب بن يزيد رضي الله عنه بيان دي فرمائي كله چي رسول الله صلي الله عليه وسلم دغزوه تبوك نه واپس راغي نو خلق دده داستقبال دپاره ثنية الوداع ته اووتل اوزه هم ددي خلقو سره وتلي وم او حال دادي زما عمر كم دي.

امام ترمذي وايي داحديث حسن دي.

### دسائب بن يزيد رضي الله عنه حالات

نوم سائب دپلار نوم يزيد بن سعيد بن ثمامه كندي، امام زهري وائي چي كندي په يمن كي داذ قبيلي يو شاخ دى مگر په بنوكنانه كي شميرلى شي سائب دعمر كندي خوريى دى . دهجرت په شلم كال پيدا شوى دى او داوه كالو په عمر كي دخپل پلار سره په حجة الوداع كي شريك شوى دى دده نه عموما زهري او محمد بن يوسف نقل درروايت كوي ګڼر شمير روايات ورنه منقول دي او دهجرت په ۸۰ كال وفات شوى دى.

***************

## ۳۹_ باب مَا جَاءَ فِي الْفَيْءِ

### دمال في بيان

۱۷۱۹_حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنْ عَمْرِو بْنِ دِينَارٍ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ مَالِكِ بْنِ أَوْسِ بْنِ الْحَدَثَانِ، قَالَ: سَمِعْتُ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ، يَقُولُ: كَانَتْ أَمْوَالُ بَنِي النَّضِيرِ مِمَّا

---

[1] _ اخرجه البخاري في الصحيح_ الجهاد ۱۹۶ (۳۰۸۲) . والمغازي ۸۲ (۴۴۲۶) . سنن ابي داود_ الجهاد ۱۷۶ (۲۷۷۹) . (تحفة الأشراف . ۳۸۰۰)

أَفَاءَ اللهُ عَلَى رَسُولِهِ مِمَّا لَمْ يُوجِفِ الْمُسْلِمُونَ عَلَيْهِ بِخَيْلٍ وَلَا رِكَابٍ، وَكَانَتْ لِرَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَالِصًا، وَكَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "يَعْزِلُ نَفَقَةَ أَهْلِهِ سَنَةً، ثُمَّ يَجْعَلُ مَا بَقِيَ فِي الْكُرَاعِ وَالسِّلَاحِ عُدَّةً فِي سَبِيلِ اللهِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَرَوَى سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ هَذَا الْحَدِيثَ، عَنْ مَعْمَرٍ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ. (1)

**ترجمه** دعمر بن الخطاب رضي الله عنه بيان دي فرمائي چي دبنو نضير مالونه هغه څيزونه دي كوم چي الله تعالي خپل رسول ته دمال في په طور وركړي دي او دا هغه څيزونه دي دكومو دپاره چي نه مسلمانانو جنګ كړي وو او نه يي خپل څاروي زغلولي وو دا صرف دالله تعالي درسول دپاره مخصوص وو ددينه به رسول الله صلي الله عليه وسلم پخپل كورنۍ باندي ديو كال پوري خرچه كوله او په باقي مال يي دالله په لاره كي دجهاد كولو دپاره اسونه او اسلحه وغيره واخستله

امام ترمذي وايي : داحديث حسن صحيح دي،سفيان بن عيينه دا حديث دمعمرو په واسطه دابن شهاب نه نقل كړي دي.

***************

# كتاب اللباس

## د ملبوساتو او لباس احكام او مسائل

د لباس باره كي الله تعالي فرمائيلي دي: يابني ادم قد انزلنا عليكم لباسا. يعني الله تعالي لباس يو عظيم نعمت پيدا كړی دی څکه چي سترپوشي دانسان فطري خواهش او ضرورت دی او په دي كي تمام مذاهب او ملتونه متفق دي ديواري معني پټول دي او سوئات دجسم هغي حصي ته وئيلی شي دكومي چي پټول ضروري دي يعني شرمګاه ، ريشا يعني هغه لباس كوم لره چي انسان دزينت او جمال دپاره استعمالوي اولنی قسم لباس هغه دی په كوم چي انسان خپل ضرورت پوره كوي او دا په اسلام كي دتولو نه اولنی فرض دی باقي مونځ وګيره ددينه

---

[1] ـ اخرجه البخاري في الصحيح ـ الجهاد ٨٠ (٢٩٠٤) . وتفسير الحشر ٣ (٤٨٨٥) . صحيح مسلم ـ الجهاد ١٥ (١٧٥٧) . سنن ابي داود ـ الخراج والإمارة ١٩ (٢٩٦٥) . (تحفة الأشراف : ١٠٦٣١) . و احمد في المسند (١ ـ ٢٥) (وانظر أيضا حديث رقم ١٦١٠)

وروسته دي دويم قسم لباس هغه ذكر شوى دى په كوم چي انسان زينت او جمال حاصلوي او خپل اندامونه وربانندي ښائسته كوي الله تعالي ددواړه قسمه لباسونو دپاره سامان او مواد پيدا كړي دي

ولباس التقوي ذلك خير. پورتني ذكر شوي لباسونه خو هر چاته معلوم دي ليكن بو دريم قسم لباس هم شته چي هغه تقوي ده دلته دتقوي نه مراد دابن عباس رضي الله عنهما او عروه بن زبير په قول عمل صالح او خوف الهى دى مفسرين وائي دلباس التقوي په لفظ كې دينه هم اشاره ده چي دظاهري لباس په ذريعه ستر پټول او جمال حاصلول دي او اصل مقصد تقوي ده دتقوي اثر په لباس كې ښكاره كيدل هم پكار دي مثلا چي ستر يي ښه پټ وي ساده هم وي اسراف هم نه وي شوى او لباس دفخر او غرور دپاره نه وي استعمال شوى او دښځو لباس دسړو دلباس سره مشابه نه وي دا ټول دتقوي په لباس كې داخل دي.

وقال تعالى: ﴿ وَجَعَلَ لَكُمْ سَرَابِيلَ تَقِيكُمُ الْحَرَّ وَسَرَابِيلَ تَقِيكُمْ بَأْسَكُمْ ﴾ [النحل: ٨١].

[اوپيداكړي دي تاسولره قميصونه(دوړئ ، ياكتان ياريخم وغيره نه جوړ شوي) چي ساتي تاسولره دګرمئ نه. ( اودريخمو اووسپني وغيره نه مو بعضي نور) قميصونه دركړي دي چي ساتي تاسو په وخت دجنګ كې ] يعني ستاسو حفاظت وربانندي كيږي

په دي ايت كې الله تعالي خپل نعمت ذكر كوي چي دوړئ او مالوچو جامي چي تاسو جوړوئ او په ګرمئ او يخنئ كې وربانندي خان بچ كوئ او داوسپني نه چي زغري جوړوئ چي په جنګونو كې يي استعمالوئ دا ټول دالله تعالي نعمتونه دي الله تعالي تاسو ته ددي داستعمال صلاحيت دركړى دى

سوال. دلته خو دكپړي غرض دا خودلى شوى دى چي په دي باندي تاسو دګرمئ نه خان بچ كوئ حالانكه قميص خو ديخنئ او ګرمئ دواړو دپاره مفيد دى.

جواب. عرب ديو ګرم ملك اوسيدونكي دي هلته دواوري كيدل هم متصل دي او قران كريم د عربو دعادت زيات لحاظ ساتلى دى نو په دي وجه يي صرف ګرمي ذكر كړي ده او ديخنئ ذكر يي نه دى كړى اشرف علي تهانوي وائي ددي سورت په شروع كې لكم فيها دفء فرمائيلي دي يعني ديخنئ نه دبچ كيدو دپاره نو اوس يي دلته اوفرمائيل تقيكم الحر يعني دګرمئ مدافعت يي هم بيان كړو نو په دي شان سره ددواړو موسمونو تذكره اوشوه.

## ١ـ بَاب مَا جَاءَ فِي الْحَرِيرِ وَالذَّهَبِ

**دريخمو او سرو زرو داستعمال بيان**

۱۷۲۰_حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ مَنْصُورٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ نُمَيْرٍ، حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي هِنْدٍ، عَنْ أَبِي مُوسَى الأَشْعَرِيِّ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " حُرِّمَ لِبَاسُ الحَرِيرِ وَالذَّهَبِ عَلَى ذُكُورِ أُمَّتِي، وَأُحِلَّ لِإِنَاثِهِمْ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَفِي البَابِ، عَنْ عُمَرَ، وَعَلِيٍّ، وَعُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ، وَأَنَسٍ، وَحُذَيْفَةَ، وَأُمِّ هَانِئٍ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، وَعِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ الزُّبَيْرِ، وَجَابِرٍ، وَأَبِي رَيْحَانَ، وَابْنِ عُمَرَ، وَالبَرَاءِ، وَوَاثِلَةَ بْنِ الأَسْقَعِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [1]

**ترجمه** دابوموسي اشعري رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دريښمو جامې او دسرو زرو استعمال ځما دامت په نارينه حرام دی او ښځو دپاره جائز دی.

امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي او په دې باب کې دعمر، علي، عقبه بن عامر، انس، حذيفه، ام هاني، عبدالله بن عمرو، عمران بن حصين، عبدالله بن زبير، جابر، ابوريحان، ابن عمر، براء، او واثله بن اسقع رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي.

**لغات**: ذکور جمع دذکر ده په معني دنر سره، الحديد: اوسپنه. ذکور البقل هغه سبزياني چې سختې شوي وي او اوګدې وي.

**تشريح**: علماء وائي چې دسرو په جمله کې واړه هلکان هم داخل دي هلکان اګر چې مکلف نه دي ليکن ددې ځيزونو دحرمت تعلق داغوستونکي سره دی چې کوم ماشوم دسوني يا ريخمو زيور اغوندي نو ددې ګناه به ددې په اغوستونکي باندې وي، علماء وايي چې دزرو نه مراد زيورات دي ورنه دلوښو استعمال خوپه نارينه او زنانه دواړو باندې يوشان حرام دي بعضې علماء وايي چې په اسلام کې سادګي خوښول بهتر ګرځولي شوي دي او قيمتي اوتکلفي لباس انسان لره دسادګۍ نه اوباسي.

******************

۱۷۲۱_حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا مُعَاذُ بْنُ هِشَامٍ، حَدَّثَنَا أَبِي، عَنْ قَتَادَةَ، عَنِ الشَّعْبِيِّ، عَنْ سُوَيْدِ بْنِ غَفَلَةَ، عَنْ عُمَرَ، أَنَّهُ خَطَبَ بِالجَابِيَةِ، فَقَالَ: " نَهَى نَبِيُّ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الحَرِيرِ، إِلَّا مَوْضِعَ أُصْبُعَيْنِ، أَوْ ثَلَاثٍ، أَوْ أَرْبَعٍ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [2]

---

[1] _ سنن النسائي_ الزينة ٤٠ (٥١٥١)، و٤٣ (٥٢٦٨). (تحفة الأشراف: ٨٩٩٨). و احمد في المسند (٤_ ٣٩٢، ٣٩٣، ٤٠٧)

[2] _ صحيح مسلم_ اللباس ٢ (٢٠٦٩_ ١٥). (تحفة الأشراف: ١٠٤٥٩)

**ترجمه** دسوید بن غفله بیان دي چي عمر رضي الله عنه په جابیه مقام کي خطبه ورکوله او ويې فرمائیل نبي کریم صلي الله علیه وسلم دریښمو داستعمال نه (دسرو دپاره) منع فرمائیلي ده مګر علاوه د دومره مقدار نه چي د دوه یا دري یا څلور ګوتو سره برابر وي
امام ترمذي وايي دا حدیث حسن صحیح دي
****************

## ٢_ بَاب مَا جَاءَ فِي الرُّخْصَةِ فِي لُبْسِ الْحَرِيرِ فِي الْحَرْبِ
### په جنګ کي دریښمو اغوستلو داجازت بیان

١٧٢٢_ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الصَّمَدِ بْنُ عَبْدِ الْوَارِثِ، حَدَّثَنَا هَمَّامٌ، حَدَّثَنَا قَتَادَةُ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، أَنَّ عَبْدَ الرَّحْمَنِ بْنَ عَوْفٍ، وَالزُّبَيْرَ بْنَ الْعَوَّامِ "شَكَيَا الْقَمْلَ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي غَزَاةٍ لَهُمَا، فَرَخَّصَ لَهُمَا فِي قُمُصِ الْحَرِيرِ". قَالَ: وَرَأَيْتُهُ عَلَيْهِمَا. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (1)

**ترجمه** دانس بن مالك رضي الله عنه نه مروي دي چي دعبدالرحمن بن عوف او زبیر بن عوام رضي الله عنهما په یو غزوه کي رسول الله صلي الله علیه وسلم ته د وړږو نه شکایت اوکړو نو رسول الله هغي ته دریښمو قمیص اغوستلو اجازت ورکړو انس رضي الله عنه واني چي ما هم دهغوئ په جسم دریښمو قمیص لیدلي وو.
امام ترمذي وايي دا حدیث حسن صحیح دي
****************

## ٣_ باب
### دماقبل باب متعلق یو بل باب

١٧٢٣_ حَدَّثَنَا أَبُو عَمَّارٍ، حَدَّثَنَا الْفَضْلُ بْنُ مُوسَى، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرٍو، حَدَّثَنَا وَاقِدُ بْنُ عَمْرِو بْنِ سَعْدِ بْنِ مُعَاذٍ، قَالَ: "قَدِمَ أَنَسُ بْنُ مَالِكٍ، فَأَتَيْتُهُ، فَقَالَ: مَنْ أَنْتَ؟ فَقُلْتُ: أَنَا وَاقِدُ بْنُ عَمْرِو بْنِ سَعْدِ بْنِ مُعَاذٍ، قَالَ: فَبَكَى، وَقَالَ: إِنَّكَ لَشَبِيهٌ بِسَعْدٍ، وَإِنَّ سَعْدًا كَانَ مِنْ أَعْظَمِ النَّاسِ وَأَطْوَلِهِمْ.

---

[1] _ اخرجه البخاري في الصحيح_ الجهاد ٩٠ (٢٩١٩، ٢٩٢٢) . واللباس ٢٩ (٥٨٣٩) . صحيح مسلم_ اللباس ٣ (٢٠٧٦) . سنن ابي داود_ اللباس ١٣ (٤٠٥٦) . سنن النسائي_ الزينة ٩٢ (٥٣١٢) . سنن ابن ماجه_ اللباس ١٧ (٣٥٩٢) . (تحفة الأشراف ١٣٩٤) . واحمد في المسند (٣_ ١٢٧، ١٨٠، ٢١، ٢٥٥، ٢٧٣)

وَإِنَّهُ بُعِثَ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جُبَّةٌ مِنْ دِيبَاجٍ مَنْسُوجٌ فِيهَا الذَّهَبُ. فَلَبِسَهَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. فَصَعِدَ الْمِنْبَرَ فَقَامَ أَوْ قَعَدَ. فَجَعَلَ النَّاسُ يَلْمِسُونَهَا. فَقَالُوا: مَا رَأَيْنَا كَالْيَوْمِ ثَوْبًا قَطُّ. فَقَالَ: "أَتَعْجَبُونَ مِنْ هَذِهِ؟ لَمَنَادِيلُ سَعْدٍ فِي الْجَنَّةِ خَيْرٌ مِمَّا تَرَوْنَ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَفِي الْبَابِ. عَنْ أَسْمَاءَ بِنْتِ أَبِي بَكْرٍ. وَهَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [1]

**ترجمه**. دواقب بن عمرو بن سعد بن معاذ بیان دي چي انس بن مالك رضي الله عنه مونږ ته راغلو نو زه ورته ورغلم نو زما نه يي تپوس اوكړو ته څوك يي ما اووئيل زه واقد بن عمرو بن سعد بن معاذ يم انس رضي الله عنه په ژړا شو او ويي وئيل ته بالكل دسعد هم شكل يي سعد رضي الله عنه يو لوي قد والا انسان وو نبي كريم صلي الله عليه وسلم ته يي درينمو يو چغه ليږلي وه چي زري پكي استعمال شوي وه رسول الله صلي الله عليه وسلم واغوستله او په منبر كيناستو يا اودريدو نو خلق به راتلل او دا به يي مسح كوله او دا به يي وئيل چي مونږ تر اوسه پوري داسي كپړه نه ده ليدلي رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل ايا تاسو ددي باره كي تعجب كوئ په جنت كي دسعد رومال هم ددينه ډير بهتر دي كومه چي تاسو وينئ

امام ترمذي وايي. داحديث حسن صحيح دي او په دي باب كي داسماء بنت ابي بكر رضي الله عنها نه هم روايت وارد دي.

****************

## ٤ـ باب مَا جَاءَ فِي الرُّخْصَةِ فِي الثَّوْبِ الأَحْمَرِ لِلرِّجَالِ

### دسرو دپاره دسرو جامو اغوستلو دجواز بيان

١٧٢٤ـ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ. حَدَّثَنَا وَكِيعٌ. حَدَّثَنَا سُفْيَانُ. عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ. عَنِ الْبَرَاءِ. قَالَ: "مَا رَأَيْتُ مِنْ ذِي لِمَّةٍ فِي حُلَّةٍ حَمْرَاءَ أَحْسَنَ مِنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. لَهُ شَعْرٌ يَضْرِبُ

---

[1] ـ اخرجه البخاري في الصحيح ـ الهبة ٢٨ (٢٦١٥). وبدء الخلق ٨ (٣٢٤٨). صحيح مسلم ـ فضائل الصحابة ٢٢ (٢٤٦٩). سنن النسائي ـ الزينة ٨٨ (٥٣٠٣). (تحفة الأشراف: ١٦٣٨). واحمد في المسند (٣ـ ١١١. ١٢١ـ١٢٢. ٢٠٦. ٢٠٩. ٢٢٩. ٢٣٨. ٢٥١. ٢٧٧)

مَنْكِبَيْهِ بَعِيدُ مَا بَيْنَ الْمَنْكِبَيْنِ، لَمْ يَكُنْ بِالْقَصِيرِ وَلَا بِالطَّوِيلِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَفِي الْبَابِ. عَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ، وَأَبِي رِمْثَةَ، وَأَبِي جُحَيْفَةَ. وَهَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (1)

**ترجمه** دبراء رضي الله عنه بيان دي فرماني چي ما په سره جوړه كي اوږدو ويختو والا كوم انسان درسول الله صلي الله عليه وسلم نه ښكلي ليدلي نه دي دهغوئ ويښته به اوږو ته رارسيدل او داوږو مينځ كي يې لري والي دي او رسول الله نه ډير لنډ قد والاوو او نه ډير زيات اوږد

امام ترمذي وايي : داحديث حسن صحيح دي ، او په دي باب كي دجابر بن سمره، ابورمثه او ابوجحيفه رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي

**تشريح**: حلة حمراء ، يعني سره جوړه دلته دا سوال وارديږي چي شريعت خو دسرو دپاره سور رنګ استعمالول منع كړي دى لكه دعمران بن حصين رضي الله عنه په قيد كې چي دا ارشاد نبوي دى چي يو خل يو كس سري جامي اغوستلي وي اورسول الله صلي الله عليـه وسلم تـه يي سلام اوكړو نورسول الله ورته دسلام جواب ورنكړو ، يوځل رسول الله دصحابي په جسم سري جامي اوليدي اوويې فرمائيل داد كفارو لباس دى دا بـه نه اغوندئ، علامه ابن قيم ددي په جواب كې ليكلي دي په كومو روايتونو كې چي درسول الله په باره كې دسرو ياشنو جامو ذكر راغلى دى هلته مراد پوره سري اوشني جامي نه دي بلكه كرخو والاجامي مراد دي. همدا رنګي ابن حجر ليكلي دي يعني خادرونه به مكمل رنګين نه وو بلكه رنګيني كرخي به پكې وي.

**************

## ٥_ باب مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ الْمُعَصْفَرِ لِلرِّجَالِ

### دسرو دپاره دزيړ رنګ جامو اغوستلو دكراهت بيان

١٧٢٥_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ، عَنْ نَافِعٍ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ حُنَيْنٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَلِيٍّ، قَالَ: " نَهَانِي النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ لُبْسِ الْقَسِّيِّ وَالْمُعَصْفَرِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَفِي الْبَابِ. عَنْ أَنَسٍ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو. وَحَدِيثُ عَلِيٍّ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (1)

---

1 _ اخرجه البخاري في الصحيح_ المناقب ٢٣ (٣٥٥١) . واللباس ٣٥ (٥٨٤٨) . و٦٨ (٥٩٠٣) . صحيح مسلم _الفضائل ٢٥ (٢٣٣٧) . سنن ابي داود_ الترجل ٩ (٤١٨٣) . سنن النسائي_ الزينة ٩ (٥٠٦٣) . و ٥٩ (٥٢٣٤) . و ٩٣ (٥٣٤٨) . سنن ابن ماجه_ اللباس ٢٠ (٣٥٩٩) . (تحفة الأشراف : ١٨٤٧) . واحمد في المسند (٤_ ٢٨١. ٢٩٥) ويأتي برقم ٣٦٣٥

**ترجمه** دعلي رضي الله عنه بيان دي فرماني چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم زه د قسي جامو او دريښمي جامو او زيړ رنګ جامو اغوستلو نه منع كړي وم
امام ترمذي وايي دعلي رضي الله عنه حديث حسن صحيح دي، او په دي باب كي دانس. او عبدالله بن عمرو رضي الله عنهما نه هم احاديث وارد دي

***************

## ٦_ باب مَا جَاءَ فِي لُبْسِ الْفِرَاءِ

## دځرمني لباس (پوستين) اغوستلو بيان

١٧٢٦_حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ مُوسَى الْفَزَارِيُّ، حَدَّثَنَا سَيْفُ بْنُ هَارُونَ الْبُرْجُمِيُّ، عَنْ سُلَيْمَانَ التَّيْمِيِّ، عَنْ أَبِي عُثْمَانَ ـ عَنْ سَلْمَانَ، قَالَ: سُئِلَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ السَّمْنِ وَالْجُبْنِ وَالْفِرَاءِ، فَقَالَ: " الْحَلَالُ مَا أَحَلَّ اللهُ فِي كِتَابِهِ، وَالْحَرَامُ مَا حَرَّمَ اللهُ فِي كِتَابِهِ، وَمَا سَكَتَ عَنْهُ فَهُوَ مِمَّا عَفَا عَنْهُ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَفِي الْبَابِ، عَنِ الْمُغِيرَةِ، وَهَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ لَا نَعْرِفُهُ مَرْفُوعًا إِلَّا مِنْ هَذَا الْوَجْهِ، وَرَوَى سُفْيَانُ، وَغَيْرُهُ، عَنْ سُلَيْمَانَ التَّيْمِيِّ، عَنْ أَبِي عُثْمَانَ، عَنْ سَلْمَانَ قَوْلَهُ، وَكَأَنَّ هَذَا الْحَدِيثَ الْمَوْقُوفَ أَصَحُّ، وَسَأَلْتُ الْبُخَارِيَّ عَنْ هَذَا الْحَدِيثِ، فَقَالَ: مَا أُرَاهُ مَحْفُوظًا رَوَى سُفْيَانُ، عَنْ سُلَيْمَانَ التَّيْمِيِّ، عَنْ أَبِي عُثْمَانَ، عَنْ سَلْمَانَ، مَوْقُوفًا، قَالَ الْبُخَارِيُّ: وَسَيْفُ بْنُ هَارُونَ مُقَارِبُ الْحَدِيثِ، وَسَيْفُ بْنُ مُحَمَّدٍ، عَنْ عَاصِمٍ ذَاهِبُ الْحَدِيثِ. ([2])

**ترجمه** : دسلمان رضي الله عنه بيان دي فرمائي چي يوخل رسول الله صلي الله عليه وسلم نه دغوړو او فنير او پوستين باره كي تپوس اوكړي شو نو ويي فرمائيل دا څيزونه حلال دي او حلال هغه څيزونه دي كوم چي الله تعالي پخپل كتاب كي حلال كړي دي او حرام هغه څيزونه دي كوم چي يي پخپل كتاب كي بيان كړي دي او دكوم څيز باره كي چي الله تعالي خاموش پاتي شوي دي دا دهغه قبيلي نه دي چي كوم يي معاف كړي دي
امام ترمذي وايي داحديث غريب دي دا صرف مونږ ته په همدي سند مرفوع رارسيدلي دي، او داحديث سفيان په سند دسليمان التيمي عن ابي عثمان عن سلمان معكوفا نقل كړي دي ګويا كي دا موقوف زيات صحيح دي، او په دي باب كي دمغيره رضي الله عنه نه هم حديث وارد دي، ما دامام بخاري نه دي حديث باره كي تپوس اوكړو نو هغوئ اووئيل ماته محفوظ

---

[1] _ انظر حديث رقم ١٢٦٣

[2] _ سنن ابن ماجه_ الأطعمة ٦٠ (٣٣٦٧) . (تحفة الأشراف : ٤٤٩٦)

په ښکاري. او سفيان دا حديث په سند دسليمان تيمي عن ابي عثمان عن سلمان معكوف نقل کړي دي. امام بخاري واني سيف بن هارون مقارب الحديث دي او سيف بن محمد دعاصم نه په روايت کولو کې ذاهب الحديث دي

***************

## ٧_ باب مَا جَاءَ فِي جُلُودِ الْمَيْتَةِ إِذَا دُبِغَتْ

### دمرداري دڅرمني داستعمال بيان کله چې دا رنګ کړې شي

١٧٢٧_حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ. حَدَّثَنَا اللَّيْثُ. عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي حَبِيبٍ. عَنْ عَطَاءِ بْنِ أَبِي رَبَاحٍ. قَالَ: سَمِعْتُ ابْنَ عَبَّاسٍ. يَقُولُ: مَاتَتْ شَاةٌ. فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِأَهْلِهَا: "أَلَا نَزَعْتُمْ جِلْدَهَا ثُمَّ دَبَغْتُمُوهُ فَاسْتَمْتَعْتُمْ بِهِ".[1]

**ترجمه** دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما بيان دي فرمائي چې يوه چيلۍ مرداره شوه او رسول الله صلي الله عليه وسلم چيلۍ والاته اوونيل تاسو ددې څرمن ولې نه ويستله بيا به مو ورته رنګ ورکړې وي او فائده به مو ورنه اخستلې وه.

***************

١٧٢٨_حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ. حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ. وَعَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ مُحَمَّدٍ. عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ. عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ وَعْلَةَ. عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ. قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَيُّمَا إِهَابٍ دُبِغَ فَقَدْ طَهُرَ". وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَكْثَرِ أَهْلِ الْعِلْمِ قَالُوا فِي جُلُودِ الْمَيْتَةِ: إِذَا دُبِغَتْ فَقَدْ طَهُرَتْ. قَالَ أَبُو عِيسَى: قَالَ الشَّافِعِيُّ: أَيُّمَا إِهَابِ مَيْتَةٍ دُبِغَ فَقَدْ طَهُرَ. إِلَّا الْكَلْبَ وَالْخِنْزِيرَ. وَاحْتَجَّ بِهَذَا الْحَدِيثِ. وَقَالَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ: إِنَّهُمْ كَرِهُوا جُلُودَ السِّبَاعِ وَإِنْ دُبِغَ. وَهُوَ قَوْلُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الْمُبَارَكِ. وَأَحْمَدَ. وَإِسْحَاقَ. وَشَدَّدُوا فِي لُبْسِهَا. وَالصَّلَاةِ فِيهَا. قَالَ إِسْحَاقُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ: إِنَّمَا مَعْنَى قَوْلِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَيُّمَا إِهَابٍ دُبِغَ فَقَدْ طَهُرَ": جِلْدُ مَا يُؤْكَلُ لَحْمُهُ. هَكَذَا فَسَّرَهُ النَّضْرُ بْنُ شُمَيْلٍ. وَقَالَ إِسْحَاقُ: قَالَ

---

[1] _ تفرد بذكره المؤلف (تحفة الأشراف: ٥٩٦٩). وانظر اخرجه البخاري في الصحيح_ الزكاة ٦١ (١٤٩٢). والبيوع ١٠١ (٢٢٢١). والذبائح ٣٠ (٥٥٣١. ٥٥٣٢). صحيح مسلم_ الحيض ٢٧ (٣٦٣/٣٦٥). سنن ابي داود_ اللباس ٤١ (٤١٢١). سنن النسائي_ الفرع ٤ (٤٢٤٠-٤٢٤٢). سنن ابن ماجه_ اللباس ٢٥ (٣٦١٠). والموطاء الصيد ٦ (١٦). مسند احمد (١/ ٢٢٧. ٣٣٠. ٣٦٥. ٣٦٦. ٣٧٢). سنن الدارمي_ الأضاحي ٢٠ (٢٠٢٨)

النَّضْرُ بْنُ شُمَيْلٍ: إِنَّمَا يُقَالُ الإِهَابُ: لِجِلْدِ مَا يُؤْكَلُ لَحْمُهُ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَفِي الْبَابِ. عَنْ سَلَمَةَ بْنِ الْمُحَبِّقِ، وَمَيْمُونَةَ، وَعَائِشَةَ. وَحَدِيثُ ابْنِ عَبَّاسٍ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رُوِيَ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَ هَذَا، وَرُوِيَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنْ مَيْمُونَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَرُوِيَ عَنْهُ، عَنْ سَوْدَةَ، وَسَمِعْتُ مُحَمَّدًا يُصَحِّحُ حَدِيثَ ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَحَدِيثَ ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنْ مَيْمُونَةَ، وَقَالَ: احْتَمَلَ أَنْ يَكُونَ رَوَى ابْنُ عَبَّاسٍ، عَنْ مَيْمُونَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَرَوَى ابْنُ عَبَّاسٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَلَمْ يَذْكُرْ فِيهِ عَنْ مَيْمُونَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَكْثَرِ أَهْلِ الْعِلْمِ، وَهُوَ قَوْلُ سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ، وَابْنِ الْمُبَارَكِ، وَالشَّافِعِيِّ، وَأَحْمَدَ، وَإِسْحَاقَ. (1)

**ترجمه** دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي كومي څرمني ته چي رنګ ورکړي شي دا پاکه شي.

امام ترمذي وايي : دابن عباس حديث حسن صحيح دي، او دابن عباس په واسطه دنبي کريم صلي الله عليه وسلم نه دا حديث په همدي مضمون په نورو سندونو هم مروي دي، دا حديث دابن عباس نه کله دميمونه په واسطه دنبي کريم صلي الله عليه وسلم نه او کله دسوده په واسطه دنبي کريم صلي الله عليه وسلم نه نقل کيږي، ما دامام بخاري نه ددي حديث باره کي اوريدلي دي چي د رسول الله صلي الله عليه وسلم نه دابن عباس مروي حديث او دميمونه په واسطه مروي حديث په دي دواړو کي دابن عباس حديث زيات صحيح دي داکثر اهل علمو په همدي باندي عمل دي، سفيان ثوري، ابن مبارك، شافعي، احمد، او اسحاق هم په دي باندي قول کړي دي، او نذر بن شميل هم دا مفهوم بيان کړي دي اسحاق بن راهويه د نضر بن شميل قول نقل کوي چي ''اهاب'' دا هغه ځناور څرمن ته ونيلي شي دکوم چي غوښه خوړل جائز دي او داکثرو اهل علمو په دي باندي عمل دي دوئ وائي چي دمردار چمړه په رنګ ورکولو پاکيږي. امام شافعي وائي دخنزير او دسپي دڅرمن نه علاوه چي هره يوه څرمن رنګ کړي شي نو دا پاکيږي او هغوئ دهمدي حديث نه استدلال کړي دي، مګر بعضي اهل علم صحابه او ددوئ نه پس نور اهل علم ددرنده ګانو څرمني مکروه ګڼړي اګر که رنګ هم ورته ورکړي شي عبدالله بن مبارك او احمد او اسحاق هم دا قول دي هغوئ ددي اغوستل او په دي کي مونځ

---

1 _ صحيح مسلم_ الحيض ٢٧ (٣٦٦) . سنن ابي داود_ اللباس ٤١ (٤١٢٣) . سنن النسائي_ الفرع ٤ (٤٢٤٦) . سنن ابن ماجه_ اللباس ٢٥ (٣٦٠٩) . (تحفة الأشراف : ٥٨٢٢) . والموطاء الصيد ٦ (١٧) . و احمد في المسند (١_ ٢١٩. ٢٧٠. ٢٧٩. ٢٨٠

كول بد ګڼري اسحاق بن ابراهيم وائي درسول الله دقول "ايما اهاب دبغ فقد طهر" مطلب دادي چي دهغه څاروي څرمڼه په رنګ كولو پاكيږي دكوم چي غوښه خوړل جائز دي. او په دي باب كي دسلمه بن محبق ، ميمونه، او عائشه رضي الله عنها نه هم احاديث وارد دي

****************

١٧٢٩ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ طَرِيفٍ الْكُوفِيُّ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ فُضَيْلٍ، عَنِ الأَعْمَشِ، وَالشَّيْبَانِيِّ، عَنِ الحَكَمِ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي لَيْلَى، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُكَيْمٍ، قَالَ: أَتَانَا كِتَابُ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَنْ لَا تَنْتَفِعُوا مِنَ المَيْتَةِ بِإِهَابٍ وَلَا عَصَبٍ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ. وَيُرْوَى عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُكَيْمٍ، عَنْ أَشْيَاخٍ لَهُمْ هَذَا الحَدِيثُ، وَلَيْسَ العَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَكْثَرِ أَهْلِ العِلْمِ، وَقَدْ رُوِيَ هَذَا الحَدِيثُ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُكَيْمٍ، أَنَّهُ قَالَ: أَتَانَا كِتَابُ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَبْلَ وَفَاتِهِ بِشَهْرَيْنِ، قَالَ: وسَمِعْت أَحْمَدَ بْنَ الحَسَنِ، يَقُولُ: كَانَ أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ يَذْهَبُ إِلَى هَذَا الحَدِيثِ لِمَا ذُكِرَ فِيهِ قَبْلَ وَفَاتِهِ بِشَهْرَيْنِ، وَكَانَ يَقُولُ: كَانَ هَذَا آخِرَ أَمْرِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، ثُمَّ تَرَكَ أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ هَذَا الحَدِيثَ لَمَّا اضْطَرَبُوا فِي إِسْنَادِهِ، حَيْثُ رَوَى بَعْضُهُمْ فَقَالَ: عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُكَيْمٍ، عَنْ أَشْيَاخٍ لَهُمْ مِنْ جُهَيْنَةَ. [1]

**ترجمه** : دعبدالله بن عكيم بيان دي فرمائي چي مونږ ته درسول الله صلي الله عليه وسلم خط راغلو چي تاسو دمردار شوو څاروو دڅرمڼو او پټو او رګونو نه فائده مه اخلئ

امام ترمذي وايي : داحديث حسن دي دا حديث دعبدالله بن عكيم نه دهغه دمشانخو په واسطه هم مروي دي او داكثر اهل علمو په دي باندي عمل نشته دعبدالله بن عكيم نه دا حديث مروي دي هغوئ وائي چي مونږ ته درسول الله صلي الله عليه وسلم خط راغلو او دا خط درسول الله دوفات نه دوه مياشتي مخكي راغلي وو، ما داحمد بن حسن نه اوريدلي دي چي احمد بن حنبل همدا حديث اختيارولو ځكه چي په دي كي درسول الله دوفات نه د دوه مياشتو مخكي وخت ذكر دي امام احمد دا هم وائي چي دا د نبي كريم صلي الله عليه وسلم اخري حكم دي، خو بيا امام احمد داحديث پريخودو ځكه چي دراويانو نه ددي په سند كي اضطراب

---

[1] ــ سنن ابي داود ــ اللباس ٤٢ (٤١٢٧، ٤١٢٨). سنن النسائي ــ الفرع ٥٣ (٤٢٥٥، ٤٢٥٦). سنن ابن ماجه ــ اللباس ٢٦ (٣٦١٣).
(تحفة الأشراف: ٦٦٤٢). واحمد في المسند (٤ــ ٣١٠، ٣١١)

اوموندلي شو چنانچي بعضي راويان دا حديث دعبدالله بن عكيم نه او دهغه دجهينيه شيوخو په واسطه نقل كوي

**دپخي اوكچي څرمني حكم**

ددباغت متعلقه احكام: "إهاب" دهمزة په كسرئ سره دې،ددى جمع أهب او أُهُب راځي.صاحب د بنايه ذكر كړى دى چى د دباغت نه پس څرمن ته اديم وائى.او د دباغت نه وړاندې اهاب وائى،او لفظ د جلد دواړو ته شامل دې.

د څرمنى بدبونى اود خرابيدو لرى كولو نوم دباغت دې، امام محمد رحمه الله په كتاب الآثار كي ليكلى دى چى "أخبرنا ابوحنيفه عن حماد عن إبراهيم قال كل شئ يمنع الجلد من الفساد فهو دباغ" يعنى كوم څيز چى څرمن د خرابيدو نه بچ كوى،هغه دباغت دې.كه په نمر سره ئې اوچى كړې وى.اوكه يا ئې په خاوره كي اچولى وى، په دى وجه چى د نجس رطوبتونو لرى كولو چى كوم مقصد دې،هغه په دى طريقو باندې حاصليږى.

دا خبره ياده ساتئ چى د كوم ځناور څرمن په دباغت سره پاكيږى،د هغه څرمن په ذبحى سره هم پاكيږى.خو په دى شرط چى دا ذبح د داسى سړى په لاس وى چى هغه د ذبحى اهل وى.نودمجوسى ذبح دا نه پاكوى.

صاحب د عنايه ليكلى دى چى د څرمنى د دباغت سره درى مسئلى متعلق دى:

(١) يوخوپه خپله ددغه څرمن پاكيدل.

(٢) دويم ددى نه لباس جوړول او اغوستل اودهغى نه مصلى جوړول.

(٣) دريم دهغى نه مشكيزه جوړول اودهغى نه اودس كول"د اول تعلق د كتاب الصيد سره دې.اود دويم تعلق د كتاب الصلاة سره دې،او د دريم تعلق ددى باب سره دې.

كومه څرمن رنګ شوې وى.نوچى هغه واغوندى،په هغى كي مونځ كول جائز دى.

او داسې نه ده صحيح چى ددى نه مصلى جوړه كړې او مونځ پرى كوى. اګرچى د دواړو حكم يو شان دې.ددى وجه داده چى د جامو طهارت منصوص عليه دې.

دباغت سره دجلد دپاكيدو متعلق دري مذاهب دي:

اول: د احنافو په نزد د خنزيراوبنى آدم نه علاوه دهر څيزڅرمن په دباغت سره پاكيږى.كه هرڅنګه وى.نو د رنګ شوې څرمن نه جامى جوړول او په هغى كي مونځ كول جائز دې. .اودهغى نه په جوړه شوى مشكيزه كي اوبه اچول اودهغى نه اودس كول جائز دې.

.دويم:امام مالك رحمه الله فرمائى چى دمردارى څرمن په دباغت سره نه پاكيږى.

دريم: اوامام شافعي رحمه الله فرمائي چي د سپي څرمن په دباغت سره نه پاكيږي.په مبسوط كي ذكر دی چی دامام شافعي رحمه الله په نزد د غير ماكول اللحم څرمن هم په دباغت سره نه پاكيږي.

زمونږ دليل د رسول پاك صلي الله عليه وسلم ارشاد دی چی "كل إهاب دبغ فقد طهر" يعنی .هرهغه څرمن چی دباغت شوه،نو پاكه شوه.

دويم: دابن عباس رضي الله عنه نه روايت دی،فرمائي چی "أراد الرسول صلي الله عليه وسلم أن يتوضأ من سقاء فقيل له أنه ميتة فقال ﷺ دباغه يزيل خبثه أو نجسه . أو رجسه" يعنی ابن عباس رضي الله عنه فرمائي چی رسول پاك صلي الله عليه وسلم د يوی مشكيزی نه اودس كولو اوغوښتل،نو ورته اووئيلی شو،دا دمرداری څرمن ده.رسول پاك صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل:چی ددی دباغت ددی خبث يا ددی نجاست يا ددی ګندګی ختموی .ددی حديث نه ثابته شوه چی د مرداری څرمن په دباغت سره پاكيږي.

دريم: په صحيحينو كي د ابن عباس رضي الله عنه نه روايت دی"قال تصدق على مولاة لميمونة بشاة فماتت فمر بها رسول الله ﷺ فقال هلا أخذتم إهابها فانتفعتم بها فقالوا إنها ميتة قال ﷺ إنما حرم أكلها"

يعنی ابن عباس رضي الله عنه فرمائي چی دام المؤمنين ميمونی رضي الله عنها آزادی شوي وينزي ته يوه چيلۍ په صدقه كي وركړې شوه،نوهغه مړه شوه،نو رسول پاك صلي الله عليه وسلم دهغی په طرف تير شو،اووېي فرمائيل: تاسو ددی څرمن ولی نه دباغت كولو چی ددی نه مو فائده اخستی وه،خلقو ورته عرض وكړو،دا خو مرداره ده، رسول پاك صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل:ددی صرف خوراك حرام دی.

****************

## ٨_ باب مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ جَرِّ الإِزَارِ

### د لنګ راښكلو او دګيټو نه لاندې ساتلو د كراهت بيان

١٧٣٠_حَدَّثَنَا الأَنْصَارِيُّ، حَدَّثَنَا مَعْنٌ، حَدَّثَنَا مَالِكٌ، ح وحَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ نَافِعٍ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ دِينَارٍ، وَزَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ، كلهم يخبر، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "لَا يَنْظُرُ اللَّهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ إِلَى مَنْ جَرَّ ثَوْبَهُ خُيَلَاءَ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَفِي الْبَابِ،

عَنْ حُذَيْفَةَ، وَأَبِي سَعِيدٍ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَسَمُرَةَ، وَأَبِي ذَرٍّ، وَعَائِشَةَ، وَهُبَيْبِ بْنِ مُغَفَّلٍ. وَحَدِيثُ ابْنِ عُمَرَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (1)

**ترجمه** دابن عمر رضي الله عنهما نه روايت دی چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چاچي دكبر اولوني په وجه جامه دومره اوږده كړه چي په زمكه راښكلی شي، الله تعالي به ورته دقيامت په ورځ درحمت په نظر نه ګوري، ابوبكر عرض اوكړو يا رسول الله ! مانه لنګ خوئيږي مګر دا چي هر وخت خيال ساتم، رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل ته هغه كسانو كې نه يې چي دلويی دپاره يی اوږد وي

امام ترمذي وايي : دابن عمر حديث حسن صحيح دي، او په دي باب كي دحذيفه، ابوسعيد خدري، ابوهريره، سمره، ابوذر او عائشه او هبيب بن مغفل رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي.

**لغات** : الخيلاء: والخيلة تكبر كول، تخايل تخايلا واختال اختيالا تكبر كول اوغرور او مستي كول.

**تشريح**: د پرتوګ يا لنګ په خپو كې راښكلو او د ګيټو نه اوږدولو باره كي دممانعت احاديث حد د تواتر ته رسيدلي دي ، چي دلته يي دمسئلي داهميت په وجه په تفصيل سره په لاندينو كرښو كي نقل كوو:

مطلب دادی چي قميص يالنګ ياپرتوګ بغير ارادي نه دګيټو نه اوږدول شرعا نقصان نه لري اوخاص كر دهغه سړي دپاره څوك چي دغرور اوتكبر نه لري وي، ليكن په دي صورت كې هم دمتكبرينو سره تشابه پكار نه ده.

## دتكبر په وجه پرتوګ راځكونكي ته الله په قيامت كې درحمت په نظر نه ګوري

عن أَبِي هريرة ﷺ: أَنَّ رسول الله ﷺ، قَالَ: ((لا يَنْظُرُ اللهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ إِلَى مَنْ جَرَّ إِزارهُ بَطَراً))

ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دی چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چاچي جامه دكبر اولوني دپاره اوږده كړه چي په زمكه راښكلی شي دقيامت په ورځ به ورته الله تعالي درحمت په نظر اونه ګوري.

---

1 _ اخرجه البخاري في الصحيح_ فضائل الصحابة ٥ (٣٦٦٥) . واللباس ١ (٥٧٨٣) . و ٢ (٥٧٨٤) . و ٥ (٥٧٩١) . صحيح مسلم_ اللباس ٩ (٢٠٨٥) . سنن ابي داود_ اللباس ٢٨ (٤٠٨٥) . سنن النسائي_ الزينة ٦٦ (٥٣٣٤) . سنن ابن ماجه_ اللباس ٦ (٣٥٦٩) . و ٩ (٣٥٧٦) . (تحفة الأشراف: ٦٧٢٦ و ٧٢٢٤ و ٨٣٥٨) . والمؤطاء اللباس ٥ (٩) و احمد في المسند (٢_ ٥. ١٠. ٣٢. ٣٣. ٤٤. ٤٦. ٥٥. ٥٦. ٦٠. ٦٥. ٦٧. ٦٩. ٧٤. ٧٦. ٨١).

اخرجه البخاري اللباس باب من كتاب جر ثوبه من غير خيلاء ومسلم كتاب اللباس تحريم جرب الثوب خيلاء واحمد.

بطرا حيرانيدل دسمع نه ، الحق دتكبر په وجه دحق قبلولو نه انكار كول الشي. بعني بوشي نه خوښول اوحال داوي چي دغه شي دناخوښۍ قابل نه وي ، صفت يي بطر راخي

بطر معني دالله دنعمتونو نه انكار كول اوشكر نه اداكول دي دكوم لازمي نتيجه چي تكبر دى اوددي علامه په لباس كې داده چي انسان دي جامي په خان پسي نه راكاږي ددېنه معلومه شوه چي دغرور او تكبر په وجه جامي اوپينسي رابنكل حرام دي او كه تكبر نه وي نو بيامكروه تنزيهي دي

## كومه حصه چي دګيټو نه لاندې وي هغه به په اور سوزولي شي

عنه . عن النبيِّ ﷺ . قَالَ : ((مَا أَسْفَلَ مِنَ الكَعْبَيْنِ مِنَ الإِزَارِ فَفِي النَّارِ))

دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دى چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دلنګ ياپرتوګ څومره حصه چي دخپو دګيټو نه ښكته وه هغه په دوزخ كې ده ،يعني دبدن هغه حصه به په اور سوزي څومره چي دګيټو نه ښكته په جامه پټه وي.

أخرجه : البخاري اللباس باب من كتاب جر ثوبه من غير خيلاء ومسلم كتاب اللباس تحريم جرب الثوب خيلاء .

اسفل لاندي جمع يي اسافل اوسفل دنصر او سمع نه اوسفولا دكرم نه په معني د لاندي كيدو او حقير كيدو او صفت يي سافل راخي

په عربو كې داوږدو لمنو دومره رواج وو چي په روانه به يي په خان پسي رابنكلي او يو قسم عزت به ګنڼلی شو څوك چي به څومره لوي سردار وو نو دومره به يي لمن اوږده وه تردي چي په دي باندي وعيد راغی چي دګيټو نه ښكته حصه به په جهنم سوزولی شي

د پورتني حديث نه معلومه شوه چي دګيټو نه لاندي زنګيدونكي كپړي به په جهنم كې وي ليكن دا خبره دي واضح وي چي كله كپړي جهنم ته لاړي نو كپړو والا خو به په طريقه اولي جهنم ته خي همدا سوال چي كله دنافع نه اوشو نو هغه په جواب كې اووئيل دكپړو څه ګناه ده ګنهګار خو دانسان خپي دي كومي چي داور خشاك ګرځيدلي دي.

## دقيامت په ورځ به الله ددرې كسانو سره خبرې ونكړي

عن أَبي ذر ﷺ . عن النبيِّ ﷺ . قَالَ : ((ثَلاثَةٌ لا يُكَلِّمُهُمُ اللهُ يَوْمَ القِيَامَةِ . وَلاَ يَنْظُرُ إِلَيْهِمْ . وَلاَ يُزَكِّيهِمْ . وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ)) قَالَ : فقرأها رسول الله ﷺ ثلاث مِرار . قَالَ أَبُو ذرٍ : خَابُوا وَخَسِرُوا ا مَنْ هُمْ يَا رسول الله ؟ قَالَ : ((المُسْبِلُ . وَالمنَّانُ . وَالمُنْفِقُ سِلْعَتَهُ بِالحَلِفِ الكَاذِبِ))

دابوذر رضي الله عنه نه روايت دى چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي درې کسان دي چي الله تعالي به ورسره دقيامت په ورځ خبري نه کوي ، نه به ورته درحمت په نظر ګوري نه به ورته ګناهونه معاف کوي اودوئ دپاره دردناك عذاب دى ابوذر رضي الله عنه وائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم دا جملي دري خله بيا بيا اوفرمائيلي ابوذر رضي الله عنه اوونيل تباه شو او برباد شو داځوك دي؟ رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل دلوئي په خيال جامه لوړدونکی ، احسان ازبادونکی اوپه دروغو قسمونو خپل مال خرڅونکی

أخرجه : مسلم ٧١/١ ( ١٠٦ ) ( ١٧١ ) كتاب الايمان باب بيان غلظ تحريم اسبال الإزار والمن بالعطيه وتنفيق السلعه بالحلف. واحمد وابوداود والترمذي والنسائي وابن حبان والدارمي

المسبل پرده زوړندونکي اسبل الستر پرده زوړندول ، المنان: احسان ضباتونکي

علماء وائي چي دا دري واړه کارونه حرام دي او يو په دي کې دادى چې ځوك لنګ دګيټو نه اوږدساتي ددي روايت نه علاوه په نورو ډيرو روايتونو کې هم سخت وعيد راغلى دى. په يو بل روايت کې دي چي دشعبان په پنځلسمه شپه ټولو مسلمانانو ته مغفرت کيږي ليکن علاوه دهغه خلقو نه ځوك چي لنګ ياپرتوګ دګيټو نه اوږدساتي.

## اسبال حرام دي

عن ابن عمر رضي الله عنهما ، عن النبيِّ ﷺ ، قَالَ : ((الإِسْبَالُ فِي الإزار ، وَالقَمِيصِ ، وَالعِمَامةِ ، مَنْ جَرَّ شَيْئاً خُيَلاءَ لَمْ يَنْظُرِ اللهُ إِلَيْهِ يَوْمَ القِيَامَةِ))

ابن عمر رضي الله عنه روايت کوي، چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي اسبال ،يعني دحد نه زيات اوږدوالی ، په لنګ کې دى په قميص کنبى دى په پټکی کنبى دى . چاچي په دی کې يوه جامه هم دکبر لوئي په خيال دحدنه زياته اوږده کړه الله تعالي به ورته دقيامت په ورځ درحمت په نظر نه ګوري، امام ابو داود او امام نسائي په صحيح سند روايت کړی دی

"الاسبال" يعني جامي دشرعي مقدار نه زياتي اوږدول په دي کې پټکی هم شامل دی چي دسنت مقدار نه زياتول يي نه دي پکار او همدا رنګي لنګ او پرتوګ او قميص هم په دي کې شامل دي چي دګيټو نه يي اوږدول نه دي پکار.

## پرتوګ دنيمي پنډۍ پوري ساتل مستحب دي

عن أَبي جُرَيٍّ جابر بن سُلَيم ﷺ ، قَالَ : رَأَيْتُ رَجُلاً يَصْدُرُ النَّاسُ عَنْ رَأْيِهِ ، لا يَقُولُ شَيْئاً إلاَّ صَدَرُوا عَنْهُ ، قُلْتُ : مَنْ هَذَا ؟ قالوا : رسولُ الله ﷺ . قُلْتُ : عَلَيْكَ السَّلامُ يَا رسول الله – مرّتين – قَالَ : ((لاَ تَقُلْ : عَلَيْكَ السَّلامُ ، عَلَيْكَ السَّلامُ تَحِيَّةُ المَوْتَى ، قُلْ : السَّلامُ عَلَيْكَ)) قَالَ : قُلْتُ :

أَنتَ رسول اللهِ ؟ قَالَ : ((أَنَا رسول الله الَّذِي إِذَا أَصَابَكَ ضُرٌّ فَدَعَوْتَهُ كَشَفَه عَنْكَ . وَإِذَا أَصَابَكَ عَامُ سَنَةٍ فَدَعَوْتَهُ أَنْبَتَهَا لَكَ . وَإِذَا كُنتَ بِأَرْضٍ قَفْرٍ أَوْ فَلاَةٍ فَضَلَّتْ رَاحِلَتُكَ . فَدَعَوْتَهُ رَدَّهَا عَلَيْكَ )) قَالَ قُلْتُ : اعْهَدْ إِلَيَّ . قَالَ : ((لاَ تَسُبَّنَّ أَحداً)) قَالَ : فَمَا سَبَبْتُ بَعْدَهُ حُراً . وَلاَ عَبْداً . وَلاَ بَعِيراً . وَلاَ شَاةً . ((ولاَ تَحْقِرَنَّ مِنَ المَعْرُوفِ شَيْئاً . وأَنْ تُكَلِّمَ أَخَاكَ وَأَنْتَ مُنْبَسِطٌ إِلَيْهِ وَجْهُكَ . إِنَّ ذَلِكَ مِنَ المَعْرُوفِ . وَارْفَعْ إِزَارَكَ إِلَى نِصْفِ السَّاقِ . فَإِنْ أَبَيْتَ فَإِلَى الكَعْبَيْنِ . وَإِيَّاكَ وَإِسْبَالَ الإِزَارِ فَإِنَّهَا مِنَ المخِيلَةِ . وَإِنَّ اللهَ لاَ يُحِبُّ المَخِيلَةَ ؛ وَإِن امْرُؤٌ شَتَمَكَ وعَيَّرَكَ بِمَا يَعْلَمُ فِيكَ فَلاَ تُعَيِّرْهُ بِمَا تَعْلَمُ فِيهِ . فَإِنَّمَا وَبَالُ ذَلِكَ عَلَيْهِ)) رواه أَبُو داود والترمذي بإسناد صحيح . وقال الترمذي : ((حديث حسن صحيح)) .

ابو جري جابر بن سليم رضي الله عنه نه روايت دی چي ما یوسړی اولیدو چي خلقو یی ډیره تابعداري کوله هغه به خبره کړی نه وه چي خلقو به هغه کار کړی وو ماتپوس اوکړو دا څوك دی ؟ (چي خلق یی داسي تابعداري کوي) خلقو راته اوونیل دا دالله رسول دی صلي الله علیه وسلم ما اوونیل علیك السلام یا رسول الله، رسول الله صلي الله علیه وسلم اوفرمائیل علیك السلام مه وایه دا دمړو سلام دی السلام علیکم وایه، ما عرض اوکړو ته دالله رسول یی ؟ رسول الله صلي الله علیه وسلم وفرمایل زه دهغه الله رسول یم چي کله تاته څه تکلیف پیښ شي ته ورته سوال اوکړي نو هغه درنه تکلیف لري کوي اوچي دربانديي قحطي کال راشي ته ورته سوال اوکړی فصلونه درته اوتوکوي ، او کله چي ته چرته صحرا او ځنګل کې یی او دسورلۍ خاروی درنه ورك شي، الله ته سوال اوکړی هغه یی درته راپیدا کړي، جابر رضي الله عنه وائي ما عرض اوکړو څه نصیحت راته اوکړئ رسول الله صلي الله علیه وسلم اوفرمائیل چاته کنځل مه کوه، جابر رضي الله عنه وائي دی نه پس ما چرته انسان یا څاروي ته کنځلی نه دي کړي، هیڅ یو ښه کار (نیکي) سپکه مه ګڼره او چي بل مسلمان ورور سره خبری کوی نو په روڼ تندي یی کوه، دا هم نیکي ده او خپل لنګ تر نیمی پنډۍ اوچت ساته او که داسی نشی کولی نو دګیټو نه اوچت یی ضرور ساته ځکه چي دی نه زیات اوږدول یی دتکبر په وجه کیږي او الله تعالي تکبر نه خوښوي او که تاته چا کنځلی اوکړل یایی دداسی خبری پیغور درکړو کوم عیب چي پتاکې هغه ته معلوم وي ، نو ته داسي پیغور مه کوه دهغه کوم عیب چي تاته معلوم وي ځکه چي ددی ګناه دهغه په غاړه شوه (ددی سزا به الله تعالي ورکوي، نو تاته یی دجواب ضرورت پاتی نه شو)

يصدر: صدر صدورا ومصدرا واپس کیدل او متوجه کیدل . صدر دسیني پورتنۍ حصي ته هم وئیلي شي ، عام سنة: یعني دقحط سالۍ کال.

"قلت عليك السلام" يعني ما اوونيل چي عليك السلام رسول الله اوفرمائيل چي دا خو دمړو سلام دی اودجاهليت دزماني سلام دی يعني خلقو به دجاهليت په زمانه کښ مړو ته سلام کولو ورنه به داسلام په زمانه کښ خو به دمړو او ژوندو ټولو دپاره "السلام عليکم" لفظ دی قبرستان ته دتلو په وخت کښ دا دعا منقول ده "السلام عليکم ياأهل القبور" الخ.

ارفع ازارك الي نصف الساق: يعني خپل پرتوګ به دنيمي پنډۍ پوري ساتۍ ددينه به نه زياتوۍ په پورتني حديث کښ دپنډۍ پوري حد خودلی شوی دی او دا افضل دی او په دي کښ تواضع هم زياته ده دګيټو پوري اجازت شته خو ګيټۍ به بربنډي وي علامه زرقاني وائي چي مشروع مقدار دګيټو نه بره دپنډۍ د دريمي حصي پوري دی او نيمي پنډۍ پوري سنت دی او ګيټو پوري اوږدول جائز دي.

وان امرئ شتمك وعيرك بمالم يعلم فيك. يعني که څوك درته کنځل اوکړي يادرته دداسي خبري پيغور درکړي کومه چي په تا کښ موجود وي او دا هغه ته معلومه وي نو ته به هغه ته هغه پيغور نه ورکی کوم چي په هغه کښ موجود دی ، ددينه معلومه شوه چي چالره پخپله غلطۍ او کوتاهۍ مه شرموۍ يعني عيب يي دخلقو په وړاندي مه ظاهروۍ البته په تنهائي کښ يي پوهه کړۍ او داصلاح کوشش يي اوکړۍ.

### ابو جري جابر بن سليم رضي الله عنه حالات

نوم جابر دپلار نوم سليم دبعضو په نزد دده نوم سليم دی او دپلار نوم يي جابر دی ليکن ابن الاسير وائي صحيح داده چي دده نوم جابر دی او دپلار نوم يي سليم دی کنيه يي ابو جري ده او دبني تميم قبيلي سره تعلق لري دخپل اسلام راوړو واقعه يي پخپله په پورتني حديث کښ بيان کړي ده يو څو احاديث ورنه مروي دي خو متفق عليه پکښ نشته ابو داود ترمذي او اصحاب سنن نقل کړي دي.

عن أبي هريرة ﷺ. قَالَ: بينما رَجُلٌ يُصَلِّي مسبلٌ إِزَارَهُ. قَالَ لَهُ رسول الله ﷺ: ((اذْهَبْ فَتَوَضَّأْ)) فَذَهَبَ فَتَوَضَّأَ. ثُمَّ جَاءَ. فَقَالَ: ((اذْهَبْ فَتَوَضَّأْ)) فَقَالَ لَهُ رَجُلٌ: يَا رسولَ اللهِ. مَا لَكَ أَمَرْتَهُ أَنْ يَتَوَضَّأَ ثُمَّ سَكَتَّ عَنْهُ ؟ قَالَ: ((إِنَّهُ كَانَ يُصَلِّي وَهُوَ مُسْبِلٌ إِزَارَهُ. وَإِنَّ اللهَ لاَ يَقْبَلُ صَلاَةَ رَجُلٍ مُسْبِلٍ)) رواه أَبُو داود بإسناد صحيح عَلَى شرط مسلم.

ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دی چي يوه ورځ يو سړي مونځ کولو او لنګ يي دګيټو نه ښکته وو رسول الله صلي الله عليه وسلم ورته اوفرمائيل لاړ شه اودس اوکړه هغه لاړو اودس يي اوکړو بيا راغلو رسول الله صلي الله عليه وسلم ورته بيا اوفرمائيل لاړ شه اودس اوکړه، نو يو سړي عرض اوکړو يا رسول الله څه چل دی چي دي سړي ته مو د اودس کولو حکم اوکړو.

بياغلي شوئ نور څه مو ورته ونه وئيل (يعني په دي مو پوهه نه کړو چي ولی مو دوه خله د اودس کولو حکم وړکړو) رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل هغه مونځ کولو. اولنګ يی دګيتو نه ښکته وو او الله تعالي دداسي سړي مونځ نه قبلوي

ددي روايت نه بعضو علماؤ استدلال کړی دی چي په لنګ او قميص او پړتوګ اوږدساتلو سره اودس ماتيږي مګر جمهورو علماؤ په مجاز او زجر حمل کړی دی او بعضي علماؤ ددي حديث په سند کلام کړی دی چي ددي په سند کي ابوجعفر مدني راوي دی او هغه مجهول دی

بهرحال دپړتوګ اودګدولو وعيدونه په احاديثو کي سخت راغلي دي په يوبل روايت کي راغلي دي چي دجنت خوشبو به د زرو کلونو دمسافي نه راشي خو دپړتوګ راخکونکي به محروم شي.

## پړتوګ دګيتو نه تيرول دالله دغصي سبب دي

عن أَبِي سعيد الخدريِّ ﷺ، قَالَ: قَالَ رسولُ الله ﷺ: ((إِزْرَةُ الْمُسْلِمِ إِلَى نِصْفِ السَّاقِ، وَلاَ حَرَجَ – أَوْ لاَ جُنَاحَ – فِيمَا بَيْنَهُ وَبَيْنَ الكَعْبَيْنِ، فَمَا كَانَ أَسْفَلَ مِنَ الكَعْبَيْنِ فَهُوَ فِي النَّارِ، وَمَنْ جَرَّ إِزَارَهُ بَطَراً لَمْ يَنْظُرِ اللهُ إِلَيْهِ))

دابوسعيد خدري رضي الله عنه نه روايت دی چي رسول الله صلي الله عليه وسل فرمائيلي دي دمسلمان لنګ ترنيمو ګيتو پکار دی ليکن که دګيتو او نيمو پنډو ترمينځه وي نو خيردی څه حرج او څه ګناه يی نشته خو څومره چي ګيتو نه ښکته وي هغه په اور کي دی اوچاچي دکبر په وجه لنګ دګيتو نه ښکته کړو (چي په زمکه راښکلی شي) نو دقيامت په ورځ به ورته الله تعالي درحمت په نظر نه ګوري، امام ابو داود په صحيح سند روايت کړی دی

حرج ګناه، تنګي، قصور، اعتراض لاحرج عليك حرج دسمع نه حرجا الشيء تنګ کيدل. الرجل ګناه ګار کيدل، عليه الشيء حراميدل. اليه پناه اخستل

په پورتني حديث کي هم دلنګ اوپړتوګ په ګيتو باندي په وراړولو وعيد راغلی دی ددي باره کي په احاديثو کي سخت سخت وعيدونه راغلي دي په يو بل روايت کي راځي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم دسفيان بن ابي سهل ملاونيوله او ويی فرمائيل ای سفيان لنګ دي مه زوړندوه الله تعالي داکار نه خوښوي

ولاحرج اولاجناح. دراوي شک دی چي رسول الله په دي دوه الفاظو کي کوم يو وئيلی دی مګر په نورو روايتونو کي بغير دشک نه لاجناح لفظ راغلی دی

عن ابن عمر رضي الله عنهما . قَالَ : مررتُ عَلَى رسولِ الله ﷺ وفي إِزَارِي استرخاءٌ . فَقَالَ : ((يَا عَبدَ اللهِ . ارْفَعْ إِزَارَكَ)) فَرَفَعْتُهُ ثُمَّ قَالَ : ((زِدْ)) فَزِدْتُ . فَمَا زِلْتُ أَتَحَرَّاهَا بَعْدُ . فَقَالَ بَعْضُ القَوْمِ : إِلَى أَينَ ؟ فَقَالَ : إِلَى أَنْصَافِ السَّاقَيْنِ

دابن عمر رضي الله عنهما نه روايت دى چي يوه ورځ د رسول الله صلي الله عليه وسلم په خوا کې تيريدم او لنګ مي لږ ښکته وو رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل . اى عبدالله لنګ دى اوچت کړه مالږ اوچت کړو نو راته يى اوفرمائيل نوريى اوچت کړه نو ما نور اوچت کړو دى نه پس يى هميشه خيال ساتم چا تپوس اوکړو څومره اوچتول يي پکار دي؟ ابن عمر رضي الله عنه اوفرمائيل ترنيمو پنډو.

استرخاء: سستيدل، زوړنديدل ، اتحري: تحري قابل استعمال څيز طلب کول يا په دوه څيزونو کې اولي لره طلب کول.

په پورتني حديث کې رسول الله صلي الله عليه وسلم عبدالله بن عمر رضي الله عنهما ته دنيمي پنډئ پوري دلنګ زوړندولو حکم کړى دى هم دده نه روايت دىچي رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل لنګ به داسي ترئ لکه څنګ چي يي فرشتي تري تپوس اوکړى شو چي فرشتي يي څنګه تري نوويى فرمائيل چي دنيمي پنډئ پوري همدا رنګي دسلمه بن اکوع رضي الله عنه بيان دى چي عثمان رضي الله عنه به خپل لنګ دنيمي پنډئ پوري ساتلو او فرمائيل به يي چي همدا شکل د رسول الله صلي الله عليه وسلم دلنګ وو.

دعبدالرحمان په باره کې منقول دي چي دابوسعيد خدري رضي الله عنه نه يي تپوس اوکړو چي ايا دلنګ په باره کې دي درسول الله نه څه اوريدلي دي نو ورته يي اوفرمائيل چي دمومن لنګ دنيمي پنډئ پوري پکار دى.

****************

## ٩_ بَابُ مَا جَاءَ فِي جَرِّ ذُيُولِ النِّسَاءِ

### دښځو دلمن راښکلو (اوږدي ساتلو) بيان

١٧٣١_ حَدَّثَنَا الحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ الخَلَّالُ. حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ. أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ. عَنْ أَيُّوبَ. عَنْ نَافِعٍ. عَنِ ابْنِ عُمَرَ. قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ جَرَّ ثَوْبَهُ خُيَلَاءَ. لَمْ يَنْظُرِ اللهُ إِلَيْهِ

يَوْمَ الْقِيَامَةِ". فَقَالَتْ أُمُّ سَلَمَةَ: فَكَيْفَ يَصْنَعْنَ النِّسَاءُ بِذُيُولِهِنَّ؟ قَالَ: "يُرْخِينَ شِبْرًا". فَقَالَتْ: إِذًا تَنْكَشِفُ أَقْدَامُهُنَّ. قَالَ: "فَيُرْخِينَهُ ذِرَاعًا لَا يَزِدْنَ عَلَيْهِ". قَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.[1]

**ترجمه** : دابن عمر رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چاچي دکبر په وجه جامه اوږده کړه دقيامت په ورځ به ورته الله تعالي درحمت په نظر نه گوري ابن سلمه رضي الله عنه عرض اوکړو ښځي به دخپلو لمنو سره څه کوي؟ رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل يولويشت دی يی دسرو دحد نيمی پنډۍ نه ښکته کړي هغې عرض اوکړو بياخو به يی دښپو پنجی ښکاري، رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل نو يو ذراع دی ښکته کړي (يعني ښځو ته لمن دومره ښکته جائز دي چې دښپی پنجه پټه شي)

امام ترمذي وايي : ددي حديث نه دښځو دپاره دا جواز مستفاد کيږي چې دوئ پرتوگ يا لنگ دگيټو نه لاتدي ساتلي شي ځکه چې په دي کي ددوئ دپاره ستر دي يعني په حديث کي اگر چې د قميص اوږد جوړولو جواز موجود دي مگر ددينه دلنگ او پرتوگ اوږد ساتلو هم جواز معلوميږي.

**لغات** : بذيولهن: ذيول جمع دذيل ده ، يا دکوم څيز اخري حصه جمع يي اذيال هم راځي ، ذال ذيلا د ضرب نه په معني د اوږديدو دکپړي دي ، الجارية : جينۍ ، ذيل الفرس داس لکۍ ته ونيلي شي.

**تشريح**: دلنگ په باره کې چې کوم احکام ذکر شول دا صرف دسړو دپاره دي ښځي په دي کي شامل نه دي بلکه ښځو ته خو دگيټو پټولو حکم شوی دی لکه چې دپورتني حديث نه معلوميږي کله چې ام سلمه رضي الله عنها دلنگ زوړندولو وعيدونه واوريدل نو درسول الله نه يي تپوس اوکړو چې ښځي به څه کوي ايا دوئ به هم خپلي گيټې ښکاره ساتي نو رسول الله اوفرمائيل چې ښځي خو به يي پټوي ترديي پوري چې ديولاس برابر کپړه په ځان پوري زوړنده کړي تردي چې خپې يي بالکل ښکاره نشي په دي باره کې قاضي عياض اجماع نقل کړي ده چې دټولو په دي اتفاق دی.

دابن حجر قول دي چې دښځو دپاره دسړو په نسبت يوه لويشت زياته کپړه زوړندول مستحب دي علماء وايي که دښځو خپې په څادر يا په بل شان سره نه پټيږي لو موزي دي استعمالوي ددي دپاره چې پورتنۍ حصه او رنگ يې ښه پټ شي.

****************

[1] _ تفرد بذكره المؤلف وانظر ما قبله (تحفة الأشراف : ٥٢٦٥)

١٧٣٢_ حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ مَنْصُورٍ، أَخْبَرَنَا عَفَّانُ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ زَيْدٍ، عَنْ أُمِّ الْحَسَنِ، أَنَّ أُمَّ سَلَمَةَ حَدَّثَتْهُمْ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "شَبَّرَ لِفَاطِمَةَ شِبْرًا مِنْ نِطَاقِهَا". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَرَوَى بَعْضُهُمْ، عَنْ حَمَّادِ بْنِ سَلَمَةَ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ زَيْدٍ، عَنِ الْحَسَنِ، عَنْ أُمِّهِ، عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ. وَفِي هَذَا الْحَدِيثِ رُخْصَةٌ لِلنِّسَاءِ فِي جَرِّ الْإِزَارِ، لِأَنَّهُ يَكُونُ أَسْتَرَ لَهُنَّ. (١)

**ترجمه** دام سلمه رضي الله عنها نه مروي دي فرمائي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فاطمه رضي الله عنها ته يوي وليشتي په مقدار(دګيتو نه لاندي) د لنګ يا پرتوګ ساتلو اجازت ورکړي دي

امام ترمذي وايي : بعضي راويانو دا حديث دحماد بن سلمه نه عن علي بن زيد عن الحسن عن امه عن ام سلمة سند سره نقل کړي دي، او په دي حديث کي دښځو دپاره دلنګ يا پرتوګ اوږد جوړولو جواز موجود دي ځکه چي په دي کي ددوئ دپاره زيات ستر او پرده پوشي ده

****************

## ١٠_ باب مَا جَاءَ فِي لُبْسِ الصُّوفِ

### وړين لباس اغوستل

١٧٣٣_ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا أَيُّوبُ، عَنْ حُمَيْدِ بْنِ هِلَالٍ، عَنْ أَبِي بُرْدَةَ، قَالَ: "أَخْرَجَتْ إِلَيْنَا عَائِشَةُ كِسَاءً مُلَبَّدًا وَإِزَارًا غَلِيظًا، فَقَالَتْ: قُبِضَ رُوحُ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي هَذَيْنِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَفِي الْبَابِ، عَنْ عَلِيٍّ، وَابْنِ مَسْعُودٍ، وَحَدِيثُ عَائِشَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (٢)

**ترجمه** دابوذر رضي الله عنه بيان دي فرمائي چي عائشه رضي الله عنها زمونږ په مخامخ دوړي يو څادر او دبل لنګ راوويستلو او وئيل يي رسول الله صلي الله عليه وسلم په همدي دوه جامو کي وفات شوي دي

امام ترمذي وايي دعائشه دا حديث حسن صحيح دي، په دي باب کي دعلي او ابن مسعود رضي الله عنهما نه هم روايات وارد دي

---

1 _ تفرد به المؤلف. وانظر سنن ابي داود_ اللباس ٣٠ (٤١١٨، ٤١١٧)، و ق_ اللباس ١٣ (٣٥٠٨)

2 _ اخرجه البخاري في الصحيح_ الخمس ٥ (٣١٠٨)، واللباس ١٩ (٥٨١٨) صحيح مسلم_ اللباس ٦ (٢٠٨٠)، سنن ابي داود_ اللباس ٨ (٤٠٣٦)، سنن ابن ماجه_ اللباس ١ (٣٥٥١)، (تحفة الأشراف: ١٧٦٩٣)، واحمد في المسند (٦/ ٣٢، ١٣١)

**لغات** : کساء جامې، کمبل وغیره، جمع یې اکسیة راځي کسي یکسي دضرب نه کساء په معنی دشریف کیدو دي، تکسي تکسیا بالکساء معنی اغوستل

**تشریح** : "کساء وازارا غلیظا" یعني پورتنی څادر او لاندینی پیړ څادر یې اوخودلو ددینه معلومیږي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم صرف په خوراك څښاك کې سادګي خوښلې نه ده بلکه دژوند په تمامو حالاتو کې یې سادګي اختیار کړې ده

علامه قطب الدین لیکلي دي چې رسول الله پخپل حق کې دا دعا غوښتلې ده "اللهم احیني مسکینا وامتني مسکینا".

یعني اې الله ما مسکین ژوندي کړې اود مسکینۍ په حالت کې مرګ راکړې . ددې دا اثر وو چې رسول الله ددنیا نه رخصت شو نو په غاړه یې صرف دوه معمولي کپړې وې

یارب صل وسلم دائما ابدا ‏ ‏ علی حبیبك خیر القلم كلهم

**د ابوبرده بن ابي موسی اشعري رضي الله عنه حالات**

نوم عامر کنیه ابوبرده عامر دمشهور صحابي ابوموسی اشعري خوي دی چې زیات علم یې دعبدالله بن سلام نه حاصل کړی دی او دده سره سره یې دخپل پلار نه هم حاصل کړی دی په دې باره کې حافظ ذهبي داسې لیکلي دي ابو برده بن ابي موسی اشعري الفقیه احد الائمه الاثبات (تذکرة الحفاظ).

امام نووي په تهذیب الاسماء کې لیکلي دي چې دده په توثیق دټولو اهل علمو اتفاق دی

علامه ابن سعد وائي کان ثقة کثیرالحدیث یعني ابو برده یو داسې ثقه راوي دی چې په کثرت سره احادیث بیانوي، قاضي شریح نه پس دکوفې قاضي پاتې شوی دی او بیا دده دوفات نه پس دده خوي قاضي مقرر کړی شو ۱۰۴ هجري کې وفات شوی دی (شذرات الذهب).

***************

۱۷۳٤_حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ. حَدَّثَنَا خَلَفُ بْنُ خَلِيفَةَ. عَنْ حُمَيْدٍ الأَعْرَجِ. عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الْحَارِثِ. عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ. عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "كَانَ عَلَى مُوسَى يَوْمَ كَلَّمَهُ رَبُّهُ كِسَاءُ صُوفٍ. وَجُبَّةُ صُوفٍ. وَكُمَّةُ صُوفٍ. وَسَرَاوِيلُ صُوفٍ. وَكَانَتْ نَعْلاَهُ مِنْ جِلْدِ حِمَارٍ مَيِّتٍ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ لاَ نَعْرِفُهُ إِلاَّ مِنْ حَدِيثِ حُمَيْدٍ الأَعْرَجِ. وَحُمَيْدٌ هُوَ ابْنُ عَلِيٍّ الْكُوفِيُّ.

قَالَ: سَمِعْت مُحَمَّدًا، يَقُولُ: حُمَيْدُ بْنُ عَلِيٍّ الأَعْرَجُ مُنْكَرُ الحَدِيثِ، وَحُمَيْدُ بْنُ قَيْسٍ الأَعْرَجُ المَكِّيُّ صَاحِبُ مُجَاهِدٍ ثِقَةٌ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَالكُمَّةُ: القَلَنْسُوَةُ الصَّغِيرَةُ. (1)

**ترجمه** دعبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي په کومه ورځ چي موسي عليه السلام دخپل رب سره خبري اوکړي نو په دغه ورځ دموسي عليه السلام په جسم دوړئ يو څادر او دوړئ چغه او دوړئ ټوپئ يي په سروه او دوړئ پرتوګ يي اغوستلي وو او دده پيزار دمړ خر دچمړي نه جوړ شوي وو

امام ترمذي وايي داحديث غريب دي دا مونږ ته صرف دحميد اعرج په سند رارسيدلي دي او دحميد نه مراد حميد بن علي کوفي دي ما دامام بخاري نه اوريدلي دي چي حميد بن علي اعرج منکرالحديث دي او حميد بن قيس اعرج مکي څوک چي دمجاهد شاګرد دي ثقه دي. او "کمه" دوړئ ټوپئ ته وئيلي شي.

***************

## ١١ـ باب مَا جَاءَ فِي العِمَامَةِ السَّوْدَاءِ

## دتورپټکي ترلوبيان

١٧٣٥ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ، عَنْ حَمَّادِ بْنِ سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ، قَالَ: "دَخَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَكَّةَ يَوْمَ الفَتْحِ وَعَلَيْهِ عِمَامَةٌ سَوْدَاءُ".

قَالَ: وَفِي البَابِ، عَنْ عَلِيٍّ، وَعُمَرَ، وَابْنِ حُرَيْثٍ، وَابْنِ عَبَّاسٍ، وَرُكَانَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ جَابِرٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (2)

**ترجمه** دجابر رضي الله عنه بيان دي چي نبي کريم صلي الله عليه وسلم دفتح مکه په ورځ مکي ته په داسي حال کي داخل شو چي په سر يي تور پټکي ترلي وو

امام ترمذي وايي: په دي باب کي دعلي، عمر، ابن حريث، ابن عباس، او رکانه رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي او دجابر حديث حسن صحيح دي.

**لغات:** سوداء توره، العمامة السوداء يعني تور پټکي، سوداء او سويداء داطباؤ په نزد دبو

---

1 ـ تفرد بذكره المؤلف (تحفة الأشراف: ٩٣٢٨)

2 ـ صحيح مسلم ـ الحج ٨٤ (١٣٥٨). سنن ابي داود ـ اللباس ٢٤ (٤٠٧٦). سنن النسائي ـ الحج ١٠٧ (٢٨٦٢). والزينة ١٠٩ (٥٣٤٦). سنن ابن ماجه ـ الجهاد ٢٢ (٢٨٢٢). واللباس ١٤ (٣٥٨٥). (تحفة الأشراف: ٢٦٨٩). و احمد في المسند (٣-

خلط نوم دي، ماليخوليا بيماري ، يادزړه توره نقطه

**تشريح** : دعمامي درنګ باره کې شريعت کوم قيد نه دی لګولی چې هر رنګ والاوي باك نشته ممانعت به په هغه وخت کې وي کله چې يو مخصوص رنګ سنت اوګنړلی شي او ددي تارك ملامت اوګنړلی شي همدارنګي دجابر رضي الله عنه په روايت کې دي چې رسول الله به داخترونو په ورځ تور پټکی استعمالولو چې شمله به يې په شا اچولي وه او همدارنګي تور پټکی دصحابه کرامو نه هم ثابت دی علي رضي الله عنه هم دخيبر په جنګ کې تور پټکی تړلی وو اوشمله يې شاته ياپه ګس طرف زوړنده کړي وه يوځل حسن بن علي رضي الله عنه خطبه ورکوله او تور پټکی يې تړلی وو راوي وائي چې ما عبدالله بن زبير اوليدو چې تور پټکی يې تړلی وو همدارنګي دعمار بن ياسر، ابوالدرداء، عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنهم او سعيد بن المسيب او حسن بصري او ابو عبيده او اسود وغيره نه دتور پټکي تړل ثابت دي.

*****************

## ١٢ـ باب فِي سَدْلِ الْعِمَامَةِ بَيْنَ الْكَتِفَيْنِ

### د دواړو اوږو مينځ کې دپټکي زوړند ساتلو بيان

١٧٣٦ـ حَدَّثَنَا هَارُونُ بْنُ إِسْحَاقَ الْهَمْدَانِيُّ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ مُحَمَّدٍ الْمَدَنِيُّ، عَنْ عَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ مُحَمَّدٍ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: "كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا اعْتَمَّ سَدَلَ عِمَامَتَهُ بَيْنَ كَتِفَيْهِ". قَالَ نَافِعٌ: وَكَانَ ابْنُ عُمَرَ يَسْدِلُ عِمَامَتَهُ بَيْنَ كَتِفَيْهِ. قَالَ عُبَيْدُ اللَّهِ: وَرَأَيْتُ الْقَاسِمَ، وَسَالِمًا يَفْعَلَانِ ذَلِكَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ. وَفِي الْبَابِ، عَنْ عَلِيٍّ، وَلَا يَصِحُّ حَدِيثُ عَلِيٍّ فِي هَذَا مِنْ قِبَلِ إِسْنَادِهِ. ([1])

**ترجمه** : دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما بيان دي کله چې به نبي کريم صلي الله عليه وسلم پټکي تړلو نو د دواړو اوږو په مينځ کې به يې زوړند ساتلو، نافع وائي ابن عمر رضي الله عنهما به هم خپل پټکي داوږو په مينځ کې ساتلو، عبيدالله بن عمر وائي ما قاسم او سالم هم په داسې کار کولو ليدلي وو.

امام ترمذي وايي : داحديث حسن غريب دي، او په دي باب کې دعلي رضي الله عنه نه هم روايت وارد دي ليکن دهغه حديث دسند په اعتبار صحيح نه دي.

---

[1] ـ تفرد بذكره المؤلف (تحفة الأشراف : ٨٠٣١)

**تشريح** : دېتهکي ترلو فضيات په ډېرو احاديثو کې ثابت دی مثلا په يو روايت کې راځي چې عمامه دمومن وقار دی رسول الله په يو بله موقعه اوفرمائيل عمامه تړئ ددي داستعمال په وجه دسړي په صبر کې اضافه کيږي په يو بل روايت کې راځي عمامه داسلام په نشاناتو کې يوه نشاني ده او د مسلمانانو اوکافرانو په مينځ کې امتياز دی

****************

## ١٣_ باب مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ خَاتَمِ الذَّهَبِ

### دسړي دپاره دسرو زرو دګوتي اچولو دحرمت بيان

١٧٣٧_حَدَّثَنَا سَلَمَةُ بْنُ شَبِيبٍ، وَالْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ الْخَلَّالُ، وغير واحد، قَالُوا: حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ حُنَيْنٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ، قَالَ: " نَهَانِي النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ التَّخَتُّمِ بِالذَّهَبِ، وَعَنْ لِبَاسِ الْقَسِّيِّ، وَعَنِ الْقِرَاءَةِ فِي الرُّكُوعِ وَالسُّجُودِ، وَعَنْ لِبَاسِ الْمُعَصْفَرِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. ([1])

**ترجمه** . دعلي بن ابي طالب رضي الله عنه بيان دي فرمائي چې نبي کريم صلي الله عليه وسلم زه دسرو زرو دګوتي او د قسي (ريشمي) لباس استعمالولو او په رکوع او سجده کي دقران لوستلو، او دمعصفر (زيړرنګ) لباس اغوستلو نه منع کړي يم.

امام ترمذي وايي : داحديث حسن صحيح دي.

****************

١٧٣٨_حَدَّثَنَا يُوسُفُ بْنُ حَمَّادٍ الْمَعْنِيُّ الْبَصْرِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ بْنُ سَعِيدٍ، عَنْ أَبِي التَّيَّاحِ، حَدَّثَنَا حَفْصٌ اللَّيْثِيُّ، قَالَ: أَشْهَدُ عَلَى عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ أَنَّهُ حَدَّثَنَا، أَنَّهُ قَالَ: " نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ التَّخَتُّمِ بِالذَّهَبِ ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ عَلِيٍّ، وَابْنِ عُمَرَ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَمُعَاوِيَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ عِمْرَانَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَأَبُو التَّيَّاحِ اسْمُهُ: يَزِيدُ بْنُ حُمَيْدٍ. ([2])

---

[1] _ انظر حديث رقم ٢٦٣ و ١٤٢٥

[2] _ النسائي_ الزينة ٤٣ (٥١٩٠). (تحفة الأشراف : ١٠٨١٨). واحمد في المسند (٤_ ٤٢٨، ٤٤٣)

**ترجمه** دعمران بن حصين رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم دسرو زرو دګوتي اچولو نه (دسرو دپاره) منع فرمائيلي ده

امام ترمذي وايي دعمران حديث حسن صحيح دي، او په دي باب کي دعلي، ابن عمر، ابوهريره، او معاويه رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي

****************

## ١٤_ بَاب مَا جَاءَ فِي خَاتَمِ الْفِضَّةِ

## دسپينو زرو دګوتي اچولو بيان

١٧٣٩_حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، وَغَيْرُ وَاحِدٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ وَهْبٍ، عَنْ يُونُسَ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ أَنَسٍ، قَالَ: "كَانَ خَاتَمُ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ وَرِقٍ، وَكَانَ فَصُّهُ حَبَشِيًّا". قَالَ: وَفِي الْبَاب، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، وَبُرَيْدَةَ، قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ مِنْ هَذَا الْوَجْهِ.[1]

**ترجمه**: دانس رضي الله عنه بيان دي فرمائي چي دنبي کريم صلي الله عليه وسلم ګوته دسپينو زرو نه جوړه وه او ددي غمي دحبشي جوړ وو.

امام ترمذي وايي: داحديث په دي سند حسن صحيح غريب دي، او په دي باب کي دابن عمر او بريده رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي.

**تشريح** جائز نه دي خوراک او څکاک، او تيل لګول او خوشبو لګول، د سرو زرو او سپينو زرو په لوخو کښې،د سرو او ښځو دپاره، د نبی کريمﷺ د فرمان په وجه د هغه سړی په باره کي څوک چي څکل کوی،د سرو زرو اوسپينو زرو په لوخو کښې، چي هغه پخپله خيټه کي د جهنم اور اچوي او ابوهريره رضي الله عنه ته سپينوزرو په لوخی کي اوبه ورکړې شوې نوهغوی دا قبول نکړلي او داسې ئې اوفرمائيل چي مونږه ددې نه رسول اللهﷺ منع کړی يواو هرکله چي دا (ممانعت) په څکلو کي ثابت شو نوهم دغه شان په تيلو لګولو او ددې په مثل کي (هم ممانعت) دې څکه چي دا د څکلو په معنی کي دي او څکه چي دا د مشرکا نو هيئت سره تشبيه ده او عيش حاصلول دی،د متکبرو خلقو، او د فضول خرچی کونکو د عيش حاصلولو پښان، او امام محمد په جامع صغير کي ونيلی دی چي مکروه دي او ددوی مراد تحريم دي او په دې کي ښځې او سړی برابر دی،د نهی د عموم په وجه، او هم دغه

---

[1] _ اخرجه البخاري في الصحيح_ اللباس ٤٨ (٥٨٧٠). صحيح مسلم_ اللباس ١٥ (٢٠٩٢). سنن ابي داود_ الخاتم ١ (٤٢١٦). سنن النسائي_ الزينة ٤٦ (٥١٩٩). و ٤٧ (٥٢٨٢،٥٢٧٩) سنن ابن ماجه_ اللباس ٣٩ (٣٦٤١). (تحفة الأشراف ١٥٥٢). واحمد في المسند (٣_ ٢٠٩)

شان د سرو زرو او سپینو زرو چمچې (قاشوغې) او د سرو زرو او سپینو زرو سلايا نو سره رانجه لګول، او هم دغه شان کوم چې ددې مشابه دی لکه سرمه دانی او آئینه او ددې نه علاوه د هغه دلیل په وجه کوم چې مونږ ذکر کړې دې.(هدایه شرح بدایه)

په کوم چې سپین زر خیجولې شوې وی، یعنی ددې په غاړو باندې سپین زر لګولی شوی وی، امام صاحب وائی چې کله خالص د سپینو زرو لوخې نه وی بلکه لوخې یا داستعمال آله د بل څه څیز ده او ددې په غاړو باندې سپین زر خیجولې شوې وی نوددې استعمال جائز دې،په دې شرط چې د سپینو زرو د ځائې نه پرهیز کوی،یعنی که د څکلو لوخې دې نود سپینو زرو ځائې ته خوله نه لګوی بلکه بل ځائې ته خوله لګوی،دغه شان که په ګدئ باندې سپین زر اولګولی شو نود سپینو زرو په ځائې باندې نه کینی،په بل ځائې باندې کینی نودا جائز ده،دغه شان که په یوه کرسئ باندې سپین زر خیجولې شوې وی یا په کټ باندې نو دواړو صورتو نو کې د سپینو زرو په ځائې باندې نه کینی نوجائز ده، که چرې سره زر خیجولې شوی وی نوددې هم دغه حکم دې.

او امام ابویوسف مکروه ګرځوې او پاتې شوه مسئله د امام محمد نو په دې کې دوه قوله دی:(۱) بعض علماؤ قول کړې دې چې دی د امام صاحب سره دې او ددې دحلت قائل دې.

(۲)او بعضې علماؤ فرمائیلی دی چې دوی د امام ابویوسف سره دې او ددې د کراهت قائل دې.

****************

## ۱۵_ بَابُ مَا جَاءَ مَا يُسْتَحَبُّ فِي فَصِّ الْخَاتَمِ

## په ګوتمه کې د غمې لګولو بیان

۱۷۴۰_حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ بْنِ عُبَيْدِ اللَّهِ الطَّنَافِسِيُّ، حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ أَبُو خَيْثَمَةَ، عَنْ حُمَيْدٍ، عَنْ أَنَسٍ، قَالَ: "كَانَ خَاتَمُ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ فِضَّةٍ، فَصُّهُ مِنْهُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ مِنْ هَذَا الْوَجْهِ.[1]

**ترجمه** دانس رضي الله عنه بیان دي فرمائي چې رسول الله صلي الله علیه وسلم ګوتمه دسپینو زرو وه او غمې ئې هم دسپینو زرو وو.

امام ترمذي وائي داحدیث په دي سند حسن صحیح غریب دي.

---

[1] _ اخرجه البخاري في الصحيح_ اللباس ۴۸ (۵۸۷۰). سنن ابی داود_ الخاتم ۱ (۴۲۱۷). سنن النسائی_ الزینة ۴۷ (۵۲۰۱). سنن ابن ماجه_ اللباس ۳۹ (۳۶۴۱)

* * * * * * * * * * * * * * * * *

## ١٦_ باب مَا جَاءَ فِي لُبْسِ الْخَاتَمِ فِي الْيَمِينِ

### په ښي لاس کي دګوتمي اچولو بيان

١٧٤١_حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُبَيْدٍ الْمُحَارِبِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ أَبِي حَازِمٍ، عَنْ مُوسَى بْنِ عُقْبَةَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " صَنَعَ خَاتَمًا مِنْ ذَهَبٍ فَتَخَتَّمَ بِهِ فِي يَمِينِهِ، ثُمَّ جَلَسَ عَلَى الْمِنْبَرِ، فَقَالَ: إِنِّي كُنْتُ اتَّخَذْتُ هَذَا الْخَاتَمَ فِي يَمِينِي، ثُمَّ نَبَذَهُ وَنَبَذَ النَّاسُ خَوَاتِيمَهُمْ ". قَالَ: وَفِي الْبَاب، عَنْ عَلِيٍّ، وَجَابِرٍ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ جَعْفَرٍ، وَابْنِ عَبَّاسٍ، وَعَائِشَةَ، وَأَنَسٍ، قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ عُمَرَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رُوِيَ هَذَا الْحَدِيثُ عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، نَحْوَ هَذَا مِنْ غَيْرِ هَذَا الْوَجْهِ، وَلَمْ يَذْكُرْ فِيهِ أَنَّهُ تَخَتَّمَ فِي يَمِينِهِ. [1]

**ترجمه** : دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه مروي دي چي نبي کريم صلي الله عليه وسلم دسرو زرو يوه ګوته جوړه کړه او دا يې دښي لاس په ګوته کي يې واچوله او په منبر کيناستلو او ويې فرمانيل دا ګوتمه ما په ښي لاس کي اچولي ده او بيا يې دويستلو نه پس اوغورځوله او خلقو هم خپلي ګوتمي اوغورځولي.

امام ترمذي وايي : داحديث دنافع په واسطه دابن عمر نه په يو بل سند هم مروي دي او په هغه کي ددي خبري ذکر دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم ګوتمه دښي لاس په ګوته کي اچولي وه، په دي باب کي دعلي، جابر، عبدالله بن جعفر، ابن عباس، او عائشه ، انس، رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي او دابن عمر حديث حسن صحيح دي او دا حديث نافع دابن عمر نه هم نقل کړي دي ددي سند نه علاوه په بل سند کي او په دي کي يې ددي خبري ذکر نه دي کړي چي په ښي لاس کي يې ګوتمه واچوله.

* * * * * * * * * * * * * * * * *

[1] _ اخرجه البخاري في الصحيح_ اللباس ۴۵ (۵۸۶۵) ، و ۴۶ (۵۸۶۶) ، و ۴۷ (۵۸۶۷) ، و ۵۰ (۵۸۷۳) ، و ۵۳ (۵۸۷۶) ، والأيمان والنذور ۶ (۶۶۵۱) ، والاعتصام ۴ (۷۲۹۸) ، صحيح مسلم_ اللباس ۱۱ (۲۰۹۱) ، سنن ابي داود_ الخاتم ۱ (۴۲۱۸) ، سنن النسائي_ الزينة ۴۳ (۵۱۶۷) ، و ۵۳ (۵۲۱۷،۵۲۲۱) ، سنن ابن ماجه_ اللباس ۳۹ (۳۶۳۹) ، (تحفة الأشراف : ۸۴۷۱) ، و احمد في المسند (۲_ ۱۸، ۶۸، ۹۶، ۱۴۷)

١٧٤٢_حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ حُمَيْدٍ الرَّازِيُّ، حَدَّثَنَا جَرِيرٌ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنِ الصَّلْتِ بْنِ عَبْدِ اللهِ بْنِ نَوْفَلٍ، قَالَ: رَأَيْتُ ابْنَ عَبَّاسٍ يَتَخَتَّمُ فِي يَمِينِهِ، وَلَا إِخَالُهُ إِلَّا قَالَ: رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "يَتَخَتَّمُ فِي يَمِينِهِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: قَالَ مُحَمَّدُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ: حَدِيثُ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنِ الصَّلْتِ بْنِ عَبْدِ اللهِ بْنِ نَوْفَلٍ، حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [1]

**ترجمه** دصلت بن عبدالله بن نوفل بیان دي فرمائي چي ما ابن عباس رضي الله عنهما په داسي حال کي اولیدو چي په ښي لاس کي يي ګوتمه اچولي وه او زه دا ګمان کوم چي هغه اووئیل ما رسول الله صلي الله علیه وسلم په داسي حال کي لیدلي وو چي دښي لاس په ګوته کي يي ګوتمه اچولي وه.

امام ترمذي وايي: دامام بخاري قول دي دصلت بن عبدالله بن نوفل په واسطه دمحمد بن اسحاق روایت حسن صحیح دي.

****************

١٧٤٣_حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا حَاتِمُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ، عَنْ جَعْفَرِ بْنِ مُحَمَّدٍ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: "كَانَ الْحَسَنُ وَالْحُسَيْنُ يَتَخَتَّمَانِ فِي يَسَارِهِمَا". هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [2]

**ترجمه** جعفر بن محمد دخپل پلار نه روایت نقل کوي چي حسن او حسین رضي الله عنهما دواړو به پخپلو ګسو لاسونو کي ګوتمي اچولي.

امام ترمذي وايي: داحدیث حسن صحیح دي.

****************

١٧٤٤_حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، عَنْ حَمَّادِ بْنِ سَلَمَةَ، قَالَ: رَأَيْتُ ابْنَ أَبِي رَافِعٍ يَتَخَتَّمُ فِي يَمِينِهِ، فَسَأَلْتُهُ عَنْ ذَلِكَ، فَقَالَ: رَأَيْتُ عَبْدَ اللهِ بْنَ جَعْفَرٍ يَتَخَتَّمُ فِي يَمِينِهِ، وَقَالَ عَبْدُ اللهِ بْنُ جَعْفَرٍ: "كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَخَتَّمُ فِي يَمِينِهِ". قَالَ: وَقَالَ مُحَمَّدُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ: هَذَا أَصَحُّ شَيْءٍ رُوِيَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي هَذَا الْبَابِ. [3]

---

[1] _ سنن ابي داود_ الخاتم ٥ (٤٢٢٩). (تحفة الأشراف: ٥٦٨٦)

[2] _ تفرد به المؤلف. (تحفة الأشراف ٣٢٠٨ و ٣٢١١)

[3] _ سنن النسائي_ الزينة ٤٨ (٥٢٠٧). سنن ابن ماجه_ اللباس ٢٢ (٣٦٤٧). (تحفة الأشراف: ٥٢٢٢). و احمد في المسند (١_ ٢٠٣). والمؤلف في الشمائل ١٣

**ترجمه** دحماد بن سلمه بيان دي فرمائي چي ما ابورافع په داسي حال كي ليدلي وو چي په نبي لاس كي يي گوتمه وه عبدالله بن جعفر رضي الله عنه اوونيل رسول الله صلي الله عليه وسلم هم دنبي لاس په گوته كي گوتمه اچولي وه
امام ترمذي وايي امام بخاري وائي داروايت ددي باب په احاديثو كي چي درسول الله صلي الله عليه وسلم نه مروي دي دټولو نه صحيح ترين روايت دي

****************

١٧٤٥_حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ الْخَلَّالُ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنْ ثَابِتٍ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "صَنَعَ خَاتَمًا مِنْ وَرِقٍ فَنَقَشَ فِيهِ مُحَمَّدٌ رَسُولُ اللهِ. ثُمَّ قَالَ: لَا تَنْقُشُوا عَلَيْهِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ صَحِيحٌ حَسَنٌ، وَمَعْنَى قَوْلِهِ: "لَا تَنْقُشُوا عَلَيْهِ": نَهَى أَنْ يَنْقُشَ أَحَدٌ عَلَى خَاتَمِهِ مُحَمَّدٌ رَسُولُ اللهِ. (1)

**ترجمه** : دانس بن مالك رضي الله عنه بيان دي فرمائي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم دسپينو زرو يوه گوتمه جوړه كړي وه او په دي كي يي "محمدرسول الله" نقش كړي وو او بيا يي اوفرمائيل تاسو پخپلو گوتمو كي دا نقش مه جوړوئ
امام ترمذي وايي : داحديث حسن صحيح دي او د "لاتنقشوا عليه" مطلب دادي چي رسول الله ددي خبري نه منع فرمائيلي ده چي بل څوك پخپله گوتمه كي محمدرسول الله اوليكي

****************

١٧٤٦_حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ مَنْصُورٍ، أَخْبَرَنَا سَعِيدُ بْنُ عَامِرٍ، وَالْحَجَّاجُ بْنُ مِنْهَالٍ، قَالَا: حَدَّثَنَا هَمَّامٌ، عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ أَنَسٍ، قَالَ: "كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا دَخَلَ الْخَلَاءَ نَزَعَ خَاتَمَهُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ. (2)

**ترجمه** دانس رضي الله عنه بيان دي فرمائي كله چي به رسول الله صلي الله عليه وسلم بيت الخلاء ته تلو نو خپله گوتمه به يي دلاس نه اوويستله
امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح غريب دي

---

[1] _ اخرجه البخاري في الصحيح_ اللباس ٥٠ (٥٨٤٢) و ٥١ (٥٨٠٢) و ٥٣ (٥٨٧٧) سنن النسائي_ الزينة ٥٠ (٥٢١١) و ٤٨ (٥٢٨٣)، و ٤٩ (٥٢٨٤) سنن ابن ماجه _ اللباس ٣٩ (٣٦٤٠) (تحفة الأشراف ٢٨٠) واحمد في المسند (٣ ١٠١، ١٦١)

[2] _ سنن ابي داود_ الطهارة ١٠ (١٩) سنن النسائي_ الزينة ٥١ (٥٢١٦) سنن ابن ماجه_ الطهارة ١١ (٣٠٣) . (تحفة الأشراف : ١٥١٢)، واحمد في المسند (٣_ ٩٩، ١٠١، ٢٨٢) . والمؤلف الشمائل ١١ (٨٨)

* * * * * * * * * * * * * * * *

## ١٧_ بَاب مَا جَاءَ فِي نَقْشِ الْخَاتَمِ

## دګوتمي د نقش بيان

١٧٤٧_حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ الأَنْصَارِيُّ، حَدَّثَنَا أَبِي، عَنْ ثُمَامَةَ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: "كَانَ نَقْشُ خَاتَمِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مُحَمَّدٌ سَطْرٌ، وَرَسُولُ سَطْرٌ، وَاللَّهِ سَطْرٌ". قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَنَسٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ. ([1])

**ترجمه** دانس رضي الله عنه بيان دي درسول الله صلي الله عليه وسلم دګوتمي نقش داسي وو "محمد" په يوه كرخه كي او "رسول" په دويمه كرخه كي او "الله" په دريمه كرخه كي.

امام ترمذي وايي : دانس حديث حسن صحيح غريب دي.

* * * * * * * * * * * * * * * *

١٧٤٨_حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، وَمُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى، وَغَيْرُ وَاحِدٍ، قَالُوا: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ الأَنْصَارِيُّ، حَدَّثَنِي أَبِي، عَنْ ثُمَامَةَ، عَنْ أَنَسٍ، قَالَ: "كَانَ نَقْشُ خَاتَمِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثَلَاثَةَ أَسْطُرٍ: مُحَمَّدٌ سَطْرٌ، وَرَسُولُ سَطْرٌ، وَاللَّهِ سَطْرٌ". وَلَمْ يَذْكُرْ مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى فِي حَدِيثِهِ ثَلَاثَةَ أَسْطُرٍ، وَفِي الْبَابِ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ. ([2])

**ترجمه** : دانس رضي الله عنه بيان دي فرمائي چي درسول الله صلي الله عليه وسلم دګوتمي نقش په دري كرخو كي دي په يوه كرخه كي محمد وو او په دويمه كي رسول وو او په دريمه كي الله.

امام ترمذي وايي محمد بن يحیٰ پخپل روايت كي د دري كرخو ذكر نه دي كړي، او په دي باب كي دابن عمر رضي الله عنهما نه هم حديث وارد دي.

* * * * * * * * * * * * * * * *

## ١٨_ بَاب مَا جَاءَ فِي الصُّورَةِ

---

[1] _ سنن ابي داود_ الطهارة ١٠ (١٩) . سنن النسائي_ الزينة ٥١ (٥٢١٦) . سنن ابن ماجه_ الطهارة ١١ (٣٠٣) . (تحفة الأشراف : ١٥١٢) . و احمد في المسند (٣_ ٩٩، ١٠١، ٢٨٢) . والمؤلف الشمائل ١١ (٨٨)

[2] _ ابي داود_ الطهارة ١٠ (١٩) . سنن النسائي_ الزينة ٥١ (٥٢١٦) . سنن ابن ماجه_ الطهارة ١١ (٣٠٣) . (تحفة الأشراف : ١٥١٢) . و احمد في المسند (٣_ ٩٩، ١٠١، ٢٨٢) . والمؤلف الشمائل ١١ (٨٨)

## دتصوير بيان

١٧٤٩ـ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا رَوْحُ بْنُ عُبَادَةَ، حَدَّثَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ، أَخْبَرَنِي أَبُو الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ، قَالَ: "نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الصُّوَرِ فِي الْبَيْتِ، وَنَهَى أَنْ يُصْنَعَ ذَلِكَ".
قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ عَلِيٍّ، وَأَبِي طَلْحَةَ، وَعَائِشَةَ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَأَبِي أَيُّوبَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ جَابِرٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [1]

**ترجمه** دجابررضي الله عنه نه مروي دي فرمائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم په كوټ كي دتصوير ساتلو نه منع فرمائيلي ده او رسول الله صلي الله عليه وسلم دتصوير جوړولو نه هم منع فرمائيلي ده.
امام ترمذي وايي : دجابر حديث حسن صحيح دي، او په دي باب كي دعلي، ابوطلحه، عائشه، ابوهريره، او ابو ايوب رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي او حديث دجابر حسن صحيح دي.

*****************

١٧٥٠ـ حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ مُوسَى الْأَنْصَارِيُّ، حَدَّثَنَا مَعْنٌ، حَدَّثَنَا مَالِكٌ، عَنْ أَبِي النَّضْرِ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُتْبَةَ، "أَنَّهُ دَخَلَ عَلَى أَبِي طَلْحَةَ الْأَنْصَارِيِّ يَعُودُهُ، قَالَ: فَوَجَدْتُ عِنْدَهُ سَهْلَ بْنَ حُنَيْفٍ، قَالَ: فَدَعَا أَبُو طَلْحَةَ إِنْسَانًا يَنْزِعُ نَمَطًا تَحْتَهُ، فَقَالَ لَهُ سَهْلٌ: لِمَ تَنْزِعُهُ؟ فَقَالَ: لِأَنَّ فِيهِ تَصَاوِيرَ، وَقَدْ قَالَ فِيهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا قَدْ عَلِمْتَ، قَالَ سَهْلٌ: أَوَلَمْ يَقُلْ: إِلَّا مَا كَانَ رَقْمًا فِي ثَوْبٍ؟ فَقَالَ: بَلَى، وَلَكِنَّهُ أَطْيَبُ لِنَفْسِي". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [2]

**ترجمه** دعبيدالله بن عبدالله بن عتبه بيان دي فرمائي چي زه دابوطلحه انصاري بيمارپرسۍ دپاره دهغه كور ته ورغلم نو ما دده سره سهل بن حنيف رضي الله عنه اوموندلو دي وخت كي

---

[1] ـ سنن ابي داود ـ الطهارة ١٠ (١٩) . النسائي ـ الزينة ٥١ (٥٢١٦) . سنن ابن ماجه ـ الطهارة ١١ (٣٠٣) . (تحفة الأشراف : ١٥١٣) . واحمد في المسند (٣ـ ٩٩ . ١٠١ . ٢٨٢) . والمؤلف الشمائل ١١ (٨٨)

[2] ـ سنن النسائي ـ الزينة ١١١ (٥٣٥١) . وانظر أيضا : اخرجه البخاري في الصحيح ـ بدء الخلق ٧ (٣٢٢٦) . واللباس ٩٢ (٥٩٥٨) . صحيح مسلم ـ اللباس ٢٦ (٢١٠٦ـ ٨٥) . سنن ابي داود اللباس ٤٨ (٤١٥٥) . سنن النسائي ـ الزينة ١١٢ (٥٣٥٢) . (تحفة الأشراف : ٣٧٨٢، و ٣٦٦٣) . واحمد في المسند (٣ـ ٢٨)

ابوطلحه يو كس دهغه څادر راويستلو دپاره راوغوښتلو كوم چي دده نه لاندي غوړيدلي وو سهل رضي الله عنه ورته اوونيل ولي يي راوباسي؟ نو هغه اوونيل خكه چي په دي كي تصويرونه دي او يقينا رسول الله ددي په باره كي هغه څه فرمانيلي دي كوم چي تاته معلوم دي سهل اوونيل ايا دا يي نه دي فرمانيلي كوم چي په كپړه باندي جوړ شوي وي ابوطلحه اوونيل ولي نه ليكن دا زما دپاره ښه دي

امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي

**تخريج**

***************

## ١٩_ بَاب مَا جَاءَ فِي الْمُصَوِّرِينَ
## دتصوير جوړونكو بيان

١٧٥١_حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " مَنْ صَوَّرَ صُورَةً، عَذَّبَهُ اللَّهُ حَتَّى يَنْفُخَ فِيهَا، يَعْنِي: الرُّوحَ، وَلَيْسَ بِنَافِخٍ فِيهَا، وَمَنِ اسْتَمَعَ إِلَى حَدِيثِ قَوْمٍ وَهُمْ يَفِرُّونَ بِهِ مِنْهُ، صُبَّ فِي أُذُنِهِ الْآنُكُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ ". قَالَ: وَفِي الْبَاب، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَأَبِي جُحَيْفَةَ، وَعَائِشَةَ، وَابْنِ عُمَرَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ عَبَّاسٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (1)

**ترجمه** دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي چاچي دكوم څيز تصوير جوړ كړو نو الله تعالي به ده ته دهغه وخته پوري عذاب وركوي څو پوري چي تصوير جوړونكي په دي كي روح اچولي نه وي او دي په دي كي روح نشي اچولي او چاچي دكوم قوم خبره په غور سره واوريده او حال دادي چي دي دهغوئ نه تختي دقيامت په ورځ به دده په غوړونو كي ويلي كړي سيكه اچولي شي

امام ترمذي وايي دابن عباس حديث حسن صحيح دي او په دي باب كي دعبدالله بن مسعود ، ابوهريره ، ابوجحيفه ، عائشه ، او ابن عمر رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي

**لغات** : ينفخ: نفخ ينفخ نفخا معني پوكي كول لكه نفخ في النار او نفخ النار . نفخت الريح يعني ناڅاپه هوا راغله . نفخت شدقيه يعني تكبر يي وكړو

---

1 _ اخرجه البخاري في الصحيح _ التعبير ٣٥ (٧٠٤٢) والأدب ٩٦ (٥٠٢٤) . سنن النسائي _ الزينة ١١٣ (٥٣٦١) . (تحفة الأشراف : ٥٩٨٦) . واحمد في المسند (١_٢٢٦) . سنن الدارمي _ الرقاق ٢

**تشريح** علماء وايي که تصوير جوړونکي تصوير جوړول حلال وګڼړي نو کافر کيږي او بيا به هميشه په جهنم کې وي او که حرام يې ګڼړي او جوړوي يې نو ګناهګار به وي او د دي په سزا کې به جهنم ته ځي اود سزا تيرولو نه پس به د ايمان په برکت سره را اوځي

ان ينفخ فيها الروح چې په دې کې روح واچوي مطلب دادی چې دي مصور په دنيا کې د الله دعمل نقل اوکړو چې الله تعالي انسانان او حيوانات پيدا کړي دي او په دې کې يې روح اچولی دی نو ده هم دانسانانو او حيواناتو تصويران جوړ کړل مګر روح پکې نشي اچولی نو د قيامت په ورځ به ده ته اووئيلی شي تاچې په دنيا کې دالله تعالي کوم مشابهت اختيار کړی وو اوس هغه مکمل کړه يعني روح هم پکې واچوه ليکن کله چې دی روح وانه چولی شي نو ده ته به عذاب ورکړی شي دا زجر او دهمکي ده او کچرته ايمان والاوي نو يوه ورځ به ضرور دجهنم نه راوويستلی شي.

***************

## ٢٠_ باب مَا جَاءَ فِي الْخِضَابِ

### دخضاب(ويختو ته درنګ ورکولو) بيان

١٧٥٢_حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، عَنْ عُمَرَ بْنِ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " غَيِّرُوا الشَّيْبَ، وَلَا تَشَبَّهُوا بِالْيَهُودِ ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنِ الزُّبَيْرِ، وَابْنِ عَبَّاسٍ، وَجَابِرٍ، وَأَبِي ذَرٍّ، وَأَنَسٍ، وَأَبِي رِمْثَةَ، وَالْجَهْدَمَةِ، وَأَبِي الطُّفَيْلِ، وَجَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ، وَأَبِي جُحَيْفَةَ، وَابْنِ عُمَرَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رُوِيَ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. [1]

**ترجمه** دابوهريره رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دويختو سپين والي (دخضاب په ذريعه) بدل کړئ او ديهودو سره مشابهت مه اختياروئ.

امام ترمذي وايي دابوهريره حديث حسن صحيح دي، او دا حديث دابوهريره رضي الله عنه په واسطه په نورو سندونو هم مرفوعا مروي دي، او په دې باب کې دزبير، ابن عباس، جابر،

---

[1] _ تفرد به المؤلف. وانظر: اخرجه البخاري في الصحيح_ الأنبياء ٥٠ (٣٤٦٢)، واللباس ٦٧ (٥٨٩٩)، صحيح مسلم_ اللباس ٢٥ (٢١٠٣)، سنن ابي داود_ الترجل ١٨ (٤٢٠٣)، سنن النسائي_ الزينة ١٤ (٥٠٧٢)، و ٦٣ (٥٢٤٣)، سنن ابن ماجه_ اللباس ٣٣ (٣٦٢١)، (تحفة الأشراف: ١٣٩٨٥)

ابوذر، انس، ابورمثه، جهدمه، ابوطفيل، جابر بن سمره، ابوجحيفه او ابن عمر رضي الله عنهما نه هم احاديث وارد دي

**تشريح** : په شريعت کې په ويښتو خضاب لګول جائز دي خو چې تور رنګ والا نه وي ددې دپاره چې ديهودو سره دمشابهت نه بچ شي ځکه چې هغوئ خضاب نه لګوي همدا رنګي ددي حديث نه معلوم شو چې مسلمانانو لره د يهوديانو او نصرانيانو لباس او طرز او تمدن اختيارول پکار نه دي

مجمع البحار والاليکلي دي چې په دي حديث کې دخضاب لګولو حکم دهغه خلقو دپاره نه دی دچاچي څه ويخته سپين او څه تور وي بلکه دهغه ښځو دپاره دی دچا ويخته چې پاك بالکل سپين شوي وي.

## دسرو او ښځو دپاره دويختو تورولو دحرمت بيان

عن جابر ﷺ قَالَ : أُتِيَ بِأَبِي قُحَافَةَ والِدِ أَبِي بَكْرٍ الصِّدِّيقِ رضي الله عنهما ، يَوْمَ فَتْحِ مَكَّةَ وَرَأْسُهُ وَلِحْيَتُهُ كَالثَّغَامَةِ بَيَاضاً. فَقَالَ رَسُولُ اللهِ ﷺ : ((غَيِّرُوا هَذَا وَاجْتَنِبُوا السَّوَادَ)). رواه مسلم .

جابر رضي الله عنه نه روايت دی چي دفتح مکی په ورځ دابوبکر صديق رضي الله عنه والد صاحب ابو قحافه راوستی شو دهغه سر اوږيره لکه دثغامه وښو (سپين وښی) په شان تك سپين وو رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل ددی رنګ بدل کړئ خو توروئ يی مه

أخرجه : مسلم كتاب اللباس والزينة باب صبغ الشعر وتغير الشيب ٦/١٥٥ (٢١٠٢) (٧٩) واحمد وابوداود وابن ماجه وابن حبان ٥٤٧١ والبيهقي ٣١٠/٧ .

الثغامة : داسي ونه چي ميوه او ګلان دواړه يي سپين وي، لحية ږيره او جمع يي لحي راځي، غيروا معني بدل کړئ

## ابو قحافه څوک دی؟

دابوبکر صديق رضي الله عنه دپلار نوم عثمان بن عامر وو او کنيه يي ابو قحافه ده، دفتح مکي په ورځ دنبي کريم صلي الله عليه وسلم په خدمت کې حاضر کړی شو او اسلام يي قبول کړو او بيا دعمر فاروق رضي الله عنه په دور خلافت کې وفات شو "ثغامة" دغرونو يو بوټی دی داچي کله وچ شي نو بالکل دواوري پشان سپين وي، بعضي وائ چي دا د سپينو ميوو او سپينو ګولانو والاونه ده.

محدث عبدالحق دهلوي وائي چي تورخضاب استعمالول حرام دي په يو روايت کې راغلي دي چي دويښتو سپين والی بدل کړئ او دخضاب نه ځان اوساتئ او که څوك جهاد ته روان وي او تورخضاب استعمال کړي چې دشمن ورنه مرعوب شي نو جائز دي

دبعضي صحابه کرامو او تابعينو باره کې راخي چې تور خضاب به يې استعمالول خکه چې دوئ مجاهدين او غازيان وو ليکن شيخ عبدالحق دهلوي وايي چې ددوئ خضاب به تور نه وو بلکه سور والي ته به مائل وو.

د بخاري او مسلم په روايت کي داسي دي

عن أَبِي هريرة ﷺ: أَنَّ رسُولَ اللهِ ﷺ، قَالَ: ((إِنَّ اليَهُودَ وَالنَّصَارى لاَ يَصْبغُونَ، فَخَالِفُوهُمْ)).

ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي يهود او عيسايان ويښته نه رنګوي، نو تاسويې مخالفت کوئ يعنی رنګ ورکوئ[1]

امام نووي ددي حديث داسي تشريح کړي ده.

المُرَادُ: خِضَابُ شَعْرِ اللِّحْيَةِ والرَّأْسِ الأَبْيَضِ بِصُفْرَةٍ أَوْ حُمْرَةٍ؛ وأمَّا السَّوَادُ، فَمَنْهِيٌّ عَنْهُ كَمَا سَنَذْكُرُهُ فِي البَابِ بَعْدَهُ، إنْ شَاءَ اللهُ تَعَالَى.

رنګولو نه مطلب دسر اوږيری سپين ويښته په نکريزو يا وسمه زيړول يا سره کول دي ليکن تورول يې ممنوع دي لکه وريسی باب کې به بيان شي، انشاء الله.

أخرجه: البخاري كتاب اللباس باب الخضاب ٢٠٧/٤ (٣٤٦٢). ومسلم كتاب اللباس ١٥٥/٦ (٢١٠٣) (٨٠) واحمد وابوداود والترمذي وابن ماجه وابن حبان والبيهقي ٣٠٩/٧.

****************

١٧٥٣ـ حَدَّثَنَا سُوَيْدُ بْنُ نَصْرٍ، أَخْبَرَنَا ابْنُ الْمُبَارَكِ، عَنِ الأَجْلَحِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ بُرَيْدَةَ، عَنْ أَبِي الأَسْوَدِ، عَنْ أَبِي ذَرٍّ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "إِنَّ أَحْسَنَ مَا غُيِّرَ بِهِ الشَّيْبُ: الحِنَّاءُ، وَالكَتَمُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. وَأَبُو الأَسْوَدِ الدِّيلِيُّ اسْمُهُ: ظَالِمُ بْنُ عَمْرِو بْنِ سُفْيَانَ. (١)

**ترجمه**: دابوذر رضي الله عنه نه مروي دي نبي کريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي په تولو څيزونو کي بهتر څيز چې دويختو سپين والي وربانديي بدل کړي شي نکريزي، او وسمه ده.

امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي اود ابو الاسود الديلي نوم ظالم بن عمرو بن سفيان دی.

[1] ـ سنن ابي داود ـ الترجل ١٨ (٤٢٠٥). سنن النسائي ـ الزينة ١٦ (٥٠٨٠). سنن ابن ماجه ـ اللباس ٣٢ (٣٦٢٢). (تحفة الأشراف: ١١٩٢٧). واحمد في المسند (٥ ـ ١٤٧، ١٥٠، ١٥٤، ١٥٦، ١٦٩)

****************

## ٢١_ باب مَا جَاءَ فِي الْجُمَّةِ وَاتِّخَاذِ الشَّعَرِ

### داوړو پوري دويختو اوږدو ساتلو بيان

١٧٥٤_حَدَّثَنَا حُمَيْدُ بْنُ مَسْعَدَةَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ الثَّقَفِيُّ، عَنْ حُمَيْدٍ، عَنْ أَنَسٍ، قَالَ: " كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَبْعَةً لَيْسَ بِالطَّوِيلِ وَلَا بِالْقَصِيرِ، حَسَنَ الْجِسْمِ، أَسْمَرَ اللَّوْنِ، وَكَانَ شَعْرُهُ لَيْسَ بِجَعْدٍ وَلَا سَبْطٍ، إِذَا مَشَى يَتَوَكَّأُ ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ عَائِشَةَ، وَالْبَرَاءِ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَابْنِ عَبَّاسٍ، وَأَبِي سَعِيدٍ، وَجَابِرٍ، وَوَائِلِ بْنِ حُجْرٍ، وَأُمِّ هَانِئٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ أَنَسٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ مِنْ هَذَا الْوَجْهِ، مِنْ حَدِيثِ حُمَيْدٍ. (١)

**ترجمه** دانس رضي الله عنه بيان دي فرماني چي رسول الله صلي الله عليه وسلم درميانه قد والانسان وو نه ډير لوړ وو او نه ډير ټيټ وو گندمي رنګ والاوو او ويخته يې نه گونجي وو او نه ډير شخ نيغ وو رسول الله صلي الله عليه وسلم چي به کله چرته تلو نو خپه به يې اوچتوله او تلو به داسي به ښکاريدو لکه څوك چي دبره نه ښکته کوزيږي.

امام ترمذي وايي : او په دي سند دحميد په روايت دانس حديث حسن صحيح غريب دي او په دي باب کي دعائشه، براء، ابوهريره، ابن عباس، ابوسعيد، جابر، وائل بن حجر، او ام هاني رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي.

**تشريح**: په يو بل روايت کې داسي راغلي دي "احسن الناس وجها واحسنه خلقا ليس بالطويل الذاهب ولابالقصير، يعني رسول الله دهر چانه ښکلی او په اخلاقو کې دهرچانه بهتر وو نه ډيرلوړ وو چي بدښکاري اونه ډير ټيټ وو بلکه درميانه قد والاوو

****************

١٧٥٥_حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ أَبِي الزِّنَادِ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: " كُنْتُ أَغْتَسِلُ أَنَا وَرَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ إِنَاءٍ وَاحِدٍ، وَكَانَ لَهُ شَعْرٌ فَوْقَ الْجُمَّةِ وَدُونَ الْوَفْرَةِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ مِنْ هَذَا الْوَجْهِ، وَقَدْ رُوِيَ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ عَنْ عَائِشَةَ، أَنَّهَا قَالَتْ: " كُنْتُ أَغْتَسِلُ أَنَا وَرَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ

---

١_ تفرد به المؤلف. وانظر: البخاري_ المناقب ٢٣ (٣٥٤٧). (تحفة الأشراف: ٤٢٠)

إِنَاءٍ وَاحِدٍ ". وَلَمْ يَذْكُرُوا فِيهِ هَذَا الحَرْفَ. " وَكَانَ لَهُ شَعْرٌ فَوْقَ الجُمَّةِ وَدُونَ الوَفْرَةِ ". وَعَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ أَبِي الزِّنَادِ ثِقَةٌ، كَانَ مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ يُوَثِّقُهُ وَيَأْمُرُ بِالكِتَابَةِ عَنْهُ. (1)

**ترجمه** دام المؤمنين عائشه رضي الله عنها بيان دي فرمائي چي ما به د رسول الله صلي الله عليه وسلم سره ديو لوښي نه غسل كولو د هغوئ ويخته د جمي نه لږ واړه او د وفره نه لږ اوږده وو.

امام ترمذي وايي: دا حديث په دي سند حسن صحيح غريب دي، او په نورو سندونو د عائشه رضي الله عنها نه ددي هم معني مروي دي فرمائي چي ما به د رسول الله صلي الله عليه وسلم سره ديو لوښي نه غسل كولو، راويانو په دي حديث كي دا جمله نه ده بيان كړي "وكان له شعر فوق الجمعة ودون الوفرة" عبد الرحمن بن ابي زناد ثقه دي امام مالك به دده توثيق كولو او دده د روايت ليكلو حكم به يي كولو.

***************

## ٢٢_ باب مَا جَاءَ فِي النَّهْيِ عَنِ التَّرَجُّلِ، إِلاَّ غِبًّا

### هره ورځ د ويختو كومنزولو د مما نعت بيان

١٧٥٦_ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ خَشْرَمٍ، أَخْبَرَنَا عِيسَى بْنُ يُونُسَ، عَنْ هِشَامٍ، عَنِ الحَسَنِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مُغَفَّلٍ، قَالَ: " نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ التَّرَجُّلِ إِلَّا غِبًّا ". (2)

**ترجمه**: د عبد الله بن مغفل رضي الله عنه بيان دي فرمائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم هر وخت د كومنزولو نه منع فرمائيلي ده علاوه د دينه چي بعضي ورځ اوكړي شي او بعضي ورځ پريخودي شي (يعني كله كله).

***************

حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، عَنْ هِشَامٍ، عَنِ الحَسَنِ، بِهَذَا الإِسْنَادِ نَحْوَهُ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. قَالَ: وَفِي البَابِ، عَنْ أَنَسٍ. (1)

---

[1] _ سنن ابي داود_ الترجل ٩ (٤١٨٧) . سنن ابن ماجه_ اللباس ٣٦ (٣٦٣٥) (تحفة الأشراف : ١٦٠١٩)

[2] _ سنن ابي داود_ الترجل ١ (٤١٥٩) . سنن النسائي_ الزينة ٧ (٥٠٥٨) . (تحفة الأشراف : ٩٦٥٠) . و احمد في المسند (٤_ ٨٦)

**ترجمه** دهشام نه هم په دي سند دماقبل هم معني روايت مروي دي
امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي او په دي باب كي دانس رضي الله عنه نه هم روايت وارد دي

**تشريح** نن سبا بعضي كسان د پيشن دپاره نيم سر خروي او نيم پريږدي اكثر داسي كوي د سر شاتنۍ حصه وخروي او او مخكنۍ حصه كي څونډي پريږدي . ددي په ممانعت كي صحيح احاديث په كثرت سره وارد دي.

## ياټول ويخته كټ كول پكاردي يا ټول پريخودل پكاردي

عن ابن عمر . قَالَ: رأَى رسُولُ اللهِ ﷺ صَبِيّاً قَدْ حُلِقَ بَعْضُ شَعْرِ رَأْسِهِ وَتُرِكَ بَعْضُهُ . فَنَهَاهُمْ عَنْ ذَلِكَ . وقَالَ: ((احْلِقُوهُ كُلَّهُ . أَوِ اتْرُكُوهُ كُلَّهُ))
ابن عمر رضي الله عنه نه روايت دى چي رسول الله صلي الله عليه وسلم يو هلك اوليدو چي څه سريى كل شوى وو او څه يى پريښى وو رسول الله صلي الله عليه وسلم خلق ددى نه منع كړل او ويى فرمائيل يا ټول سركلوئ، او ياټول پريدئ،
أخرجه : أبو داود (٤١٩٥) كتاب الترجل باب الزوبة. والنسائي ١٣٠/٨ واحمد وابن حبان وعبد الرزاق في المصنف ١٩٥٦٤ .
حلق حلق حلقا وتحلاقا معني سر خريل ، الحلاق معني نايي او حجام، الحليق خريلي شوي جمع يي حلقي راخي.
په پورتني روايت كي دقزع نه ممانعت راغلى دى څكه چي داسي به اهل كتابو كول په دي حديث كي ددوئ نه دمخالفت كولو حكم دى او يا دادى چي اهل فجور او اهل فسق داسي عادت لري او كه څوك دڅه عذر په وجه داسي اوكړي نو گنجائش شته مگر دښځو سره په دي كي مشابهت اختيارول پكار نه دي.
عن ابن عمر رضي الله عنهما ، قَالَ: نَهَى رسُولُ اللهِ ﷺ عن القَزَعِ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.
ابن عمر رضي الله عنه نه روايت دى چي رسول الله صلي الله عليه وسلم مونږ دقزع نه منع كړي يو.
القزع معني څه ويخته خريل اوڅه پريخودل. الشارب معني بريت، القزعة دسر دويختو دكټ كيدو ځاي.

[1] _ سنن ابي داود_ الترجل ا (٤١٥٩) . سنن النسائي_ الزينة ، (٥٠٥٨) . (تحفة الأشراف : ٩٦٥٠) . و احمد في المسند (٢_

علامه نووي واني دقزع معني داده چي دسر څه حصه اوخرولی شي او څه پريخودی شي او همدا معني جمهورو علماؤ خوښه کړي ده قزع چي چرته دغتو سړو په حق کې مکروه ده نو هلته دوړو ماشومانو په حق کې هم مکروه ده او دا په دي وجه مکروه ده چي په دي کې دکفارو سره مشابهت راځي.

****************

## ۲۳_ باب مَا جَاءَ فِي الاِكْتِحَالِ

### درانجه لګولو بيان

۱۷۵۷_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ حُمَيْدٍ، حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ هُوَ الطَّيَالِسِيُّ، عَنْ عَبَّادِ بْنِ مَنْصُورٍ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "اكْتَحِلُوا بِالإِثْمِدِ، فَإِنَّهُ يَجْلُو الْبَصَرَ، وَيُنْبِتُ الشَّعْرَ". وَزَعَمَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَتْ لَهُ مُكْحُلَةٌ يَكْتَحِلُ بِهَا كُلَّ لَيْلَةٍ، ثَلاَثَةً فِي هَذِهِ، وَثَلاَثَةً فِي هَذِهِ، وَقَدْ رُوِيَ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ قَالَ: "عَلَيْكُمْ بِالإِثْمِدِ، فَإِنَّهُ يَجْلُو الْبَصَرَ، وَيُنْبِتُ الشَّعْرَ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ جَابِرٍ، وَابْنِ عُمَرَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ عَبَّاسٍ حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ، لاَ نَعْرِفُهُ عَلَى هَذَا اللَّفْظِ إِلاَّ مِنْ حَدِيثِ عَبَّادِ بْنِ مَنْصُورٍ. (1)

**ترجمه**: دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي اثمد رانجه استعمالوئ ځکه چي دا نظر تيزوي او بانړه راشنه کوي، او درسول الله صلي الله عليه وسلم سره يوه سرمه داني وه او ددينه به يي هره شپه دري سلائي په ښي سترګه کې او دري سلائي په چپه سترګه کې اچول.

امام ترمذي وايي: دابن عباس حديث حسن غريب دي دا روايت مونږ ته صرف دعباد بن منصور په سند رارسيدلي دي، او په دي باب کي دجابر، او ابن عمر رضي الله عنهما نه هم احاديث وارد دي.

****************

[1] _ سنن ابن ماجه_ الطب ۲۵ (۳۴۹۷). وانظر أيضاً: سنن ابي داود_ الطب ۱۴ (۳۸۷۸). سنن النسائي_ الزينة ۲۸ (۵۱۱۶). (تحفة الأشراف: ۶۱۳۷). واحمد في المسند (۱_ ۳۵۴). ويأتي عند المؤلف برقم ۲۰۴۸)

حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ، وَمُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى، قَالَا: حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، عَنْ عَبَّادِ بْنِ مَنْصُورٍ نَحْوَهُ. وَقَدْ رُوِيَ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ عَلَيْكُمْ بِالإِثْمِدِ فَإِنَّهُ يَجْلُو الْبَصَرَ وَيُنْبِتُ الشَّعْرَ. (1)

**ترجمه** يزيد بن هارون هم دعباد بن منصور نه دماقبل هم معني روايت نقل كړي دي

امام ترمذي وايي ددي سند نه علاوه په نورو سندونو هم دا روايت دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه مروي دي فرمائيل يي چي لازم دي په تاسو باندي اثمد رانجه استعمالول خكه چي دا تيزونكي دنظر دي او راشنه كونكي دبڼرو دي.

***************

## ٢٤_ باب مَا جَاءَ فِي النَّهْيِ عَنِ اشْتِمَالِ الصَّمَّاءِ، وَالاِحْتِبَاءِ، فِي الثَّوْبِ الْوَاحِدِ

## په يوه جامه كي داشتمال الصما اواحتباء دمما نعت بيان

١٧٥٨_حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ الإِسْكَنْدَرَانِيُّ، عَنْ سُهَيْلِ بْنِ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "نَهَى عَنْ لِبْسَتَيْنِ: الصَّمَّاءِ، وَأَنْ يَحْتَبِيَ الرَّجُلُ بِثَوْبِهِ لَيْسَ عَلَى فَرْجِهِ مِنْهُ شَيْءٌ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَفِي الْبَابِ، عَنْ عَلِيٍّ، وَابْنِ عُمَرَ، وَعَائِشَةَ، وَأَبِي سَعِيدٍ، وَجَابِرٍ، وَأَبِي أُمَامَةَ، وَحَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ مِنْ هَذَا الْوَجْهِ، وَقَدْ رُوِيَ هَذَا مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. (2)

**ترجمه** دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي فرمائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم د دوه قسمه لباس داستعمال نه ممانعت فرمائيلي دي يو صماء دي او دويمه داسي طريقه ده چي يو كس په جامو كي په داسي طريقه خان راتاو كړي چي په شرمګاه يي دجامي نه څه حصه پاتي نشي

امام ترمذي وايي دابوهريره حديث په دي سند حسن صحيح غريب دي او دا حديث دابوهريره نه په نورو سندونو مرفوعا هم مروي دي، او په دي باب كي دعلي، ابن عمر، عائشه، ابو سعيد، جابر، او ابوامامه رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي

---

1 _ سنن ابن ماجه_ الطب ٢٥ (٣٤٩٧). وانظر أيضا: سنن ابي داود_ الطب ١٤ (٣٨٧٨). سنن النسائي_ الزينة ٢٨ (٥١١٦). (تحفة الأشراف: ٦١٣٤). واحمد في المسند (١_ ٣٥٤). ويأتي عند المؤلف برقم ٢٠٤٨)

2 _ تفرد بذكره المؤلف (تحفة الأشراف: ١٢٨٨٤). وانظر: مسند احمد (٢_ ٣١٩، ٥٢٩)

**تشريح**. احتباء ديته وائي يو كس په جامو كي په داسي طريقه خان راتاو كړي چې په شرمگاه يي دجامي نه څه حصه پاتي نشي احتباء ځكه ممنوع ده چې په دي كي كشف دعورت دي او دا په اسلامي شريعت كي قبيح او مذموم عمل دي
اشتمال الصماء ديته وائي چې يو كس يو څادر دځان نه په داسي طريقه راتاو كړي او كيدي چې لاسونه او خپې په دي كي بند پاتي شي او كه سړي ددينه زر وتل اوغواړي نو وتلي ورنه نشي ددي دممانعت وجه دا هم ده كچرته ضرورت او حادثه راشي نو په جلتۍ سره وتل ددينه ممكن نه دي

***************

## ٢٥ـ بَاب مَا جَاءَ فِي مُوَاصَلَةِ الشَّعْرِ

## په ويختو پوري د نورو ويختو پيوند كولو بيان

١٧٥٩ـ حَدَّثَنَا سُوَيْدُ بْنُ نَصْرٍ. أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ الْمُبَارَكِ. عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ. عَنْ نَافِعٍ. عَنِ ابْنِ عُمَرَ. أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " لَعَنَ اللَّهُ الْوَاصِلَةَ وَالْمُسْتَوْصِلَةَ. وَالْوَاشِمَةَ وَالْمُسْتَوْشِمَةَ ". قَالَ نَافِعٌ: الْوَشْمُ فِي اللِّثَةِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. قَالَ: وَفِي الْبَاب. عَنْ عَائِشَةَ. وَابْنِ مَسْعُودٍ. وَأَسْمَاءَ بِنْتِ أَبِي بَكْرٍ. وَابْنِ عَبَّاسٍ. وَمَعْقِلِ بْنِ يَسَارٍ. وَمُعَاوِيَةَ.
(1)

**ترجمه** د ابن عمر رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي چې الله تعالي په واصله (څوك چې خاتته يابلی ته مصنوعي ويښته لګوي) او مستوصله (څوك چې چاته مصنوعي ويښتو لګولو دپاره وائي يعنی چاته چې لګولی شي) اوپاخه خالونه وهونكي او څوك چې چاته دپخو خالونو دپاره وائي (مستوشمه) تولو باندی لعنت وئيلی دی.
امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي او په دي باب كي د عائشه، ابن مسعود. اسماء بنت ابي بكر. ابن عباس، معقل بن يسار. او معاويه رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي.
**لغات**: المستوصلة: وصل يصل وصلا. جمع كول او پيوست كول مستوصله هغي ښځي ته ويلي شي چې دخپلو ويختو سره دبل چا ويخته لګوي

[1] ـ اخرجه البخاري في الصحيح ـ اللباس ٨٣ (٥٩٣٤) . و ٨٥ (٥٩٤٠. ٥٩٤٢) . و ٨٧ (٥٩٣٧). صحيح مسلم ـ اللباس ٣٣ (٢١٢٤) . سنن ابي داود ـ الترجل ٥ (٤١٦٨) . (٢٧٨٣) سنن النسائي ـ الزينة ٢٣ (٥٠٩٨) . ٧٤ (٥٢٥٣) . سنن ابن ماجه ـ النكاح ٥٢ (١٩٨٧) (تحفة الأشراف: ٧٩٣٠) . واحمد في المسند (٢ـ٢١) ويأتي في الأدب ٣٣ (برقم ٢٧٨٣)

**تشريح** : واصله هغه ښځي ته وئيلى شي څوك چي نورو ښځو لره پردي ويخته لګوي او مستوصلة هغه ښځي ته وئيلى شي څوك چي چاته ورشي او خپل ځان دپاره ورباندي پردي ويخته اولګوي علامه نووي وائي ددي حديث نه معلومه شوه چي دا دواړه كارونه حرام دي كه چري دا ويخته دانسان په ځاي دكوم ځاروي وي نو كه دخاوند اجازت وي نو ددي داستعمال اجازت شته.

داحنافو مستند كتاب فتاوي عالمګيري ليكلي دي چي دسر په ويختو كې دبل انسان ويخته لګول ناجائز او حرام دي.

خالونه لګول هم حرام دي واشمه هغه ښځه وي چي نورو ښځو ته خالونه لګوي او مستوشمه هغه ښځه وي چي دځان دپاره په بل چا خال لګوي وشم ديته وئيلى شي چي په ستن يا كوم بل تيره څيز باندي زخم جوړ كړي او د ويني وتلو نه پس په هغي كې رانجه يا رنګ واچوي دجاهليت په زماني كې ددي رسم او رواج په غير مسلمو او جاهلانو كې موندلى شو علامه نووي دا هم بيان كړي دي او كه كوم مسلمان په ناپوهئ كې داسي كړي وي يايي دعلاج دپاره كړي وي نو ددي ختمول واجب دي او كه ددي په ختمولو كې دجسم دكومي حصي دضايع كيدو خطره وي يا ظاهرا يو لوي عيب پيدا كيږي نو په داسي صورت كې توبه ويستل او دالله تعالي نه معافي غوښتل او استغفار وئيل پكار دي.

*****************

## ٢٦_ باب مَا جَاءَ فِي رُكُوبِ الْمَيَاثِرِ

## په ريښمي زين د سوريدو بيان

١٧٦٠_ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ، أَخْبَرَنَا عَلِيُّ بْنُ مُسْهِرٍ، حَدَّثَنَا أَبُو إِسْحَاقَ الشَّيْبَانِيُّ، عَنْ أَشْعَثَ بْنِ أَبِي الشَّعْثَاءِ، عَنْ مُعَاوِيَةَ بْنِ سُوَيْدِ بْنِ مُقَرِّنٍ، عَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ، قَالَ: " نَهَانَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ رُكُوبِ الْمَيَاثِرِ ". قَالَ: وَفِي الْحَدِيثِ قِصَّةٌ، قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ عَلِيٍّ، وَمُعَاوِيَةَ، وَحَدِيثُ الْبَرَاءِ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رَوَى شُعْبَةُ، عَنْ أَشْعَثَ بْنِ أَبِي الشَّعْثَاءِ نَحْوَهُ، وَفِي الْحَدِيثِ قِصَّةٌ. [1]

[1] _ اخرجه البخاري في الصحيح_ النكاح ٨١ (٥١٧٥)، والأشربة ٢٨ (٥٦٣٥)، والمرضى ٣ (٥٦٥٠)، واللباس ٢٨ (٥٨٣٨)، و ٣٦ (٥٨٤٩)، و ٤٥ (٥٨٦٣)، والأدب ١٢٤ (٦٢٢٢)، صحيح مسلم_ اللباس ٢ (٢٠٦٦)، (تحفة الأشراف: ١٩١٦)، واحمد في المسند (٤_ ٢٨٤، ٢٩٩) وكلهم في سياق طويل منه هذا الشق

**ترجمه** دبراء بن عازب رضي الله عنه بيان دي فرمائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم مونږ په ريشمي زن دسوريدو نه منع کړي يو. راوي وائي په دي حديث کي يوه قصه مذکوره ده امام ترمذي وايي دبراء حديث حسن صحيح دي، په دي باب کي دعلي اومعاويه رضي الله عنهما نه هم روايت وارد دي او شعبه هم داشعث بن ابو الشعثاء نه هم ددي روايت نقل کړي دي او په دي حديث کي هم يوه قصه مذکور ده.

**تشريح** مياسر دميسرة جمع ده او دا يوه داسي کپړه وه کومه چي به مالدارو خلقو پخپلو سورلو باندي غوړوله په اس دپاسه يوه عامه کپړه وي او دهغي دپاسه زن وي او دزن دپاسه به ميسره وه نو په شريعت کي ددينه منع راغلي ده.

***************

## ٢٧_ باب مَا جَاءَ فِي فِرَاشِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

### درسول الله صلي الله عليه وسلم دبستري بيان

١٧٦١_حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ. أَخْبَرَنَا عَلِيُّ بْنُ مُسْهِرٍ. عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ. عَنْ أَبِيهِ. عَنْ عَائِشَةَ. قَالَتْ: " إِنَّمَا كَانَ فِرَاشُ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الَّذِي يَنَامُ عَلَيْهِ أَدَمٌ حَشْوُهُ لِيفٌ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. قَالَ: وَفِي الْبَابِ. عَنْ حَفْصَةَ. وَجَابِرٍ. (١)

**ترجمه** : ام المؤمنين عائشه صديقه رضي الله عنها فرمائي چي دنبي کريم صلي الله عليه وسلم بستره دچمړي نه جوړه وه اود کهجورو دپاڼو نه ډکه وه.

امام ترمذي وايي : داحديث حسن صحيح دي او په دي باب کي دحفصه او جابر رضي الله عنهما نه هم احاديث وارد دي.

**لغات** : ادم يا ادام دچمړي داخلي يا خارجي طرف ته وئيلي شي، فلان ادام قومه ، وادام بني ابيه وادمة قومه يعني فلاني دخپل قوم پيشوا او سردار دي، په چا باندي چي دقوم پيژندګلي کيږي،ادم دضرب نه ادما ترکاري ته ويلي شي، ادما اهله دخپل اهل دپاره نمونه جوړول.

**تشريح** : ليف دکجورو پوستکوته وئيلی شي درسول الله صلي الله عليه وسلم په بستره کي دمالوچو په ځاي دکجورو پاڼي او پوستکي پراته وو دمالوچو او دبستري پيسي به ورسره نه وي او په دي ځيزونو به يي خپل وخت تيرولو خکه چي دا به مفت ملاويدل چي دکجورو

---

١ _ اخرجه البخاري في الصحيح_ الرقاق ١٦ (٦٤٥٦) . صحيح مسلم_ اللباس ٦ (٢٠٨٢) . سنن ابي داود_ اللباس ٣٥ (٤١٤٦) . سنن ابن ماجه_ الزهد ١١ (٤١٥١) . (تحفة الأشراف : ١٧١٠٤) . و احمد في المسند (٦_ ٤٨ . ٥٦ . ٧٣ . ١٠٨ . ٢٠٧)

پوستكي به يي نرم كړل او بيابه يي ورنه بستره ډكه كړه كه څوك دا اعتراض اوكړي چي په شمائل كې مشهور روايت دى حفصه رضي الله عنها وائي چي د رسول الله بستره د ټاټ نه جوړه شوي وه. ما يوه ورځ دا بستره لړه تازه كړه رسول الله راته اوفرمائيل داسي دي ولي كړي دي دي خو زه دسحر پاڅيدو نه وويستم دينه معلومه شوه چي درسول الله بستره د ټاټ نه جوړه وه او دپورتني حديث نه معلوميږي چي دكجورو دپاڼړو نه ډكه شوي وه؟

جواب د رسول الله سره پدغه وخت كي دكجورو دپاڼړو والابستره وه او په نورو وختونو كي به يي د ټاټ بستره استعمالوله.

***************

## ۲۸_ بَاب مَا جَاءَ فِي الْقُمُصِ

### دقميصونوبيان

۱۷۶۲_حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ حُمَيْدٍ الرَّازِيُّ، حَدَّثَنَا أَبُو تُمَيْلَةَ، وَالْفَضْلُ بْنُ مُوسَى، وَزَيْدُ بْنُ حُبَابٍ، عَنْ عَبْدِ الْمُؤْمِنِ بْنِ خَالِدٍ، عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ بُرَيْدَةَ، عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ، قَالَتْ: "كَانَ أَحَبَّ الثِّيَابِ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْقَمِيصُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ. إِنَّمَا نَعْرِفُهُ مِنْ حَدِيثِ عَبْدِ الْمُؤْمِنِ بْنِ خَالِدٍ، تَفَرَّدَ بِهِ وَهُوَ مَرْوَزِيٌّ، وَرَوَى بَعْضُهُمْ هَذَا الْحَدِيثَ عَنْ أَبِي تُمَيْلَةَ، عَنْ عَبْدِ الْمُؤْمِنِ بْنِ خَالِدٍ، عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ بُرَيْدَةَ، عَنْ أُمِّهِ، عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ. [1]

**ترجمه** دام سلمه رضي الله عنها نه روايت دى چي د رسول الله صلي الله عليه وسلم په جامو كي قميص زيات خوښ وو (يعني دلنګ او څادر په ځايي يي لنګ اوقميص زيات خوښ وو امام ترمذي وايي. داحديث حسن غريب دي دا مونږ ته صرف دعبدالمؤمن بن خالد په روايت رارسيدلي دي او ددي روايت په نقل كولو كي منفرد دي عبدالمومن مروزي دي. بعضي راويانو دا حديث په دي سند نقل كړي دي عن ابي تميلة عن عبدالمؤمن بن خالد عن عبدالله بن بريده عن امه عن ام سلمة

**لغات:** القميص معني كميس جمع يي اقمصة او قمص او قمصان راځي

**تشريح** : "كان احب الثياب الي رسول الله القميص" يعني په تمام لباس كي قميص درسول الله ډير خوښ وو په اهل رسالت كي دعربو لباس به ددوه څادرونو نه جوړ وو يو څادر دلاندي او بل دپاسه او يوقميص زين الدين عراقي وائي چي قميص اغوستل مندوب او بهتر دي. ملا

---

[1] _ سنن ابي داود_ اللباس ۳ (۴۰۲۵) . سنن ابن ماجه_ اللباس ۸ (۳۵۷۵) . (تحفة الأشراف : ۱۸۱۶۹)

علي قاري وائي چي دا ستر لره زيات پټونکی دی او په بدن باندي هم سپك وي او په اغوستو کې يې تواضع هم ده

***************

١٧٦٣_حَدَّثَنَا زِيَادُ بْنُ أَيُّوبَ الْبَغْدَادِيُّ، حَدَّثَنَا أَبُو تُمَيْلَةَ، عَنْ عَبْدِ الْمُؤْمِنِ بْنِ خَالِدٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ بُرَيْدَةَ، عَنْ أُمِّهِ، عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ، قَالَتْ: " كَانَ أَحَبَّ الثِّيَابِ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْقَمِيصُ ". قَالَ: وسَمِعْت مُحَمَّدَ بْنَ إِسْمَاعِيل، يَقُولُ: حَدِيثُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ بُرَيْدَةَ، عَنْ أُمِّهِ، عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ أَصَحُّ، وَإِنَّمَا يُذْكَرُ فِيهِ أَبُو تُمَيْلَةَ، عَنْ أُمِّهِ. (١)

**ترجمه** دام سلمه رضي الله عنها نه روايت دی چي د رسول الله صلي الله عليه وسلم په جامو کې قميص زيات خوښ وو (يعني دلنګ او څادر په څايي يی لنګ اوقميص زيات خوښ وو

امام ترمذي وايي: دامام بخاري نه مي اوريدلي دي عبدالله بن بريده چي دخپلي مور په واسطه کوم حديث دام سلمه نه نقل کړي دي دا زيات صحيح روايت دي. او ابو تميله به په دي حديث کي عن امه واسطه ضرور بيانوله.

***************

١٧٦٤_حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ، أَخْبَرَنَا الْفَضْلُ بْنُ مُوسَى، عَنْ عَبْدِ الْمُؤْمِنِ بْنِ خَالِدٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ بُرَيْدَةَ، عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ، قَالَتْ: " كَانَ أَحَبَّ الثِّيَابِ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْقَمِيصُ ".(٢)

**ترجمه** دام سلمه رضي الله عنها نه روايت دی چي د رسول الله صلي الله عليه وسلم په جامو کې قميص زيات خوښ وو (يعني دلنګ او څادر په څايي يی لنګ اوقميص زيات خوښ وو

***************

١٧٦٥_حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ الْحَجَّاجِ الصَّوَّافُ الْبَصْرِيُّ، حَدَّثَنَا مُعَاذُ بْنُ هِشَامٍ الدَّسْتُوَائِيُّ، حَدَّثَنِي أَبِي، عَنْ بُدَيْلِ بْنِ مَيْسَرَةَ الْعُقَيْلِيِّ، عَنْ شَهْرِ بْنِ حَوْشَبٍ، عَنْ أَسْمَاءَ بِنْتِ يَزِيدَ

---

[1] _ سنن ابي داود_ اللباس ٣(٤٠٢٥)، سنن ابن ماجه اللباس ٨(٣٥٧٥) (تحفة الأشراف: ١٨١٦٩)

[2] _ سنن ابي داود_ اللباس ٣(٤٠٢٥)، سنن ابن ماجه اللباس ٨(٣٥٧٥) (تحفة الأشراف: ١٨١٦٩)

بْنِ السَّكَنِ الأَنْصَارِيَّةِ، قَالَتْ: "كَانَ كُمُّ يَدِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى الرُّسْغِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ.[1]

**ترجمه** داسماء بنت يزيد نه هم ددي هم معني روايت مروي دي

امام ترمذي وايي داحديث حسن غريب دي

*************

١٧٦٦_حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ الْجَهْضَمِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الصَّمَدِ بْنُ عَبْدِ الْوَارِثِ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: "كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا لَبِسَ قَمِيصًا، بَدَأَ بِمَيَامِنِهِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَرَوَى غَيْرُ وَاحِدٍ هَذَا الْحَدِيثَ، عَنْ شُعْبَةَ بِهَذَا الإِسْنَادِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ مَوْقُوفًا، وَلَا نَعْلَمُ أَحَدًا رَفَعَهُ غَيْرَ عَبْدِ الصَّمَدِ بْنِ عَبْدِ الْوَارِثِ، عَنْ شُعْبَةَ.[2]

**ترجمه** دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم به كله قميص اغوستلو نو دښي طرف نه به يي شروع كوله.

امام ترمذي وايي : يو څو راويانو دا حديث په سند دشعبه عن ابي هريرة موقوفا نقل كړي دي، دشعبه نه روايت كونكو كي دعبدالصمد بن عبدالوارث نه علاوه مونږ ته بل څوك داسي نه دي معلوم چي دا يي مرفوع نقل كړي وي.

*************

## ٢٩_ بَاب مَا يَقُولُ إِذَا لَبِسَ ثَوْبًا جَدِيدًا

### د نوي جامي اغوستلو وخت كي كومه دعا ونيل پكار دي

١٧٦٧_حَدَّثَنَا سُوَيْدُ بْنُ نَصْرٍ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ الْمُبَارَكِ، عَنْ سَعِيدٍ الْجُرَيْرِيِّ، عَنْ أَبِي نَضْرَةَ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ، قَالَ: "كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا اسْتَجَدَّ ثَوْبًا سَمَّاهُ بِاسْمِهِ، عِمَامَةً، أَوْ قَمِيصًا، أَوْ رِدَاءً، ثُمَّ يَقُولُ: اللَّهُمَّ لَكَ الْحَمْدُ، أَنْتَ كَسَوْتَنِيهِ، أَسْأَلُكَ خَيْرَهُ وَخَيْرَ مَا صُنِعَ لَهُ، وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ شَرِّهِ وَشَرِّ مَا صُنِعَ لَهُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَفِي الْبَاب، عَنْ عُمَرَ، وَابْنِ عُمَرَ.[3]

---

[1] _ سنن ابي داود_ اللباس ٣ (٤٠٢٧). (تحفة الأشراف: ١٥٧٦٥)

[2] _ تفرد بذكره المؤلف وأخرجه النسائي في الكبرى. (تحفة الأشراف: ١٢٣٩٩)

[3] _ سنن ابي داود_ اللباس ١ (٤٠٢٠). سنن النسائي_ عمل اليوم والليلة ١١٨ (٣٠٩). (تحفة الأشراف: ٤٣٢٦). واحمد في المسند (٣_ ٣٠، ٥٠)

**ترجمه** دابوسعيد خدري رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله صلي الله عليه وسلم چې به نوی جامه واغوسته نو دهغی نوم به يې واخستو، مثلا قميص يا پټکی ، يا څادر او دا دعا به يې اوکړه، يا الله تول تعريفونه ستادي، تا راته دا جامه راکړه ستا نه ددی بهتري غواړم او دهغه کار بهتري غواړم په کوم غرض چې دا جامه جوړه شوی ده. او ددی دبدی نه او د کوم دپاره چې دا جوړه شوی ده ستا پناه غواړم،

امام ترمذي وايي داحديث حسن غريب صحيح دي او په دې باب کې دعمر او ابن عمر رضي الله عنهما نه هم احاديث وارد دي

**لغات**: استجد ، معني نوي شو يا نوي کوا، تجدد نوي کيدل

صنع دفتح نه صنعا او صُنعا جوړول عمامه، حوض، قلعه ، صنع اليدين، په کاريګرۍ کې مهارت.

**تشريح**: غرض داچي دنوي لباس اغوستو په وخت کې دا دعا مسنون ده او وئيل يې پکار دي چي الله راته دا نعمت راکړی دی ددي شکر ادا کړی شي چي ناشکري يې اونکړی شي

****************

حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ يُونُسَ الْكُوفِيُّ، حَدَّثَنَا الْقَاسِمُ بْنُ مَالِكٍ الْمُزَنِيُّ، عَنِ الْجُرَيْرِيِّ نَحْوَهُ. وَهَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ صَحِيحٌ. [1]

**ترجمه**: دجريري نه هم ددي هم معني روايت مروي دي

امام ترمذي وايي : دا حديث حسن غريب صحيح دي.

****************

## ٣٠_ باب مَا جَاءَ فِي لُبْسِ الْجُبَّةِ وَالْخُفَّيْنِ

### دجبې او موزو اغوستلو بيان

---

[1] _ سنن ابي داود_ اللباس ١ (٤٠٢٠). سنن النسائي_ عمل اليوم والليلة ١١٨ (٣٠٩) . (تحفة الأشراف : ٤٣٢٦) و احمد في المسند (٣_٣٠، ٥٠)

١٧٦٨_حَدَّثَنَا يُوسُفُ بْنُ عِيسَى، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، حَدَّثَنَا يُونُسُ بْنُ أَبِي إِسْحَاق، عَنِ الشَّعْبِيِّ، عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " لَبِسَ جُبَّةً رُومِيَّةً ضَيِّقَةَ الْكُمَّيْنِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (١)

**ترجمه** دمغيره بن شعبه رضي الله عنه نه مروي دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم داسي جبه اغوستلي وه چي نستونړي يې تنګ وو.

امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي.

*****************

١٧٦٩_حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي زَائِدَةَ، عَنِ الْحَسَنِ بْنِ عَيَّاشٍ، عَنْ أَبِي إِسْحَاق هُوَ الشَّيْبَانِيُّ، عَنِ الشَّعْبِيِّ، قَالَ: قَالَ الْمُغِيرَةُ بْنُ شُعْبَةَ " أَهْدَى دِحْيَةُ الْكَلْبِيُّ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خُفَّيْنِ فَلَبِسَهُمَا ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَقَالَ إِسْرَائِيلُ، عَنْ عَامِرٍ وَجُبَّةً فَلَبِسَهُمَا حَتَّى تَخَرَّقَا لَا يَدْرِي النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَذَكِيٌّ هُمَا أَمْ لَا وَهَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ. وَأَبُو إِسْحَاق اسْمُهُ سُلَيْمَانُ، وَالْحَسَنُ بْنُ عَيَّاشٍ هُوَ أَخُو أَبِي بَكْرِ بْنِ عَيَّاشٍ. (٢)

**ترجمه** : دمغيره بن شعبه رضي الله عنه بيان دي فرمائي چي دحيه كلبي رسول الله صلي الله عليه وسلم ته دوه موزي په تحفه كي ليږلي وي چنانچي رسول الله صلي الله عليه وسلم واغوستلي

امام ترمذي وايي : داحديث حسن غريب دي، اسرائيل پخپل روايت كي وائي چي يوه جبه يې هم ليږلي وه رسول الله صلي الله عليه وسلم دا دواړه موزي هغه وخته پوري اغوستلي چي كله اوشليدلي رسول الله صلي الله عليه وسلم ته دا معلومه نه وه چي دا دذبح شوي څاروي دڅرمي نه جوړي دي او كه دغير مذبوح ، دابو اسحاق سبيعي نوم سليمان دي دحسن بن عياش دابوبكر بن عياش ورور دي.

*****************

## ٣١_ باب مَا جَاءَ فِي شَدِّ الأَسْنَانِ بِالذَّهَبِ

**په سرو زرو دغاښونو ترلو بيان**

---

[1] _ تفرد بذكره المؤلف (تحفة الأشراف : ١١٥١٦)

[2] _ تفرد به المؤلف. (تحفة الأشراف : ١١٥١٦)

١٧٧٠ـ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ هَاشِمِ بْنِ الْبَرِيدِ، وَأَبُو سَعْدٍ الصَّغَانِيُّ، عَنْ أَبِي الأَشْهَبِ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ طَرَفَةَ، عَنْ عَرْفَجَةَ بْنِ أَسْعَدَ، قَالَ: " أُصِيبَ أَنْفِي يَوْمَ الْكُلاَبِ فِي الْجَاهِلِيَّةِ فَاتَّخَذْتُ أَنْفًا مِنْ وَرِقٍ فَأَنْتَنَ عَلَيَّ، فَأَمَرَنِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ أَتَّخِذَ أَنْفًا مِنْ ذَهَبٍ ". حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ، حَدَّثَنَا الرَّبِيعُ بْنُ بَدْرٍ، وَمُحَمَّدُ بْنُ يَزِيدَ الْوَاسِطِيُّ، عَنْ أَبِي الأَشْهَبِ نَحْوَهُ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ. إِنَّمَا نَعْرِفُهُ مِنْ حَدِيثِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ طَرَفَةَ. وَقَدْ رَوَى سَلْمُ بْنُ زَرِيرٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ طَرَفَةَ نَحْوَ حَدِيثِ أَبِي الأَشْهَبِ. وَقَدْ رَوَى غَيْرُ وَاحِدٍ مِنْ أَهْلِ الْعِلْمِ " أَنَّهُمْ شَدُّوا أَسْنَانَهُمْ بِالذَّهَبِ ". وَفِي الْحَدِيثِ حُجَّةٌ لَهُمْ. وَقَالَ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ سَلْمُ بْنُ زَرِينٍ وَهُوَ وَهْمٌ وَزَرِيرٌ أَصَحُّ. وَأَبُو سَعْدٍ الصَّغَانِيُّ اسْمُهُ مُحَمَّدُ بْنُ مُيَسَّرٍ. ([1])

**ترجمه** : دعرفجه بن اسعد رضي الله عنه بیان دي فرمائي چي دکلاب په جنگ کي زما پوزه کټ کړي شوه نو ما دسپینو زرو یوه پوزه اولګوله نو هغي بد بوي شروع کړو نو په دي وجه رسول الله صلي الله علیه وسلم ماته دسرو زرو د پوزي لګولو حکم اوکړو په دي سند سره هم دابو اشهب نه ددي هم معني روایت مروي دي.

امام ترمذي وایي : داحدیث حسن غریب دي دا مونږ ته صرف دعبدالرحمن بن طرفه په سند رارسیدلي دي او سلیم بن زریر هم دعبدالرحمن بن طرفه نه دابوشهاب دروایت پشان روایت نقل کړي دي، په اهل علمو کي دیو کس نه روایت دي چي هغه خپل غابنونه دسرو زرو په تار ترلي وو او په دي حدیث کي دهغه دپاره دلیل موجود دي، عبدالرحمن بن مهدي دسلیم په ځاي زرین بیان کړي دي دلته ده ته وهم شوي دي زریر زیات صحیح دي او د سعید صعاني نوم محمد بن میسر دي.

****************

## ٣٢ـ بَاب مَا جَاءَ فِي النَّهْيِ عَنْ جُلُودِ السِّبَاعِ

**د درنده ځناورو د څرمن استعمالولو دممانعت بیان**

---

[1] ـ سنن ابي داود ـ الخاتم ٤ (٤٢٣٢)، سنن النسائي ـ الزينة ٤١ (٥١٦٤)، (تحفة الأشراف : ٩٨٩٥)، و احمد في المسند (٥ـ ٢٣)

١٧٧١_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ يَزِيدَ الرِّشْكِ، عَنْ أَبِي الْمَلِيحِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ "نَهَى عَنْ جُلُودِ السِّبَاعِ" وَهَذَا أَصَحُّ. (١)

**ترجمه** ابو المليح دخپل پلار نه روايت نقل کوي فرمائي چي نبي کريم صلي الله عليه وسلم دخناورو دڅرمن غوړولو نه منع فرمائيلي ده.

امام ترمذي وايي داحديث دنورو روايتونو په نسبت زيات صحيح دي

***************

## ٣٣_ بَابُ مَا جَاءَ فِي نَعْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

### درسول الله دپيزار بيان

١٧٧٢_حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ، حَدَّثَنَا هَمَّامٌ، عَنْ قَتَادَةَ، قَالَ: قُلْتُ لِأَنَسِ بْنِ مَالِكٍ: كَيْفَ كَانَ نَعْلُ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟، قَالَ لَهُمَا: "قِبَالَانِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (٢)

**ترجمه** دقتاده بيان دي فرمائي چي ما دانس رضي الله عنه نه درسول الله صلي الله عليه وسلم دپيزارباره کي تپوس اوکړونو ويي فرمائيل دهغي دوه تسمي وي.

امام ترمذي وايي : داحديث حسن صحيح دي او په دي باب کي د ابن عباس او ابوهريره رضي الله عنهما نه هم احاديث وارد دي.

***************

١٧٧٣_حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ مَنْصُورٍ، أَخْبَرَنَا حَبَّانُ بْنُ هِلَالٍ، حَدَّثَنَا هَمَّامٌ، حَدَّثَنَا قَتَادَةُ، عَنْ أَنَسٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "كَانَ نَعْلَاهُ لَهُمَا قِبَالَانِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ. (٣)

---

[1] _ سنن ابي داود_ اللباس ٤٣ (٤١٣٢) . سنن النسائي_ الفرع والعتيرة ٤ (٤٢٥٨) . (تحفة الأشراف : ١٢١) . واحمد في المسند ٥_ ٤٣، ٤٥)

[2] _ اخرجه البخاري في الصحيح_ اللباس ٤١ (٥٨٥٧) . (وانظر أيضا: الخمس رقم ٣١٠٧) سنن ابي داود_ اللباس ٤٤ (٤١٣٤) . سنن ابن ماجه_ اللباس ٢٧ (١٦١٥) . (تحفة الأشراف : ١٣٩٢) . واحمد في المسند (٣_ ١٢٢، ٢٠٣، ٢٢٥، ٢٦٩)

[3] _ اخرجه البخاري في الصحيح_ اللباس ٤١ (٥٨٥٧) . (وانظر أيضا: الخمس رقم ٣١٠٧) سنن ابي داود_ اللباس ٤٤ (٤١٣٤) . سنن ابن ماجه_ اللباس ٢٧ (١٦١٥) . (تحفة الأشراف : ١٣٩٢) . واحمد في المسند (٣_ ١٢٢، ٢٠٣، ٢٢٥، ٢٦٩)

**ترجمه** دانس رضي الله عنه بيان دي فرماني چي درسول الله صلي الله عليه وسلم دپيزار دوه تسمي وي
امام ترمذي وايي . په دي باب کي دابن عباس او ابوهريره رضي الله عنهما نه هم احاديث وارد دي

***************

## ٣٤_ باب مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ الْمَشْيِ فِي النَّعْلِ الْوَاحِدَةِ
## په يو پيزار کي دتلو دکراهت بيان

١٧٧٤_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، عَنْ مَالِكٍ. ح وحَدَّثَنَا الأَنْصَارِيُّ، حَدَّثَنَا مَعْنٌ، حَدَّثَنَا مَالِكٌ، عَنْ أَبِي الزِّنَادِ، عَنِ الأَعْرَجِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "لَا يَمْشِي أَحَدُكُمْ فِي نَعْلٍ وَاحِدَةٍ لِيُنْعِلْهُمَا جَمِيعًا أَوْ لِيُحْفِهِمَا جَمِيعًا". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ جَابِرٍ. ([1])

**ترجمه** : ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دی چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي هيڅوك دی په يو پيزار کي نه گرځي يا دی دواړه پڅپو کوي او يا دی دواړه اوباسي
امام ترمذي وايي : داحديث حسن صحيح دي او په دي باب کي دجابر رضي الله عنه نه هم روايت وارد دي.

**لغات** : نعل ينعل نعلا معني پيزار اغوستل ، تنعل او انتعل معني پيزار يي واغوستل، الثوب معني جامي يي دڅپو نه لاندي کړي ، انتعل الارض پيدل سفر يي وکړو ، نعل مصدر دي پيزار ته ويلي شي

**تشريح**: چي په يوه ځپه کي پيزار وي او په بله کي نه وي دفقهاؤ په نزد داسي گرځيدل مکروه تنزيهي دي علماؤ ددي حديث دا مطلب بيان کړی دی چي داسي گرځيدل دانساني وقار دشرافت خلاف دي ، دويمه دا چي په داسي گرځيدلو سره هغه توازون کوم چي دگرځيدو دپاره

[1] _ اخرجه البخاري في الصحيح_ اللباس ٤٠ (٥٨٥٥) . صحيح مسلم_ اللباس ١٩ (٢٠٩٧) . سنن ابي داود_ اللباس ٤٢ (٤١٣٦) . سنن النسائي_ اللباس ٢٩ (١٦١٧) . (تحفة الأشراف : ١٣٨٠٠) . و احمد في المسند (٢_ ٢٤٥، ٣١٤) (وانظر أيضا: سنن ابي داود_ اللباس ١٩ (٢٠٩٨) . وسنن النسائي_ الزينة ١١٧ (٥٣٧١) . والمؤطاء اللباس ٧ (١٤) . و احمد في المسند (٢_ ٢٥٣، ٤٢٤، ٤٧٧، ٤٨٠، ٥٢٨)

پکار دی باقي نه پاتي کيږي ، دريم دا چي دداسي کار کولو په وجه به خلقو ته داستهزاء او مسخرو کولو موقعه په لاس ورشي

***************

## ٣٥ـ باب مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ أَنْ يَنْتَعِلَ الرَّجُلُ وَهُوَ قَائِمٌ

### په ولاړه دپيزار دخپو کولو دکراهت بيان

١٧٧٥ـحَدَّثَنَا أَزْهَرُ بْنُ مَرْوَانَ الْبَصْرِيُّ، حَدَّثَنَا الْحَارِثُ بْنُ نَبْهَانَ، عَنْ مَعْمَرٍ، عَنْ عَمَّارِ بْنِ أَبِي عَمَّارٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: " نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يَنْتَعِلَ الرَّجُلُ وَهُوَ قَائِمٌ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ وَرَوَى عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عَمْرٍو الرَّقِّيُّ هَذَا الْحَدِيثَ، عَنْ مَعْمَرٍ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَنَسٍ وَكِلَا الْحَدِيثَيْنِ لَا يَصِحُّ عِنْدَ أَهْلِ الْحَدِيثِ، وَالْحَارِثُ بْنُ نَبْهَانَ لَيْسَ عِنْدَهُمْ بِالْحَافِظِ، وَلَا نَعْرِفُ لِحَدِيثِ قَتَادَةَ، عَنْ أَنَسٍ أَصْلًا. [1]

**ترجمه** : دجابررضي الله عنه نه روايت دی چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي خوك دي په ولاړه پيزار نه پخپو کوي.

امام ترمذي وايي : داحديث غريب دي عبيدالله بن عمر ورقي داحديث دمعمرو نه او معمرو دقتاده نه او قتاده دانس نه نقل کړي دي او دا دواړه احاديث دمحدثينو په نزد صحيح نه دي، دحارث بن نبهان حافظه دمحدثينو په نزد قوي نه ده او دانس نه دقتاده نقل کړي حديث هيڅ اصل مونږ ته معلوم نه دي.

**لغات** : نهي فعل ماضي ده په معني دمنع کولو ، ينتعل فعل مضارع ده دباب افتعال نه معني يي پيزار اغوستل نعل يي مجرد دي دباب فتح او کرم نه راځي.

**تشريح**: په پورتني حديث کښ دپيزار خپو کولو اداب بيان شوي دي چي سړي لره پکار دي چي پيزار به په ناسته پخپو کوي او که خوك يي په ولاړه خپو کړي نو دا ممانعت به په هغه صورت کښ وي کله چي يي په ولاړه خپو کول مشکل وي علماؤ دا کراهت په تنزيهي کراهت حمل کړی دی.

***************

---

[1] ـ تفرد بذكره المؤلف وانظر: سنن ابن ماجه ـ اللباس ٢٩ (٣٦١٨) . (تحفة الأشراف : ١٤٦٣)

١٧٧٦_حَدَّثَنَا أَبُو جَعْفَرٍ السِّمْنَانِيُّ، حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ عُبَيْدِ اللهِ الرَّقِّيُّ، حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللهِ بْنُ عَمْرٍو الرَّقِّيُّ، عَنْ مَعْمَرٍ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَنَسٍ، أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "نَهَى أَنْ يَنْتَعِلَ الرَّجُلُ وَهُوَ قَائِمٌ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ، وقَالَ مُحَمَّدُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ: وَلَا يَصِحُّ هَذَا الحَدِيثُ، وَلَا حَدِيثُ مَعْمَرٍ، عَنْ عَمَّارِ بْنِ أَبِي عَمَّارٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ. ([1])

**ترجمه** د انس رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي خوك دي په ولاړه پيزار نه پخپو کوي

امام ترمذي وايي داحديث غريب دي، امام بخاري وائي داحديث صحيح نه دي او نه دمعمرو هغه حديث صحيح دي کوم چې هغه دعمار بن ابي عمار نه نقل کوي او هغه يې دابوهريره نه نقل کوي.

*****************

## ٣٦_ بَابُ مَا جَاءَ مِنَ الرُّخْصَةِ فِي الْمَشْيِ فِي النَّعْلِ الْوَاحِدَةِ

### په يو پيزار کې دتلودرخصت بيان

١٧٧٧_حَدَّثَنَا القَاسِمُ بْنُ دِينَارٍ، حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ مَنْصُورٍ السَّلُولِيُّ كُوفِيٌّ، حَدَّثَنَا هُرَيْمُ بْنُ سُفْيَانَ الْبَجَلِيُّ الْكُوفِيُّ، عَنْ لَيْثٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الْقَاسِمِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: "رُبَّمَا مَشَى النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي نَعْلٍ وَاحِدَةٍ". ([2])

**ترجمه** دام المؤمنين عائشه رضي الله عنها نه مروي دي فرمائي چې ډير کرته به رسول الله صلي الله عليه وسلم په يو پيزار کې تللو.

*****************

١٧٧٨_حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الْقَاسِمِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ "أَنَّهَا مَشَتْ بِنَعْلٍ وَاحِدَةٍ". وَهَذَا أَصَحُّ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَكَذَا رَوَاهُ وَغَيْرُ وَاحِدٍ سُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الْقَاسِمِ مَوْقُوفًا وَهَذَا أَصَحُّ. ([3])

---

[1] _ تفرد بذكره المؤلف (تحفة الأشراف: ١٣٢٠)

[2] _ تفرد بذكره المؤلف (تحفة الأشراف: ١٦٥١٦)

[3] _ تفرد بذكره المؤلف (تحفة الأشراف: ١٦٢٨٩)

**ترجمه** دام المؤمنين عائشه رضي الله عنها متعلق مروي دي چي په يو پيزار کي به گرځيدله

امام ترمذي وايي دارروايت زيات صحيح دي سفيان ثوري او نورو راويانو په همدي مضمون دا حديث دعبدالرحمن بن قاسم په واسطه موقوف نقل کړي دي او دا موقوف زيات صحيح دي

***************

## ٣٧_ بَابُ مَا جَاءَ بِأَيِّ رِجْلٍ يَبْدَأُ إِذَا انْتَعَلَ

### دپيزار خپو کولو وخت کي به کومه خپه مخکي کوي

١٧٧٩ حَدَّثَنَا الأَنْصَارِيُّ، حَدَّثَنَا مَعْنٌ، حَدَّثَنَا مَالِكٌ، ح وحَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ أَبِي الزِّنَادِ، عَنِ الأَعْرَجِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "إِذَا انْتَعَلَ أَحَدُكُمْ فَلْيَبْدَأْ بِالْيَمِينِ وَإِذَا نَزَعَ فَلْيَبْدَأْ بِالشِّمَالِ فَلْتَكُنِ الْيُمْنَى أَوَّلَهُمَا تُنْعَلُ وَآخِرَهُمَا تُنْزَعُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. ([1])

**ترجمه** : ابوهريره رضي الله عنه روايت کوي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل چي کله تاسو کي څوك پيزار په خپو کول غواړي نو دښي طرف نه دي شروع اوکړي او چي کله پيزار اوباسي نو گسه خپه دي مخکي اوباسي. پکار ده چي په خپو کولو کي ښئ خپه مخکي وي او په ويستلو کي روستو وي.

امام ترمذي وايي : داحديث حسن صحيح دي.

**لغات** : الشمال: گس طرف ، يا بد عادت ، سيرت او طبيعت ته هم ونيلي شي جمع يي شمائل راځي ، لکه چي ويلي شي ، ليس من شمالي ان اعمل بشمالي ، يعني په گس لاس کار کول زما عادت ندي.

**تشريح**: نووي وائي چي شاندار کار دښئ طرف نه شروع کول مستحب دي په حديث کي ددي مثال دا ورکړی شوی دی چي کله سړی پيزار پخپو کوي نو ښئ خپه دي مخکي کړي خکه چي پيزار خپو کول سړي لره دتکليف نه بچ کوي

اود ويستلو په وخت کي گسه خپه مخکي کول پکار دي په دي باره کي ملا علي قاري

---

[1] _ البخاري_ اللباس ٣٩ (٥٨٥٤) . سنن ابي داود_ اللباس ٤٤ (٤١٣٩) . ابن ماجه_ اللباس ٢٨ (٣٦١٦) . (تحفة الأشراف : ١٣٨١٤) . والموطاء اللباس ٧ (١٥) . واحمد في المسند (٢_ ٢٨٣. ٤٣٠. ٤٦٥)

ليكلي دي چي دچپي خپي نه مخکې ويستل خکه پکار دي چي پيزار په ښي خپه کې دچپي په نسبت زيات پاتي شي په دي کې هم دښي خپي تعظيم دی. ددي برعکس مثال داسي دی چي سړی کله په بيت الخلاء ته داخليږي، اول به چپه خپه ورمخکې کوي او بيا چي کله راوخي نو ښي خپه به مخکې راوباسي په دي کې هم دښي خپي تعظيم دی

***************

## ۳۸_ باب مَا جَاءَ فِي تَرْقِيعِ الثَّوْبِ

## په جامو کي دپيوند لګولو بيان

۱۷۸۰_حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ مُوسَى، حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ مُحَمَّدٍ الوَرَّاقُ، وَأَبُو يَحْيَى الحِمَّانِيُّ، قَالَا: حَدَّثَنَا صَالِحُ بْنُ حَسَّانَ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: "قَالَ لِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أَرَدْتِ اللُّحُوقَ بِي فَلْيَكْفِكِ مِنَ الدُّنْيَا كَزَادِ الرَّاكِبِ وَإِيَّاكِ وَمُجَالَسَةَ الأَغْنِيَاءِ وَلَا تَسْتَخْلِقِي ثَوْبًا حَتَّى تُرَقِّعِيهِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ صَالِحِ بْنِ حَسَّانَ قَالَ: وَسَمِعْت مُحَمَّدًا يَقُولُ: صَالِحُ بْنُ حَسَّانَ مُنْكَرُ الحَدِيثِ، وَصَالِحُ بْنُ أَبِي حَسَّانَ الَّذِي رَوَى عَنْهُ ابْنُ أَبِي ذِئْبٍ ثِقَةٌ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَمَعْنَى قَوْلِهِ وَإِيَّاكِ وَمُجَالَسَةَ الأَغْنِيَاءِ عَلَى نَحْوِ مَا رُوِيَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ قَالَ: "مَنْ رَأَى مَنْ فُضِّلَ عَلَيْهِ فِي الخَلْقِ وَالرِّزْقِ فَلْيَنْظُرْ إِلَى مَنْ هُوَ أَسْفَلَ مِنْهُ مِمَّنْ فُضِّلَ هُوَ عَلَيْهِ، فَإِنَّهُ أَجْدَرُ أَنْ لَا يَزْدَرِيَ نِعْمَةَ اللَّهِ عَلَيْهِ" وَيُرْوَى عَنْ عَوْنِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُتْبَةَ قَالَ: "صَحِبْتُ الأَغْنِيَاءَ فَلَمْ أَرَ أَحَدًا أَكْبَرَ هَمًّا مِنِّي أَرَى دَابَّةً خَيْرًا مِنْ دَابَّتِي وَثَوْبًا خَيْرًا مِنْ ثَوْبِي، وَصَحِبْتُ الفُقَرَاءَ فَاسْتَرَحْتُ".[1]

**ترجمه** دام المؤمنين عائشه رضي الله عنها بيان دي فرمائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم ماته اوفرمائيل که ته په اخرت کي ماسره يوخاي پاتي کيدل غواړي نو په دنيا کي دمسافر دسامان په مقدار سامان باندي اکتفاء کوه په دي باندي وخت تيروه او دمالداره خلقو دصحبت نه خان ساته او يوه جامه هغه وخته پوري زړه مه ګڼړه ترڅو چي دي په دي کي پيوند لګولي نه وي

امام ترمذي وايي داحديث غريب دي دا مونږ ته صرف دصالح بن حسان په سند رارسيدلي دي، دامام بخاري نه مي اوريدلي دي صاح بن حسان منکرالحديث دي، او صالح بن ابي

[1] _ سنن ابي داود_ الترجل ١٣ (٤١٩١) . سنن ابن ماجه_ اللباس ٣٦ (٣٦٣١) . (تحفة الأشراف : ١١٨٠١)

حسان د چانه چي ابن ابي ذئب نقل دروايت كوي ثقه دي ، او دارشاد نبوي "واياك ومجالسة الاعنياء" مطلب دادي څنګه چي دابوهريره نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي څوك چي داسي كس اوويني چاته چي الله تعالي په شكل او رزق كي په ده باندي فضيلت وركړي وي نو ده لره پكار دي چي دخان نه لاندي انسان ته اوګوري په چا باندي چي ده ته فضيلت وركړي شوي دي خكه چي دده دپاره مناسب ده چي كوم نعمتونه وربانډي شوي دي دهغي تحقير اونكړي، او دعون بن عبدالله بن عتبه نه مروي دي زه دمالدارو سره پاتي شوم نو دځان نه مي زيات غمژن بل څوك اونه موندلو ما به دخپلي سورلئ نه ښي سورلئ ليدلي او دخلقو سره به مي دخپلو جامو نه ښي جامي ليدلي خو چي دفقيرانو سره يوځاي شوم نو خوشحالي مي اوليدله.

*****************

## ٣٩_ باب دخول النبي صلي الله عليه وسلم مكة

### مكي ته درسول الله صلي الله عليه وسلم د داخليدو بيان

١٧٨١_حَدَّثَنِي ابْنُ أَبِي عُمَرَ. حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ. عَنِ ابْنِ أَبِي نَجِيحٍ. عَنْ مُجَاهِدٍ. عَنْ أُمِّ هَانِئٍ قَالَتْ: " قَدِمَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَكَّةَ وَلَهُ أَرْبَعُ غَدَائِرَ " قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ. قَالَ مُحَمَّدٌ: لَا أَعْرِفُ لِمُجَاهِدٍ سَمَاعًا مِنْ أُمِّ هَانِئٍ.

حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ. حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ. حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ نَافِعٍ الْمَكِّيُّ. عَنِ ابْنِ أَبِي نَجِيحٍ. عَنْ مُجَاهِدٍ. عَنْ أُمِّ هَانِئٍ قَالَتْ: " قَدِمَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَكَّةَ وَلَهُ أَرْبَعُ غَدَائِرَ " أَبُو نَجِيحٍ اسْمُهُ يَسَارٌ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ. وَعَبْدُ اللَّهِ بْنُ أَبِي نَجِيحٍ مَكِّيٌّ. (١)

**ترجمه** دام هاني رضي الله عنها بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم مكي ته په داسي حال كي داخل شو چي څلور كمڅئ يې وې.

امام ترمذي وايي : داحديث غريب دي، امام بخاري وائي دام هاني نه دمجاهد سماع مونږ ته معلومه نه ده

*****************

## ٤٠_ باب كَيْفَ كَانَ كِمَامُ الصَّحَابَةِ

---

١ _ سنن ابي داود_ الترجل ١٢ (٤١٩١) . سنن ابن ماجه_ اللباس ٣٦ (٣٦٣١) . (تحفة الأشراف : ١٨٠١١)

## دصحابه كرامو نستونړي څنګه وو

١٧٨٢ـ حَدَّثَنَا حُمَيْدُ بْنُ مَسْعَدَةَ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ حُمْرَانَ. عَنْ أَبِي سَعِيدٍ وَهُوَ عَبْدُ اللهِ بْنُ بُسْرٍ. قَالَ: سَمِعْتُ أَبَا كَبْشَةَ الأَنْمَارِيَّ يَقُولُ: "كَانَتْ كِمَامُ أَصْحَابِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بُطْحًا" قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ مُنْكَرٌ. وَعَبْدُ اللهِ بْنُ بُسْرٍ بَصْرِيٌّ هُوَ ضَعِيفٌ عِنْدَ أَهْلِ الْحَدِيثِ ضَعَّفَهُ يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ وَغَيْرُهُ. وَبُطْحٌ يَعْنِي وَاسِعَةً. (١)

**ترجمه** : دابوكفشه انماري بيان دي فرمائي چي درسول الله صلي الله عليه وسلم دصحابه كرامو نستونړي به ازاد وو.

امام ترمذي وايي : داحديث منكر دي، عبدالله بن بسر دبصري اوسيدونكي دي او دمحدثينو په نزد ضعيف دي يحیٰ بن سعيد وغيره دده تضعيف كړي دي او بطح ازاد ځيز ته ونيلي شي

***************

## ٤١ـ باب فِي مَبْلَغِ الإِزَارِ

### دلنګاو دپرتوګ دحد بيان

١٧٨٣ـ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا أَبُو الأَحْوَصِ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ مُسْلِمِ بْنِ نَذِيرٍ، عَنْ حُذَيْفَةَ قَالَ: "أَخَذَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِعَضَلَةِ سَاقِي أَوْ سَاقِهِ، فَقَالَ: "هَذَا مَوْضِعُ الإِزَارِ". فَإِنْ أَبَيْتَ فَأَسْفَلَ. فَإِنْ أَبَيْتَ فَلاَ حَقَّ لِلإِزَارِ فِي الْكَعْبَيْنِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ رَوَاهُ الثَّوْرِيُّ وَشُعْبَةُ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ. (٢)

**ترجمه** : دحذيفه بن اليمان رضي الله عنه بيان دي فرمائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم دخپلي پنډئ او كه زما دپنډئ غوښه اونيوله او ويې فرمائيل دا دلنګ يا پرتوګ حد دي او كه په دي خوشحاله نه يې نو لږ يې نور هم كوزولي شي او كه چري ددي نور ښكته كوزول غواړي نو دګيټو نه يې لاندي كوزولي نشي

امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي دا حديث ثوري او شعبه هم دابواسحاق سبيعي نه نقل كړي دي

***************

[1] ـ تفرد بذكره المؤلف (تحفة الأشراف: ١٢١٢٢)

[2] ـ سنن ابن ماجه ـ اللباس، (٣٥٧٢). (تحفة الأشراف: ٣٣٨٣) واحمد في المسند (٥ ـ ٣٨٢، ٣٩٦، ٣٩٨، ٤٠٠، ٤٠١)

## ٤٢_ باب الْعَمَائِمِ عَلَى الْقَلاَنِسِ

## په ټوپۍ باندې دپټکي ترلو بيان

١٧٨٤_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ رَبِيعَةَ، عَنْ أَبِي الْحَسَنِ الْعَسْقَلاَنِيِّ، عَنْ أَبِي جَعْفَرِ بْنِ مُحَمَّدِ بْنِ رُكَانَةَ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّ رُكَانَةَ صَارَعَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَصَرَعَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ رُكَانَةُ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: " إِنَّ فَرْقَ مَا بَيْنَنَا وَبَيْنَ الْمُشْرِكِينَ الْعَمَائِمُ عَلَى الْقَلاَنِسِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ وَإِسْنَادُهُ لَيْسَ بِالْقَائِمِ وَلاَ نَعْرِفُ أَبَا الْحَسَنِ الْعَسْقَلاَنِيَّ، وَلاَ ابْنَ رُكَانَةَ. (1)

**ترجمه** دمحمد بن ركانه نه مروي دي فرمائي چې ركانه درسول الله صلي الله عليه وسلم سره كشتۍ چلوله نورسول الله دا اوچلوله ركانه فرمائي ما درسول الله صلي الله عليه وسلم نه اوريدلي دي چې زمونږ او دمشركانو مينځ كې فرق په ټوپۍ باندې پټكي ترل دي.

امام ترمذي وايي: داحديث غريب دي سند يي قوي نه دي او حسن عسقلاني او ابن ركانه مونږ نه پيژني.

***************

## ٤٣_ باب مَا جَاءَ فِي الْخَاتَمِ الْحَدِيدِ

## داوسپني نه دګوتي جوړولو بيان

١٧٨٥_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ حُمَيْدٍ، حَدَّثَنَا زَيْدُ بْنُ حُبَابٍ، وَأَبُو تُمَيْلَةَ يَحْيَى بْنُ وَاضِحٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مُسْلِمٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ بُرَيْدَةَ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: " جَاءَ رَجُلٌ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَعَلَيْهِ خَاتَمٌ مِنْ حَدِيدٍ فَقَالَ: " مَا لِي أَرَى عَلَيْكَ حِلْيَةَ أَهْلِ النَّارِ ". ثُمَّ جَاءَهُ وَعَلَيْهِ خَاتَمٌ مِنْ صُفْرٍ، فَقَالَ: " مَا لِي أَجِدُ مِنْكَ رِيحَ الأَصْنَامِ ". ثُمَّ أَتَاهُ وَعَلَيْهِ خَاتَمٌ مِنْ ذَهَبٍ، فَقَالَ: " مَالِي أَرَى عَلَيْكَ حِلْيَةَ أَهْلِ الْجَنَّةِ ". قَالَ: مِنْ أَيِّ شَيْءٍ أَتَّخِذُهُ، قَالَ: " مِنْ وَرِقٍ وَلاَ تُتِمَّهُ مِثْقَالاً " قَالَ أَبُو

---

1 _ سنن ابي داود_ اللباس ٢٢ (٤٠٧٨)، (تحفة الأشراف: ٣٦١٣)

عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ، وَفِي الْبَابِ، عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو، وَعَبْدُ اللهِ بْنُ مُسْلِمٍ يُكْنَى أَبَا طَيْبَةَ وَهُوَ مَرْوَزِيٌّ. (١)

**ترجمه**: دبريده رضي الله عنه بيان دي فرمائي چي يو کس رسول الله صلي الله عليه وسلم ته راغلو او داوسپني گوته يي په لاس وه رسول الله اوفرمائيل دجهنميانو زيور دي ولي اچولي دي؟ بيا دا کس په داسي حال کي راغي چي دپيتلو گوته يي په لاس کي وه رسول الله ورته اوفرمائيل ستانه دبتانو بدبويي راځي نو دا کس لاړو او بيا چي راغلو نو دسرو زرو گوته يي په لاس وه رسول الله ورته اوفرمائيل څه خبره ده چي دجنتيانو زيور دي په لاس دي هغه اوونيل نو دڅه نه يي جوړه کړم رسول الله اوفرمائيل دسپينو زرو نه او وزن يي ديو مثقال نه کم پکار دي

امام ترمذي وايي: داحديث غريب دي په دي باب کي دعبدالله بن عمرو نه هم روايت وارد دي او دعبدالله بن مسلم اسم کنيه ابوطيبه دي او هغه عبدالله بن مسلم مروزي دي.

****************

## ٤٤_ بَاب كَرَاهِيَةِ التَّخَتُّمِ فِي أُصْبُعَيْنِ

### په دوه گوتو کي دگوتمو اچولو دکراهت بيان

١٧٨٦_ حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ عَاصِمِ بْنِ كُلَيْبٍ، عَنِ ابْنِ أَبِي مُوسَى، قَالَ: سَمِعْتُ عَلِيًّا يَقُولُ: نَهَانِي رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْقَسِّيِّ وَالْمِيثَرَةِ الْحَمْرَاءِ وَأَنْ أَلْبَسَ خَاتَمِي فِي هَذِهِ وَفِي هَذِهِ وَأَشَارَ إِلَى السَّبَّابَةِ وَالْوُسْطَى. (٢)

**ترجمه**: دعلي رضي الله عنه نه مروي دي فرمائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم زه د قسي (ريشمي) جامو اغوستلو نه او د ميسره (سرو جامو) اغوستلو نه او ددي کار نه منع کړي يم چي په دي او دي کي گوتمه واچوم او شهادت او مينځنۍ گوتي ته يي اشاره اوکړه

امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي.

****************

---

1 _ ابي داود_ الخاتم ٤ (٤٢٢٣). سنن النسائي_ الزينة ٤٦ (٥١٩٨). (تحفة الأشراف: ١٩٨٢). و احمد في المسند (٥. ٣٥٩)

2 _ صحيح مسلم_ اللباس ١٦ (٢٠٨٧). والذكر ١٨ (٢٧٢٥). سنن ابي داود_ الخاتم ٤ (٤٢٢٥). سنن النسائي_ ٥٢ (٥٢١٣). ٧٩ (٥٢٨٨). و ١٣١ (٥٣٧٨). سنن ابن ماجه_ اللباس ٤٣ (٣٦٤٨). (تحفة الأشراف: ١٠٣١٨). و احمد في المسند (١_ ٨٨. ١٣٤. ١٣٨)

## ٤٥_ باب مَا جَاءَ فِي أَحَبِّ الثِّيَابِ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

### درسول الله د محبوب ترين لباس بيان

**١٧٨٧_حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا مُعَاذُ بْنُ هِشَامٍ، حَدَّثَنِي أَبِي، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَنَسٍ قَالَ: كَانَ أَحَبَّ الثِّيَابِ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَلْبَسُهَا الحِبَرَةُ. قال أبو عيسى هذا حديث حسن صحيح غريب.** [1]

**ترجمه** دانس رضي الله عنه نه مروي دي چي درسول الله محبوب ترين لباس كوم چي به يي اغوستلو يو كرخو والا يمني څادر وو.

امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح غريب دي.

*******************

## كتاب الأطعمة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم

### دخوراكونو احكام او مسائل

د سنت نبوي د اتباع متعلق نصوص قاطعه په كثرت سره وارد دي په طور د نمونې دا ارشاد نبوي ذكر كوو:

**وَقَالَ تَعَالَى: ﴿ لَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِي رَسُولِ اللَّهِ أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ لِمَنْ كَانَ يَرْجُو اللَّهَ وَالْيَوْمَ الْآخِرَ ﴾ [الأحزاب:٢١]**

**يقينا شته دي ستاسو دپاره په رسول الله نمونه دخائسته ژوند ، دادهغه چا دپاره چي ايمان لري په الله تعالى او په ورځ وروستنۍ.**

"اسوة" په معني دقدوة سره يعني هغه طريقه دكومي چه اقتداء كولے شي. مطلب دادے چه درسول الله صلي الله عليه وسلم په حيات طيبه كښي ستاسو دپاره په هر اړخ كښي خصائل حميده موجود دي كوم چه ستاسو دپاره واجب العمل وي.

يا دا مطلب دے چه رسول الله صلي الله عليه وسلم ستاسو مقتداء دے او ستاسو دپاره دهغه اقتداء كول زيات مناسب دي.

لمن كان يرجوالله واليوم الاخر. ابن مسعود رضي الله عنه ددي ايت مطلب داسي بيان كړے دے چه درسول الله صلي الله عليه وسلم اقتداء په هغه چا لازم ده څوك چه داخرت دورځي اميد لري يعني دالله نه دثواب او دهغه دملاقات او داخرت دنعمتونو اميدوار وي.

دمقاتل قول دے چه يرجو دخوف په معني دے اومطلب يي دادے څوك چه دالله تعالي نه يريږي او

---

[1] _ اخرجه البخاري في الصحيح_ اللباس ١٨ (٥٨١٢). صحيح مسلم_ اللباس ٥ (٢٠٧٩). سنن النسائي_ الزينة ٩٢ (٥٣١٧). والمؤلف في الشمائل ٨ (تحفة الأشراف: ١٣٥٢). واحمد في المسند (٣_ ١٣٢، ١٨٤، ٢٥١، ٢٩١)

دقيامت دورځې نه پريږي په كومه ورځ چه به داعمالو بدلې وركولے شي
دسعيد بن جبير قول دے درسول اتباع هغه څوك كوي څوك چه دالله دملاقات او دقيامت په ورځ ددوباره ژوندي كيدو يقين لري او داعمالو بدله ربنتيا ګڼري

وَقَالَ تَعَالَى : ﴿ فَلَا وَرَبِّكَ لَا يُؤْمِنُونَ حَتَّىٰ يُحَكِّمُوكَ فِيمَا شَجَرَ بَيْنَهُمْ ثُمَّ لَا يَجِدُوا فِي أَنفُسِهِمْ حَرَجاً مِّمَّا قَضَيْتَ وَيُسَلِّمُوا تَسْلِيماً ﴾ [النساء: ٦٥]

په صحاح سته كښې ذكرشوي دي چه دهره مقام دغر په يو لختي باندي دفصلونوداوبو كولو متعلق دزبيربن عوام رضي الله عنه ديو انصاري سره جګړه اوشوه دواړه دنبي عليه السلام په خدمت كښې حاضر شول نبي عليه السلام حكم اوكړو اي زبير ته مخكښې خپل فصل اوبه كړه او بيا خپل ګاونډي ته اوبه پريږده ، انصاري په دي فيصله باندي راضي نه شو او ويې وئيل اي دالله رسوله ددي فيصلې وجه دا ده چه زبير ستا دترور خوي دي نبي عليه السلام چه دا واوريدل نو رنګ يې بدل شو او ويې فرمائيل اي زبير دخپل فصل داوبه كولو نه پس اوبه دومره حصاري كړه چه ګيټو ته ورسيږي .په شروع كښې نبي عليه السلام داسي مشوره وركړي وه چه دزبير او انصاري دواړو كار اوشي ليكن چه هغه وريانډي خوشحاله نه شو نو دوباره يې زبير ته داسي حكم اوكړو چه هغه خپل پوره حق وصول كړو ،اګر چه دانصاري په دي كښې نقصان وو يعني اولني حكم استحبابي وو او دويم استحقاقي .

دزبير رضي الله عنه بيان دي كله چه انصاري رسول الله لره خفه كړو نوپه صراحت سره يې ماته دپوره حق ملاويدو حكم صادر كړو نوپه الله قسم زما خيال دي چه پورتني ايت هم په دي سلسله كښې نازل شو .طبراني په كبير كښې اوحميدي په مسند كښې دام سلمه رضي الله عنها نه روايت بيان كړي دي چه دزبير رضي الله عنه ديوكس سره جګړه اوشوه دواړو خپله معامله نبي عليه السلام ته پيش كړه نونبي عليه السلام دزبير په حق كښې فيصله اوكړه نودهغه مخالف اووئيل دزبير په حق كښې دي خكه فيصله اوكړه چه هغه ستا دترور خوي دي نوپه دي باره كښې دا ايت نازل شو
بغوي ليكلي دي چه ديو انصاري دزبير رضي الله عنه سره جګړه اوشوه دانصاري نوم حاطب بن ابي بلتعه وو ، ابن بي حاتم دسعيد بن مسيب نه روايت بيان كړي دي چه ددي ايت نزول دزبير بن عوام رضي الله عنه او دحاطب بن ابي بلتعه رضي الله عنه متعلق شوي دي داوبو په معامله باندي دواړو جګړه كړي وه اورسول الله فيصله اوكړه چه اول لوړي زمكي ته اوبه وركړئ بيا ژوري زمكي ته

حَتَّىٰ يُحَكِّمُوكَ فِيمَا شَجَرَ بَيْنَهُمْ . . . تردي چه دخپلو اندروني اختلافاتوفيصله اوحاكم تالره ونه ګرخوي . دشجر نه مراد اختلاف دي وني ته شجر خكه وئيلي شي چه خانګونه ئي ديويل سره لګيدلي وي.

ثُمَّ لَا يَجِدُوا فِي أَنفُسِهِمْ حَرَجًا مِّمَّا قَضَيْتَ . . . اوبيا پخپلوزړونوكښې ستاپه فيصلې باندي زړه تنګي اوخفګان محسوس نكړي ، دمجاهد قول دي چه دحرجانه مراد شك دي ، خكه چه شك كونكي هميشه پخپله معامله كښې تنګي محسوسوي.

## ١_ باب مَا جَاءَ عَلَى مَا كَانَ يَأْكُلُ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

## رسول الله صلي الله عليه وسلم به خوراك په څه څيز كولو

١٧٨٨_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ. حَدَّثَنَا مُعَاذُ بْنُ هِشَامٍ. حَدَّثَنِي أَبِي. عَنْ يُونُسَ. عَنْ قَتَادَةَ. عَنْ أَنَسٍ قَالَ: "مَا أَكَلَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى خُوَانٍ وَلَا فِي سُكُرُّجَةٍ وَلَا خُبِزَ لَهُ مُرَقَّقٌ". قَالَ: فَقُلْتُ لِقَتَادَةَ: فَعَلَامَ كَانُوا يَأْكُلُونَ ؟. قَالَ: عَلَى هَذِهِ السُّفَرِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ. قَالَ مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ. وَيُونُسُ: هَذَا هُوَ يُونُسُ الْإِسْكَافُ وَقَدْ رَوَى عَبْدُ الْوَارِثِ بْنُ سَعِيدٍ. عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي عَرُوبَةَ. عَنْ قَتَادَةَ. عَنْ أَنَسٍ. عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَهُ. [1]

**ترجمه** دانس رضي الله عنه بيان دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم نه په ميز باندي خوراك كړي دي او نه يي په ركيبئ كي خوراك كړي دي او نه دهغه دپاره دچانړشوي اوړو ډوډئ پخه شوي ده راوي وائي چي ما دقتاده نه تپوس اوكړو چي په مينځ يي خوراك نه كولو نو په څه به يي كولو نو ويي ونيل په همدي دسترخوان باندي.

امام ترمذي وايي داحديث حسن غريب دي محمد بن بشار وائي ديونس نه مراد يونس اسكاف (موچي) دي دا رنګي عبدالوارث هم دقتاده نه دسعيد بن ابي عروبه په واسطه ددي هم معني روايت نقل كړي دي.

**تشريح**: "خوان" دا لفظ اګر چي ددسترخوان په معني دی ليكن دلته ورنه ميز ياكورسئ مراد ده په كوم باندي چي دخوراك دپاره خلق كيني او دا عادت دمالدارو اوعيش پسند او متكبرو خلقو دی

"وما خبز له مرقق" يعني رسول الله صلي الله عليه وسلم هيڅ كله دچانړشوو اوړو ډوډئ نه ده خوړلي په نورو احاديثو كي هم دا مضمون راغلی دی، دشيخ عبدالحق محدث دهلوي خيال دادی چي په خاص طور سره درسول الله دپاره چرته دچانړ شوو اوړو ډوډئ نه ده پخه كړی شوی ليكن كه چا به دخان دپاره پخه كړه او ده ته به ملاؤ شوه نو خوړله به يي او ددي دخوراك نه يي انكار نه دی كړی مګر دا قول نورو محدثينو دانس رضي الله عنه دروايت سره منافي ګنړلی دی. په كوم كي چي داسي راغلي دي چي نبي صلي الله عليه وسلم چپاتئ نده خوړلي تردي چي ددنيا نه رخصت شو.

---

[1] _ اخرجه البخاري في الصحيح_ الأطعمة ٨ (٥٣٨٦) . ٢٣ (٥٤١٥) . والرقاق ١٦ (٦٤٥٠) . سنن ابن ماجه_ الأطعمة ٢٠ (٣٢٩٢) . والمؤلف في الزهد ٣٨ (٢٣٦٣) . والشمائل ٢٥ (تحفة الأشراف : ١٣٢٢) . واحمد في المسند (٣_١٣٠)

****************

## ٢_ باب مَا جَاءَ فِي أَكْلِ الأَرْنَبِ

### دارنب (هوسي) دخوړلو بيان

١٧٨٩_حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ، أَخْبَرَنَا شُعْبَةُ، عَنْ هِشَامِ بْنِ زَيْدِ بْنِ أَنَسٍ، قَالَ: سَمِعْتُ أَنَسًا يَقُولُ: " أَنْفَجْنَا أَرْنَبًا بِمَرِّ الظَّهْرَانِ فَسَعَى أَصْحَابُ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَلْفَهَا فَأَدْرَكْتُهَا فَأَخَذْتُهَا فَأَتَيْتُ بِهَا أَبَا طَلْحَةَ فَذَبَحَهَا بِمَرْوَةٍ فَبَعَثَ مَعِي بِفَخِذِهَا أَوْ بِوَرِكِهَا إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَكَلَهُ "، قَالَ: قُلْتُ: أَكَلَهُ، قَالَ: قَبِلَهُ. قَالَ أَبُو عِيسَى، وَفِي الْبَابِ، عَنْ جَابِرٍ، وَعَمَّارٍ، وَمُحَمَّدِ بْنِ صَفْوَانَ وَيُقَالُ مُحَمَّدُ بْنُ صَيْفِيٍّ: وَهَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ وَالْعَمَلُ عَلَى هَذَا عِنْدَ أَكْثَرِ أَهْلِ الْعِلْمِ لَا يَرَوْنَ بِأَكْلِ الأَرْنَبِ بَأْسًا وَقَدْ كَرِهَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ أَكْلَ الأَرْنَبِ، وَقَالُوا: إِنَّهَا تَدْمَى. (١)

**ترجمه** : دانس رضي الله عنه بيان دي فرمائي چي مونږه په مرالظهران مقام کي يوه هوسۍ اوزغلوله او درسول الله صلي الله عليه وسلم صحابه کرام وربسي شول نو ما دا اوموندله او ابوطلحه ته مي راوړله او هغه په يو تيره کاڼري باندي ذبح کړه نو ددي يوپتون يايو شګلن يې زما په لاس رسول الله صلي الله عليه وسلم ته اوليږله نو رسول الله صلي الله عليه وسلم اوخوړله هشام تپوس اوکړو ايا رسول الله اوخوړله او انس رضي الله عنه اوفرمائيل قبوله يې کړه

امام ترمذي وايي :په دي باب کي دجابر او عمار او محمد بن صفوان رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي بعضي راويانو دمحمد بن صفوان په ځاي محمد بن صيفي ذکر کړي دي، داحديث حسن صحيح دي داکثر اهل علمو په دي باندي عمل دي او هغوئ دهوسۍ په خوړلو کي څه باك نه ګڼړلي مګر بعضي علماؤ ددي خوراك مکروه ګڼړلي دي هغوئ وائي چي ددي بيماري راځي.

****************

## ٣_ باب مَا جَاءَ فِي أَكْلِ الضَّبِّ

---

[1] _ اخرجه البخاري في الصحيح_ الهبة ٥ (٢٥٧٢) . والصيد ١٠ (٥٤٨٩) . و ٣٢ (٥٥٣٥) . صحيح مسلم_ الصيد ٩ (١٩٥٣) . سنن ابي داود_ الأطعمة ٢٧ (٣٧٩١) . سنن النسائي_ الصيد ٢٥ (٤٣١٧) . سنن ابن ماجه_ الصيد ١٧ (٣٢٤٣) (تحفة الأشراف : ١٦٢٩) . و احمد في المسند (٣_ ١١٨. ١٧١) . سنن الدارمي_ الصيد ٧ (٢٠٥٦)

## دضب (سمسري) دخوړلو بيان

١٧٩٠_حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ دِينَارٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سُئِلَ عَنْ أَكْلِ الضَّبِّ فَقَالَ: "لَا آكُلُهُ وَلَا أُحَرِّمُهُ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ عُمَرَ، وَأَبِي سَعِيدٍ، وَابْنِ عَبَّاسٍ، وَثَابِتِ بْنِ وَدِيعَةَ، وَجَابِرٍ، وَعَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ حَسَنَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ وَقَدِ اخْتَلَفَ أَهْلُ الْعِلْمِ فِي أَكْلِ الضَّبِّ فَرَخَّصَ فِيهِ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَغَيْرِهِمْ وَكَرِهَهُ بَعْضُهُمْ، وَيُرْوَى عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّهُ قَالَ: "أُكِلَ الضَّبُّ عَلَى مَائِدَةِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَإِنَّمَا تَرَكَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَقَذُّرًا".(١)

**ترجمه**: دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم نه دضب دخوړلو متعلق تپوس اوكړي شو نو ويي فرمائيل زه يي نه خورم او نه يي حرام گڼړم
امام ترمذي وايي :په دي باب كي دعمر، ابوسعيد، ابن عباس، ثابت بن وديعه، جابر، او عبدالرحمن بن حسنه رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي دضب خوړلو كي داهل علمو اختلاف دي بعضي اهل علمو ددي دخوړلو اجازت وركړي دي او بعضي مكروه گڼړلي دي او دابن عباس نه مروي دي چي درسول الله صلي الله عليه وسلم په دسترخوان باندي ضب خوړلي شوي دي ليكن رسول الله صلي الله عليه وسلم دناخوښۍ په وجه پريخودلي دي.

**تشريح**: ضب داوچي يو ځناور دي جمع يي ضباب راځي او مؤنث يي ضبة دي په فارسي كي ورته سوسمار ونيلي شي دا دپيشو نه وړوكي او لږ غونتكي اوږد ځناور دي او رنګ يي زيړبخن تور دي په عربي علاقو كي اكثر موندلي كيږي.
علامه دميري په حيات الحيوان كي ليكلي دي چي دا ځناور داوه سوه كالو پوري ژوندي پاتي كيږي او په خلويښتو ورځو كي يوڅاڅكي متيازي كوي او دده غاښونه نه جدا كيږي بلكه يو بل پسي متصل وي او هيڅ كله نه راغورځيږي په ګرمۍ او يخنۍ كي يي رنګ بدليږي او ددي دمذكر دوه اعضاء مخصوصه وي، او دا دلړم سره دوستي لري همدا وجه ده چي ضب پخپله لكۍ كي لړم ته ځاي وركوي تردي چي ښكاري يي كله نيسي نو چي دلړم دچيچلو نه بچ نشي او ددي په طبيعت كي نسيان زيات دي همدا وجه ده چي دا دكومي سوړي يا كاڼړي خواته ورشي نو خپله لكۍ رانغاړي تردي چي په تنګ راتګ كي ورنه هيره نشي او د كمتري د هګو پشان هګۍ اچوي.

---

(١) ـ تفرد به المؤلف. (تحفة الأشراف: ٤٢٤٠)

***************

## ٤_ باب مَا جَاءَ فِي أَكْلِ الضَّبُعِ

### دخادمي خوړلو بيان

١٧٩١_حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ. حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ. أَخْبَرَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ. عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُبَيْدِ بْنِ عُمَيْرٍ. عَنِ ابْنِ أَبِي عَمَّارٍ قَالَ: قُلْتُ لِجَابِرٍ: " الضَّبُعُ صَيْدٌ هِيَ ". قَالَ: نَعَمْ. قَالَ. قُلْتُ: آكُلُهَا. قَالَ: نَعَمْ. قَالَ: قُلْتُ لَهُ: أَقَالَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ؟. قَالَ: نَعَمْ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ وَقَدْ ذَهَبَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ إِلَى هَذَا وَلَمْ يَرَوْا بِأَكْلِ الضَّبُعِ بَأْسًا وَهُوَ قَوْلُ أَحْمَدَ وَإِسْحَاقَ. وَرُوِيَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَدِيثٌ فِي كَرَاهِيَةِ أَكْلِ الضَّبُعِ وَلَيْسَ إِسْنَادُهُ بِالْقَوِيِّ وَقَدْ كَرِهَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ أَكْلَ الضَّبُعِ وَهُوَ قَوْلُ ابْنِ الْمُبَارَكِ. قَالَ يَحْيَى الْقَطَّانُ: وَرَوَى جَرِيرُ بْنُ حَازِمٍ هَذَا الْحَدِيثَ. عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُبَيْدِ بْنِ عُمَيْرٍ. عَنِ ابْنِ أَبِي عَمَّارٍ. عَنْ جَابِرٍ. عَنْ عُمَرَ قَوْلَهُ وَحَدِيثُ ابْنِ جُرَيْجٍ أَصَحُّ. وَابْنُ أَبِي عَمَّارٍ هُوَ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي عَمَّارٍ الْمَكِّيُّ. (١)

**ترجمه** : دابن ابي عمار بيان دي فرمائي چې جابر رضي الله عنه ته مي اوونيل ايا خادمي حلاله ده هغه اوونيل هو ما اوونيل ايا خوړلي يې شم هغه اوونيل هو، ما ورته اوونيل ايا رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي هغه اوونيل هو.

امام ترمذي وايي : داحديث حسن صحيح دي او بعضي اهل علمو ددي په جواب قول کړي دي او هغوئ ددي په خوړلو کي باك نه ګڼړي امام احمد او اسحاق په دي باندي قول کړي دي او درسول الله صلي الله عليه وسلم نه چې ددي په کراهت باندي روايت مذکور دي دهغه روايت سند قوي نه دي مګر بعضي علماء ددي خوړل مکروه ګڼري او همدا د ابن مبارك قول دي، يحیٰ بن سعيد القطان وائي دا حديث جرير بن حازن دعبدالله بن عبيد بن عمير نه او هغه دابوعماره نه او هغه دجابر نه او هغه دعمر رضي الله عنه نه دهغه قول نقل کړي دي او دابن جريج حديث صحيح دي

---

١ _ سنن ابي داود_ الأطعمة ٣٢ (٣٨٠١) . سنن النسائي_ الحج ٨٩ (٢٨٣٩) . والصيد ٢٧ (٤٣٢٨) . سنن ابن ماجه_ المناسک ٩٠ (٣٠٨٥) . والصيد ١٥ (٣٢٣٦) . (تحفة الأشراف ٢٣٨١) . و احمد في المسند (٣ ٢٩٧، ٣١٨، ٣٢٢) . سنن الدارمي_ المناسک ٩٠ (١٩٨٣)

****************

١٧٩٢_حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنْ إِسْمَاعِيلَ بْنِ مُسْلِمٍ، عَنْ عَبْدِ الْكَرِيمِ بْنِ أَبِي الْمُخَارِقِ أَبِي أُمَيَّةَ، عَنْ حِبَّانَ بْنِ جَزْءٍ، عَنْ أَخِيهِ خُزَيْمَةَ بْنِ جَزْءٍ، قَالَ: سَأَلْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ أَكْلِ الضَّبُعِ فَقَالَ: "أَوَ يَأْكُلُ الضَّبُعَ أَحَدٌ؟". وَسَأَلْتُهُ عَنِ الذِّئْبِ فَقَالَ: "أَوَ يَأْكُلُ الذِّئْبَ أَحَدٌ فِيهِ خَيْرٌ؟". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ لَيْسَ إِسْنَادُهُ بِالْقَوِيِّ لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ إِسْمَاعِيلَ بْنِ مُسْلِمٍ، عَنْ عَبْدِ الْكَرِيمِ أَبِي أُمَيَّةَ وَقَدْ تَكَلَّمَ بَعْضُ أَهْلِ الْحَدِيثِ فِي إِسْمَاعِيلَ وَعَبْدِ الْكَرِيمِ أَبِي أُمَيَّةَ وَهُوَ عَبْدُ الْكَرِيمِ بْنُ قَيْسِ بْنِ أَبِي الْمُخَارِقِ، وَعَبْدُ الْكَرِيمِ بْنُ مَالِكٍ الْجَزَرِيُّ ثِقَةٌ.[1]

**ترجمه** دخزيمه بن جزء بيان دي فرمائي چي ما درسول الله صلي الله عليه وسلم نه دضبع دخوړلو متعلق تپوس اوکړو نو ويې فرمائيل دا هم خلق خوري او ما ورنه دليوه دخوړلو په باره کي تپوس اوکړو نو ويې فرمائيل ايا دا هم څوك خوري چي خير پکي وي؟ ددي حديث سند قوي نه دي دا مونږ ته داسماعيل بن مسلم بن عبدالکريم اميه په سند رارسيدلي دي او بعضي محدثينو په اسماعيل او عبدالکريم اميه باندي کلام کړي دي او دعبدالکريم نه مراد عبدالکريم بن قيس بن ابي المخارق دي البته عبدالکريم بن مالك جزري ثقه دي.

****************

## ٥_ بَاب مَا جَاءَ فِي أَكْلِ لُحُومِ الْخَيْلِ

### داسونو دغوښو دخوړلو بيان

١٧٩٣_حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ وَنَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ، قَالَا: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ عَمْرِو بْنِ دِينَارٍ، عَنْ جَابِرٍ قَالَ: أَطْعَمَنَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لُحُومَ الْخَيْلِ وَنَهَانَا عَنْ لُحُومِ الْحُمُرِ.[2]

---

[1] _ سنن ابن ماجه_ الصيد ١٢ (٣٢٣٥)، و ١٥ (٣٢٣٧).

[2] _ اخرجه البخاري في الصحيح_ المغازي ٣٨ (٤٢١٩)، والصيد ٢٧ (٥٥٢٠)، و٢٨ (٥٥٢٤). صحيح مسلم_ الصيد ٦ (١٩٤١). سنن ابي داود_ الأطعمة ٢٦ (٣٧٨٨). سنن النسائي_ الصيد ٢٩ (٤٣٣٢). وانظر: سنن ابن ماجه_ النكاح ٤٤ (١٩٦١). والذبائح ١٢ (٣١٩١). (تحفة الأشراف: ٢٥٢٩). و احمد في المسند (٣_ ٣٢٢، ٣٢٥٦، ٣٦١، ٣٦٢، ٣٨٥). سنن الدارمي_ الأضاحي ٢٢ (٢٠٣٦)

**ترجمه** دجابررضي الله عنه نه مروي دي فرمائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم په مونږ باندي داسونو غوښه اوخوړله او دخرو دغوښي دخوړلو نه يي منع اوفرمائيله
امام ترمذي وايي او په دي باب كي داسماء بنت ابوبكر رضي الله عنها نه هم روايت وارد دي او دا حديث حسن صحيح دي دارنگي متعدد راويانو داحديث دعمرو بن دينار نه او هغه دجابر نه نقل كړي دي، او حماد بن زيد دعمرو بن دينار نه او هغه دمحمد بن علي نه او هغه دجابر نه نقل كړي دي مگر دابن عيينه روايت اصح دي. امام ترمذي واني ما دامام بخاري نه اوريدلي دي چي سفيان بن عيينه دحماد بن زيد نه زيات احفظ دي

***************

## ٦ـ باب مَا جَاءَ فِي لُحُومِ الْحُمُرِ الأَهْلِيَّةِ

### دكورنو خرو دغوښي خوړلو بيان

١٧٩٤ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ الثَّقَفِيُّ، عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ الأَنْصَارِيِّ، عَنْ مَالِكِ بْنِ أَنَسٍ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، ح وحَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، وَالْحَسَنِ ابني محمد بن علي، عَنْ أَبِيهِمَا، عَنْ عَلِيٍّ قَالَ: نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ " عَنْ مُتْعَةِ النِّسَاءِ زَمَنَ خَيْبَرَ، وَعَنْ لُحُومِ الْحُمُرِ الأَهْلِيَّةِ ". حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْمَخْزُومِيُّ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، وَالْحَسَنِ هما ابنا محمد ابن الحنفية، وعبد الله بن محمد يكنى أبا هاشم. قَالَ الزُّهْرِيُّ وَكَانَ أَرْضَاهُمَا الْحَسَنُ بْنُ مُحَمَّدٍ فَذَكَرَ نَحْوَهُ، وقَالَ غَيْرُ سَعِيدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنِ ابْنِ عُيَيْنَةَ وَكَانَ أَرْضَاهُمَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [1]

**ترجمه** : دعلي رضي الله عنه نه مروي دي فرمائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم دغزوه خيبر په زمانه كي دښځو سره دموقت (عارضي) نكاح كولو نه او دكورنو خرو دغوښي دخوړلو نه منع فرمائيلي ده.

---

[1] ـ اخرجه البخاري في الصحيح ـ المغازي ٣٨ (٤٢١٩) ، والصيد ٢٧ (٥٥٢٠) ، و٢٨ (٥٥٢٢) . صحيح مسلم ـ الصيد ٦ (١٩٤١) . سنن ابي داود ـ الأطعمة ٢٦ (٣٧٨٨) . سنن النسائي ـ الصيد ٢٩ (٤٣٣٢) . وانظر: سنن ابن ماجه ـ النكاح ٤٤ (١٩٦١) ، والذبائح ١٣ (٣١٩١) . (تحفة الأشراف : ٢٥٣٩) . و احمد في المسند (٣ـ ٣٢٢، ٣٥٦، ٣٦١، ٣٦٢، ٣٨٥) . سنن الدارمي ـ الأضاحي ٢٢ (٢٠٣٦)

**تشريح** بعضي اهل تشيع(شيعه) د مذكوره حديث اود سورت نساء د ايت كريمه
فَمَا اسْتَمْتَعْتُمْ بِهِ مِنْهُنَّ فَآتُوهُنَّ أُجُورَهُنَّ . . . يعني پس په كوم سبب سره چي تاسو دښځو نه لطف اندوزشوي يئ نودوئ ته ددوئ مهرونه وركړئ.
نه د متعي نكاح د جواز دپاره استدلال كوي مگر ددوي استدلال باطل او مردود دی . ددي په حرمت احاديث صحيحه حد دتواتر ته رسيدلي دي . او قاضي ثناء الله وړباندي په سورت النساء كي شاندار او مدلل تحقيق كړی دی چي ستاسو د فائدي اود مقام دتقاضا په مناسبت يي په لاندينو كرخو كي لفظ په لفظ نقل كوو
ديوي ډلي خيال دي چي په دي ايت كي عقد دمتعي مراد دي يعني داسي عقد په كوم كي چي دمهرتعين وي اودمودي تعين هم وي مقرري مودي نه پس ښځه بائنه كيږي مگر داستقرار حمل نه درحم دپاكيدو دپاره ديوحيض تيريدو ته انتظار كول ضروري دي . كه چري په دي موده كي دننه په زوجينو كي كوم يو مړشو نو يوته دبل ميراث هم نه ملاويږي . په داسي عقد كونكو باندي نه دزوج اطلاق كيږي او نه دزوجي (يعني دوئ پخپلوكي ښځه اوخاوند نه وي).
عبد الرزاق په مصنف كي دابن جريج په روايت سره دعطاء قول نقل كړي دي چي ابن عباس رضي الله عنهما به متعه حلاله گنړله اوددي دثبوت دپاره به ئي دا ايت كريمه لوستلو. ابن عباس رضي الله عنهما داهم فرمائيلي دي چي د أبئ بن كعب په قراءت كي په دي ايت كي الي اجل مسمي لفظ هم ذكرشوي دي اوفرمائيل به ئي په عمر رضي الله عنه دي الله تعالي رحم وكړي داد الله تعالي په بندگانو دالله يورحمت دي كه چري هغه ممانعت نه وي كړي نو زنا ته ضرورت بلكل نه پاتي كيدو.
دابن عبد البر بيان دي چي ابن عباس رضي الله عنهما نه دمتعي په باره تپوس وكړي شو چي دا نكاح ده اوكه زنا؟ نو وئي فرمائيل دا داسي ده لكه چي الله تعالي فرمائيلي دي ، نوبيا ورنه تپوس وكړي شو چي ايا ددي دعدت دپاره حيض راتلو ته ضرورت شته اوكه نه نو وئي فرمائيل چي هو ما بيا ورنه تپوس وكړو متعه كونكي نارينه اوزنانه پخپل مينځ كي وارثان جوړيږي اوكه نه نو وئي فرمائيل چي نه . دمتعي دحلت قول دصحابه كرامو يوجماعت ته منسوب دي . نسائي اوطحاوي ليكلي دي چي اسماء بنت الصديق فرمائيلي دي مونږ درسول الله صلي الله عليه وسلم په زمانه كي داسي كړي وو . مسلم دجابر رضي الله عنه نه روايت بيان كړي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم او ابوبكر اوعمر دخلافت په ابتدائي زمانه كي متعه كړي وه نوعمر فاروق رضي الله عنه مونږ په اخري دور خلافت كي منع كړونوبيا مونږ دهغه دحكم نه تجاوز ونكړو.

طحاوي دجابر رضي الله عنه اوسلمه بن الاكوع په روايت سره بيان کړي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم دصحابه کرامو سره تشريف راوړو اودمتعي اجازت ني ورکړو
په صحيحينو کې دابن مسعود رضي الله عنه قول منقول دي چي مونږ ته رسول الله صلي الله عليه وسلم اجازت راکړي وو چي دښځو سره دمقررې مودي پوري نکاح کيدي شي بيا ابن مسعودرضي الله عنه دا ايت کريمه يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تُحَرِّمُوا طَيِّبَاتِ مَا أَحَلَّ اللَّهُ لَكُمْ. تلاوت کړو
دصحابه کرامو ددي اثارونه دمتعي جواز خو معلوم شو ليکن نه منسوخ کيدل ورنه نه معلوميږي صرف دابن عباس رضي الله عنهما اثر اودابن مسعود په قرامت سره غيرمنسوخ کيدل معلوميږي
عبدالرزاق په مصنف کې ليکلي دي چي معاويه رضي الله عنه په طائف کې ديوي ښځي سره متعه کړي وه
عمرو بن شيبه په اخبارالمدينه کې پخپل سند سره ليکلي دي چي سلمه بن اميه ديوي ښځي سره متعه کړي وه کله چي عمر رضي الله عنه ته ددي خبراورسيدو نوده ته يې دهمکي ورکړه . عبدالرزاق په مصنف کې ليکلي دي چي معبد بن اميه دمتعي دحلت قائل وو . حافظ ليکلي دي چي دمتعي دحلت فتوي دتابعينو يو جماعت ورکړي ده په کومو کې چي ابن جريج، طاوس ، عطاء اودابن عباس رضي الله عنهما شاګرد اوسعيد بن جبير او فقهاء دمکي هم وو په دي بنا باندي حاکم په علوم الحديث کې داوزاعي قول نقل کړي دي چي داهل حجاز پنځه اقوال متروک دي په دوئ کې داهل مکي حلت دمتعي قول اوداهل مدينه قول چي دخپلي بي بي سره دلواطت د حلت قول
مسئله دمتعي په ناجائز اوحرام کيدو باندي اجماع شوي ده علاوه دشيعه فرقي نه بل څوک ددي دحلت قائل نه دي دمتعي دحرمت ثبوت په دي ايت کريمه کې دي الله تعالي فرمائيلي دي وَالَّذِينَ هُمْ لِفُرُوجِهِمْ حَافِظُونَ . إِلَّا عَلَى أَزْوَاجِهِمْ أَوْ مَا مَلَكَتْ أَيْمَانُهُمْ فَإِنَّهُمْ غَيْرُ مَلُومِينَ. متعي والا زنانو ته ښځي نه شي ونيلي اونه هغه مملوکه ده نوپه دي وجه باندي متعه کونکي سړي اوښځه کې دتوارث سلسله قائمه نه وي
که چرې ددي ايت تفسير دابن عباس رضي الله عنهما دمسلك متعلق اوکړي نوبيا ددي منسوخ منل لازميږي ،اوحالانکه دا ايت دټولو په نزد باندي محکم دي منسوخ نه دي، مسلم ليکلي دي چي دربيع بن صبره بن معبد جهني بيان دي چي ماته زما پلار اوونيل زه درسول الله صلي الله عليه وسلم په مجلس کې موجود وم چي وېي فرمائيل اي خلقو ما دښځوسره دمتعي کولو اجازت ورکړي وو خو اوس الله تعالي دقيامته پوري متعه حرامه کړي ده لهذا

که چري دچا سره کومه داسي ښځه وي نوهغه دي ازاده کړي اوڅه چي ورته تاسو ورکړي وي په هغي کې به ورنه واپس څه نه اخلئ
مسلم دمذکوره راوي دا بيان هم نقل کړي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم مونږ ته دمتعي اجازت راکړي وو نو په دي وجه باندي زه او يو بل سړي يوي عامريه ښځي ته لاړو چي ځوانه او اوږدي غړئ والا وه مونږ دواړو ورته درخواست اوکړو هغي راته وونيل ماته به څه راکوي ما ورته وونيل خپل څادر به درکړم اوزما ملګري ورته هم خپل څادر پيش کړوليکن دهغه څادر زما دڅادر نه بهتر وو مګرزه دهغه نه ښکلي ځوان وم نوښځي دهغه څادر لره خوښ کړو اوچي زه ئي وليدم نوزه ئي خوښ کړم او وئي وئيل ستا څادر زما دپاره کافي دي ته زما خوښ ئي ، چنانچي زه ورسره دري شپي پاتي شوم ، ددينه پس رسول الله اوفرمائيل دهرچا سره چي دمتعي والا ښځه وي هغه دي دي لره پريږدي
ابن ماجه په صحيح سند سره روايت بيان کړي دي چي اميرالمؤمنين عمر رضي الله عنه خطبه ورکړه او ويي فرمائيل چي رسول الله صلي الله عليه وسلم مونږ ته ددري ورځو پوري دمتعي اجازت راکړي وو خو بيا يي حرامه کړه نواوس که چري زه چالره اووينم چي متعه يي کړي ده نو په الله مي دي قسم وي په کاڼړو به يي اوولم او هلاك به يي کړم خو په دي شرط چي هغه شادي شده وي ، په بل روايت کې راغلي دي اميرالمؤمنين عمر رضي الله عنه خطبه ورکړه او ويي فرمائيل خلق متعه ولي کوي حالانکه رسول الله صلي الله عليه وسلم ددي نه ممانعت فرمائيلي دي که چري چا متعه کړي وي او ماته راوستلي شو نوزه به يي ضرور سنګسار کړم
دابن عمر رضي الله عنه نه دمتعي دحکم په باره کې تپوس اوکړي شو نو ويي فرمائيل چي حرامه ده نوچي دابن عباس رضي الله عنهما نه تپوس اوکړي شو نودجواز فتوي يي ورکړه نوده ته اوونيلي شول چي دعمر رضي الله عنه په زمانه کې دي داسي ولي نه وئيل
دسلمه بن اکوع رضي الله عنه بيان دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم داوطاس والاسره د دري ورځودپاره مونږ ته دمتعي اجازت راکړي وو خو بيا يي ممانعت اوفرمائيلو (مسلم)
دا هم دمسلم روايت دي چي صبره بن معبد رضي الله عنه اوفرمائيل دمکي دفتح کيدو په کال کله چي مونږ مکي ته داخل شو نو رسول الله صلي الله عليه وسلم مونږ ته د متعي اجازت راکړي وو خو بيا يي دمکي نه دوتو نه مخکې ممانعت اوفرمائيلو
حازمي په خپل سند سره دجابر رضي الله عنه بيان نقل کړي دي چي مونږ درسول الله صلي الله عليه وسلم په ملګرتيا کې دتبوك جهاد ته تلي وو کله چي عقبه (په شام کې ديوي علاقي نوم دي) ته ورسيدو نودهغه علاقي بعضي ښځي راغلي مونږ ورسره متعه اوکړه په دي خيال چي دوئ به زمونږ په اوښانو باندي سوري شي ليکن بيا چي رسول الله صلي الله عليه وسلم

راغي او ښځي يې اوليدلي نو ويې فرمائيل چې دا څوك دي مونږ عرض اوكړو اې دالله رسوله دا هغه ښځې دي چې مونږ ورسره متعه كړې ده ددې په اوريدو سره نبي كريم صلي الله عليه وسلم ته دومره غصه ورغله چې مخ مبارك يې سور شو او رنګ يې بدل شو او پاڅيدو او يوه خطبه يې ارشاد اوفرمائيله او دحمد اوثنا نه پس يې دمتعې ممانعت اوفرمائيلو دحكم په اوريدو سره مونږ دوئ لره رخصت كړې او بيا موداسې حركت نه دې كړې اونه به په اينده كې چرته داسې اوكړو.

طحاوي نقل كړي دي چې ابوهريره رضي الله عنه فرمائيلي دي مونږ درسول الله په ملګرتيا كې دتبوك جهاد ته اووتلو اورسول الله په ثنية الوداع كې پړاؤ اچولې وو هلته يې رنړا ګانې اوليدې او څه ښځې يې په ژړا اوليدې نو ويې فرمائيل دا څه خبره ده نو ورته اووئيلې شول دا هغه ښځې دي چې خاوندانو يې ورسره متعه كړې وه او اوس ورنه جدا كيږي نونبي عليه السلام اوفرمائيل دطلاق اونكاح او عدت اوميراث په قانون سره الله تعالي متعې لره حرامه اوباطله كړې ده ، د دار قطني درروايت الفاظ دا دي چې الله تعالي د طلاق اوعدت او ميراث په حكم سره د متعې جواز ختم كړې دې.

حسن اوعبدالله چې دمحمد بن حنفيه ځامن دي روايت كوي چې محمد بن علي اوريدلي چې ابن عباس رضي الله عنهما دمتعې په باره كې نرم وونو وني فرمائيل اې ابن عباس داسې خبرې پريږده ځكه چې دخيبر په ورځ رسول الله دمتعې نه اودكورنو خرور دغوښې نه ممانعت فرمائيلې وو ، په بل روايت كې راغلي دي چې ابن حنفيه ووئيل اې ابن عباس پتا كې څه ګمراهي ده(بخاري ومسلم).

مسلم په سند دعروه بن الزبير رضي الله عنه سره بيان كړي دي چې عبدالله بن زبير رضي الله عنه په مكه كې اودريدو او ويې فرمائيل چې الله تعالي دبعضې خلقو زړونه داسې ړانده كړي دي لكه څرنګه چې يې ددوئ سترګې ړندې كړې دي هغوئ دمتعې په جواز باندې فتوې وركوي او ابن عباس رضي الله عنهما ته يې تعريض كولو ځكه چې په اخرې عمر كې دابن عباس رضي الله عنهما نظر ختم شوې وو ابن عباس ابن زبير ته په چغه اووئيل يقينا ته احمق يې په الله قسم دامام المتقين يعني درسول الله صلي الله عليه وسلم په زمانه كې متعه كيدله ابن زبير په جواب كې اووئيل ته پخپله تجربه اوكړه او اوګوره په الله قسم كه چرې تا داسې اوكړل نوزه به دې سنګسار كړم.

ابن ابي عمره انصاري اوفرمائيل په شروع داسلام كې دمجبوره كس دپاره دمتعې اجازت وو لكه دمرداري اود خنزير دغوښې خوړل ليكن بيا الله تعالي دين محكم كړو او دمتعې نه يې ممانعت اوفرمائيلو . بيهقي دزهري قول نقل كړي دي چې ابن عباس رضي الله عنهما دوفات كيدو نه مخكې دمتعې دحلت دفتوې نه رجوع كړې وه ، ابو عوانه بخپل صحيح كې

هم داسي ذكر كړي دي ابوداود په ناسخ كې او ابن المنذر او نحاذ دعطاء په روايت سره بيان كړي دي چې دا ايت دي اياتونو يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ إِذَا طَلَّقْتُمُ النِّسَاءَ فَطَلِّقُوهُنَّ لِعِدَّتِهِنَّ. اوهمدا رنګې وَالْمُطَلَّقَاتُ يَتَرَبَّصْنَ بِأَنْفُسِهِنَّ ثَلَاثَةَ قُرُوءٍ. او ايت وَالَّئِي يَئِسْنَ مِنَ المحيضِ. منسوخ كړي دي. بيهقي وغيره دابن مسعود او ابوداود او بيهقي دسعيد بن المسيب قول نقل كړي دي چې متعه په ايت دميراث سره منسوخ شوي ده.

ترمذي دابن عباس رضي الله عنهما قول نقل كړي دي چې متعه په شروع داسلام كې جائز وه كله چې به څوك داسي علاقې ته لاړو چې هلته به يي شناخت نه وو نو ترڅومره مودي چې به هلته اوسيدلو ددغه هومره مودي دپاره به يي دكومي ښځي سره نكاح اوكړه ښځي به دده دسامانونو حفاظت كولو اودده ضروريات به يي برابرول ترديچې ايت كريمه الا علي ازواجهم اوماملكت ايمانهم ، نازل شو ، ابن عباس رضي الله عنهما اوفرمائيل دخپلي ښځي اووينځي نه علاوه اوس هرشرمګاه حرام دي.

شايد چې دابن زبير اونورو علماؤ سره دمناظري كولو نه پس ابن عباس دخپلي مخكنۍ فتوي نه رجوع كړي وي اودمتعي منسوخ كيدل ورته ظاهر شوي دي، داهم په رواياتوكې راغلي دي چې ابن عباس به دمتعي فتوي صرف په هغه حالت كې وركوله كله چې به څوك په سفر كې مجبور او مضطر وو ، حازمي دسعيد بن جبير قول نقل كړي دي چې ويې فرمائيل ما ابن عباس ته عرض اوكړو ستا فتوي قافلو څلورو طرفونو ته اوړي ده اوشاعرانو هم ددي فتوي متعلق شاعري كړي ده ابن عباس اوفرمائيل شاعرانو څه وئيلي دي ما اووئيل دا شعريي وئيلي دي

قد قلت للشيخ لما طال محبسه يا صاح هل لك فى فتوى ابن عباس

هل لك فى رخصة الأطراف أنسة يكون مثواك حتى يصدر الناس.

كله چې دشيخ قيام طويل شو نو ماورته اووئيل زما دوسته ايا دابن عباس په فتوي باندي دتلو خواهش لري . ايا دنازكو اونرمو ګوتووالا ښځي ته دي ضرورت شته چې دواپسۍ پوري ستاد قيام مركزوي. ابن عباس رضي الله عنهما اوفرمائيل سبحان الله ما خوددي فتوي نه ده وركړي متعه خو داسي ده لكه دمرداري او دويني اودخنزير دغوښي پشان چې دمجبورۍ دحالت نه علاوه دچادپاره جائز نه ده. ابن منذر پخپل تفسير كې او بيهقي هم په سنن كې دا روايت بيان كړي دي ليكن دهغه په روايت كې دا الفاظ هم دي انا لله وانا اليه راجعون. په الله قسم ما خوددي فتوي نه ده وركړي اونه دا زما مراد دي او نه دمجبورۍ نه علاوه دبل چادپاره ما متعه حلاله ګرځولي ده .

ابن جريج هم دخپلې فتوی نه رجوع کړې وه ابوعوانه پخپل صحيح کې ليکلي دي چې ابن جريج په بصره کې اوفرمائيل تاسو گواه شئ چې ما ددينه رجوع وکړله . يعني دمتعې دحلت دفتوې نه مخکې دمتعې دجواز په تائيد کې ابن جريج اتلس احاديث بيان کړي وو

يوه شبه دمسلم په بعضې رواياتوکې راغلي دي چې دمتعې دحلت اوحرمت دواړو کيدل داوطاس په کال کې ذکر شوي دي ، اوپه بعضې رواياتوکې راغلي دي چې دفتح مکې په کال متعه حرامه شوې وه اودصحيحينو په روايت کې راغلي دي چې د غزوه خيبر په ورځ متعه حرامه شوې وه اوپه بعضې رواياتو کې دممانعت صدور ذکر په غزوه تبوک کې شوي دي ، په رواياتوکې دتعارض دفع کولو څه صورت دي؟

ازاله داوطاس جهاد دفتح مکې سره نزدې په يوکال کې شوي وو پاتې شوه دخيبر په ورځ دحرمت کيدو معامله نو داپيژندل ضروري دي چې دمتعې اجازت دوه څله ورکړې شوې وو اوهرڅل اجازت منسوخ کړې شوي وو اخر داچې ددوامي حرمت فيصله وکړې شوه . ابن همام ددې خبرې صراحت کړې دي چې په صحيح مسلم کې په عنوان باب نكاح المتعة سره ذکر شوي دي چې دمتعې اجازت ورکړې اوبيا منسوخ کړې شو او بيا اجازت ورکړې اوبيا منسوخ کړې شواودقيامت پورې به دحرمت فيصله نافذ وي.

بغوي دربيع بن سليمان په واسطې سره نقل کړي دي چې امام شافعي چې دمتعې نه علاوه ماته کوم بل داسې څيز په اسلام کې معلوم نه دي چې دحلاليدو نه پس حرام شوې وي او بياحلال شوې وي اوبيا حرام شوې وي ، بعضې علماؤ وئيلي دي چې متعه درې پيرې منسوخ شوې ده اودبعضو په نزد باندې ددرې پيرونه هم زياته منسوخ شوې ده

باقي داچې عزوه تبوک کې دممانعت ذکر نوددينه دا مراد نه دي چې دتبوک نه مخکې اجازت وو او په تبوک کې ممانعت راغي بلکه مطلب دا دي په تبوک کې چې چا متعه کړې وه هغوئ ته دا معلومه نه وه چې متعه په دائمي طور حرامه شوې ده نوځکه دمتعې دخبرېه اوريدو سره رسول الله صلي الله عليه وسلم دومره غصه شو چې دمخ مبارک رنگ يې بدل شو او په خطبه کې يې ددې دممانعت ياداشت اوکړو ، دحازمي بيان دي چې په وطن کې اوپه کور کې داوسيدو په حالت کې خو دمتعې اجازت هيڅ کله نه وو ورکړې شوې ليکن په بعضې اوقاتو کې دضرورت په بنا اجازت ورکړې شوې وو او په حجة الوداع کې ددې حرمت هم راغي او دائمي حرمت صادر شو

داکثرو مفسرينو په نزد باندې په ايت کې خاص متعه نه ده مراد بلکه دصحيح نکاح نه پس په جماع سره لطف اندوز کيدل مراد دي ، دحسن او مجاهد هم دا قول دي ، ابن جرير ابن المنذر او ابن ابي حاتم دابن عباس رضي الله عنهما قول نقل کړي دي چې استمتاع نکاح ده اود ادا کولو دمهر حکم دا دي چې واتو النساء صدقاتهن نحلة.

مسئله دذكر شوي تفسير په بنا باندي ظاهرا دجماع نه بغير ښځه دمهر مستحقه نه وي لهذا دامام مالك قول په دي ايت سره ثابتيږي ځكه چي دهغه مسلك دا دي چي صرف په نكاح سره ښځه دپوره مهر مستحقه نه جوړيږي دنيم مهر مستحقه جوړيږي مګر دجماع يا په مرګ سره دپوره مهر مستحقه جوړيږي.

دجمهورو په نزد باندي صرف په نكاح سره دكامل مهر مستحقه كيږي مګر بغير دجماع نه په طلاق وركولو سره نيم مهر ساقطيږي ځكه چي په ايت ان تبتغوا باموالكم كې باء دالصاق دپاره ده لهذا په عقد كولوسره مهر واجبيږي دجماع كولو پوري وجوب دمال مؤخر كول دايت دمدلول نه خلاف دي ، ددي ايت نه صرف دومره معلوميږي چي په قربت كولوسره مهر واجبيږي اودقربت نه پس دمهر دسقوط احتمال هم باقي نه پاتي كيږي اودا نه معلوميږي چي صرف دنكاح نه پس بغير دجماع نه مهر واجب نه وي ددي مفهوم دطرف نه ايت خاموش دي لهذا دامام مالك استدلال غلط دي او په دواړو اياتونو كې څه تضاد نشته ځكه چي ښځه په محض عقد كولوسره دمهر مالكه كيږي نوپه دي وجه باندي دمهر دوصول كولونه بغير خاوند لره دقربت نه منع كول او دهغه سره په سفر كې دتلو نه انكار كولو ديته حق حاصل دي ، اوكه چري په مهر كې دكوم غلام نوم ياد شوي وي نو ښځه يې ازادولي شي اوخاوند يې نه شي ازادولي

****************

١٧٩٥ـ حَدَّثَنَا أَبُو كُرَيْبٍ، حَدَّثَنَا حُسَيْنُ بْنُ عَلِيٍّ الْجُعْفِيُّ، عَنْ زَائِدَةَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرٍو، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "حَرَّمَ يَوْمَ خَيْبَرَ كُلَّ ذِي نَابٍ مِنَ السِّبَاعِ وَالْمُجَثَّمَةَ وَالْحِمَارَ الإِنْسِيَّ"، قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ عَلِيٍّ وَجَابِرٍ، وَالْبَرَاءِ، وَابْنِ أَبِي أَوْفَى، وَأَنَسٍ، وَالْعِرْبَاضِ بْنِ سَارِيَةَ، وَأَبِي ثَعْلَبَةَ، وَابْنِ عُمَرَ، وَأَبِي سَعِيدٍ، قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَرَوَى عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ مُحَمَّدٍ وَغَيْرُهُ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرٍو هَذَا الْحَدِيثَ وَإِنَّمَا ذَكَرُوا حَرْفًا وَاحِدًا نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "عَنْ كُلِّ ذِي نَابٍ مِنَ السِّبَاعِ".[1]

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي فرمائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم دغزوه خيبر په ورځ دهر ماتونكي درنده دخوړلو نه او دهغه ښاروي دخوړلو نه كوم چي دنخي دپاره اودرولي شوي وي او دكورنو خرو غوښو دخوړلي نه منع فرمائيلي ده.

[1] ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ١٥٠٢٦)

امام ترمذي وايي: او په دي باب کي دعلي او جابر او براء او ابن ابي اوفي او انس او عرباض بن ساريه او ابوثعلبه او ابن عمر او ابوسعيد خدري رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي او دا حديث حسن صحيح دي، او دارنگي په دي روايت کي عبدالعزيز بن محمد وغيره دمحمد بن عمرو نه صرف يو څيز نقل کړي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم ده ماښکي درنده دخوړلو نه منع فرمائيلي ده.

***************

## ٧ باب مَا جَاءَ فِي الأَكْلِ فِي آنِيَةِ الْكُفَّارِ

### دکفارو په لوښو کي دخوراک کولو بيان

١٧٩٦_حَدَّثَنَا زَيْدُ بْنُ أَخْزَمَ الطَّائِيُّ. حَدَّثَنَا سَلْمُ بْنُ قُتَيْبَةَ. حَدَّثَنَا شُعْبَةُ. عَنْ أَيُّوبَ. عَنْ أَبِي قِلَابَةَ. عَنْ أَبِي ثَعْلَبَةَ. قَالَ: سُئِلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ قُدُورِ الْمَجُوسِ فَقَالَ: " أَنْقُوهَا غَسْلًا وَاطْبُخُوا فِيهَا وَنَهَى عَنْ كُلِّ سَبُعٍ ذِي نَابٍ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ مَشْهُورٌ مِنْ حَدِيثِ أَبِي ثَعْلَبَةَ وَرُوِيَ عَنْهُ مِنْ غَيْرِ هَذَا الْوَجْهِ وَأَبُو ثَعْلَبَةَ اسْمُهُ جُرْثُومٌ. وَيُقَالُ جُرْهُمٌ وَيُقَالُ: نَاشِبٌ وَقَدْ ذُكِرَ هَذَا الْحَدِيثُ، عَنْ أَبِي قِلَابَةَ. عَنْ أَبِي أَسْمَاءَ الرَّحَبِيِّ. عَنْ أَبِي ثَعْلَبَةَ. [1]

**ترجمه**: دابوثعلبه رضي الله عنه بيان دي فرمائي چي درسول الله صلي الله عليه وسلم نه د مجوسيانو په لوښو کي دخوراك کولو په باره کي تپوس اوکړي شو نو ويي فرمائيل په وينځلو يي پاك کړئ او بيا پکي خوراك پخوئ اودهر درنده ماتونکي ځناور دغوښي خوړلو نه يي منع اوفرمائيله.

امام ترمذي وايي: داحديث دابوثعلبه په روايت مشهور دي دهغه نه دا حديث په بل سند هم مروي دي، او دابوثعلبه نوم جرثوم دي او هغه ته جرهم او ناشب هم ونيلي کيږي. او داحديث دابوقلابه په سند عن اسماء الرجي عن ابي ثعلبه سره هم مروي دي

**تشريح**: ددي حديث تشريح په ماقبل بابونو کي تيره شوي ده

### دابوثعلبه خشني رضي الله عنه حالات

دده په نوم کي اختلاف دی ليکن اکثرو علماؤ جرثوم ليکلی دی ابو ثعلبه يي کنيه ده داسلام په شروع کي مسلمان شوی وو او په صلح حديبيه کي درسول الله صلي الله عليه وسلم سره ملګری وو او په بيعت الرضوان کي هم شريك شوی وو رسول الله صلي الله عليه وسلم دی

---

[1] _ انظر حديث رقم ١٣٦٣ و ١٥٦٠

خپلي قبيلي ته ددعوت ورکولو دپاره ليږلی وو دده په کوشش سره ټوله قبيله مسلمانان اوګرځيدل او دشام فتح کيدو نه پس يي هلته اوسيدل شروع کړل په ژوند کې به يي اکثر ونيل چي ما خو دي الله ستاسو پشان په پوندو اونه وهي همداسي اوشول چي يوه شپه په مونځ ولاړ وو او دده يوي لور په خوب کې داسي اوليدل چي پلار يي وفات شوی دی نو هغه ديريدو په وجه راپاخيده او اواز يي اوکړو ورته معلومه شوه چي هغه په مونځ ولاړ دی بيا يي يوه شيبه پس اواز اوکړو خو څه جواب ملاؤ نشو ګوري چي دسجدي په حالت کې ورنه روح ختلی دی دمروياتو تعداد يي ۴۰ دی چي دري په دي کې متفق عليه دي

***************

١٧٩٧_حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عِيسَى بْنِ يَزِيدَ الْبَغْدَادِيُّ. حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللهِ بْنُ مُحَمَّدٍ الْعَيْشِيُّ. حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ. عَنْ أَيُّوبَ، وَقَتَادَةَ. عَنْ أَبِي قِلَابَةَ. عَنْ أَبِي أَسْمَاءَ الرَّحَبِيِّ. عَنْ أَبِي ثَعْلَبَةَ الْخُشَنِيِّ أَنَّهُ قَالَ: يَا رَسُولَ اللهِ إِنَّا بِأَرْضِ أَهْلِ الْكِتَابِ فَنَطْبُخُ فِي قُدُورِهِمْ وَنَشْرَبُ فِي آنِيَتِهِمْ. فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنْ لَمْ تَجِدُوا غَيْرَهَا فَارْحَضُوهَا بِالْمَاءِ". ثُمَّ قَالَ: يَا رَسُولَ اللهِ إِنَّا بِأَرْضِ صَيْدٍ فَكَيْفَ نَصْنَعُ قَالَ: "إِذَا أَرْسَلْتَ كَلْبَكَ الْمُكَلَّبَ وَذَكَرْتَ اسْمَ اللهِ فَقَتَلَ فَكُلْ وَإِنْ كَانَ غَيْرَ مُكَلَّبٍ فَذُكِّيَ فَكُلْ وَإِذَا رَمَيْتَ بِسَهْمِكَ وَذَكَرْتَ اسْمَ اللهِ فَقَتَلَ فَكُلْ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [1]

**ترجمه** دابوثعلبه رضي الله عنه نه مروي دي فرمائي چي درسول الله صلي الله عليه وسلم نه مي سوال اوکړو اي دالله رسوله مونږ اکثر داهل کتابو په زمکو کې اوسيږو ايا مونږ دهغوئ په لوښو کې خوراك پخولي شو او دهغوئ په لوښو کې اوبه څکلي شو؟ رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل که چري تاسو ته ددينه علاوه نور لوښي نه ملاويږي نو دا په اوبو اووينځئ نو پاك به شي هغه بيا تپوس اوکړو اي دالله رسوله مونږه اکثر دښکار په زمکو کې اوسيږو مونږ لره څه کول پکار دي؟ ورته يي اوفرمائيل کله چي تاسو خپل روزلي شوي سپي په ښکار پسي اوليږئ او بسم الله مو ورباندي ونيلي وي او بيا هغه تاسو ته مړ ښکار راوړي نو دا خوړلي شئ او که روزلي شوي سپي نه وي او ښکار ذبح کړي شي نو دا هم خوړلي شي او چي کله يي تاسو په غشي اوولئ او بسم الله ورباندي اووائي نو دا هم خوړلي شئ

امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي

[1] _ انظر حديث رقم ١٣٦٤ و ١٥٦٠

*****************

## ٨_ باب مَا جَاءَ فِي الْفَأْرَةِ تَمُوتُ فِي السَّمْنِ

## په غوړو کي دمړيوتلي مږي شوي مږي بيان

١٧٩٨_حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْمَخْزُومِيُّ، وَأَبُو عَمَّارٍ، قَالَا: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنْ مَيْمُونَةَ، أَنَّ فَأْرَةً وَقَعَتْ فِي سَمْنٍ فَمَاتَتْ فَسُئِلَ عَنْهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: "أَلْقُوهَا وَمَا حَوْلَهَا وَكُلُوهُ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ وَقَدْ رُوِيَ هَذَا الْحَدِيثُ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سُئِلَ وَلَمْ يَذْكُرُوا فِيهِ، عَنْ مَيْمُونَةَ وَحَدِيثُ ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنْ مَيْمُونَةَ أَصَحُّ وَرَوَى مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَهُ وَهُوَ حَدِيثٌ غَيْرُ مَحْفُوظٍ قَالَ: وَسَمِعْتُ مُحَمَّدَ بْنَ إِسْمَاعِيلَ يَقُولُ: وَحَدِيثُ مَعْمَرٍ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَذَكَرَ فِيهِ أَنَّهُ سُئِلَ عَنْهُ فَقَالَ: "إِذَا كَانَ جَامِدًا فَأَلْقُوهَا وَمَا حَوْلَهَا وَإِنْ كَانَ مَائِعًا فَلَا تَقْرَبُوهُ" هَذَا خَطَأٌ أَخْطَأَ فِيهِ مَعْمَرٌ، قَالَ: وَالصَّحِيحُ حَدِيثُ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنْ مَيْمُونَةَ.[1]

**ترجمه** دام المؤمنين ميمونه رضي الله عنها بيان دي فرماني چي يو خل يوه مږه غوړو کي پريوتله او مړه شوه او درسول الله صلي الله عليه وسلم نه په دي باره کي تپوس اوکړي شو نو وېي فرمائيل مږه او ددينه چي چاپير کوم غوړي دي دا اوغورځوئ او باقي پاتي شوي خوړئ

امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي او دا حديث په يو بل سند هم مروي دي عن الزهري عن عبيدالله عن ابن عباس النبي صلي الله عليه وسلم. راوبانو په دي کي دميموني واسطه نه ده بيان کړي، دميموني په واسطه دابن عباس حديث زيات صحيح دي. او معمرو دا حديث په سند دزهري عن سعيد بن المسيب عن ابي هريرة عن النبي صلي الله عليه وسلم سره چي کوم حديث نقل کړي دي دا حديث غير محفوظ دي ما دامام بخاري نه اوريدلي دي چي معمرو کوم حديث دزهري نه او هغه دسعيد بن مسيب نه او هغه دابوهريره نه او هغه درسول

---

[1] _ اخرجه البخاري في الصحيح_ الوضوء ٦٧ (٢٣٥)، والذبائح ٣٤ (٥٥٣٨)، سنن ابي داود_ الأطعمة ٤٨ (٣٨٤١)، سنن النسائي_ الفرع والعتيرة ١٠ (٤٢٦٣)، (تحفة الأشراف ١٨٠٦٥)، والمؤطاء الاستئذان ٥ (٢٠)، واحمد في المسند (٦_ ٣٢٩، ٣٣٠، ٣٣٥) وسنن الدارمي_ الطهارة ٥٩ (٧٦٥)، والأطعمة ٣١ (٢١٢٨، ٢١٢٩، ٢١٣٠، ٢١٣١)

الله صلي الله عليه وسلم نه نقل كوي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم نه په دي باره كي تپوس اوكړي شو نو ويي فرمانيل كله چي غوړي جام شوي وي نو مږه او ددي گيرچاپير غوړي اوغورځوئ او كه غوړي خوټكيدلي وي اويا اوبه وي نو ديته مه ورنږدي كيږئ، دا روايت خطاء دي په دي كي دمعمرو نه غلطي شوي ده صحيح دزهري حديث دي كوم چي په سند د عبيدالله عن ابن عباس عن ميمونه سره مروي دي، اوپه دي باب كي دابوهريره رضي الله عنه نه هم روايت مروي دي

## دام المؤمنين ميمونه رضي الله عنها حالات

نوم ميمونه قبيله قريش د پلار نوم حارث او دمور نوم يي هند بنت عوف وو دميمونه رضي الله عنها اولنئ نكاح دمسعود بن عمرو ثقفي سره شوي وه او بيايي د ابو رهم سره نكاح اوشوه او دهجرت په اوم كال دابورهم د وفات نه وروسته يي رسول الله صلي الله عليه وسلم سره نكاح اوشوه دا هغه وخت وو كله چي رسول الله عمري ته تلى وو او دهجرت اوم كال وو او د همدي احرام په حالت كې يي نكاح اوشوه دا درسول الله صلي الله عليه وسلم اخري نكاح وه او ميمونه يي دټولو نه وروستئ ښځه وه ددي په باره كې ام المؤمنين عائشه رضي الله عنها فرمائي انها كانت اتقانا لله واصلنا للرحم(الاصابه).

يعني ميمونه په مونږه ټولو كې ډيره تقوي داره او دالله نه يريدونكي وه او په مونږه ټولو كې ډيره صله رحمي پالونكي وه.

وفات دا نا اشنا اتفاق وو چي په كوم خاي كې يي نكاح شوي وه يعني مقام صرف نو هم هلته وفات شوه (بخاري)

ابن عباس رضي الله عنهما وربانديي جنازه اوكړه او د صحيح قول مطابق دا دهجرت ٥١ كال وو او دمروياتو شمير يي ٤٦ دی

***************

## ٩_ باب مَا جَاءَ فِي النَّهْيِ عَنِ الأَكْلِ وَالشُّرْبِ بِالشِّمَالِ

## په كس لاس دخوړلو او څكلو دكراهت بيان

١٧٩٩_حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ مَنْصُورٍ. أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ نُمَيْرٍ. حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللهِ بْنُ عُمَرَ. عَنِ ابْنِ شِهَابٍ. عَنْ أَبِي بَكْرِ بْنِ عُبَيْدِ اللهِ بْنِ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ. عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ. أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "لَا يَأْكُلْ أَحَدُكُمْ بِشِمَالِهِ وَلَا يَشْرَبْ بِشِمَالِهِ فَإِنَّ الشَّيْطَانَ يَأْكُلُ بِشِمَالِهِ وَيَشْرَبُ بِشِمَالِهِ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ جَابِرٍ. وَعُمَرَ بْنِ أَبِي سَلَمَةَ. وَسَلَمَةَ بْنِ الأَكْوَعِ. وَأَنَسِ بْنِ مَالِكٍ.

وَحَفْصَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ وَهَكَذَا رَوَى مَالِكٌ، وَابْنُ عُيَيْنَةَ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ أَبِي بَكْرِ بْنِ عُبَيْدِ اللَّهِ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، وَرَوَى مَعْمَرٌ، وَعُقَيْلٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَالِمٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ وَرِوَايَةُ مَالِكٍ، وَابْنُ عُيَيْنَةَ أَصَحُّ. (1)

**ترجمه** دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه مروي دي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي په تاسو كي دي هيڅوك په گس لاس خوراك نه كوي او نه دي په گس لاس څكل كوي خكه چي شيطان په گس لاس خوراك كوي او په گس لاس څكل كوي

امام ترمذي وايي :داحديث حسن صحيح دي دارنگي روايت مالك او ابن عيينه په سند دزهري عن ابي بكر بن عبيدالله عن ابن عمر سره نقل كړي دي، معمرو او عقيل هم دا حديث دزهري نه په سند دسالم بن عبدالله عن عبدالله بن عمرسره نقل كړي دي مگر دمالك او ابن عيينه روايت زيات صحيح دي، او په دي باب كي دجابر، عمر بن ابي سلمه، سلمه بن الاكوع، انس بن مالك، او حفصه رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي

**لغات** : شمال معني گس لاس، شيطان معني نافرمان جمع يې شياطين راخي شيطان شطنه شطنا دنصر نه ، معني مخالفت كول، لري كول ، په رسئ ترل ، شطن في الارض معني داخليدل

**تشريح** : په چپ لاس خوراك كول خكه ممنوع دي چي شيطان په چپ لاس خوراك كوي علامه توريشتي ددي مجازي معني مراد كړي ده چي څوك دشيطان تابعدار دي شيطان دهغوئ دلاس په خوراك خنباك باندي خوشحاليږي، ليكن علامه طيبي ظاهري معني مراد كړي ده چي په حقيقت كي شيطان پخپله په چپ لاس خوړل څكل كوي حسن بن سفيان دابوهريره رضي الله عنه نه روايت نقل كړی دی چي كله په تاسو كي څوك خوراك كوي نو په ښي لاس دي كوي اوچاته دي په چپ لاس څه څيز وركوي هم نه خكه چي دا دشيطان لاس دی

***************

١٨٠٠_حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، قَالَ: حَدَّثَنَا جَعْفَرُ بْنُ عَوْنٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي عَرُوبَةَ، عَنْ مَعْمَرٍ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَالِمٍ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " إِذَا أَكَلَ أَحَدُكُمْ فَلْيَأْكُلْ بِيَمِينِهِ وَلْيَشْرَبْ بِيَمِينِهِ فَإِنَّ الشَّيْطَانَ يَأْكُلُ بِشِمَالِهِ وَيَشْرَبُ بِشِمَالِهِ ".(1)

---

1 _ مسلم_ الأشربة ١٣ (٢٠٢٠) سنن ابي داود_ الأطعمة ٢٠ (٣٧٧٦) . (تحفة الأشراف ٨٥٤٩) . والموطاء صفة النبي ﷺ ٤ (٦) . واحمد في المسند (٢_١٠٦) . الدارمي_ الأطعمة ٩ (٢٠٧٣)

**ترجمه** دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي كله چي په تاسو كي څوك خوراك كوي نو په ښي لاس دي خوري او چي څكل كوي نو په ښي لاس دي څكل كوي خكه چي شيطان په ګس لاس خوراك كوي او په ګس لاس څكل كوي

**تشريح**: په ګس لاس د خوراك كولو په ممانعت كي احاديث په كثرت سره واردي دي . او پدي باندي زجر وارد دی ،

عن سلمةَ بن الأَكوع رضي الله عنه: أَنَّ رَجُلاً أَكَلَ عِنْدَ رَسُولِ الله ﷺ بِشِمَالِهِ . فَقَالَ: ((كُلْ بِيَمِينِكَ)) قَالَ: لا أَسْتَطِيعُ . قَالَ: ((لاَ اسْتَطَعتَ)) ! مَا مَنَعَهُ إِلاَّ الكِبْرُ ! فَمَا رَفَعَهَا إِلَى فِيهِ . رواه مسلم .[1]

سلمه بن اكوع رضي الله عنه بيان كوي چي د رسول الله صلي الله عليه وسلم وړاندي يو كس په ګس لاس خوراك كولو ، رسول الله صلي الله عليه وسلم ورته اوفرمائيل په ښي لاس خوراك كوه. هغه اووئيل خوراك پری نشم كولی ، رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل اونه خوړلی شی تري هغه دكبر په وجه انكار كړی وو څه عذربيماري نه وه راوي وايي چي ددی نه پس هغه لاس ترخولی پوری اوچت نكړی شو.

لااستطعت استطاعت طاقت، اوپه حذف دتاء سره هم وئيلي شي قرن افصح دی قرن دنصر نه قرانا بين الشئ والشئ جمع كولاو هره شپه يو سلاتي رانجه پوري كول

علماء وايي ددي كس لاس روغ وو ده يوه بهانه جوړه كړي وه چي زه په ښي لاس نه شم خوړلی يعني معذور يم نو په دي وجه رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل چي ته نه شي خوړلی نو هيڅ كله به اونه خوړلی شي ددي دعا او خيرو په اثر دهغه لاس دهميشه دپاره شل شو همدا رنګي درسول الله په زمانه كي يوه ښځه هم وه چي نوم يي سبيعه اسلميه وه هغي ته هم رسول الله په چپ لاس دخوراك په وجه خيري كړي وي نو نتيجه يي دا شوه چي په طاعون مرض مبتلا شوه او ددنيا نه رخصت شوه

علماء واني په ښي لاس خوراك واجب نه دي بلكه سنت دي په دي روايتونو كي چي دغه كسانو ته كومه سزا وركړی شوي ده دا دسنت دمخالفت په وجه ده او يا دا چي په زجر او تنبيه باندي محمول ده دا مسئله ورنه هم معلومه شوه چي بعضي خلق دخوراك په دوران كي داوبو ګلاس په چپ لاس باندي نيسي او ښي لاس يي ورسره لګ شان لګولی وي دا هم خلاف

---

[1] _ مسلم_ الأشربة ١٣ (٢٠٢١) و ابي داود _ الأطعمة ٢٠ (٢٤٤٦) ، (تحفة الأشراف : ٨٥٠٩) ، والمؤطاء صفة النبي ﷺ ٢ (٦) ، و احمد في المسند (٢_١٠٦) ، سنن الدارمي_ الأطعمة ٩ (٢٠٤٣)

سنت دي بلکه په نبي لاس نيول پکار دي خو که ګوتي يې ککړي وي نو اول دي هغه اوڅټي او بيا دي ګلاس اونيسي

****************

## ١٠_ بَاب مَا جَاءَ فِي لَعْقِ الأَصَابِعِ بَعْدَ الأَكْلِ

## د خوراک کولو نه پس د ګوتو څټلو بيان

١٨٠١_حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ أَبِي الشَّوَارِبِ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ الْمُخْتَارِ، عَنْ سُهَيْلِ بْنِ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " إِذَا أَكَلَ أَحَدُكُمْ فَلْيَلْعَقْ أَصَابِعَهُ فَإِنَّهُ لاَ يَدْرِي فِي أَيَّتِهِنَّ الْبَرَكَةُ ". قَالَ: وَفِي الْبَاب عَنْ جَابِرٍ، وَكَعْبِ بْنِ مَالِكٍ، وَأَنَسٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ لاَ نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ هَذَا الْوَجْهِ مِنْ حَدِيثِ سُهَيْلٍ، وَسَأَلْتُ مُحَمَّدًا عَنْ هَذَا الْحَدِيثِ، فَقَالَ: حَدِيثُ عَبْدِ الْعَزِيزِ مِنَ الْمُخْتَلِفِ لاَ يُعْرَفُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِهِ. (١)

**ترجمه** دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي کله چي په تاسو کي څوک خوراک اوکړي نو خپلي ګوتي دي اوڅټي خکه چي هغه ته معلومه نه ده چي ددي طعام په کومه حصه کي برکت دي.

امام ترمذي وايي : داحديث حسن غريب دي، ما دامام بخاري نه ددي حديث باره کي تپوس اوکړو نو هغه اووئيل دعبدالعزيز داحديث دمختلفو قبيلو نه مروي دي او صرف دده په سند مسند دي. او په دي باب کي دجابر، کعب بن مالك، او انس رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي او مونږ دا په دي سند صرف د سهيل په روايت پيژنو

**لغات**: يلعق لعق لعقا دسمع نه په معني دڅټلو دي په ژبي سره

**تشريح** : فاليلعق اصابعه ، يعني کله چي دخوراك نه څوك فارغ شي نو خپلي ګوتي دي اوڅټي دا اګر چي جدا حکم دی ليکن په حقيقت کښ درومبي حکم نه مستفاد دی چي تکبر پريخودونکی او تواضع او انکساري اختيارونکی دپاره دا دوباره حکم دی ددي فائده به دا وي چي دالله رزق ته دکامل احتياج اظهار اوشي او دتکبر څه شعبه باقي پاتي نشي

****************

## ١١_ باب مَا جَاءَ فِي اللُّقْمَةِ تَسْقُطُ

## كله چې دچا نه نوړئ پريوځي ( نوځه كول پكار دي )

١٨٠٢_حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا ابْنُ لَهِيعَةَ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " إِذَا أَكَلَ أَحَدُكُمْ طَعَامًا فَسَقَطَتْ لُقْمَةٌ فَلْيُمِطْ مَا رَابَهُ مِنْهَا ثُمَّ لِيَطْعَمْهَا وَلَا يَدَعْهَا لِلشَّيْطَانِ ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنْ أَنَسٍ. (١)

**ترجمه** دجابر رضي الله عنه نه مروي دي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي كله چې په تاسو كې څوك خوراك كوي او نوړئ ورنه پريوځي نو په دي كې چې كومه ناخوښه اوګنړې هغه دي ورنه جدا كړي او بيا دي دا اوخوري او شيطان ته دي دا طعام نه پريږدي

امام ترمذي وايي په دي باب كې دانس رضي الله عنه نه هم روايت وارد دي

**تشريح** : دغورخيدلي نوړئ دپورته كيدلو حكم په دي وجه شوى دى چې چرته دا بركت والا حصه نه وي او دا كس ورنه محروم نشي او په دي كې تواضع او عاجزي هم ده او په دي كې دمتكبرينو دعمل نه اجتناب هم دى او دالله دنعمت قدرداني هم ده او په دي باندي شيطان هم ذليل كيږي.

شيطان دانسان سره هر وخت موجود وي او هر وخت دا كوشش كوي چې انسان لره دالله نافرمانۍ ته تيار كړي كه دخوراك په شروع كې بسم الله اوونيلى شي نو ددي په سبب انسان دشيطان دهتكړو نه خلاصيږي.

فسقط لقمة: كله چې په تاسو كې دچا نوړئ پريوځي ددينه معلوميږي چې پريوتلي لقمه نه خوړل ددي سبب ګرځي چې دا دشيطان خوراك اوګرځي او چې كله دا دپاكولو نه پس وخوري نو په دي باندي شيطان خفه كيږي

"فلياخذها فليمط ماكان بها من اذي" يعني پريوتلى نوړئ دي راپورته كړي او دخاورو نه به يې پاكوي او كه په ګندګئ كې پريوتې وي نو وينځي به يې خو كه دخوړلو لائق نه وي نوځاروو ته به يې غورځوي

مروي دي چې يوځل دحذيفه رضي الله عنه دلاس نه لقمه پريوتله نو هغه فورا راپورته كړه او پاكه يې كړه څه كسانو وويل چې دلته دغير مسلمو سردار هم موجود دي هغه به څه سوچ وي، په دي وخت كې حذيفه رضي الله عنه ته غصه ورغله او وې فرمائل : ءاترك سنة حبيبي

---

١ _ مسلم_ الأشربة ١٨(٢٠٣٣) . سنن ابن ماجه_ الأطعمة ١٣(٣٢٧٩) . (تحفة الأشراف : ٢٧٨) . واحمد في المسند (٣_ ٣٠١، ٣٣١، ٣٣١) . ٣٣٧، ٣٦٦، ٣٩٣)

لهؤلاء الحمقاء.

****************

١٨٠٣_حَدَّثَنَا الحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ الخَلَّالُ. حَدَّثَنَا عَفَّانُ بْنُ مُسْلِمٍ. حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ. حَدَّثَنَا ثَابِتٌ. عَنْ أَنَسٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "كَانَ إِذَا أَكَلَ طَعَامًا لَعِقَ أَصَابِعَهُ الثَّلَاثَ". وَقَالَ: "إِذَا مَا وَقَعَتْ لُقْمَةُ أَحَدِكُمْ فَلْيُمِطْ عَنْهَا الأَذَى وَلْيَأْكُلْهَا وَلَا يَدَعْهَا لِلشَّيْطَانِ". وَأَمَرَنَا أَنْ نَسْلِتَ الصَّحْفَةَ، وَقَالَ: إِنَّكُمْ لَا تَدْرُونَ فِي أَيِّ طَعَامِكُمُ الْبَرَكَةُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ صَحِيحٌ. (1)

**ترجمه**: دانس رضي الله عنه بيان دي فرمائي چي کله به نبي کريم صلي الله عليه وسلم خوراك اوکړو نو خپلي دري واړه ګوتي به يي اوختلي او فرمائيل به يي کله چي په تاسو کي دچا نوړۍ پريوځي نو ددينه دي ګرد او غبار لري کړي او بيا دي دا اوخوري او شيطان ته دي دا نه پريږدي اورسول الله مونږ ته دپليټ دختلو حکم کړي دي او فرمانيلي يي دي تاسو ته معلومه نه ده چي ستاسو دطعام په کومه حصه کي برکت دي.

امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح غريب دي.

**تشريح**: ولايدعها للشيطان. يعني شيطان ته به يي نه پريږدي په دي باره کي دبعضو علماؤ قول دادی چي واقعي شيطان پريوتلي لقمه خوري يعني هغوئ دا جمله په حقيقت حمل کوي ليکن بعضي عالمان دا جمله په مجاز حمل کوي مطلب دادی چي پريوتلي لقمه نه پورته کول او سپك ګنړل دمتکبرينو عادت دی او تکبر والاعمل دشيطاني اثراتو په وجه وي

****************

١٨٠٤_حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ الجَهْضَمِيُّ. أَخْبَرَنَا أَبُو الْيَمَانِ الْمُعَلَّى بْنُ رَاشِدٍ. قَالَ: حَدَّثَتْنِي جَدَّتِي أُمُّ عَاصِمٍ وَكَانَتْ أُمَّ وَلَدٍ لِسِنَانِ بْنِ سَلَمَةَ. قَالَتْ: دَخَلَ عَلَيْنَا نُبَيْشَةُ الْخَيْرِ وَنَحْنُ نَأْكُلُ فِي قَصْعَةٍ. فَحَدَّثَنَا أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "مَنْ أَكَلَ فِي قَصْعَةٍ ثُمَّ لَحِسَهَا اسْتَغْفَرَتْ لَهُ

---

1 _ صحيح مسلم_ الأشربة ١٨ (٢٠٣٢). سنن ابي داود_ الأطعمة ٥٠ (٣٨٤٥). (تحفة الأشراف: ١٨٠٣). و احمد في المسند (٣_١١٧، ٢٩٠). سنن الدارمي_ الأطعمة ٨ (٢٠٤١)

الْقَصْعَةُ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ الْمُعَلَّى بْنِ رَاشِدٍ وَقَدْ رَوَى يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ وَغَيْرُ وَاحِدٍ مِنَ الْأَئِمَّةِ، عَنِ الْمُعَلَّى بْنِ رَاشِدٍ هَذَا الْحَدِيثَ. [1]

**ترجمه** دام عاصم بيان دي فرمائي چي مونږ كره نبيشه الخير راغلو او مونږ په يو لوښي كي خوراك كولو نو هغه مونږ ته حديث بيان كړو چي رسول الله صلي الله علي وسلم فرمائيلي دي څوك چي كوم لوښي كي خوراك اوكړي او بيا يي اوځټي نو دا لوښي دده دپاره استغفار وائي امام ترمذي وايي داحديث غريب دي دا مونږ ته صرف دمعلي بن راشد په سند رارسيدلي دي يزيد بن هارون او بعضي نورو محدثينو هم دا حديث دمعلي بن راشد نه نقل كړي دي

******************

## ١٢ـ بَاب مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ الأَكْلِ مِنْ وَسَطِ الطَّعَامِ

### دكاسي دمينځ نه خوړل مكروه دي

١٨٠٥ـ حَدَّثَنَا أَبُو رَجَاءٍ، حَدَّثَنَا جَرِيرٌ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ السَّائِبِ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " الْبَرَكَةُ تَنْزِلُ وَسَطَ الطَّعَامِ فَكُلُوا مِنْ حَافَتَيْهِ وَلَا تَأْكُلُوا مِنْ وَسَطِهِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ إِنَّمَا يُعْرَفُ مِنْ حَدِيثِ عَطَاءِ بْنِ السَّائِبِ وَقَدْ رَوَاهُ شُعْبَةُ، وَالثَّوْرِيُّ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ السَّائِبِ وَفِي الْبَاب، عَنِ ابْنِ عُمَرَ. [2]

**ترجمه** : دابن عباس رضي الله عنهما نه روايت دی چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي: بركت دخوراك په مينځ كې نازليږي، تاسو دغاړی نه خوری، دمينځ نه مه خوری.

امام ترمذي وايي : داحديث حسن صحيح دي او دا روايت صرف دعطاء بن سائب په سند مشهور دي دا روايت شعبه او ثوري هم دعطاء بن سائب نه نقل كړي دي او په دي باب كي دابن عمر نه هم روايت وارد دي.

**لغات:** حافتيه : پخپل پټ خاي كې لكه ګوټ، يا دقدمونو نشانات وغيره

**تشريح**: ددي حديث مضمون په ډيرو روايتونو كې راغلی دی چي بركت دخوراك په مينځ كې نازليږي دكاسي دغاړو نه خوړل پكار دي ددي دپاره چي بركت تراخره پوري پاتي شي په دي

---

[1] ـ سنن ابن ماجه ـ الأطعمة ١٠ (٣٢٧١) . (تحفة الأشراف : ١١٥٨٨)

[2] ـ سنن ابي داود ـ الأطعمة ١٨ (٣٧٧٢) . سنن ابن ماجه ـ الأطعمة ١٢ (٣٢٧٧) . (تحفة الأشراف : ٥٥٦٦) . سنن الدارمي ـ الأطعمة ١٦ (٢٠٩٠)

روايت کې هم ديته ترغيب ورکړی شوی دی چې دکاسي دغاړو نه خوري او درمياني حصه په اخر کې خوړل پکار دي

***************

## ١٣_ باب مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ أَكْلِ الثُّومِ وَالْبَصَلِ

### داوړي او پياز خوړلو دکراهت بيان

١٨٠٦_حَدَّثَنَا إِسْحَاق بْنُ مَنْصُورٍ، أَخْبَرَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ الْقَطَّانُ، عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ، حَدَّثَنَا عَطَاءٌ، عَنْ جَابِرٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ أَكَلَ مِنْ هَذِهِ قَالَ أَوَّلَ مَرَّةٍ الثُّومِ ثُمَّ قَالَ الثُّومِ وَالْبَصَلِ وَالْكُرَّاثِ فَلَا يَقْرَبْنَا فِي مَسْجِدِنَا". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ وَفِي الْبَابِ عَنْ عُمَرَ، وَأَبِي أَيُّوبَ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَأَبِي سَعِيدٍ، وَجَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ، وَقُرَّةَ بْنِ إِيَاسٍ الْمُزَنِيِّ، وَابْنِ عُمَرَ. [1]

**ترجمه** دجابر رضي الله عنه نه روايت دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي څوك چې په تاسو کې اوږه اوخوري، او که داسي يې اوفرمانيل چې اوږه يا پياز يا ګندنه اوخوري نو هغه دي مسجد کې مونږ ته نه رانزدي کيږي

امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي، او په دي باب کې به عمر، ابوايوب، ابوهريره، ابوسعيد خدري، جابر بن سمره، قره بن اياس مزني او ابن عمر رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي.

***************

١٨٠٧_حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ، أَنْبَأَنَا شُعْبَةُ، عَنْ سِمَاكِ بْنِ حَرْبٍ، سَمِعَ جَابِرَ بْنَ سَمُرَةَ يَقُولُ: نَزَلَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى أَبِي أَيُّوبَ وَكَانَ إِذَا أَكَلَ طَعَامًا بَعَثَ إِلَيْهِ بِفَضْلِهِ فَبَعَثَ إِلَيْهِ يَوْمًا بِطَعَامٍ وَلَمْ يَأْكُلْ مِنْهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمَّا أَتَى أَبُو أَيُّوبَ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَكَرَ ذَلِكَ لَهُ. فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "فِيهِ ثُومٌ". فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللهِ

[1] _ اخرجه البخاري في الصحيح_ الأذان ١٦ (٨٥٣)، والأطعمة ٤٩ (٥٤٥٢)، والاعتصام ٢٢ (٧٣٥٩). صحيح مسلم المساجد ١٧ (٥٦٤)، سنن ابي داود_ الأطعمة ٤١ (٣٨٢٢)، سنن النسائي_ المساجد ١٦ (٧٠٨)، (تحفة الأشراف: ٢٤٤٧). و احمد في المسند (٣_ ٣٧٤، ٣٨٧)

أَحَرَامٌ هُوَ؟، قَالَ: "لَا وَلَكِنِّي أَكْرَهُهُ مِنْ أَجْلِ رِيحِهِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. ([1])

**ترجمه** دجابر بن سمره رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم (دهجرت نه پس) دابوايوب انصاري رضي الله عنه په کور کي اوسيدل اختيار کړل، ابوايوب انصاري چي به هر کله خوراك کولو نو ددي څه حصه به يي رسول الله ته ليږله رسول الله ورته يوه ورځ تول خوراك واپس راوليږلو او ددينه يي هيڅ اونه خوړل کله چي دابوايوب سره ملاؤ شو نو ابوايوب ورته ددي ذکر اوکړو رسول الله اوفرمائيل په دي کي اوږه ده ابوايوب ورنه تپوس اوکړو اي دالله رسوله ايا دا حرامه ده؟ رسول الله اوفرمائيل حرامه نه ده ليکن دبدبوئ په وجه يي زه نه خوښوم.

امام ترمذي وايي .داحديث حسن صحيح دي.

****************

## ١٤_ باب مَا جَاءَ فِي الرُّخْصَةِ فِي الثُّومِ مَطْبُوخًا

### دپخي اوږي دخوړلو درخصت بيان

١٨٠٨_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مَدُّوَيْهِ، حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا الْجَرَّاحُ بْنُ مَلِيحٍ وَالِدُ وَكِيعٍ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ شَرِيكِ بْنِ حَنْبَلٍ، عَنْ عَلِيٍّ أَنَّهُ قَالَ: "نُهِيَ عَنْ أَكْلِ الثُّومِ إِلَّا مَطْبُوخًا". ([2])

**ترجمه** : دعلي رضي الله عنه بيان دي د اوږي خوړلو نه منع راغلي ده مګر علاوه دهغي نه کومه چي پخه شوي وي.

****************

١٨٠٩_ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ شَرِيكِ بْنِ حَنْبَلٍ، عَنْ عَلِيٍّ قَالَ: "لَا يَصْلُحُ أَكْلُ الثُّومِ إِلَّا مَطْبُوخًا". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا الْحَدِيثُ لَيْسَ إِسْنَادُهُ بِذَلِكَ الْقَوِيِّ وَقَدْ رُوِيَ هَذَا عَنْ عَلِيٍّ قَوْلُهُ، وَرُوِيَ عَنْ شَرِيكِ بْنِ حَنْبَلٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُرْسَلًا. قَالَ مُحَمَّدٌ الْجَرَّاحُ بْنُ مَلِيحٍ صَدُوقٌ، وَالْجَرَّاحُ بْنُ الضَّحَّاكِ مُقَارِبُ الْحَدِيثِ. ([3])

---

[1] _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ١٨٠٤)

[2] _ سنن ابي داود_ الأطعمة ٤١ (٣٨٢٨). (تحفة الأشراف: ١٠١٢٧)

[3] _ (تحفة الأشراف: ١٠١٢٧)

**ترجمه** دشريك بن حنبل نه روايت دي فرمائي چي علي رضي الله عنه به اوږه خوړل مكروه ګڼړل مګر علاوه دهغې اوږي نه کومه چي پخه شوي وي

امام ترمذي وايي ددي حديث سند قوي نه دي اودادعلي رضي الله عنه قول دي. دشريك بن حنبل په واسطه داحديث درسول الله صلي الله عليه وسلم نه مرسل هم مروي دي امام بخاري وائي دجراح بن مليح راوي صدوق دي او جراح بن ضحاك مقارب الحديث دي

***************

١٨١٠_حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ الصَّبَّاحِ الْبَزَّارُ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي يَزِيدَ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّ أُمَّ أَيُّوبَ أَخْبَرَتْهُ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "نَزَلَ عَلَيْهِمْ فَتَكَلَّفُوا لَهُ طَعَامًا فِيهِ مِنْ بَعْضِ هَذِهِ الْبُقُولِ فَكَرِهَ أَكْلَهُ"، فَقَالَ لِأَصْحَابِهِ: "كُلُوهُ فَإِنِّي لَسْتُ كَأَحَدِكُمْ إِنِّي أَخَافُ أَنْ أُوذِيَ صَاحِبِي". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ، وَأُمُّ أَيُّوبَ هِيَ امْرَأَةُ أَبِي أَيُّوبَ الْأَنْصَارِيِّ. ([1])

**ترجمه** دابوايوب انصاري رضي الله عنه نه مروي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم دهجرت نه پس زمونږ په کور کي اوسيدلو او مونږ دهغه دپاره تکلفي خوراك تيار کړو چي څه په دي کي دسبزيانو نه هم موجود دي (لکه ګندنه وغيره) چنانچي رسول الله صلي الله عليه وسلم ددي خوړل خوښ نکړل صحابه کرامو ته يي اوفرمائيل تاسو يي خوړلي شئ خکه چي زه په تاسو کي ديو عام کس پشان نه يم زه ويريږم چي زه خپل ملګري (جبرائيل) ته چرته تکليف اونه رسوم

امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح غريب دي، ام ايوب دابوايوب انصاري ښځه ده

***************

١٨١١_حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ حُمَيْدٍ، حَدَّثَنَا زَيْدُ بْنُ الْحُبَابِ، عَنْ أَبِي خَلْدَةَ، عَنْ أَبِي الْعَالِيَةِ، قَالَ: "الثُّومُ مِنْ طَيِّبَاتِ الرِّزْقِ". وَأَبُو خَلْدَةَ اسْمُهُ خَالِدُ بْنُ دِينَارٍ وَهُوَ ثِقَةٌ عِنْدَ أَهْلِ الْحَدِيثِ وَقَدْ أَدْرَكَ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ وَسَمِعَ مِنْهُ وَأَبُو الْعَالِيَةِ اسْمُهُ رُفَيْعٌ هُوَ الرِّيَاحِيُّ. قَالَ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ كَانَ أَبُو خَلْدَةَ خِيَارًا مُسْلِمًا. ([2])

---

[1] _ سنن ابن ماجه_الأطعمة ٥٩ (٣٣٦٤). (تحفة الأشراف: ١٨٣٠٢)

[2] _ تفرد به المؤلف. (تحفة الأشراف: ١٨٦٣٦)

**ترجمه** دابوالعاليه بيان دي چي اوږه حلال رزق دي او د ابوخلده نوم خالد بن دينار دي او دي دمحدثينو په نزد ثقه دي ابوخلده دانس بن مالك سره ملاقات کړي دي او احاديث يې ورنه اوريدلي دي او دابوالعاليه نوم رفيع دي او دي په رفيع رياحي مشهور دي عبدالرحمن بن مهدي وائي ابوخلده يونوي مسلمان شوي شخص وو.

****************

## ١٥_ باب مَا جَاءَ فِي تَخْمِيرِ الإِنَاءِ وَإِطْفَاءِ السِّرَاجِ وَالنَّارِ عِنْدَ الْمَنَامِ

**داوده کيدو وخت کي دلوښودسرونو دپټولو اودچراغ او اوروژلو بيان**

**١٨١٢_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، عَنْ مَالِكِ بْنِ أَنَسٍ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ، قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " أَغْلِقُوا الْبَابَ وَأَوْكِئُوا السِّقَاءَ وَأَكْفِئُوا الإِنَاءَ أَوْ خَمِّرُوا الإِنَاءَ وَأَطْفِئُوا الْمِصْبَاحَ فَإِنَّ الشَّيْطَانَ لَا يَفْتَحُ غَلَقًا وَلَا يَحِلُّ وِكَاءً وَلَا يَكْشِفُ آنِيَةً وَإِنَّ الْفُوَيْسِقَةَ تُضْرِمُ عَلَى النَّاسِ بَيْتَهُمْ ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنِ ابْنِ عُمَرَ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ وَقَدْ رُوِيَ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ عَنْ جَابِرٍ.** [1]

**ترجمه** دجابر رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي د پريوتلو وخت کي دروازه بندوئ او داوبو دمشکونو خولي بندوئ او دلوښو خولي په سرونو بندوئ او يايې په څه کي پټوئ او چراغونه مړه کوئ ځکه چي شيطان کومه بنده دروازه نه پرانيزي او نه کوم بند ځيز او کوم بند لوښي کولاوهي «او چراغ خو ځکه وژنئ» چي مږي دخلقو کورونه سوزوي

امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي او دجابر رضي الله عنه نه په نورو سندونو هم مروي دي. او په دي باب کي دابن عمر، ابوهريره، اوابن عباس رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي.

****************

[1] _ اخرجه البخاري في الصحيح_ بدء الخلق ٦ (٢٢٢١٦)، والأشربة ٢٢ (٥٦٢٣، ٥٦٢٤)، والاستئذان ٤٩ (٦٢٩٥)، صحيح مسلم_ الأشربة ١٢ (٢٠١٢)، سنن ابي داود_ الأشربة ٢٢ (٣٧٣١_٣٧٣٤)، سنن ابن ماجه_ الأشربة ١٦ (٣٤١٠)، والأدب ٤٦ (٣٧٧١) (تحفة الأشراف: ٢٩٣٤)، واحمد في المسند (٣_٣٥٥)، ويأتي برقم

١٨١٣_حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ، وَغَيْرُ وَاحِدٍ، قَالُوا: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَالِمٍ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا تَتْرُكُوا النَّارَ فِي بُيُوتِكُمْ حِينَ تَنَامُونَ" قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.[1]

**ترجمه** دابن عمر رضي الله عنه نه روايت دى چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چي اوده کيږئ نو کور کي اور بل مه پريدئ.

امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي.

**لغات**: بات يبيت بيتا او بياتا وبيتوتة ومبيتا ومباتا معني چرته شپه تيرول. فلانا وبه وعنده، چاته دشپي ورتلل، اباتة شپه تيرول، البيت جمع بيوت وابيات جمع الجمع بيوتات وابابيت اود بعضو په قول داد اشرف دپاره مختص دي.

**تشريح**: اور به په بل حالت کي نه پريږدئ علماء وائي دلته داور نه هغه اور مراد دی په کوم باندي چي دکوم څيز دسوزيدو خطره وي چراغ وي او که چوله وي او دنن سبا بلفونو نه کوم چي درنړا دپاره دي څه خطره نشته نو که څوك يي دشپي بل پريږدي باك نه لري. شيخ عبدالحق دهلوي وائي که چري اور داسي وي چي په دي دکوم څيز دسوزيدو خطره نه وي نو بيايي دشپي بل پريخودی شئ.

***************

## ١٦_ بَاب مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ الْقِرَانِ بَيْنَ التَّمْرَتَيْنِ

### دوه دوه کجوري په غبرګي خوړل مکروه دي

١٨١٤_حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا أَبُو أَحْمَدَ الزُّبَيْرِيُّ، وَعُبَيْدُ اللهِ، عَنِ الثَّوْرِيِّ، عَنْ جَبَلَةَ بْنِ سُحَيْمٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: نَهَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "أَنْ يُقْرَنَ بَيْنَ التَّمْرَتَيْنِ حَتَّى

---

1 _ اخرجه البخاري في الصحيح_ الاستئذان ٤٩ (٦٢٩٣). مسلم_ الأشربة ١٢ (٢٠١٥). سنن ابي داود_ الأدب ١٧٣ (٥٢٤٦). سنن ابن ماجه_ الأدب ٤٦ (٣٧٦٩). (تحفة الأشراف: ٦٨١٤)

يَسْتَأْذِنَ صَاحِبَهُ ". قَالَ: وَفِي الْبَاب عَنْ سَعْدٍ مَوْلَى أَبِي بَكْرٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (١)

**ترجمه** دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما بيان دي فرمائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم په يو خاي د دوه دوه كجورو خوړلو نه منع فرمانيلي ده مګر چي دخوراك ملګري اجازت اوكړي نو باك نشته

امام ترمذي وائي داحديث حسن صحيح دي او په دي باب كي دسعد مولي ابوبكره رضي الله عنه نه هم روايت وارد دي

****************

## ١٧_ باب مَا جَاءَ فِي اسْتِحْبَابِ التَّمْرِ

### دكجورو داستحباب بيان

١٨١٥_حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَهْلِ بْنِ عَسْكَرٍ الْبَغْدَادِيُّ، وَعَبْدُ اللهِ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، قَالَا: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ حَسَّانَ، حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ بِلَالٍ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " بَيْتٌ لَا تَمْرَ فِيهِ جِيَاعٌ أَهْلُهُ ". قَالَ: وَفِي الْبَاب عَنْ سَلْمَى امْرَأَةِ أَبِي رَافِعٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ لَا نَعْرِفُهُ مِنْ حَدِيثِ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ إِلَّا مِنْ هَذَا الْوَجْهِ قَالَ: وَسَأَلْتُ الْبُخَارِيَّ عَنْ هَذَا الْحَدِيثِ فَقَالَ: لَا أَعْلَمُ أَحَدًا رَوَاهُ غَيْرَ يَحْيَى بْنِ حَسَّانَ. (٢)

**ترجمه** دام المؤمنين عائشه رضي الله عنها نه مروي دي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي په كوم كور كي چي كجوري نه وي دهغه كور خلق وږي دي

امام ترمذي وايي داحديث حسن غريب دي او دا مونږ ته صرف دهشام بن عروه په روايت رارسيدلي دي. ما دامام بخاري نه په دي باره كي تپوس اوكړو نو ويي وئيل ماته ديحي بن حسان نه علاوه بل څوك معلوم نه دي چي دا يي نقل كړي دي، او په دي باب كي دابورافع دښځي سلمه رضي الله عنها نه هم روايت وارد دي

---

[1] _ اخرجه البخاري في الصحيح_ الشركة ٤ (٢٤٩٠) . صحيح مسلم_ الأشربة ٢٥ (٢٠٤٥) . سنن ابي داود_ الأطعمة ٤٣ (٣٨٣٤) . سنن ابن ماجه_ الأطعمة ٤١ (٣٣٣١) . (تحفة الأشراف : ٦٦٦٤) . و احمد في المسند (٢_ ٦٠) . سنن الدارمي_ الأطعمة ٢٥ (٢١٠٢)

[2] _ صحيح مسلم_ الأشربة ٢٦ (٢٠٤٦) . سنن ابي داود_ الأطعمة ٤٢ (٣٨٣٠) . سنن ابن ماجه_ الأطعمة ٣٨ (٣٣٢٧) . (تحفة الأشراف . ١٦٩٣٢) . سنن الدارمي_ الأطعمة ٢٦ (٢١٠٥)

***************

## ۱۸_ باب مَا جَاءَ فِي الحَمْدِ عَلَى الطَّعَامِ إِذَا فُرِغَ مِنْهُ

### دخوراك كولو نه پس حمد او ثناء ويل

۱۸۱۶_حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، وَمَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، قَالَا: حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ، عَنْ زَكَرِيَّا بْنِ أَبِي زَائِدَةَ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي بُرْدَةَ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "إِنَّ اللهَ لَيَرْضَى عَنِ الْعَبْدِ أَنْ يَأْكُلَ الأَكْلَةَ أَوْ يَشْرَبَ الشَّرْبَةَ فَيَحْمَدَهُ عَلَيْهَا" قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ، وَأَبِي سَعِيدٍ، وَعَائِشَةَ، وَأَبِي أَيُّوبَ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ وَقَدْ رَوَاهُ غَيْرُ وَاحِدٍ عَنْ زَكَرِيَّا بْنِ أَبِي زَائِدَةَ نَحْوَهُ وَلَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ زَكَرِيَّا بْنِ أَبِي زَائِدَةَ. (۱)

**ترجمه**: دانس بن مالك رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي يقينا الله تعالي دهغه بنده نه راضي كيږي څوك چي يوه لقمه اوخوري يا يو گوټ اوكړي او په هغي دالله تعالي تعريف اوكړي.

امام ترمذي وايي :داحديث حسن دي، زكريا بن ابي زائده په همدي مضمون دا روايت ډيرو راويانو نه نقل كړي دي او مونږ ته صرف دزكريا بن ابي زائده په روايت رارسيدلي دي. او په دي باب كي دعقبه بن عامر، ابوسعيد، عائشه، ابوايوب، او ابوهريره رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي.

***************

## ۱۹_ باب مَا جَاءَ فِي الأَكْلِ مَعَ الْمَجْذُومِ

### دجذام دمريض سره يوځاي خوراك كول

۱۸۱۷_حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ سَعِيدٍ الأَشْقَرُ، وَإِبْرَاهِيمُ بْنُ يَعْقُوبَ، قَالَا: حَدَّثَنَا يُونُسُ بْنُ مُحَمَّدٍ، حَدَّثَنَا الْمُفَضَّلُ بْنُ فَضَالَةَ، عَنْ حَبِيبِ بْنِ الشَّهِيدِ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْكَدِرِ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللهِ، أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "أَخَذَ بِيَدِ مَجْذُومٍ فَأَدْخَلَهُ مَعَهُ فِي الْقَصْعَةِ". ثُمَّ قَالَ: "كُلْ بِسْمِ اللهِ ثِقَةً بِاللهِ وَتَوَكُّلًا عَلَيْهِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ يُونُسَ بْنِ مُحَمَّدٍ، عَنِ الْمُفَضَّلِ بْنِ فَضَالَةَ، وَالْمُفَضَّلُ بْنُ فَضَالَةَ هَذَا شَيْخٌ بَصْرِيٌّ، وَالْمُفَضَّلُ بْنُ فَضَالَةَ

---

۱ _ صحيح مسلم_ الذكر والدعاء ۲۴ (۲۷۳۴). (تحفة الأشراف. ۸۵۶) واحمد في المسند (۳_ ۱۰۰، ۱۱۷)

هَيْخٌ آخَرُ بَصْرِيٌّ أَوْثَقُ مِنْ هَذَا وَأَشْهَرُ. وَقَدْ رَوَى شُعْبَةُ هَذَا الحَدِيثَ، عَنْ حَبِيبِ بْنِ الشَّهِيدِ، عَنِ ابْنِ بُرَيْدَةَ، أَنَّ ابْنَ عُمَرَ أَخَذَ بِيَدِ مَجْذُومٍ وَحَدِيثُ شُعْبَةَ أَثْبَتُ عِنْدِي وَأَصَحُّ. ([1])

**ترجمه** دجابر بن عبدالله رضي الله عنه نه روايت دي فرماني چي رسول الله صلي الله عليه وسلم ديوجذامي لاس اونيولو او خان سره يي كاسي ته كينولو او بيا يي اوفرمائيل دالله نوم واخله او په هغه اعتماد اوكړه او دتوكل په حال كي خوراك كوه

امام ترمذي وايي داحديث غريب دي دا مونږ ته صرف ديونس بن محمد په روايت رارسيدلي دي او هغه دمفضل بن فضاله په واسطه نقل كړي دي او مفضل بن فضاله يو بصري شيخ دي، او يو بل بصري شيخ هم مفضل بن فضاله دي او هغه دده نه زيات ثقه اومشهور راوي دي، شعبه هم دا روايت په سند دحبيب بن الشهيد عن ابي بريدة ان ابن عمر سره نقل كړي دي چي ابن عمر ديو جذامي لاس اونيولو، زما په نزد دشعبه حديث زيات صحيح او ثابت دي.

***************

## ٢٠_ بابُ مَا جَاءَ أَنَّ الْمُؤْمِنَ يَأْكُلُ فِي مِعًى وَاحِدٍ وَالْكَافِرَ يَأْكُلُ فِي سَبْعَةِ أَمْعَاءٍ

### مومن په يو كولمه كي خوري او كافر په اوه كولمو كي خوري

١٨١٨_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللهِ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " الكَافِرُ يَأْكُلُ فِي سَبْعَةِ أَمْعَاءٍ وَالمُؤْمِنُ يَأْكُلُ فِي مِعًى وَاحِدٍ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ قَالَ: وَفِي البَابِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، وَأَبِي سَعِيدٍ، وَأَبِي بَصْرَةَ الغِفَارِيِّ، وَأَبِي مُوسَى، وَجَهْجَاهٍ الغِفَارِيِّ، وَمَيْمُونَةَ، وَعَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو. ([2])

**ترجمه** : دعبدالله بن عمر رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي كافر په اوه كولمو كي خوراك اچوي او مومن په يوي كولمه كي خوراك اچوي.

---

[1] _ سنن ابي داود_ الطب ٢٢ (٣٩٢٥). سنن ابن ماجه_ الطب ٤٢ (٣٥٤٢)

[2] _ اخرجه البخاري في الصحيح_ الأطعمة ١٢ (٥٣٩٣٥٣٩٥). صحيح مسلم_ الأشربة ٣٤ (٢٠٦٠). سنن ابن ماجه_ الأطعمة ٣ (٣٢٥٧). (تحفة الأشراف: ٨١٥٦). واحمد في المسند (٢_٢١، ٤٣، ٧٤، ١٤٥)

امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي اوپه دي باب کي دابوهريره، ابوسعيد، ابوبصره غفاري، ابوموسي، جهجاه، ميمونه ، او عبدالله بن عمر رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي.

*****************

١٨١٩ـ حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ مُوسَى الأَنْصَارِيُّ، حَدَّثَنَا مَعْنٌ، حَدَّثَنَا مَالِكٌ، عَنْ سُهَيْلِ بْنِ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "ضَافَهُ ضَيْفٌ كَافِرٌ فَأَمَرَ لَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِشَاةٍ فَحُلِبَتْ فَشَرِبَ، ثُمَّ أُخْرَى فَشَرِبَهُ، ثُمَّ أُخْرَى فَشَرِبَهُ حَتَّى شَرِبَ حِلاَبَ سَبْعِ شِيَاهٍ، ثُمَّ أَصْبَحَ مِنَ الغَدِ فَأَسْلَمَ، فَأَمَرَ لَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِشَاةٍ فَحُلِبَتْ فَشَرِبَ حِلاَبَهَا، ثُمَّ أَمَرَ لَهُ بِأُخْرَى فَلَمْ يَسْتَتِمَّهَا". فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "الْمُؤْمِنُ يَشْرَبُ فِي مِعًى وَاحِدٍ، وَالكَافِرُ يَشْرَبُ فِي سَبْعَةِ أَمْعَاءٍ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ مِنْ حَدِيثِ سُهَيْلٍ.[1]

**ترجمه** : امام ترمذي وايي : دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دي درسول الله سره يو كافر ميلمه شو نو دهغه دپاره يې په يو گډه باندي حكم اوكړو نو هغه اولوشولي شوه ده اوڅكل بيا يې د بلي حكم اوكړو نو هغه يې هم اوڅكل تردي چي د اوه گډو پۍ يې اوڅكل بيا چي كله سحر شو نو رسول الله دده دپاره حكم اوكړو په يو گډه نو هغه اولوشلي شوه او ده دهغي پۍ اوڅكل بيا يې دبلي په لوشلو حكم اوكړو نو هغه يې ختم نكړي شو دي وخت كي رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل كافر په اوه كولمو كي خوراك اچوي او مومن په يو كولمه كي خوراك اچوي

امام ترمذي واني داحديث د سهيل په سند حسن صحيح غريب دي

*****************

## ٢١ـ بَابُ مَا جَاءَ فِي طَعَامِ الْوَاحِدِ يَكْفِي الاِثْنَيْنِ

### ديوكس خوراك د دوه كسانو دپاره كافي كيږي

[1] ـ اخرجه البخاري في الصحيح ـ الأطعمة ١٢ (٥٣٩٦،٥٣٩٧) صحيح مسلم ـ الأشربة ٣٤ (٢٠٦٢) سنن ابن ماجه ـ الأطعمة ٣ (٣٢٥٦) . (تحفة الأشراف : ١٢٧٣٩) . والموطاء صفة النبي ﷺ ٦ (٩، ١٠) . مسند احمد (٢، ٢٤٥، ٢٥٧، ٢١٥، ٣٣٥، ٣٧٤، ٤٥٥) . سنن الدارمي ـ الأطعمة ١٣ (٢٠٨٤)

۱۸۲۰_حَدَّثَنَا الأَنْصَارِيُّ، حَدَّثَنَا مَعْنٌ، حَدَّثَنَا مَالِكٌ، ح وحَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ أَبِي الزِّنَادِ، عَنِ الأَعْرَجِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "طَعَامُ الِاثْنَيْنِ كَافِي الثَّلَاثَةِ، وَطَعَامُ الثَّلَاثَةِ كَافِي الأَرْبَعَةِ". قَالَ: وَفِي البَابِ عَنْ جَابِرٍ، وَابْنِ عُمَرَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (حديث مرفوع) وَرَوَى جَابِرٌ، وَابْنُ عُمَرَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "طَعَامُ الوَاحِدِ يَكْفِي الِاثْنَيْنِ وَطَعَامُ الِاثْنَيْنِ يَكْفِي الأَرْبَعَةَ وَطَعَامُ الأَرْبَعَةِ يَكْفِي الثَّمَانِيَةَ".(۱)

**ترجمه**: ابوهريره رضي الله عنه دا روايت هم بيان کړی دی چي رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل د دوو کسانو لاتق خوراك دريو کسانو دپاره کافي کيږي او د دريو کسانو لاتق خوراك د څلورو کسانو دپاره کافي کيږي (بخاري ومسلم) او دمسلم په يو روايت کې په حواله دجابر رضي الله عنه داسی دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل چې ديوتن خوراك دوو دپاره او د دوو خوراك دڅلورو دپاره او دڅلورو خوراك اتو کسانو دپاره کافي کيږي.

امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي، دجابر او ابن عمر رضي الله عنهما نه روايت دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي ديو کس خوراك د دوه کسانودپاره کافي کيږي او د دوه کسانو خوراك دڅلورو کسانو دپاره کافي کيږي او د څلورو کسانو خوراك د اته کسانو دپاره کافي کيږي.

**لغات**: کافي کفيٰ کفاية دضرب نه په معني دکافي کيدو دي او صفت يې کاف راځي کفي الشيء فلانا يعني فلاني شي دفلاني دپاره کافي شو، يا هغه ورباند قناعت وکړو اودبل شي نه بې نيازه کيدل.

**تشريح**: يعني څومره خوراك چي دوه کسان مړولی شي نو دومره خوراك په طور دقناعت ددري کسانو دپاره کافي کيږي يعني چي د دري کسانو ولږه ورباندي ختمه شي او دعبادت دپاره ورته طاقت حاصل شي ددومره خوراك دڅلورو کسانو دپاره دکافي کيدو هم دا مطلب دی باقي دي ورباندي قياس کړی شي

په دي حديث کې دي خبري ته هم اشاره ده چي ستاسو سره کوم خوراك موجود دی نو تاسو

۱ _ اخرجه البخاري في الصحيح_ الأطعمة ۱۱ (۵۳۹۲). صحيح مسلم_ الأشربة ۳۳ (۲۰۵۸). و احمد في المسند (۲_

ورنه په قدر دضرورت اوخوری او باقي كوم محتاج او فقير ته وركړی عمر رضي الله عنه دقحط سالئ په زمانه کې فرمائيلي وو زما زړه غواړي چي هر كور ته دنيمي خيتې په مقدار خوراك اوليږم او په نيمه خيته خوراك كولو سره سړی نه مړ كيږي

په پورتني حديث کې چي چرته دايثار او قناعت سبق وركړی شوی دی هلته دا هم معلوميږي چي دانسان نفس اماره خودا غواړي چي هر څه اوخوري او جمع يې كړي مگر دانساني همدردئ تقاضا داده چي الله تعالي تاته څه دركړي دي په هغي کې دخان سره نورخوك هم شريك كړی

*****************

حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي سُفْيَانَ، عَنْ جَابِرٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِهَذَا. (١)

**ترجمه** . په دي سند هم دجابر رضي الله عنه نه دماقبل هم معني روايت مروي دي

*****************

## ٢٢_ بَابُ مَا جَاءَ فِي أَكْلِ الْجَرَادِ

### د ملخ خوړلو د جواز بيان

١٨٢١_ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ أَبِي يَعْفُورٍ العَبْدِيِّ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي أَوْفَى أَنَّهُ سُئِلَ عَنِ الجَرَادِ فَقَالَ: " غَزَوْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سِتَّ غَزَوَاتٍ نَأْكُلُ الجَرَادَ " قَالَ أَبُو عِيسَى: هَكَذَا رَوَى سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنْ أَبِي يَعْفُورٍ هَذَا الحَدِيثَ، وَقَالَ سِتَّ غَزَوَاتٍ: وَرَوَى سُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ وَغَيْرُ وَاحِدٍ هَذَا الحَدِيثَ، عَنْ أَبِي يَعْفُورٍ، فَقَالَ: سَبْعَ غَزَوَاتٍ. (٢)

**ترجمه** . دعبدالله بن ابي اوفي رضي الله عنهما نه روايت دی چي مونږ رسول الله صلي الله عليه وسلم سره شپږ غزاگانی داسی کړي دي چي ملخان به مو خوړل

---

[1] _ صحيح مسلم_ الأشربة ٣٢ (٢٠٥٩) . سنن ابن ماجه_ الأطعمة ٢ (٣٢٥٣) . (تحفة الأشراف ٢٣٠١) ، و احمد في المسند (٣_ ٣٠١، ٣٨٢) . سنن الدارمي_ الأطعمة ١٣ (٢٠٨٦)

[2] _ اخرجه البخاري في الصحيح_ الصيد ١٣ (٥٤٩٥) . صحيح مسلم_ الصيد ٨ (١٩٣٢) سنن ابي داود_ الأطعمة ٣٥ (٣٨١٢) . سنن النسائي_ الصيد ٣٧ (٤٣٦١) (تحفة الأشراف ٥١٨٢) و احمد في المسند (٤_ ٣٥٣، ٣٥٧، ٣٨٠) . وسنن الدارمي_ الصيد ٥ (٢٠٥٣)

امام ترمذي وايي دا حديث سفيان بن عيينه په همدي مضمون دابويعفور نه نقل كړي دي او وئيلي يي دي ما درسول الله سره شپږ غزاګاني كړي دي، او سفيان ثوري او نورو راويانو دابويعفور نه دا حديث په دي طريقه نقل كړي دي چي اوه غزاګاني مي كړي دي

**لغات** : الجراد معني ملخان واحد يي جرادة دي. غزوات جمع دغزوة ده معني جنګ او قتال

**تشريح** : "ناكل معه الجراد" يعني مونږ به دنبي كريم صلي الله عليه وسلم سره ملخان خوړل.
ملخ يو حلال څيز دى همدا وجه ده چي رسول الله صحابه كرام ددي دخوړلو نه نه دي منع كړي اوپخپله درسول الله نه ددي خوړل ثابت نه دي بلكه يو خل يي فرمائيلي وو چي زه يي نه پخپله خورم او نه يي حرام ګڼړم.
ملخ دځلورو واړو امامانو په نزد حلال دى برابره خبره ده چي پخپله مړ شي او كه ذبح كړى شي او كه دښكار په ذريعه مړ شي او كه ښكار هر چا كړى وي مسلمان وي او كه غير مسلم وي خو بهر حال ملخ حلال دى

*****************

١٨٢٢ـ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا أَبُو أَحْمَدَ، وَالْمُؤَمَّلُ، قَالَا: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ أَبِي يَعْفُورٍ، عَنِ ابْنِ أَبِي أَوْفَى، قَالَ: " غَزَوْنَا مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَبْعَ غَزَوَاتٍ نَأْكُلُ الْجَرَادَ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَرَوَى شُعْبَةُ هَذَا الْحَدِيثَ، عَنْ أَبِي يَعْفُورٍ، عَنِ ابْنِ أَبِي أَوْفَى، قَالَ: " غَزَوْتُ مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غَزَوَاتٍ نَأْكُلُ الْجَرَادَ ".([1])

**ترجمه** : دعبدالله بن ابي اوفي رضي الله عنهما نه روايت دى چي مونږ رسول الله صلي الله عليه وسلم سره مي اوه غزاګانى داسى كړي دي چي ملخان به مو خوړل

امام ترمذي وايي : شعبه هم دا روايت دابي يعفور په واسطه دابن ابي اوفي نه نقل كړي دي چي ما درسول الله سره اوه غزوات كړي دي او مونږ به ملخان خوړل.

*****************

---

[1] ـ اخرجه البخاري في الصحيح ـ الصيد ١٣ (٥٤٩٥) . صحيح مسلم ـ الصيد ٨ (١٩٢٢) . سنن ابي داود ـ الأطعمة ٣٥ (٣٨١٢) . سنن النسائي ـ الصيد ٣٧ (٤٣٦١) . (تحفة الأشراف : ٥١٨٢) . و احمد في المسند (٤ ـ ٣٥٣، ٣٥٧، ٣٨٠) وسنن الدارمي ـ الصيد ٥ (٢٠٥٣)

حَدَّثَنَا بِذَلِكَ مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ. حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ. حَدَّثَنَا شُعْبَةُ بِهَذَا. قَالَ وَفِي الْبَابِ عَنِ ابْنِ عُمَرَ. وَجَابِرٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ وَأَبُو يَعْفُورٍ اسْمُهُ وَاقِدٌ وَيُقَالُ: وَقْدَانُ أَيْضًا وَأَبُو يَعْفُورٍ الْآخَرُ اسْمُهُ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ عُبَيْدِ بْنِ نِسْطَاسٍ. (1)

**ترجمه** دا روايت هم دشعبه په سند دماقبل هم معني مضمون باندي مروي دي

امام ترمذي وايي او په دي باب كي دابن عمر اوجابر رضي الله عنهما نه هم حديث مروي دي او دا حديث حسن صحيح دي او دابويعفور نوم واقد دي او وقدان ورته هم ونيلي شي دده نه علاوه يو بل ابويعفور دي دهغه نوم عبدالرحمن بن عبيد بن نسطاس دي

***************

## ۲۳_ بَابُ مَا جَاءَ فِي الدُّعَاءِ عَلَى الْجَرَادِ

## ملخانوته د خيروكولوبيان

۱۸۲۳_ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ. حَدَّثَنَا أَبُو النَّضْرِ هَاشِمُ بْنُ الْقَاسِمِ. قَالَ: حَدَّثَنَا زِيَادُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُلَاثَةَ. عَنْ مُوسَى بْنِ مُحَمَّدِ بْنِ إِبْرَاهِيمَ التَّيْمِيِّ. عَنْ أَبِيهِ. عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ. وَأَنَسِ بْنِ مَالِكٍ. قَالَا: كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا دَعَا عَلَى الْجَرَادِ. قَالَ: "اللَّهُمَّ أَهْلِكِ الْجَرَادَ اقْتُلْ كِبَارَهُ وَأَهْلِكْ صِغَارَهُ وَأَفْسِدْ بَيْضَهُ وَاقْطَعْ دَابِرَهُ وَخُذْ بِأَفْوَاهِهِمْ عَنْ مَعَاشِنَا وَأَرْزَاقِنَا إِنَّكَ سَمِيعُ الدُّعَاءِ". قَالَ: فَقَالَ رَجُلٌ: يَا رَسُولَ اللَّهِ كَيْفَ تَدْعُو عَلَى جُنْدٍ مِنْ أَجْنَادِ اللَّهِ بِقَطْعِ دَابِرِهِ؟. قَالَ: فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّهَا نَثْرَةُ حُوتٍ فِي الْبَحْرِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ هَذَا الْوَجْهِ. وَمُوسَى بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ إِبْرَاهِيمَ التَّيْمِيُّ قَدْ تُكُلِّمَ فِيهِ وَهُوَ كَثِيرُ الْغَرَائِبِ وَالْمَنَاكِيرِ. وَأَبُوهُ مُحَمَّدُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ ثِقَةٌ وَهُوَ مَدَنِيٌّ. (2)

**ترجمه** د جابر بن عبد الله او انس بن مالك رضي الله عنهما نه مروي دي كله چي به رسول الله صلي الله عليه وسلم ملخانو ته خيري كولي نو دا دعاء به يي ونيله

---

1 _ اخرجه البخاري في الصحيح الصيد ۱۳ (۵۴۹۵) صحيح مسلم _ الصيد ۸ (۱۹۲۲) سنن ابي داود_ الأطعمة ۳۵ (۳۸۱۲) سنن النسائي الصيد ۳۰ (۴۳۶۱) (تحفة الأشراف: ۵۱۸۲) . و احمد في المسند (۴_ ۳۵۳. ۳۵۷. ۳۸۰) . وسنن الدارمي_ الصيد ۵ (۲۰۵۳)

2 _ سنن ابن ماجه_ الصيد ۹ (۳۲۲۱) (تحفة الأشراف: ۱۳۵۱ ۲۵۸۵)

" اللَّهُمَّ أَهْلِكِ الجَرَادَ اقْتُلْ كِبَارَهُ وَأَهْلِكْ صِغَارَهُ وَأَفْسِدْ بَيْضَهُ وَاقْطَعْ دَابِرَهُ وَخُذْ بِأَفْوَاهِهِمْ عَنْ مَعَاشِنَا وَأَرْزَاقِنَا إِنَّكَ سَمِيعُ الدُّعَاءِ "

امام ترمذي وايي دا حديث غريب دي او دا صرف په همدي يو سند مروي دی. او موسى بن محمد بن ابراهيم متكلم فيه راوي دي او دی په غرائبو او منكر روايتونو مشهور دی. او دده پلار محمد بن ابراهيم ثقه او مدني راوي دی.

*****************

## ٢٤_ باب مَا جَاءَ فِي أَكْلِ لُحُومِ الجَلاَّلَةِ وَأَلْبَانِهَا

### د مردار خور څاروي د غوښي او پيو څکلو بيان

١٨٢٤_حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا عَبْدَةُ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنِ ابْنِ أَبِي نَجِيحٍ، عَنْ مُجَاهِدٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: "نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ أَكْلِ الجَلاَّلَةِ وَأَلْبَانِهَا". قَالَ: وَفِي البَابِ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَبَّاسٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ وَرَوَى الثَّوْرِيُّ، عَنِ ابْنِ أَبِي نَجِيحٍ، عَنْ مُجَاهِدٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُرْسَلًا. [1]

**ترجمه**: دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم دګندګي خورونكي ځناور دغوښي خوړلو نه منع فرمائيلي ده او ددي دپيو خوړلو نه يې هم منع فرمائيلي ده.

امام ترمذي وايي داحديث حسن غريب دي، سفيان ثوري دا حديث د ابن ابي نجيح نه په سند د عن مجاهد عن النبي صلي الله عليه وسلم سره مرسل نقل كړي دي او په دي باب كي دعبدالله بن عباس رضي الله عنه نه هم روايت وارد دي.

*****************

١٨٢٥_حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا مُعَاذُ بْنُ هِشَامٍ، حَدَّثَنِي أَبِي، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "نَهَى عَنِ المُجَثَّمَةِ وَلَبَنِ الجَلاَّلَةِ وَعَنِ الشُّرْبِ مِنْ فِي السِّقَاءِ". قَالَ مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ: وَحَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عَدِيٍّ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي عَرُوبَةَ، عَنْ قَتَادَةَ،

---

[1] _ سنن ابي داود_ الأطعمة ٢٥ (٣٧٨٥). سنن ابن ماجه_ الذبائح ١١ (٣١٨٥). (تحفة الأشراف: ٧٣٨٤)

عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَهُ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ وَفِي الْبَابِ: عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو. [1]

**ترجمه** دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه روايت دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم د مجثمه (دنخي دپاره)، اودرولي شوي څاروي او ګندګي خورونكي څاروي دپيو خوړلو نه او د مشك يا چاټۍ په خوله (چي خپله خوله ورباندي كيږدي)، داوبو څكلو نه منع فرمانيلي ده
امام ترمذي وايي : دا حديث حسن صحيح دي، محمد بن بشار وائي مونږ ته دا حديث ابن عدي د عن سعيد بن ابي عروبة عن قتادة عن عكرمة عن ابن عباس عن النبي صلي الله عليه وسلم په سند دماقبل هم معني نقل كړي دي او په دي باب كي دعبدالله بن عمرو رضي الله عنهما نه هم روايت مروي دي

****************

## ٢٥_ باب مَا جَاءَ فِي أَكْلِ الدَّجَاجِ

## دچرګي خوړلو بيان

١٨٢٦_حَدَّثَنَا زَيْدُ بْنُ أَخْزَمَ الطَّائِيُّ، حَدَّثَنَا أَبُو قُتَيْبَةَ، عَنْ أَبِي الْعَوَّامِ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ زَهْدَمٍ الْجَرْمِيِّ، قَالَ: " دَخَلْتُ عَلَى أَبِي مُوسَى وَهُوَ يَأْكُلُ دَجَاجَةً، فَقَالَ: ادْنُ فَكُلْ فَإِنِّي رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَأْكُلُهُ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ وَقَدْ رُوِيَ هَذَا الْحَدِيثُ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ عَنْ زَهْدَمٍ وَلَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ زَهْدَمٍ. وَأَبُو الْعَوَّامِ هُوَ عِمْرَانُ الْقَطَّانُ. [2]

**ترجمه** زهدم جرمي وائي چي زه ابو موسي رضي الله عنه ته ورغلم او هغه چرګه خوړله ماته يي اوونيل رانژدي شه او خوره څكه چي ما رسول الله صلي الله عليه وسلم ددي په خوړلو باندي ليدلي دي
امام ترمذي وايي : داحديث حسن دي او دزهدم نه دا حديث په نورو سندونو هم مروي دي او دا حديث مونږ ته صرف د زهدم په روايت معلوم دي

---

[1] _ اخرجه البخاري في الصحيح_ الأشربة ٢٢ (٥٦٢٩) . سنن ابي داود_ الأشربة ١٣ (٣٧١٩) . سنن النسائي_ الضحايا ٢٢ (٤٤٥٣) . سنن ابن ماجه_ الأشربة ٢٠ (٣٤٢١) . (تحفة الأشراف : ٦١٩٠) . و احمد في المسند (١_ ٢٢٦. ٢٢١. ٣٣٩) سنن الدارمي_ الأضاحي ١٣ (٢٠١٨)

[2] _ اخرجه البخاري في الصحيح_ المغازي ٧٢ (٤٣٨٥) . والصيد ٢٦ (٥٥١٧. ٥٥١٨) . و كفارات الأيمان ١٠ (٦٧٢١) . صحيح مسلم_ الأيمان ٣ (١٦٤٩_ ٩) . سنن النسائي_ الصيد ٣٣ (٤٣٥١) . (تحفة الأشراف : ٨٩٩٠)

****************

١٨٢٧_ حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ أَبِي قِلَابَةَ، عَنْ زَهْدَمٍ، عَنْ أَبِي مُوسَى، قَالَ: "رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَأْكُلُ لَحْمَ دَجَاجٍ". قَالَ: وَفِي الحَدِيثِ كَلَامٌ أَكْثَرُ مِنْ هَذَا. وَهَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ وَقَدْ رَوَى أَيُّوبُ السَّخْتِيَانِيُّ هَذَا الحَدِيثَ أَيْضًا عَنِ القَاسِمِ التَّمِيمِيِّ، وَعَنْ أَبِي قِلَابَةَ، عَنْ زَهْدَمٍ. ([1])

**ترجمه** دابوموسي اشعري رضي الله عنه بيان دي فرماني چي ما رسول الله صلي الله عليه وسلم دچرګ په خوړلو باندي ليدلي دي.

امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي او په دي حديث کي څه نوري خبري هم شته.
ايوب سختياني هم دا حديث دقاسم التميمي عن ابي قلابة عن زهدم په سند سره نقل کړي دي

****************

## ٢٦_ باب مَا جَاءَ فِي أَكْلِ الحُبَارَى

### دحباراي مرغۍ (زاني) خوړلو بيان

١٨٢٨_ حَدَّثَنَا الفَضْلُ بْنُ سَهْلٍ الأَعْرَجُ البَغْدَادِيُّ، حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ مَهْدِيٍّ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ بْنِ عُمَرَ بْنِ سَفِينَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، قَالَ: "أَكَلْتُ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَحْمَ حُبَارَى". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ هَذَا الوَجْهِ وَإِبْرَاهِيمُ بْنُ عُمَرَ بْنِ سَفِينَةَ رَوَى عَنْهُ ابْنُ أَبِي فُدَيْكٍ، وَيُقَالُ: بُرَيْهُ بْنُ عُمَرَ بْنِ سَفِينَةَ. ([2])

**ترجمه** دسفينه رضي الله عنه نه روايت دي فرماني چي ما درسول الله صلي الله عليه وسلم سره دحباري مرغۍ (زاني) غوښه خوړلي ده

امام ترمذي وايي داحديث غريب دي او مونږ يي صرف په همدي سند پېژنو. براهيم بن عمر بن سفينه نه ابن ابي فديك هم دا روايت نقل کړي دي او هغه ته بريه بن عمر بن سفينه هم ونيلي شي

---

[1] _ سنن ابي داود_ الأطعمة ٢٩ (٣٧٩٠). (تحفة الأشراف: ٩٠٦٢)

[2] _ تفرد به المؤلف رحمه الله

**تشريح**: علامه دميري په حيات الحيوان کي ليکلي دي حباري (چي پښتو کي ورته زانې) وايي د کبکر پشان يوه مرغۍ ده البته پنډۍ يي د کبکر نه اوږدې وي او دا زمونږ په علاقو کي نه مونډلي کيږي منجد والا ددي تصوير هم شائع کړي دي او دا مرغۍ په بې وقوفۍ کي مشهوره ده لکه چي ونيلي شي حباري دبي وقوفۍ باوجود هم دخپلو بچو سره محبت کوي او دالوتلو چل ورته ښايي، حباري مرغۍ په اتفاق داهل علمو حلال ده لکه چي ددي روايت نه معلوميږي. داحديث ضعيف دي عقيلي او ابن حبان ددي تضعيف کړي دي (قاله الحافظ في التلخيص) ابراهيم بن عبدالرحمن صدوق او په منکر روايتونو نقل کولو مشهور دي او ابراهيم بن عمر مستور الحال دي.

*****************

## ٢٧_ بَابُ مَا جَاءَ فِي أَكْلِ الشِّوَاءِ

### دوريتي شوي غوښي خوړلو بيان

١٨٢٩_حَدَّثَنَا الحَسَنُ بْنُ مُحَمَّدٍ الزَّعْفَرَانِيُّ، حَدَّثَنَا حَجَّاجُ بْنُ مُحَمَّدٍ، قَالَ: قَالَ ابْنُ جُرَيْجٍ: أَخْبَرَنِي مُحَمَّدُ بْنُ يُوسُفَ، أَنَّ عَطَاءَ بْنَ يَسَارٍ أَخْبَرَهُ، أَنَّ أُمَّ سَلَمَةَ أَخْبَرَتْهُ، "أَنَّهَا قَرَّبَتْ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَنْبًا مَشْوِيًّا فَأَكَلَ مِنْهُ، ثُمَّ قَامَ إِلَى الصَّلَاةِ وَمَا تَوَضَّأَ". قَالَ: وَفِي البَابِ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الحَارِثِ، وَالمُغِيرَةِ، وَأَبِي رَافِعٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ مِنْ هَذَا الوَجْهِ. [1]

**ترجمه**: دام المؤمنين ام سلمه رضي الله عنه بيان دي فرمائي چي ما وريته شوي غوښه درسول الله صلي الله عليه وسلم په خدمت کي پيش کړه او هغوئ اوخوړله بيا دمونځ دپاره پاڅيدو او اودس يي تازه نکړو

امام ترمذي وايي داحديث په دي سند حسن صحيح غريب دي، او په دي باب کي دعبدالله بن حارث مغيره او ابو رافع رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي

### دام سلمه رضي الله عنها حالات

نوم هند کنيه ام سلمه په قريشو کښي دمخزوم خاندان سره يي تعلق وو سلسله دنسب يي داده هند بنت ابي اميه سهل بن مغيره بن عبدالله بن عمرو بن مخزوم دپلار نوم يي ابو اميه وو او انتهائي سخي انسان وو.

[1] _ تفرد به المؤلف (أخرجه النسائي في الكبرى) (تحفة الأشراف ١٨٢٠٠)

اوله نكاح يي دعبدالله بن اسد چه په ابو سلمه مشهور وو شوي وه او دا دابو سلمه دتره خوي وو او د رسول الله صلي الله عليه وسلم رضاعي ورور وو اسلام په ابتداء كښي دخپل خاوند سره مسلمانه شوي وه او حبشي ته يي هجرت هم كړے وو خو اخر په غزوه احد كښي ددي خاوند زخمي شو او جمالي ثاني كښي دهجرت په څلورم كال ددي زخمونو په وجه وفات شو

رسول الله صلي الله عليه وسلم ورته اوفرمائيل صبر كوه او دده دپاره دمغفرت دعا غواړه او داسي وايه اے الله دده نه بهترجانشين ماته راكړي څه موده پس ابوبكر رضي الله عنه ام سلمه ته دنكاح پيغام وركړو خو هغي قبول نكړو بيا رسول الله صلي الله عليه وسلم دنكاح پيغام وركړو نو ام سلمه اووئيل په ما كښي يو څو خبري دي يو زه سخته غيرتي يم. دويم بال بچه داره يم، دريم عمر مي زيات دے ، خو رسول الله صلي الله عليه وسلم دا ټولي خبري قبولي كړي او ددي سره يي نكاح اوكړه دا نكاح په شوال كښي شوي وه (نسائي ۱۱۵)

دهجرت په يولسم كال نبي كريم صلي الله عليه وسلم بيمار وو يوه ورځ يي طبعيت ډير خراب شو نو ام سلمه رضي الله عنها چغه كړه نو رسول الله منع كړه او ورته يے اوفرمائيل چه دا خو دمسلمان شان نه دے.

وفات. په كوم كال چه دحره واقعه پيښه شوي وه ۶۳ هجري كښي نوپه همدغه كال ام سلمه وفات شوي وه او په دغه وخت كښي ددي عمر ۸۴ كلونه وو چه ابوهريره رضي الله عنه ورباندي جنازه اوكړه دمروياتو شمير يي ۳۷۸ دے ۱۳ پكښي متفق عليه دے

***************

## ۲۸ باب مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ الأَكْلِ مُتَّكِئًا

### دډډې وهلو په حالت كي دخوراك كولو دكراهت بيان

۱۸۳۰_حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ. حَدَّثَنَا شَرِيكٌ. عَنْ عَلِيِّ بْنِ الأَقْمَرِ. عَنْ أَبِي جُحَيْفَةَ. قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَمَّا أَنَا فَلَا آكُلُ مُتَّكِئًا". قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ عَلِيٍّ. وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو. وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَبَّاسٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ عَلِيِّ بْنِ الأَقْمَرِ وَرَوَى زَكَرِيَّا بْنُ أَبِي زَائِدَةَ. وَسُفْيَانُ بْنُ سَعِيدٍ الثَّوْرِيُّ وَغَيْرُ وَاحِدٍ عَنْ عَلِيِّ بْنِ الأَقْمَرِ هَذَا الحَدِيثَ. وَرَوَى شُعْبَةُ. عَنْ سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ هَذَا الحَدِيثَ. عَنْ عَلِيِّ بْنِ الأَقْمَرِ. [1]

---

1 اخرجه البخاري في الصحيح الأطعمة ۱۳ (۵۳۹۸). سنن ابي داود_ الأطعمة ۱۷ (۳۷۶۹). سنن ابن ماجه الأطعمة ۶ (۳۲۶۲). (تحفة الأشراف: ۱۱۸۰۱). واحمد في المسند (۴_۳۰۸). سنن الدارمي_ الأطعمة ۳۱ (۲۱۱۵)

**ترجمه** دابوجحيفه رضي الله عنه بيان دي فرمائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائلي دي چي زه ډډې وهلو په حالت كي خوراك نه كوم
امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي او مونږ يې صرف دعلي بن اخمر په روايت پيژنو دعلي بن اخمر نه دا حديث زكريا بنت ابي زائده او سفيان بن سعيد ثوري او بعضي نورو راويانو نقل كړي دي. او شعبه دا حديث دسفيان ثوري نه دعلي بن اقمر په واسطه نقل كړي دي. او په دي باب كي دعلي ، عبدالله بن عمر. او عبدالله بن عباس رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي
**لغات** : متكئا: اتكا اتكاء ډډه وهل، مستوفزا : دپاڅيدو دپاره تيار كيناستل. مستوطينا د كوم ځيز نرم موندل.
**تشريح** : امام نووي فرمائي چي امام خطابي ونيلي دي چي دمتكي معني دلته داده چي څوك په ګدئ يافرش داسې كيني چي په يولاس يې ډډه وهلې وي اوپه بل لاس خوراك كوي (دادتكبر علامه ده).
امام خطابي وايي چي د رسول الله صلي الله عليه وسلم ددې وينا مطلب دادې چي خوراك ته داسې مه كيني او په اندازه خوراك پكار دی دا دخطابي بيان وو.
نورو عالمانو ونيلي دي دمتكي مطلب په يوارخ كوږ كيناستل دي، والله اعلم
خطابي دډډې وهلو دوه مطلبونه بيان كړي دي ليكن علماء وائي ددې يو څو صورتونه نور هم شته يوصورت يې دادی چي په دواړو ډډو كې په يوه باندې خان ټينګ كړي، يا په زمكه په يو لاس خان تكيه كړي ، ياپه څنګنانو كيني ياديوال وغيره ته ډډه اولګوي داټول صورتونه ممنوع دي ځكه چي دمومن خوراك هم عبادت دی او په عبادت كې دتواضع صورت مطلوب دی علامه ابن قيم وائي چي د ډډې وهلو په حالت كې خوراك كولو په وجه خوراك معدي ته په اسانۍ نه رسيږي دابراهيم نخعي قول دی چي دا مكروه دي او ونيل به يي چي ددي په وجه خيټه لوئيږي

## ابوجحيفه وهب بن عبدالله رضي الله عنه حالات

نوم وهب كنيه ابوجحيفه اودپلارنوم يې عبدالله عامري دی دكوفي اوسيدونكی دی اودكشرانو صحابه كرامو دجملي نه دی درسول الله صلي الله عليه وسلم په مباركه زمانه كې بالغ شوی نه وو او ددې باوجود يې درسول پاك صلي الله عليه وسلم نه نقل درروايت كړی دی دهجرت په ۷۴كال په كوفه كې وفات شوی دی

****************

## ٢٩_ باب مَا جَاءَ فِي حُبِّ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْحَلْوَاءَ وَالْعَسَلَ

### د خوږو څيزونو او شهدو سره درسول الله دمحبت بيان

١٨٣١_حَدَّثَنَا سَلَمَةُ بْنُ شَبِيبٍ، وَمَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، وَأَحْمَدُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ الدَّوْرَقِيُّ، قَالُوا: حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: " كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُحِبُّ الحَلْوَاءَ وَالعَسَلَ ". هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ وَقَدْ رَوَاهُ عَلِيُّ بْنُ مُسْهِرٍ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، وَفِي الْحَدِيثِ كلام أكثر من هذا. [1]

**ترجمه** دام المؤمنين عائشه رضي الله عنها بيان دي فرمائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم به خواږه څيزونه او شات خوښول.

امام ترمذي وايي . داحديث حسن صحيح غريب دي، او دا روايت علي بن مسهر هم دهشام بن عروه په واسطه نقل کړي دي اوپه دي حديث کي ددينه علاوه نوري ډيري خبري هم دي.

**تشريح**: علامه خطابي ليکلي دي چي دحلوا اطلاق په داسي خوږو څيزونو کيږي دکوم په جوړولو کي چي دانسان عمل دخيل وي، ابن سيده رحمة الله عليه وائي حلوه هغه خوراك ته ونيلي شي په کوم کي چي خوږ څيز اچولي شوي وي او کله کله ددي اطلاق په خوږو څيزونو هم کيږي، علامه نووي وائي چي دلته دحلوا نه مراد خوږ څيز دي او دشات تذکره شرافتا او کرامتا شوي ده گويا کي ده دذکر الخاص بعدالعام دقبيلي نه دي ابن البطال وائي چي شهد او حلوا دواړه دطيباتو خوراکونو نه دي.

***************

## ٣٠_باب مَا جَاءَ فِي إِكْثَارِ مَاءِ الْمَرَقَةِ

### دشوروا داوبو دزياتولو بيان

١٨٣٢_حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُمَرَ بْنِ عَلِيٍّ الْمُقَدَّمِيُّ، حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ فَضَاءٍ، حَدَّثَنِي أَبِي، عَنْ عَلْقَمَةَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ الْمُزَنِيِّ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " إِذَا اشْتَرَى أَحَدُكُمْ لَحْمًا فَلْيُكْثِرْ مَرَقَتَهُ فَإِنْ لَمْ يَجِدْ لَحْمًا أَصَابَ مَرَقَةً وَهُوَ أَحَدُ اللَّحْمَيْنِ ". وَفِي

---

[1] _ اخرجه البخاري في الصحيح_ الأطعمة ٣٢ (٥٤٣١) . والأشربة ١٠ (٥٥٩٩) . و ١٥ (٥٦١٤) . والطب ٤ (٥٦٨٢) . والحيل ١٢ (٦٩٠٤) . صحيح مسلم_ الطلاق ٣ (١٤٧٤) . سنن ابي داود_ الأشربة ١١ (٣٧١٥) . سنن ابن ماجه_ الأطعمة ٣٦ (٣٣٢٣) . تحفة الأشراف . ١٦٧٩٦) . واحمد في المسند (٦_ ٥٩)

الْبَابِ: عَنْ أَبِي ذَرٍّ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ هَذَا الْوَجْهِ مِنْ حَدِيثِ مُحَمَّدِ بْنِ فَضَاءٍ، وَمُحَمَّدُ بْنُ فَضَاءٍ هُوَ الْمُعَبِّرُ وَقَدْ تَكَلَّمَ فِيهِ سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ، وَعَلْقَمَةُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ هُوَ أَخُو بَكْرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ الْمُزَنِيِّ. (١)

**ترجمه** دعبدالله مزني ساں دي حي حي كريم صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي كله چي يه تاسو كي څوك غوښه واخلي نو ـه دي كي دي دپخولو وخت كي، زياته شوروا جوړه كړي او د خكه كه چري دوي ته غوښه اونه رسي نو شوروا خو به ورته ورسيږي دا هم دغوښي دجملي نه ده

امام ترمذي وايي: په دي باب كي دابوذر رضي الله عنه نه هم روايت وارد دي او دا روايت مونږ صرف په همدي سند دفضاله نه پيژنو، محمد بن فضاله معبر دخوبونو تعبير وركونكي دي او په ده باندي سليمان بن حرب كلام كړي دي او دا حديث غريب دي

**تشريح**"فليكثر مرقته" يعني كله چي شوروا پخوي نو اوبه پكښ زياتي اچوه. ددينه معلومه شوه چي په يو ګاونډي باندي لازم دي چي خپل ګاونډي ته تحفه وركړي پس كه تاسو غريبان يئ او ګاونډي ته هديه نه شئ وركولى نو دومره خو ضرور كولى شئ چي كوم خوراك ستاسو په كور كښ تياريږي په هغي كښ اوبه زياتي كړئ او بيا دهغي نه ګاونډي ته هم وركړئ ګاونډي كه دهري قبيلي وي خو بيا هم دهغه سره دصله رحمئ حكم راغلى دى

**************:

١٨٣٣_حَدَّثَنَا الْحُسَيْنُ بْنُ عَلِيِّ بْنِ الْأَسْوَدِ الْبَغْدَادِيُّ، حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ مُحَمَّدٍ الْعَنْقَزِيُّ، حَدَّثَنَا إِسْرَائِيلُ، عَنْ صَالِحِ بْنِ رُسْتُمَ أَبِي عَامِرٍ الْخَزَّازِ، عَنْ أَبِي عِمْرَانَ الْجَوْنِيِّ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الصَّامِتِ، عَنْ أَبِي ذَرٍّ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " لَا يَحْقِرَنَّ أَحَدُكُمْ شَيْئًا مِنَ الْمَعْرُوفِ، وَإِنْ لَمْ يَجِدْ فَلْيَلْقَ أَخَاهُ بِوَجْهٍ طَلِيقٍ، وَإِنِ اشْتَرَيْتَ لَحْمًا أَوْ طَبَخْتَ قِدْرًا فَأَكْثِرْ مَرَقَتَهُ وَاغْرِفْ لِجَارِكَ مِنْهُ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ وَقَدْ رَوَاهُ شُعْبَةُ، عَنْ أَبِي عِمْرَانَ الْجَوْنِيِّ. (٢)

---

1 _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٨٩٤٣)

2 _ صحيح مسلم_ البر و الصلة ٤٢ (٢٦٢٥_ ١٤٢) سنن ابن ماجه_ الأطعمة ٥٨ (٣٣٦٢) (تحفة الأشراف ١١٩٥١) و احمد في المسند (٥ / ١٤٩، ١٥٦، ١٦١، ١٧١)

**ترجمه** دابوذر رضي الله عنه بيان دي رسول الله سلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي په تاسو کي دي هيڅوك دنيکئ کوم کار حقير اونه ګڼړي او که دخپل وروړسره کومه نيکي نشي کولي نو په روڼ او خنديدونکي تندي دي ورسره مخامخ شي او که چرې تاسو غوښه واخلئ او ترکاري پخوئ نو شوروا پکي زياته کړئ او يوه لپه ددينه خپل ګاونډي ته ورکړئ

امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي شعبه هم دا روايت دابوعمران جوني په واسطه نقل کړي دي

**تشريح**: " بوجه طلق" ده انس رضي الله عنه نه هم مروي دي چي کله مسلمانان ديو بل سره ملاؤ شي او مصافحه کوي نو اويامغفرتونه وربانديي تقسيميږي په دي کې يوکم اويا صرف دهغه کسانو دپاره دي څوك چي په روښانه تندي مسکا سره ملاويږي ددي يو هم معني روايت دعمرفاروق رضي الله عنه نه هم مروي دی کله چي دوه مسلمانان ملاؤ شي او پخپلو کې مصافحه اوکړي نو په دوئ باندي سل رحمتونه نازليږي لس کم په هغه کس باندي چاچي په مصافحه کې مخکې کيدل کړي وي او لس رحمتونه په وروستني کس باندي نازليږي.

***************

## ٣١_ باب مَا جَاءَ فِي فَضْلِ الثَّرِيدِ

### دثريد (دماتي کړي ډوډئ) فضيلت

١٨٣٤_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ عَمْرِو بْنِ مُرَّةَ، عَنْ مُرَّةَ الْهَمْدَانِيِّ، عَنْ أَبِي مُوسَى، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " كَمُلَ مِنَ الرِّجَالِ كَثِيرٌ وَلَمْ يَكْمُلْ مِنَ النِّسَاءِ إِلَّا مَرْيَمُ ابْنَةُ عِمْرَانَ وَآسِيَةُ امْرَأَةُ فِرْعَوْنَ وَفَضْلُ عَائِشَةَ عَلَى النِّسَاءِ كَفَضْلِ الثَّرِيدِ عَلَى سَائِرِ الطَّعَامِ " قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ عَائِشَةَ وَأَنَسٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (١)

**ترجمه** دابوموسي اشعري رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي په سړو کي خوډير سړي کاملي درجي ته رسيدلي دي مګر په ښځو کي صرف مريم بنت عمران او دفرعون ښځه اسيه دکمال درجي ته رسيدلي دي او عائشي ته په ټولو ښځو داسي فضيلت حاصل دي څنګه چي په نورو خوراکونو ثريد ته اصل دي.

[1] _ اخرجه البخاري في الصحيح_ أحاديث الأنبياء ٣٢ (٣٤١١) . و ٣٦ (٣٤٣٣) . وفضائل الصحابة ٣٠ (٣٧٦٩) . والأطعمة ٢٥ (٥٤١١) . صحيح مسلم_ فضائل الصحابة ١٣ (٢٤٣١)

امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي او په دي باب كي دعائشه او انس رضي الله عنهما نه هم احاديث وارد دي

***************

## ٣٢_ باب مَا جَاءَ أَنَّهُ قَالَ انْهَسُوا اللَّحْمَ نَهْسًا

### په غابسونو دغوښي شوكولو بيان

١٨٣٥_ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنْ عَبْدِ الْكَرِيمِ أَبِي أُمَيَّةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الْحَارِثِ قَالَ: زَوَّجَنِي أَبِي فَدَعَا أُنَاسًا فِيهِمْ صَفْوَانُ بْنُ أُمَيَّةَ فَقَالَ: إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "انْهَسُوا اللَّحْمَ نَهْسًا فَإِنَّهُ أَهْنَأُ وَأَمْرَأُ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ عَائِشَةَ وَأَبِي هُرَيْرَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: وَهَذَا حَدِيثٌ لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ عَبْدِ الْكَرِيمِ وَقَدْ تَكَلَّمَ بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ فِي عَبْدِ الْكَرِيمِ الْمُعَلِّمِ مِنْهُمْ أَيُّوبُ السَّخْتِيَانِيُّ مِنْ قِبَلِ حِفْظِهِ. ([1])

**ترجمه** دعبدالله بن حارث بيان دي فرمائي چي زما پلار زما واده اوكړو او خلقو ته يي دعوت وركړو او په هغوئ كي صفوان بن اميه رضي الله عنه هم شامل وو صفوان اووئيل رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي غوښه په غابسونو شوكوئ او بيايي خورئ خكه چي دا بيا ډيره زر هضميږي او بيا ډيره خوږه وي.

امام ترمذي وايي : داحديث مونږ صرف دعبدالكريم په روايت پيژنو او په عبدالكريم المعلم دحفظ په اعتبار اهل علمو كلام كړي دي او په ده باندي په كلام كونكي كي ايوب سختياني هم شامل دي او په دي باب كي دعائشه، ابوهريره رضي الله عنهما نه هم احاديث وارد دي.

***************

## ٣٣_ باب مَا جَاءَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنَ الرُّخْصَةِ فِي قَطْعِ اللَّحْمِ بِالسِّكِّينِ

### درسول الله صلي الله عليه وسلم نه په چړي دغوښي كټ كولو داجازت بيان

١٨٣٦_ حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ جَعْفَرِ بْنِ عَمْرِو بْنِ أُمَيَّةَ الضَّمْرِيِّ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّهُ رَأَى النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "احْتَزَّ مِنْ كَتِفِ شَاةٍ فَأَكَلَ

---

[1] _ تفرد به المؤلف. (تحفة الأشراف : ٤٩٢٤)

مِنْهَا ثُمَّ مَضَى إِلَى الصَّلَاةِ وَلَمْ يَتَوَضَّأْ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ وَفِي الْبَابِ: عَنِ الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ. [1]

**ترجمه** عمرو بن اميه ضمري رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چي ما نبي كريم صلي الله عليه وسلم اوليدو چي دچيلئ دلاس (مخكئ خپي) غوښه يي په چاړه كټ كړه او ددينه يي وخوړله او بيا دمونخ دپاره روان شو او تازه اودس يي اونكړو

امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي او په دي باب كي دمغيره بن شعبه رضي الله عنه نه هم روايت وارد دي.

***************

## ٣٤_ باب مَا جَاءَ فِي أَيِّ اللَّحْمِ كَانَ أَحَبَّ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

### درسول الله صلي الله عليه وسلم په غوښه كي كومه حصه ډيره خوښه وه

١٨٣٧_حَدَّثَنَا وَاصِلُ بْنُ عَبْدِ الْأَعْلَى، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ فُضَيْلٍ، عَنْ أَبِي حَيَّانَ التَّيْمِيِّ، عَنْ أَبِي زُرْعَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: "أُتِيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِلَحْمٍ فَرُفِعَ إِلَيْهِ الذِّرَاعُ وَكَانَتْ تُعْجِبُهُ فَنَهَسَ مِنْهَا". قَالَ: وَفِي الْبَابِ: عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ، وَعَائِشَةَ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ جَعْفَرٍ، وَأَبِي عُبَيْدَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَأَبُو حَيَّانَ اسْمُهُ يَحْيَى بْنُ سَعِيدِ بْنِ حَيَّانَ، وَأَبُو زُرْعَةَ بْنُ عَمْرِو بْنِ جَرِيرٍ اسْمُهُ هَرِمٌ. [2]

**ترجمه** دابوهريره رضي الله عنه بيان دي فرمائي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم ته غوښه راوړلي شوه او دخاروي لاس ورته پيش كړي شو او دا دهغه ډير خوښ وو چنانچي دا به يي په غاښونو شوكوله او خوړله به يي

امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي او په دي باب كي دعبدالله بن مسعود، عائشه، عبدالله بن جعفر، او ابوعبيده رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي او دابو حيان نوم يحى بن سعيد بن حيان دي او د ابوذرعه بن عمرو بن جرير نوم هرم دي

---

[1] _ اخرجه البخاري في الصحيح_ الوضوء ٥ (٢٠٨)، والأذان ٤٣ (٦٧٥)، والجهاد ٩٢ (٢٩٢٣)، والأطعمة ٢٠ (٥٤٠٨)، و ٢٦ (٥٤٢٢)، و ٥٨ (٥٤٦٢)، صحيح مسلم_ الحيض ٢٤ (٣٥٥)، سنن ابن ماجه_ الطهارة ٦٦ (٤٩٠)، (تحفة الأشراف ١٠٧٠٠) واحمد في المسند (٤_ ١٣٩، ١٧٩) و (٥_ ٢٨٨)

[2] _ اخرجه البخاري في الصحيح_ أحاديث الأنبياء ٣ (٣٣٤٠) وتفسير الإسراء ٥ (٤٧١٢)، صحيح مسلم_ الإيمان ٨٤ (١٩٤)، سنن ابن ماجه_ الأطعمة ٢٨ (٣٣٠٧)، ويأتي عند المؤلف في صفة القيامة ١٠ (٢٤٣٤)، (تحفة الأشراف ١٤٩٢٧)

*****************

١٨٣٨_حَدَّثَنَا الحَسَنُ بْنُ مُحَمَّدٍ الزَّعْفَرَانِيُّ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ عَبَّادٍ أَبُو عَبَّادٍ، حَدَّثَنَا فُلَيْحُ بْنُ سُلَيْمَانَ، عَنْ عَبْدِ الوَهَّابِ بْنِ يَحْيَى مِنْ وَلَدِ عَبَّادِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الزُّبَيْرِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الزُّبَيْرِ، عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: " مَا كَانَ الذِّرَاعُ أَحَبَّ اللَّحْمِ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَكِنْ كَانَ لَا يَجِدُ اللَّحْمَ إِلَّا غِبًّا فَكَانَ يَعْجَلُ إِلَيْهِ لِأَنَّهُ أَعْجَلُهَا نُضْجًا ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ هَذَا الوَجْهِ. (١)

**ترجمه** دام المؤمنين عائشه رضي الله عنه بيان دي فرماني چي رسول الله صلي الله عليه وسلم دلاس غوښه ډيره نه خوښوله ليکن دا به ورته هم کله کله ملاويدله او په همدي وجه به يي په خوړلو کي جلتي کوله ځکه چي دا دنوري غوښي په مقابله کي زرهضم کيږي

امام ترمذي وايي : داحديث غريب دي او مونږ يي صرف په همدي سند پيژنو

*****************

## ٣٥_ باب مَا جَاءَ فِي الخَلِّ

### دسرکي بيان

١٨٣٩_حَدَّثَنَا الحَسَنُ بْنُ عَرَفَةَ، حَدَّثَنَا مُبَارَكُ بْنُ سَعِيدٍ هُوَ أَخُو سُفْيَانَ بْنِ سَعِيدٍ الثَّوْرِيِّ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " نِعْمَ الإِدَامُ الخَلُّ ". قَالَ: وَفِي البَابِ عَنْ عَائِشَةَ، وَأُمِّ هَانِئٍ. (٢)

**ترجمه** دجابررضي الله عنه بيان دي نبي کريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي سرکه ډيره بهترينه ترکاري ده.

امام ترمذي وايي په دي باب کي دعائشه او ام هاني رضي الله عنهما نه هم احاديث وارد دي

**لغات** : الادام : هر هغه شي چي ترکاري ورته جوړيدي شي ائتدم يعني دترکارۍ سره يي ډوډۍ وخوړله (دباب افتعال نه)

---

[1] _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف ١٦١٩٣)

[2] _ صحيح مسلم_ الأشربة ٣٠ (٢٠٥٢) . سنن ابي داود_ الأطعمة ٤٠ (٣٨٢٠) . سنن النسائي_ الأيمان ٢١ (٣٨٢٨) . سنن ابن ماجه_ الأطعمة ٣٣ (٣٣١٧) . (تحفة الأشراف ٢٧٥٨) . واحمد في المسند ٣_ ٣٠٤، ٣٧١، ٣٨٩، ٣٩٠) . سنن الدارمي الأطعمة ١٨ (٢٠٩٣)

**تشريح:** نعم الادام الخل: يعني سرکه بهترينه ترکاري ده، په يوبل روايت کښ راخي ارشاد نبوي دي چي سرکه دتمامو انبياء عليهم السلام ترکاري ده ، اوپه يوبل روايت کښ هم راخي چي پدي کښ برکت اچولي شوي دي
په يو روايت کښ راغلي دي کوم کور کښ چي سرکه موجود وي هغوئ وگي کيږي نه دجابر رضي الله عنه بيان دی دکله نه چي مونږ درسول الله نه دسرکي فضيلت اوريدلی دی دهغه وخت نه مي دسرکي سره مينه پيداشوي ده، د اطباؤ قول دی چي سرکه دبلغم او صفراء قطع کونکی ده او دخوراك په هضم کښ مدد ورکوي او په خيته کښ چينجي ختموي او ولږه راولي بهرحال رسول الله يي دوه پيري تعريف کړی دی چي سرکه يوه ښه ترکاري ده په دي باره کښ علماء واني چي دا يي دسرکي دفواندو ظاهرولو دپاره فرمائيلي دي اوهمدارنگي په دي روايت کښ په خوراك کښ اعتدال کولو ته هم اشاره ده چي هر وخت دي سړی دمزيدار خوراکونو کوشش نه کوي که څوك قسم اوخوري چي ترکاري او ډوډئ به نه خورم اوبياسرکه اوډوډئ اوخوري نو دی به خانث وي خکه چي په حديث شريف کښ سرکي ته ښه ترکاري وئيلی شوي ده.

****************

**١٨٤٠ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَهْلِ بْنِ عَسْكَرٍ الْبَغْدَادِيُّ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ حَسَّانَ، حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ بِلَالٍ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "نِعْمَ الْإِدَامُ الْخَلُّ". حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، أَخْبَرَنَا يَحْيَى بْنُ حَسَّانَ، عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ بِلَالٍ بِهَذَا الْإِسْنَادِ نَحْوَهُ إِلَّا أَنَّهُ قَالَ: "نِعْمَ الْإِدَامُ أَوِ الْأُدْمُ الْخَلُّ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ مِنْ هَذَا الْوَجْهِ لَا نَعْرِفُهُ مِنْ حَدِيثِ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ سُلَيْمَانَ بْنِ بِلَالٍ.** (1)

**ترجمه** دام المؤمنين عائشه رضي الله عنها نه روايت دي نبي کريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي سرکه ډيره بهترينه ترکاري ده.

---

1 _ صحيح مسلم الأشربة ٣٠ (٢٠٥٢) . سنن ابي داود_ الأطعمة ٤٠ (٣٨٢٠) . سنن النسائي. الأيمان ٢١ (٣٨٢٤) سنن ابن ماجه_ الأطعمة ٣٢ (٣٣١٧) . (تحفة الأشراف : ٢٧٥٨) . و احمد في المسند ٣_ ٣٠٣ . ٣٧١ . ٣٨٩ . ٣٩٠) . سنن الدارمي. الأطعمة ١٨ (٢٠٩٢)

امام ترمذي وايي دسليمان بن بلال نه هم په دي اسناد دماقبل هم معني روايت مروي دي مگر دسليمان په روايت كي دومره اضافه ده چي رسول الله صلي الله عليه وسلم "نعم الادام" لفظ اوفرمائيلو او كه "الادم الخل"يي اوفرمائيل

امام ترمذي وائي داحديث په دي سند حسن صحيح غريب دي او دسليمان بن هلال نه علاوه دا دهشام بن عروه نه په بل سند مروي نه دي

***************

حَدَّثَنَا عَبْدُاللهِ بْنُ عَبْدِالرَّحْمَنِ، أَخْبَرَنَا يَحْيَى بْنُ حَسَّانَ، عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ بِلَالٍ بِهَذَا الإِسْنَادِ نَحْوَهُ، إِلاَّ أَنَّهُ قَالَ: نِعْمَ الإِدَامُ (أَوْ الأُدْمُ) الْخَلُّ. (1)

**ترجمه** : امام ترمذي وايي : دسليمان بن بلال نه هم په دي اسناد دماقبل هم معني روايت مروي دي مگر دسليمان په روايت كي دومره اضافه ده چي رسول الله صلي الله عليه وسلم "نعم الادام"

***************

١٨٤١_حَدَّثَنَا أَبُو كُرَيْبٍ مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ، حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرِ بْنُ عَيَّاشٍ، عَنْ أَبِي حَمْزَةَ الثُّمَالِيِّ، عَنِ الشَّعْبِيِّ، عَنْ أُمِّ هَانِئٍ بِنْتِ أَبِي طَالِبٍ، قَالَتْ: دَخَلَ عَلَيَّ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: "هَلْ عِنْدَكُمْ شَيْءٌ؟". فَقُلْتُ: لَا إِلَّا كِسَرٌ يَابِسَةٌ وَخَلٌّ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "قَرِّبِيهِ فَمَا أَقْفَرَ بَيْتٌ مِنْ أُدْمٍ فِيهِ خَلٌّ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ مِنْ هَذَا الْوَجْهِ لَا نَعْرِفُهُ مِنْ حَدِيثِ أُمِّ هَانِئٍ إِلَّا مِنْ هَذَا الْوَجْهِ وَأَبُو حَمْزَةَ الثُّمَالِيُّ اسْمُهُ ثَابِتُ بْنُ أَبِي صَفِيَّةَ. وَأُمُّ هَانِئٍ مَاتَتْ بَعْدَ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ بِزَمَانٍ وَسَأَلْتُ مُحَمَّدًا عَنْ هَذَا الْحَدِيثِ قَالَ: لَا أَعْرِفُ لِلشَّعْبِيِّ سَمَاعًا مِنْ أُمِّ هَانِئٍ فَقُلْتُ: أَبُو حَمْزَةَ كَيْفَ هُوَ عِنْدَكَ فَقَالَ أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ: تَكَلَّمَ فِيهِ وَهُوَ عِنْدِي مُقَارِبُ الْحَدِيثِ. (2)

**ترجمه** دام هاني بنت ابي طالب رضي الله عنها نه روايت دي فرمائي چي د رسول الله صلي الله عليه وسلم زما كور ته تشريف راوړو او ويې فرمائيل ايا تاسو سره د خوراك دپاره څه شي

1 _ صحيح مسلم_ الأشربة ٣٠ (٢٠٥١). سنن ابن ماجه_ الأطعمة ٣٣ (٣٣١٦). (تحفة الأشراف : ١٦٩٣٢)

2 _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ١٨٠٠٢)

شته؟ ما وونیل د خوراك دپاره خو څه خاص شي موجود نه دی مګر یوه قطره وچه ډوډۍ او سرکه موجود ده نو ویې فرمائیل همدا راوړئ او هغه کور ترکارۍ ته محتاج نه وي په کوم کي چي سرکه موجود وي.
امام ترمذي وایي داحدیث په دي سند حسن غریب دي او دا حدیث مونږ په همدي سند صرف دام هاني په روایت پیژنو، او ام هاني دعلي رضي الله عنه دوفات کیدو نه یو څو ورځي پس وفات شوي وه، ما دامام بخاري نه دي حدیث باره کي تپوس اوکړو نو هغه اوونیل د شعبي سماع دام هاني نه ثابت نه ده، ما ورنه تپوس اوکړو ستا په نظر کي ابو حمزه ثابت بن ابي سفیه څنګه دي؟ هغه اوونیل احمد بن حنبل ورباندي کلام کړي دي مګر زما په نزد هغه مقارب الحدیث دي.

*****************

١٨٤٢_حَدَّثَنَا عَبْدَةُ بْنُ عَبْدِ اللهِ الْخُزَاعِيُّ الْبَصْرِيُّ، حَدَّثَنَا مُعَاوِيَةُ بْنُ هِشَامٍ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ مُحَارِبِ بْنِ دِثَارٍ، عَنْ جَابِرٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "نِعْمَ الإِدَامُ الْخَلُّ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا أَصَحُّ مِنْ حَدِيثِ مُبَارَكِ بْنِ سَعِيدٍ. [1]

**ترجمه** دجابررضي الله عنه نه مروي دي نبي کريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي خاص سرکه بهترينه ترکاري ده.
امام ترمذي وايي: داحديث دمبارك بن سعيد دحديث نه زيات صحيح دي.

*****************

## ٣٦_ بَاب مَا جَاءَ فِي أَكْلِ الْبِطِّيخِ بِالرُّطَبِ

### دتازه کجورو سره دختکي خوړلو بیان

١٨٤٣_حَدَّثَنَا عَبْدَةُ بْنُ عَبْدِ اللهِ الْخُزَاعِيُّ، حَدَّثَنَا مُعَاوِيَةُ بْنُ هِشَامٍ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "كَانَ يَأْكُلُ الْبِطِّيخَ بِالرُّطَبِ". قَالَ: وَفِي الْبَاب عَنْ أَنَسٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ وَرَوَاهُ بَعْضُهُمْ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ

[1] _ انظر حديث رقم ١٨٣٩ (تحفة الأشراف: ٢٥٤٩)

أَبِيهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُرْسَلٌ وَلَمْ يَذْكُرْ فِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ وَقَدْ رَوَى يَزِيدُ بْنُ رُومَانَ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ هَذَا الْحَدِيثَ. (1)

**ترجمه** دام المؤمنين عائشه رضي الله عنها نه روايت دي فرماني چي رسول الله صلي الله عليه وسلم به تازه كجوري د ختكي سره خوړلې.

امام ترمذي وايي : داحديث حسن غريب دي او بعضي راويانو داحديث د عن هشام بن عروة عن ابيه عن النبي صلي الله عليه وسلم په سند مرسل نقل كړي دي او په دي كي دعائشه ذكر نشته يزيد بن رومان داحديث دعروه په واسطه دعائشي نه نقل كړي دي او په دي باب كي دانس رضي الله عنه نه هم روايت مروي دي.

***************

## ٣٧_ باب مَا جَاءَ فِي أَكْلِ الْقِثَّاءِ بِالرُّطَبِ

### د تازه كجورو سره د بادرنګ خوړلو بيان

١٨٤٤_ حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ مُوسَى الْفَزَارِيُّ، حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ سَعْدٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ جَعْفَرٍ، قَالَ: "كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَأْكُلُ الْقِثَّاءَ بِالرُّطَبِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ إِبْرَاهِيمَ بْنِ سَعْدٍ. (2)

**ترجمه** : دعبدالله بن جعفر رضي الله عنه بيان دي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم به دتازه كجورو سره بادرنګ خوړل.

امام ترمذي وايي : داحديث حسن صحيح غريب دي دا روايت مونږ صرف دسعد بن ابراهيم په سند پيژنو.

### دابوجعفر عبدالله بن جعفر رضي الله عنهما حالات

نوم عبدالله كنيه جعفر درسول الله سلي الله عليه وسلم دتره خوي دى او دجعفر طيار خوي دى كله چي دده پلار جعفر حبشي ته هجرت اوكړو نو عبدالله دهجرت په دوران كي په حبشه كي پيدا شو او كله چي په اوم هجري كي جعفر مديني ته راغى نو عبدالله داوه كالو وو او پدغه وخت كي ورسره رسول الله صلي الله عليه وسلم بيعت هم اوكړو

---

1 _ سنن ابي داود_ الأطعمة ٤٥ (٣٨٣٦) . (وأخرجه النسائي في الكبرى) . (تحفة الأشراف : ١٦٩٠٨)

2 _ اخرجه البخاري في الصحيح_ الأطعمة ٣٩ (٥٤٤٠) . صحيح مسلم_ الأشربة والأطعمة ٢٣ (٢٠٤٣) . سنن ابي داود_ الأطعمة ٤٥ (٣٨٣٥) . سنن ابن ماجه_ الأطعمة ٣٧ (٣٣٢٥) . (تحفة الأشراف : ٥٢١٩) . سنن الدارمي_ الأطعمة ٢٣ (٢١٠٢)

بیا څه موده پس جعفر رضي الله عنه په غزوه موته کې شهید شو نو په دي وجه به رسول الله صلي الله علیه وسلم دعبدالله سره ډیر محبت کول دي یو ځل نبي کریم صلي الله علیه وسلم اوفرمائیل چي عبدالله دصورت سیرت په لحاظ سره زما سره مشابه دي علامه عبدالبر وائي چي عبدالله بن جعفر یو کریم النفس انسان وو خوش طبیعه او عفیف اوربنتوني انسان دی کله چي ابن ملجم علي رضي الله عنه شهید کړو نو دده په قصاص کې عبدالله بن جعفر رضي الله عنه دده خپي لاسونه کټ کړل او بدل یې ورنه واخستو

دهجرت په ۸۰ کال په مدینه کې وفات شوی دی او مدیني والي ابان بن عثمان ورته کفن ورکړی دی او دجنازي کولو نه پس یې په جنة البقیع کې دفن کړو دده په جنازه کې ډیره ګڼره وه (اسد الغابه).

کله چي رسول الله صلي الله علیه وسلم وفات شو نو دعبدالله بن جعفر عمر لس کاله وو لیکن دماشوموالي په زمانه کې یې هم یو څو احادیث یادکړي وو چي دوه په دي کې متفق علییه دي.

****************

## ۳۸_ بَاب مَا جَاءَ فِي شُرْبِ أَبْوَالِ الإِبِلِ

### داوښا نو دبولو څکلوبیان

**۱۸٤٥_حَدَّثَنَا الحَسَنُ بْنُ مُحَمَّدٍ الزَّعْفَرَانِيُّ، حَدَّثَنَا عَفَّانُ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ، أَخْبَرَنَا حُمَيْدٌ، وَثَابِتٌ، وَقَتَادَةُ، عَنْ أَنَسٍ، أَنَّ نَاسًا مِنْ عُرَيْنَةَ قَدِمُوا المَدِينَةَ فَاجْتَوَوْهَا فَبَعَثَهُمُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي إِبِلِ الصَّدَقَةِ، وَقَالَ: " اشْرَبُوا مِنْ أَبْوَالِهَا وَأَلْبَانِهَا ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ مِنْ هَذَا الوَجْهِ وَقَدْ رُوِيَ هَذَا الحَدِيثُ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ، عَنْ أَنَسٍ رَوَاهُ أَبُو قِلَابَةَ، عَنْ أَنَسٍ، وَرَوَاهُ سَعِيدُ بْنُ أَبِي عَرُوبَةَ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَنَسٍ.** [1]

**ترجمه** دانس رضي الله عنه نه مروي دي فرمائي چي دعرینه قبیلي څه کسان مدیني ته راغلل او په هغوئ دمدیني اب او هوا راست رانغله نو په دي وجه نبي کریم صلي الله علیه وسلم هغوئ دصدقي داوښانو سره اولیږل او ورته یې اوفرمائیل داوښانو متیازي او پئ څکئ.

امام ترمذي وایي: داحدیث په دي سند حسن صحیح غریب دي او په نورو سندونو هم دانس رضي الله عنه نه مروي دي، ابوقلابه دا روایت دانس نه نقل کړي دي او سعید بن ابي عروبه دقتاده په واسطه دانس نه نقل کړي دي.

---

[1] _ انظر حدیث رقم ۲،

***************

## ٣٩_ باب مَا جَاءَ فِي الْوُضُوءِ قَبْلَ الطَّعَامِ وَبَعْدَهُ

### دخوراك كولو نه مخكي او روسته دلاس وينځلو بيان

١٨٤٦_حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ مُوسَى، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ نُمَيْرٍ، حَدَّثَنَا قَيْسُ بْنُ الرَّبِيعِ. قَالَ: ح وحَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْكَرِيمِ الْجُرْجَانِيُّ، قَيْسِ بْنِ الرَّبِيعِ الْمَعْنَى واحد، عَنْ أَبِي هَاشِمٍ يَعْنِي الرُّمَّانِيَّ، عَنْ زَاذَانَ، عَنْ سَلْمَانَ، قَالَ: "قَرَأْتُ فِي التَّوْرَاةِ أَنَّ بَرَكَةَ الطَّعَامِ الْوُضُوءُ بَعْدَهُ"، فَذَكَرْتُ ذَلِكَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَأَخْبَرْتُهُ بِمَا قَرَأْتُ فِي التَّوْرَاةِ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "بَرَكَةُ الطَّعَامِ الْوُضُوءُ قَبْلَهُ وَالْوُضُوءُ بَعْدَهُ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ أَنَسٍ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: لَا نَعْرِفُ هَذَا الْحَدِيثَ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ قَيْسِ بْنِ الرَّبِيعِ، وَقَيْسُ بْنُ الرَّبِيعِ يُضَعَّفُ فِي الْحَدِيثِ، وَأَبُو هَاشِمٍ الرُّمَّانِيُّ اسْمُهُ يَحْيَى بْنُ دِينَارٍ. (١)

**ترجمه** : دسلمان فارسي رضي الله عنه بيان دي فرماني چي ما په تورات كي اولوستل چي په خوراك كي بركت دخوراك كولو نه پس په لاسونو وينځلو كي دي او چي څه مي په تورات كي كتلي وو هغه مي نبي كريم صلي الله عليه وسلم ته بيان كړل، رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمانيل په خوراك كي بركت دخوراك كولو نه مخكي او روسته په لاسونو وينځلو كي دي امام ترمذي وايي : دا حديث مونږ ته صرف دقيس بن ربيع په سند رارسيدلي دي او قيس بن ربيع په باب دحديث كي ضعيف دي، او په دي باب كي دانس او ابوهريره رضي الله عنهما نه هم احاديث وارد دي.

***************

## ٤٠_ باب فِي تَرْكِ الْوُضُوءِ قَبْلَ الطَّعَامِ

### دخوراك كولو نه مخكي دلاس وينځلو دپريښودلو بيان

١٨٤٧_حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنِ ابْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَرَجَ مِنَ الْخَلَاءِ فَقُرِّبَ إِلَيْهِ طَعَامٌ، فَقَالُوا: أَلَا نَأْتِيكَ بِوَضُوءٍ، قَالَ: "إِنَّمَا أُمِرْتُ بِالْوُضُوءِ إِذَا قُمْتُ إِلَى الصَّلَاةِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ

---

١ _ سنن ابي داود_ الأطعمة ١٢ (٣٧٦١). (تحفة الأشراف: ٤٤٨٩)

صَحِيحٌ وَقَدْ رَوَاهُ عَمْرُو بْنُ دِينَارٍ. عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْحُوَيْرِثِ. عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ. وقَالَ عَلِيُّ بْنُ الْمَدِينِيِّ. قَالَ يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ. كَانَ سُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ يَكْرَهُ غَسْلَ الْيَدِ قَبْلَ الطَّعَامِ وَكَانَ يَكْرَهُ أَنْ يُوضَعَ الرَّغِيفُ تَحْتَ الْقَصْعَةِ. ([1])

**ترجمه** دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه مروي دي فرمائي چي يو خل رسول الله صلي الله عليه وسلم دبيت الخلاء نه راووتلو او طعام ورته پيش كړي شو دي وخت كي صحابه كرامو عرض اوكړو ايا دلاسونو وينځلو دپاره درته اوبه راوړو؟ رسول الله اوفرمائيل ماته دمونځ كولو په وخت كي داودس كولو حكم شوي دي.

امام ترمذي وايي : داحديث حسن صحيح دي او دا حديث عمرو بن دينار دسعيد بن حويرث په واسطه دابن عباس نه نقل كړي دي ، علي بن مديني وائي ديحيىٰ بن سعيد قول دي چي سفيان ثوري به دخوراك كولو نه مخكي لاس وينځل مكروه ګڼړل او هغه به دپليټ لاندي ډوډئ ايخودل هم مكروه ګڼړل.

*****************

## ٤١ـ باب مَا جَاءَ فِي التَّسْمِيَةِ فِي الطَّعَامِ

### خوراك كولو نه مخكي دبسم الله ونيلو بيان

١٨٤٨ـ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا الْعَلَاءُ بْنُ الْفَضْلِ بْنِ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ أَبِي سَوِيَّةَ أَبُو الْهُذَيْلِ، حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عِكْرَاشٍ، عَنْ أَبِيهِ عِكْرَاشِ بْنِ ذُؤَيْبٍ قَالَ: بَعَثَنِي بَنُو مُرَّةَ بْنِ عُبَيْدٍ بِصَدَقَاتِ أَمْوَالِهِمْ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. فَقَدِمْتُ عَلَيْهِ الْمَدِينَةَ فَوَجَدْتُهُ جَالِسًا بَيْنَ الْمُهَاجِرِينَ وَالأَنْصَارِ قَالَ: ثُمَّ أَخَذَ بِيَدِي فَانْطَلَقَ بِي إِلَى بَيْتِ أُمِّ سَلَمَةَ فَقَالَ: "هَلْ مِنْ طَعَامٍ؟". فَأُتِينَا بِجَفْنَةٍ كَثِيرَةِ الثَّرِيدِ وَالوَذْرِ وَأَقْبَلْنَا نَأْكُلُ مِنْهَا فَخَبَطْتُ بِيَدِي مِنْ نَوَاحِيهَا وَأَكَلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ بَيْنِ يَدَيْهِ فَقَبَضَ بِيَدِهِ الْيُسْرَى عَلَى يَدِي الْيُمْنَى. ثُمَّ قَالَ: "يَا عِكْرَاشُ كُلْ مِنْ مَوْضِعٍ وَاحِدٍ فَإِنَّهُ طَعَامٌ وَاحِدٌ". ثُمَّ أُتِينَا بِطَبَقٍ فِيهِ أَلْوَانُ الرُّطَبِ أَوْ مِنْ أَلْوَانِ الرُّطَبِ عُبَيْدُ اللَّهِ شَكَّ قَالَ: فَجَعَلْتُ آكُلُ مِنْ بَيْنِ يَدَيَّ وَجَالَتْ يَدُ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الطَّبَقِ، وَقَالَ: "يَا عِكْرَاشُ كُلْ مِنْ حَيْثُ شِئْتَ فَإِنَّهُ غَيْرُ لَوْنٍ وَاحِدٍ". ثُمَّ أُتِينَا بِمَاءٍ فَغَسَلَ رَسُولُ

---

[1] ـ سنن ابي داود ـ الأطعمة ٨ (٣٧٦٠) . سنن النسائي ـ الطهارة ١٠٠ (١٣٠) . وراجع صحيح مسلم ـ الحيض ٣١ (٣٧٤) . (تحفة الأشراف : ٥٧٩٣) . واحمد في المسند (١ـ ٣٥٩)

اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدَيْهِ وَمَسَحَ بِبَلَلِ كَفَّيْهِ وَجْهَهُ وَذِرَاعَيْهِ وَرَأْسَهُ. وَقَالَ: "يَا عِكْرَاشُ هَذَا الْوُضُوءُ مِمَّا غَيَّرَتِ النَّارُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ الْعَلَاءِ بْنِ الْفَضْلِ وَقَدْ تَفَرَّدَ الْعَلَاءُ بِهَذَا الْحَدِيثِ وَلَا نَعْرِفُ لِعِكْرَاشٍ. عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَّا هَذَا الْحَدِيثَ. (1)

**ترجمه** دعكراش بن ذويب رضي الله عنه بيان دي فرماني چي بنو مره بن عبيده ماته دخپل مال زكات راكړو او زه يې رسول الله صلي الله عليه وسلم ته اوليږلم زه د رسول الله سره دملاويدو دپاره مديني ته راغلم او رسول الله دمهاجرينو انصارو په مينځ كي ناست وو نو زما لاس يې اونيولو او زه يې دام سلمه رضي الله عنها كور ته بوتلم او دهغوئ نه يې تپوس اوكړو ايا دخوراك دپاره څه شته؟ چنانچي يوه داسي كاسه راوړلي شوه چي دثريد او دغوښي دتيكو نه ډكه وه نو مونږ ددي خوړلو ته متوجه شو ما به دكاسي په كنارو كي لاس ګرځولو او رسول الله صلي الله عليه وسلم دخپلي مخي نه خوراك كولو بيا رسول الله پخپل ګس لاس زما ښي لاس اونيولو اوراته يې اوفرمائيل اي عكراش ديو ځاي نه خوره ځكه چي داتول طعام يو شي دي، بيادډينه پس مونږ ته په يو لوښي كي كجوري راوړلي شوي په كوم كي چي مختلف قسم كجوري موجود وي نو ما (درسول الله دوينا مطابق) دخپلي مخي نه خوړل شروع كړل او رسول الله به په لوښي كي لاس ګرځولو ماته يې اوفرمائيل اي عكراش چي دكوم ځاي نه دي خوښه وي دهغه ځاي نه خوره ځكه چي دا تول يو قسم نه دي بيا مونږ ته اوبه راوړلي شوي رسول الله دواړه لاسونه اووينځل او دورغوو په لوندوالي يې مخ او متي اووينځلي او په سر يې مسح اوكړه او بيا يې اوفرمائيل اي عكراش دا دخوراك كولو نه پس په اور باندي دپوخ شوي څيز دخوړلو نه پس اودس دي.

امام ترمذي وايي : داحديث غريب دي، دا مونږ ته صرف دعلي بن فضل په روايت رارسيدلي دي او علاء ددي حديث په نقل كولو كي منفرد دي او مونږ ته دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه دعكراش صرف همدا يو حديث معلوم دي.

******************

## ٤٢_ بَابُ مَا جَاءَ فِي أَكْلِ الدُّبَّاءِ

### دكدو خوړلو بيان

1 _ سنن ابن ماجه_الأطعمة ((٣٢٢٠)). (تحفة الأشراف: ١٠٠٦١)

١٨٤٩_حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ مُعَاوِيَةَ بْنِ صَالِحٍ، عَنْ أَبِي طَالُوتَ قَالَ: " دَخَلْتُ عَلَى أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ وَهُوَ يَأْكُلُ الْقَرْعَ وَهُوَ يَقُولُ يَا لَكِ شَجَرَةً مَا أُحِبُّكِ إِلَّا لِحُبِّ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِيَّاكِ ". قَالَ: وَفِي الْبَاب عَنْ حَكِيمِ بْنِ جَابِرٍ، عَنْ أَبِيهِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ مِنْ هَذَا الْوَجْهِ. (١)

**ترجمه** دابوطالوت بيان دي فرمائي چي زه مالك بن انس رضي الله عنه ته ورغلم كدو يي خوړلو او ونيل يي اي كدو ته مي څومره خوښ يي څكه چي رسول الله صلي الله عليه وسلم ته خوښولي

امام ترمذي وايي داحديث په دي سند غريب دي او په دي باب كي دحكيم بن جابر نه هم روايت وارد دي كوم چي هغه دخپل پلار نه نقل كړي دي

٢ ******************

١٨٥٠_حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مَيْمُونٍ الْمَكِّيُّ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، حَدَّثَنِي مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ، عَنْ إِسْحَاقَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي طَلْحَةَ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: " رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَتَبَّعُ فِي الصَّحْفَةِ يَعْنِي الدُّبَّاءَ فَلَا أَزَالُ أُحِبُّهُ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَقَدْ رُوِيَ هَذَا الْحَدِيثُ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ عَنْ أَنَسٍ وَرُوِيَ أَنَّهُ رَأَى الدُّبَّاءَ بَيْنَ يَدَيْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ لَهُ: مَا هَذَا؟ قَالَ: " هَذَا الدُّبَّاءُ نُكَثِّرُ بِهِ طَعَامَنَا ". (٢)

**ترجمه** دانس بن مالك رضي الله عنه بيان دي فرمائي چي ما رسول الله صلي الله عليه وسلم اوليدلو چي په پليټ كي يي لټولو يعني كدو او دهمدغه وخت نه زه كدو خوښوم

امام ترمذي وايي دا حديث حسن صحيح دي او دانس نه دا حديث په نورو سندونو هم مروي دي، مروي دي چي انس رضي الله عنه درسول الله په وړاندي كدو اوليدلو نو تپوس يي ورنه اوكړو دا څه دي، رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل دا كدو دي او مونږ په دي باندي دخپل خوراك مقدار زياتوو.

---

[1] _ تفرد به المؤلف. (تحفة الأشراف: ١٦٧٩)

[2] _ اخرجه البخاري في الصحيح_ البيوع ٣٠ (٢٠٩٢). والأطعمة ٤ (٥٣٧٩). و ٣٥ (٥٤٣٠). صحيح مسلم_ الأشربة والأطعمة ٢١ (٢٠٤١). سنن ابي داود_ الأطعمة ٢٢ (٣٧٨٢). سنن ابن ماجه_ الأطعمة ٢٦ (٣٣٠٣). (تحفة الأشراف: ١٩٨) والموطأ النكاح ٢١ (٥١). سنن الدارمي_ الأطعمة ١٩ (٢٠٩٣)

*****************

## ٤٣_ باب مَا جَاءَ فِي أَكْلِ الزَّيْتِ

### دزيتون تيلو دخوړلو بيان

١٨٥١_حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ مُوسَى، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، عَنْ مَعْمَرٍ، عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عُمَرَ بْنِ الخَطَّابِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "كُلُوا الزَّيْتَ وَادَّهِنُوا بِهِ فَإِنَّهُ مِنْ شَجَرَةٍ مُبَارَكَةٍ"، قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ عَبْدِ الرَّزَّاقِ، عَنْ مَعْمَرٍ وَكَانَ عَبْدُ الرَّزَّاقِ يَضْطَرِبُ فِي رِوَايَةِ هَذَا الحَدِيثِ فَرُبَّمَا ذَكَرَ فِيهِ، عَنْ عُمَرَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَرُبَّمَا رَوَاهُ عَلَى الشَّكِّ، فَقَالَ: أَحْسَبُهُ عَنْ عُمَرَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَرُبَّمَا قَالَ، عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُرْسَلًا. [1]

**ترجمه** : دعمربن الخطاب رضي الله عنه نه مروي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دزيتون تيل خورئ او دخپل جسم مالش وربانـدي كوئ ځكه چي دا مباركه ونه ده.

امام ترمذي وايي : داحديث مونږ ته صرف دعبدالرزاق په روايت رارسيدلي دي چي دمعمرو نه يي نقل كوي اوعبدالرزاق ددي حديث په نقل كولو كي مضطرب دي كله يي مرفوع نقل كوي او كله دشك سره وائي زما خيال دي چي دا عمر رضي الله عنه درسول الله صلي الله عليه وسلم نه نقل كري دي او كله وائي دزيد بن اسلم نه روايت دي او هغه دخپل پلار نه او هغه دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه نقل كري دي .

*****************

حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ سُلَيْمَانُ بْنُ مَعْبَدٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، عَنْ مَعْمَرٍ، عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ، عَنْ أَبِيهِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَهُ وَلَمْ يَذْكُرْ فِيهِ عَنْ عُمَرَ. [2]

**ترجمه** او دا حديث معمرو دزيد بن اسلم نه دهغه دپلار په واسطه دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه دماقبل روايت هم معني نقل كري دي او په دي كي يي دعمر واسطه نه ده ذكر كري

*****************

---

[1] _ سنن ابن ماجه_الأطعمة ٣٤ (٣٣١٩) . (تحفة الأشراف : ١٠٣٩٣)

[2] _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ١٨٤٣٦)

١٨٥٢_حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا أَبُو أَحْمَدَ الزُّبَيْرِيُّ، وَأَبُو نُعَيْمٍ، قَالَا: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عِيسَى، عَنْ رَجُلٍ يُقَالُ لَهُ: عَطَاءٌ مِنْ أَهْلِ الشَّامِ، عَنْ أَبِي أَسِيدٍ قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "كُلُوا الزَّيْتَ وَادَّهِنُوا بِهِ فَإِنَّهُ مِنْ شَجَرَةٍ مُبَارَكَةٍ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ مِنْ هَذَا الْوَجْهِ إِنَّمَا نَعْرِفُهُ مِنْ حَدِيثِ سُفْيَانَ، عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عِيسَى. (١)

**ترجمه** دابواسيد رضي الله عنه بيان دي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دزيتون تيل خورئ او جسم ورباندي غوروئ خكه چي دا مباركه ونه ده

امام ترمذي وايي . داحديث په دي سند غريب دي او مونږ ته صرف دسفيان ثوري په سند دعبدالله بن عيسي په واسطه رارسيدلي دي.

* * * * * * * * * * * * * * * *

## ٤٤_ باب مَا جَاءَ فِي الأَكْلِ مَعَ الْمَمْلُوكِ وَالْعِيَالِ

### د نوكر يا غلام او خپلو بچو سره دخوراك كولو بيان

١٨٥٣_حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ إِسْمَاعِيلَ بْنِ أَبِي خَالِدٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ يُخْبِرُهُمْ ذَاكَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "إِذَا كَفَى أَحَدَكُمْ خَادِمُهُ طَعَامَهُ حَرَّهُ وَدُخَانَهُ، فَلْيَأْخُذْ بِيَدِهِ، فَلْيُقْعِدْهُ مَعَهُ فَإِنْ أَبَى، فَلْيَأْخُذْ لُقْمَةً فَلْيُطْعِمْهَا إِيَّاهُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ، وَأَبُو خَالِدٍ وَالِدُ إِسْمَاعِيلَ اسْمُهُ سَعْدٌ. (٢)

**ترجمه** ابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي نبي كريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي كله چي په تاسو كي ديوكس خادم ستاسو دخوراك گرمي او لوگي برداشت كړي نو مالك لره پكار دي چي دده لاس اونيسي او دخان سره يي خوراك ته كينوي او كه هغه انكار اوكړي يوه لقمه دي راواخلي او په ده باندي دي اوخوروي.

امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي.

* * * * * * * * * * * * * * * *

## ٤٥_ باب مَا جَاءَ فِي فَضْلِ إِطْعَامِ الطَّعَامِ

---

1 _ تفرد به المؤلف (أخرجه النسائي في الكبرى)، (تحفة الأشراف: ١١٨٦٠)، واحمد في المسند (٣_٤٩٦)

2 _ سنن ابن ماجه_ الأطعمة (٣٢٨٩ و ٣٢٩٠)، (تحفة الأشراف: ١٢٩٣٥)، واحمد في المسند (٢_٢٤٣)، (وراجع: اخرجه البخاري في الصحيح_ العتق ١٨ (٢٥٥٧)، والأطعمة ٥٥ (٥٤٦٠)، واحمد في المسند (٢_٢٨٣، ٤٠٩، ٤٣٠)

## چاته دخوراك وركولو دفضيلت بيان

١٨٥٤_حَدَّثَنَا يُوسُفُ بْنُ حَمَّادٍ الْمَعْنِيُّ الْبَصْرِيُّ، حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْجُمَحِيُّ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ زِيَادٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " أَفْشُوا السَّلَامَ وَأَطْعِمُوا الطَّعَامَ وَاضْرِبُوا الْهَامَ تُورَثُوا الْجِنَانَ ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، وَابْنِ عُمَرَ، وَأَنَسٍ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ سَلَامٍ، وَعَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَائِشٍ، وَشُرَيْحِ بْنِ هَانِئٍ، عَنْ أَبِيهِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ مِنْ حَدِيثِ ابْنِ زِيَادٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ. (1)

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي سلام په خلقو كي عام كړئ او دا په خلقو كي خور كړئ خلقو ته خوراكونه وركوئ او دكافرانو سرونه اووهئ نو دجنت وارثان به جوړ شئ.

امام ترمذي وايي : داحديث دابوهريره په واسطه دابن زياد په روايت حسن صحيح غريب دي، او په دې باب كي دعبدالله بن عمرو، ابن عمر، انس، عبدالله بن سلام، عبدالرحمن بن عائش، او شريح بن هاني، رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي، شريح بن هاني دا روايت دخپل پلار په واسطه نقل كړي دي.

**لغات** : نيام: نام ينام نوما ونياما اوده كيدل نائم يي فاعل دي جمع يي نيام او نوّم او نيّم او نوّام راځي.

**تشريح** : افشوا السلام، يعني سلام لره خور كړئ په يو بل حديث كي راځي هر چاته سلام كوئ تاسو يي پيژنئ او كه نه يي پيژنئ سلام سلامتي ده سلام چي څومره خور شي نو دومره به سلامتي زياته خوره شي.

اطعموا الطعام ، يعني خلقو ته خوراكونه وركوئ، په عامو وختونو كي په خوراك صدقه كول سنت دي ليكن په اضطراري حالاتو كي فرض دي.

* * * * * * * * * * * * * * * * *

١٨٥٥_حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا أَبُو الْأَحْوَصِ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ السَّائِبِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " اعْبُدُوا الرَّحْمَنَ وَأَطْعِمُوا الطَّعَامَ وَأَفْشُوا السَّلَامَ تَدْخُلُوا الْجَنَّةَ بِسَلَامٍ ". قَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (2)

---

1 _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ١٣٢٠٣)

2 _ سنن ابن ماجه _ الأدب ١١ (٣٦٩٤) . (تحفة الأشراف : ٨٦٣١)

**ترجمه** دعبدالله بن عمرو رضي الله عنهما بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي درحمان ذات عبادت کوئ او خلقو ته خوراك ورکوئ او سلام عام کړئ اوپه خلقو کي يي خور کړئ نو جنت ته به سلامتئ سره داخل شئ
امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي.
**تشريح**: افشوا السلام، يعني سلام لره خور کړئ په يو بل حديث کي راخي هر چاته سلام کوئ تاسو يي پيژنئ او که نه يي پيژنئ سلام سلامتي ده سلام چي څومره خور شي نو دومره به سلامتي زياته خوره شي.
اطعموا الطعام ، يعني خلقو ته خوراکونه ورکوئ، په عامو وختونو کي په خوراك صدقه کول سنت دي ليکن په اضطراري حالاتو کي فرض دي.

****************

## ٤٦_ باب مَا جَاءَ فِي فَضْلِ الْعَشَاءِ

### ماښام وخت کي د خوراك کولو فضيلت

١٨٥٦_حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ مُوسَى، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَعْلَى الْكُوفِيُّ، حَدَّثَنَا عَنْبَسَةُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْقُرَشِيُّ، عَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ عَلَّاقٍ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " تَعَشَّوْا وَلَوْ بِكَفٍّ مِنْ حَشَفٍ فَإِنَّ تَرْكَ الْعَشَاءِ مَهْرَمَةٌ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ مُنْكَرٌ لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ هَذَا الْوَجْهِ وَعَنْبَسَةُ يُضَعَّفُ فِي الْحَدِيثِ، وَعَبْدُ الْمَلِكِ بْنِ عَلَّاقٍ مَجْهُولٌ. [1]

**ترجمه** دانس بن مالك رضي الله عنه بيان دي نبي کريم صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دشپي ضرور خوراك کوئ اګر چي يوه خوړه ردي کجوره ولي نه وي ځکه چي دشپي خوراك پريخودل دبوډاوالي سبب دي
امام ترمذي وايي : داحديث منکر دي دا مونږ صرف په همدي سند پيژنو، عنبسه په باب دحديث کي ضعيف دي او عبدالملك بن علاق مجهول دي

****************

## ٤٧_ باب مَا جَاءَ فِي التَّسْمِيَةِ عَلَى الطَّعَامِ

### په خوراك باندي دبسم الله ويلو بيان

---

[1] تفرد به المؤلف. (تحفة الأشراف : ٨٦٢١)

١٨٥٧_حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ الصَّبَّاحِ الْهَاشِمِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الأَعْلَى، عَنْ مَعْمَرٍ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عُمَرَ بْنِ أَبِي سَلَمَةَ، أَنَّهُ دَخَلَ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَعِنْدَهُ طَعَامٌ قَالَ: " ادْنُ يَا بُنَيَّ وَسَمِّ اللَّهَ وَكُلْ بِيَمِينِكَ وَكُلْ مِمَّا يَلِيكَ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَقَدْ رُوِيَ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِي وَجْزَةَ السَّعْدِيِّ، عَنْ رَجُلٍ مِنْ مُزَيْنَةَ، عَنْ عُمَرَ بْنِ أَبِي سَلَمَةَ وَقَدِ اخْتَلَفَ أَصْحَابُ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ فِي رِوَايَةِ هَذَا الْحَدِيثِ وَأَبُو وَجْزَةَ السَّعْدِيُّ اسْمُهُ يَزِيدُ بْنُ عُبَيْدٍ.[1]

**ترجمه** دعمر بن ابي سلمه رضي الله عنه نه مروي دي فرمائي چي زه رسول الله صلي الله عليه وسلم ته ورغلم او دهغوئ خواته مي خوراك كيخودو راته يي اوفرمائيل رانزدي شه بچيه بسم الله اووايه او چي كومه درته نزدي وي په ښي لاس يي خوره

امام ترمذي وايي: داحديث دهشام بن عروه په سند عن ابي وجزة السعدي عن رجل من مزينة عن عمر ابن ابي سلمة په سند باندي مروي دي ددي حديث په نقل كولو كي دهشام بن عروه په شاګردانو كي اختلاف دي.

## دبسم الله ويلو حكم

دبعضو علماؤ په نزد بسم الله وئيل مستحب دي لكه چي په نورو روايتونو كي راغلي دي "اذا اكل احدكم طعاما فليقل بسم الله فان نسي في اوله فليقل بسم الله في اوله واخره" دبسم الله په بركت سره شيطان دخوراك نه لري كيږي علماء وائي چي بهتره داده چي پوره بسم الله الرحمن الرحيم اووائي او كه نه نو بسم الله وئيل هم كافي دي

## په ښي لاس خوراك كول

"وكل بيمينك" يعني په ښي لاس خوره داكثرو په نزد دلته كل لفظ د وجوب دپاره دى په يو بل حديث كي راځي "اذا اكل احدكم فلياكل بيمينه واذا شرب فليشرب بيمينه فان الشيطان ياكل بشماله ويشرب بشماله".

## يوه عبرتناكه قصه

دحديث په بعضو كتابونو كي راځي چي يو كس په ګس لاس خوراك كولو رسول الله صلي الله

---

[1] _ سنن ابن ماجه_ الأطعمة ـ (٣٢٦٠) (تحفة الأشراف ١٠٦٨٥) (وراجع اخرجه البخاري في الصحيح الأطعمة ٢ (٥٣٧٦) ، وصحيح مسلم_ الأشربة والأطعمة ١٣ (٢٠٢٢) ، وسنن ابي داود_ الأطعمة ٢٠ (٣٧٧٧) و موطا امام مالك ـ صفة النبي ﷺ ١٠ (٣٢) ، وسنن الدارمي_ الأطعمة ١ (٢٠٦٣)

عليه وسلم ورته تنبيه ورکړه چې په ښي لاس خوره هغه اوونيل زه بې په ښې لاس نه شم خوړلی رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل په ائينده کې دي هم په ښې لاس اونه خوړلی شي نو دډېنه پس به بيا ده خپل ښی لاس خولې ته نه شو رسولی په يو بل روايت کې راځي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم يو ځل يوه بوډۍ ښځه په چپ لاس په خوراك كولو اوليده نو خيري بې ورته اوکړي ترڈي چې هغه په طاعون مرض مړه شوه.

## دخپلي مخي نه خوراك كول

"كل مما يليك" كه خوراك صرف يو قسم وي نو بيا خو دخپلې مخې نه خوړل پكار دي او كه ډير قسمونه وي نو بيا دبل چا دمخې نه هم دخپلې خوښې څيز خوړل جائز دي او دكاسې دمينځ نه به نه خوري خكه چې په دي كې دبركت نزول كيږي دا به داخره پورې باقي وي ددې دپاره چې نزول دبركت جاري پاتي شي.

## ابوحفص عمر بن ابي سلمه عبدالله بن عبدالاسد رضي الله عنه حالات

عمرو دام سلمهٔ رضي الله عنها بچی دی كوم چې ددې دمخكني خاوند ابوسلمه نه پيدا شوی وو عمرو دهجرت نه دوه كاله مخكې پيداشوی وو او دا هغه وخت وو كله چې ام سلمه په حبشه كې وه عمرو پخپلو خويندو او رونړو كې دتولو نه مشر وو كله چې دام سلمه رضي الله عنها سره درسول الله صلي الله عليه وسلم نكاح اوشوه په دې وخت كې دی ماشوم وو او بيا دډېنه پس درسول الله صلي الله عليه وسلم په پرورش كې راغی دی درسول الله صلي الله عليه وسلم نه هم براه راست روايات نقل كوي او دخپلې مور ام سلمه رضي الله عنها نه هم نقل كوي (سير اعلام النبلاء).

عمرو دعبدالملك بن مروان په زمانه كې وفات شو (اسد الغابه) دابن الاسير په قول دده دوفات كيدو كال ۸۳هجري دی.

***************

۱۸۵۸_حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرٍ مُحَمَّدُ بْنُ أَبَانَ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، حَدَّثَنَا هِشَامٌ الدَّسْتُوَائِيُّ، عَنْ بُدَيْلِ بْنِ مَيْسَرَةَ الْعُقَيْلِيِّ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُبَيْدِ بْنِ عُمَيْرٍ، عَنْ أُمِّ كُلْثُومٍ، عَنْ عَائِشَةَ. قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا أَكَلَ أَحَدُكُمْ طَعَامًا فَلْيَقُلْ بِسْمِ اللَّهِ فَإِنْ نَسِيَ فِي أَوَّلِهِ فَلْيَقُلْ بِسْمِ اللَّهِ فِي أَوَّلِهِ وَآخِرِهِ".

وَبِهَذَا الإِسْنَادِ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "يَأْكُلُ طَعَامًا فِي سِتَّةٍ مِنْ أَصْحَابِهِ فَجَاءَ أَعْرَابِيٌّ فَأَكَلَهُ بِلُقْمَتَيْنِ". فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَمَا إِنَّهُ لَوْ سَمَّى لَكَفَاكُمْ".

**قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ وَأُمُّ كُلْثُومٍ هِيَ بِنْتُ مُحَمَّدِ بْنِ أَبِي بَكْرٍ الصِّدِّيقِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ.** (1)

**ترجمه** دعائشه رضي الله عنها نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي كله چي په تاسو كي څوك خوراك كوي نو دا كلمات دي اووائي "بسم الله" او كه دخوراك په شروع كي يي دا كلمات وئيل هير شي نو بيا دي داسي دي اووائي "بسم الله في اوله واخره"

امام ترمذي وايي: په دي سند باندي هم دعائشه رضي الله عنها نه مروي دي فرماني رسول الله صلي الله عليه وسلم خوراك كولو پخپلو شپږو ملګرو كي او يو باندچي راغي او ټول خوراك يي په دوه لقمو كي ختم كړو رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل كه چري ده بسم الله وئيلي وي نو دا خوراك به ستاسو دټولو دپاره كافي شوي وو. امام ترمذي واني داحديث حسن صحيح دي او ام كلثوم دمحمد بن ابي بكر الصديق رضي الله عنه لور ده

**لغات**: كفاكم: كفي يكفي كفاية معني دخه شي كافي كيدل او صفت يي كاف راخي

**تشريح**: معلومه شوه چي دالله په نوم اخستلو كي په خوراك كي بركت راخي او كه دالله دنوم اخستو نه بغير خوراك اوكړى شي نو ددي خوراك بركت ختميږي همدا مضمون دانس رضي الله عنه نه هم مروي دى فرمائيل يي چي كه په خوراك كي بسم الله اونه وئيلى شي نو په هغي كي بركت نه وي، علماء وائي دخوراك په شروع كي بسم الله سنت ده تردي پوري كه څوك په جنابت كي وي ياكومه ښځه په بيمارئ كي وي نو هم ددي وئيل ددوئ دپاره سنت دي بسم الله دي اولولي مګر په ناپاكه حالت كي دي تلاوت نه كوي بلكه دذكر په نيت دي بسم الله وائي نو بيابه حرامه نه وي.

****************

## ٤٨ـ بَابُ مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ الْبَيْتُوتَةِ وَفِي يَدِهِ رِيحُ غَمَرٍ

**دڅكرو لاسونو دبدبويي سره داوده كيدو دكراهت بيان**

١٨٥٩ـ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ الْوَلِيدِ الْمَدَنِيُّ، عَنِ ابْنِ أَبِي ذِئْبٍ، عَنِ الْمَقْبُرِيِّ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ الشَّيْطَانَ حَسَّاسٌ لَحَّاسٌ فَاحْذَرُوهُ

---

1 _ سنن ابي داود_ الأطعمة ١٦ (٣٧٦٧) . سنن النسائي_ عمل اليوم والليلة ١٠٣ (٢٨١) . سنن ابن ماجه_ الأطعمة ٧ (٣٢٦٣) . والمؤلف في الشمائل ٢٥ (تحفة الأشراف : ١٧٩٨٨) . و احمد في المسند (٦ _ ١٤٣) . سنن الدارمي_ الأطعمة ١ (٢٠٦٣).

عَلَى أَنْفُسِكُمْ مَنْ بَاتَ وَفِي يَدِهِ رِيحُ غَمَرٍ فَأَصَابَهُ شَيْءٌ فَلَا يَلُومَنَّ إِلَّا نَفْسَهُ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ مِنْ هَذَا الْوَجْهِ وَقَدْ رُوِيَ مِنْ حَدِيثِ سُهَيْلِ بْنِ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. (1)

**ترجمه** دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي يقينا شيطان ډيراحساس كونكي او څټونكي دي دده نه خپل خانونه بچ كړئ هر څوك چي په داسي حال كي شپه صبا كړي چي دده په لاسونو كي دككړيدو بدبويي وي او بيا ورته څه مصيبت اورسيږي نو دي دي صرف خپل خان ملامته كړي.

امام ترمذي وايي : داحديث په دي سند غريب دي، او دا حديث سهيل بن ابي صالح په عن ابيه عن ابي هريرة عن النبي صلي الله عليه وسلم سند سره هم نقل كړي دي.

***************

١٨٦٠ـ حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرٍ مُحَمَّدُ بْنُ إِسْحَاقَ الْبَغْدَادِيُّ الصَّاغَانِيُّ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ الْمَدَائِنِيُّ، حَدَّثَنَا مَنْصُورُ بْنُ أَبِي الأَسْوَدِ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " مَنْ بَاتَ وَفِي يَدِهِ رِيحُ غَمَرٍ فَأَصَابَهُ شَيْءٌ فَلَا يَلُومَنَّ إِلَّا نَفْسَهُ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ لَا نَعْرِفُهُ مِنْ حَدِيثِ الأَعْمَشِ إِلَّا مِنْ هَذَا الْوَجْهِ. (2)

**ترجمه** : دابوهريره رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي څوك چي په داسي حال كي شپه سبا كړي چي په لاسونو كي يي دككړوالي بدبويي وي او بيا كه ده ته څه مصيبت اورسيږي نو خپل خان ته دي بد رد اووائي، داحديث حسن غريب دي او دا مونږ ته داعمش په روايت صرف په همدي سند رارسيدلي دي.

***************

# كتاب الأشربة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم

## دمشروباتو احكام او مسائل

---

1 _ تفرد به المؤلف. (تحفة الأشراف : ١٣٠٢٢)

2 _ سنن ابي داود_ الأطعمة ٥٤ (٣٨٥٢) . سنن ابن ماجه_ الأطعمة ٢٢ (٣٢٩٦) . (تحفة الأشراف : ١٢٣٦٢) واحمد في المسند (٢_ ٢٦٣) . سنن الدارمي_ الأطعمة ٢٧ (٢١٠٧)

قاضي ثناء الله صاحب د سورة البقري په تفسير کي وايي چه دي باره کي د علماؤ اختلاف دي چي د خمر مصداق څه شي دي کوم چي په قران کې راغلي دي
امام ابو حنيفه رحمة الله عليه فرمائي چي خمر دانګورو شيرې ته ونيلي شي خو کله چي په دي کې نشه پيدا شي اوپه خوټکيدو سره زګ وغورزوي
دصاحبينو په نزد باندي په خوټکيدوسره زګ غورځول شرط نه دي
امام مالك امام شافعي او امام احمد رحمهم الله دريواړو قول دا دي هر يو شربت چي د چا اوڅکلي شي او نشه پيدا کړي هم ديته خمر ونيلي شي، احناف وائي چي خمر خاص د هغه شي نوم دي کوم چي مونږ ذکر کړو او همدا داهل لغت په نزد مشهور دي او هم د دي وجي نه په دي معني کې د دي استعمال مشهور شوي دي ، د دينه علاوه دنورو نشو دڅيزونو نومونه مشهور دي مثلا : مثلث ، طلا، منصف، باذوق وغيره اوپه لغت کې قياس نه چليږي .
دجمهورو دا قول چي په لغت کې خمر دهغه شي نوم دي کوم چي عقل لره خبط کوي . اوزما په نزد تحقيقي خبره داده چي خمر يوداسي لفظ دي کوم چي دعام او خاص په مينځ کې مشترك دي ياخوپه حقيقي طور سره اويادعموم مجاز په طريقي سره
صاحب دقاموس وائي چي خمر يا خو دانګورو دشيري نوم دي کوم چي نشه راولي اويا يو عام نوم دي او عام نوم کيدل زيات صحيح دي ابن عمر رضي الله عنهما فرماني کله چي شراب حرام شول نو په مدينه کې به انګوري شراب بالکل نه موندل کيدل (بخاري)
او په دي باره کې دعمر رضي الله عنه نه يو روايت وارد دي چي نبي کريم صلي الله عليه وسلم په خپله خطبه کې فرمائيلي وو چي دشرابو حرمت نازل شوي دي اوداپنځه څيزونو نه جوړيږي . انکور، کجوري، غنم، وربشي، اوشهد . اوخمر هغه شي ته ونيلې شي کوم چي عقل خرابوي متفق عليه.
امام احمد په خپل مسند کې دابن عمر رضي الله عنهما نه روايت نقل کړي دي چي نبي عليه السلام فرمائيلي دي چي دغنمو جوارو کجورو انګورو اوشهدو د دي ټولو څيزونونه شراب جوړيږي . اوپه دي باره کې دنعمان بن بشير رضي الله عنه نه هم د دي پشان يو مرفوع روايت مروي دي کوم لره چي ترمذي ابوداود ابن ماجه نقل کړي دي اوداامام احمد نه هم په دي باره کې يو روايت نقل دي چي په اخر کې يي دا دي چي نبي عليه السلام اوفرمائيل زه دهر نشه راوستونکي څيز نه تاسو منع کوم او داهم مروي دي چي نبي عليه السلام اوفرمائيل هر نشه راوستونکي څيز خمر دي مسلم
دانس رضي الله عنه نه روايت دي چي دانګورو کجورو شهدو او جوارو د دي ټولو څيزونو نه خمر جوړيږي او کوم چي په دي کې نشه راولي هغه هم خمر دي (امام احمد)

کله چې دا ثابته شوه چې د خمر لفظ هغه ټولو شربتونو ته شامل دي کوم چې نشه راولي نو دنص دقران نه دا ثابته شوه چې د نشي څیز برابره خبره ده که لږ وي او که ډیر وي حرام او ناپاك دي د دي څکونکي ته به د شریعت موافق سزا ورکولي شي او د دي خرڅول وغیره جائز نه دي او که څوك دي لره برباد کړي نو تاوان به ورباندي لازم نه وي مګر په دي کې د اختلاف کیدو په وجه باندي به دا فرق وي که چرې څوك د کچې شیرې نه علاوه د وریشو او د غنمو وغیره شراب حلال اوګنړي نو ده ته به کافر نشي وئیلي

امام ابوحنیفه فرمائي چې د خمر نه علاوه دري قسمه شرابونه حرام دي یو په هغوی کې طلا دي او دا د انګورو شیره وي کله چې دا دومره اوخوټکولي شي چې د دریمي حصې نه کم شي . او که چرې نیم په نیمه په خوټکیدو باندي کم شوي وي نو دیته منصف وئیلي شي یا د دینه کم کم شوي وي نو دیته باذق وئیلي شي دا په هغه وخت کې وي کله چې بنه اوخوټکیږي اوزګ او غورزوي بل قسم سکر دي او دا شراب د کجورو د شربت نه جوړیږي کله چې دا بنه اوخوټکیږي اوزګ او غورزوي ، دریم قسم دوچو انګورو شیره ده په دي باره کې امام ابویوسف د زګ غورزولو شرط نه لګوي او دا تمام قسم شرابونه ناپاك دي په یو روایت کې دي چې دا نجاست خفیفه دي او په بل روایت کې دي چې نجاست غلیظه دي په دي کې لږ شراب هم داسي دي لکه ډیر شراب چې څنګه دي لکه چې د نبي علیه السلام په ارشاد کې اوس تیر شول چې شراب د دي بوټو نه جوړیږي خوځوپوري چې پکې نشه نه وي نو د دي په څکونکي به حد نه شي جاري کولي ځکه چې د دي حرمت اجتهادي او ظني دي او حدود په شبهي سره ختمیږي.

امام ابوحنیفه په نزد باندي د دي خرڅول جائز دي او د دي په بربادونکي به تاوان لازم وي لیکن صاحبین ورنه په دي کې مخالف دي.

په هدایه کې دي علماؤ وئیلي دي چې صحیح مذهب دا دي چې د دي په څکونکي به حد جاري کیږي او دا د امام محمد مذهب دي چې دا قسم شرابونه حرام دي او د دي په څکونکي به حد جاري کیږي او د نشي په حالت کې به ورکړي شوي طلاق هم واقع کیږي لکه څنګه چې د نورو شرابو حکم دي لیکن د ائمه ثلاثه په نزد باندي ناپاك نه دي ځکه چې هغوی د دي لږ مقدار ته حرام نه وائي په فتاوي نسفي کې دي چې بنګ څکل حرام دي او د بنګ څکلو والا طلاق به واقع کیږي او څوك چې دا حلال اوګنړي هغه به قتل کولي شي او د دي څکونکي باندي به داسي حد جاري کولي شي لکه د شرابو په څکونکي او ډیر احادیث په دي دلالت کوي چې هر نشه کونکي څیز حرام دي د جابر رضي الله عنه نه روایت دي چې یو سړي د یمن نه راغي ده د نبي علیه السلام نه د جوارو د شرابو په باره کې تپوس اوکړو چې حلال دي او که نه دي کوم چې به هلته خلقو څکل او مزر به ورته وئیلي شي نبي علیه السلام ورنه تپوس

اوكړو چي څوك يي اوڅكي نشه كيږي اوكه نه، عرض يي اوكړو چي هو. نونبي عليه السلام اوفرمائيل چي د نشي هر يو څيز حرام دي (مسلم)

دسعد بن وقاص رضي الله عنه نه روايت دي چي نبي عليه السلام اوفرمائيل كوم څيز چي ډيره نشه راولي دهغي لږ هم حرام دي ترمذي ،ابوداود ، ابن ماجه،

دعائشه رضي الله عنها نه روايت دي چي نبي عليه السلام فرمائيلي دي چي دكومو شرابو چي يو فرق (پيمانه) څكل نشه راولي نو دهغي نه يوه لپه څكل هم حرام دي مسند احمد او ترمذي ورته حسن ونيلي دي او ابوداود او ابن حبان هم نقل كړي دي

ام سلمه فرمائي چي دهر نشته راوستونكي اوبيهوشه كونكي څيز نه نبي عليه السلام منع فرمائيلي ده (ابوداود).

ديلم حميري وائي چي ما نبي عليه السلام ته عرض وكړوچي مونږ په يخ ملك كې اوسيږواوهلته ډير سخت كارونه كوو ، ددي دپاره چي مونږ دي كارونو ته قوي شو دغنمو نه شراب جوړوو ، نبي عليه السلام پوښتنه وكړه چي دا شراب نشه راولي اوكه نه ما عرض وكړو چي هو نوراته ئي اوفرمائيل چي ددينه پرهيز وكړئ ماعرض وكړو چي زمونږ خلق ددي پريخودلو ته تيار نه دي نو ويي فرمائيل كله چي نه منع كيږي نوجنګ ورسره وكړئ (ابوداود)

دابومالك اشعري رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چي دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه مي اوريدلي دي چي فرمائيل ئي چي زما دامت خلق به ضرور شراب څكي ليكن په بل نوم به ئي يادوي (ابوداود)

په دي باره كې دار قطني دعلي رضي الله عنه نه روايت نقل كړي دي. او دخوات بن جبير نه هم په مستدرك كې دا رنګي مروي دي . كوم عالمان چي دنبيذ داباحت قائل دي دهغوئ دپاره حجت يو څو احاديث دي چي پكې حديث دابن عباس رضي الله عنه دي چي دنبي عليه السلام دپاره به ماښام په اوبو كې كجوري واچولي شوي او سحر به يي دهغي شربت څكلو او بيابه په سحر كې واچولي شوي اوماښام به يي څكلو په دي شان سره په دويمه ورځ اوپه دريمه ورځ به هم داسي وي خو كه چري ددينه پس به نور شربت باقي پاتي شوي وو نو يابه يي په خادم باندي وڅكولو او يابه يي وغورځولو (مسلم).

چا ونيلي دي كه چري دا شربت حرام وي نوپه خادم به يي نه څكولو ددي جواب دا دي اګر چي په دي كې به نشه نه وه ليكن بي مزي به شو او دا ويره به پيدا شوه چي هسي نه په دي كې نشه پيدا شوي وي خو كه چري دنشي به پيدا كيدو غالب ګمان وي نوهغه به يي خامخا غورځولي . لهذا ددينه دليل نه شي نيولي كيدي.

علامه بغوي فرمائي په باره دشرابو کې الله تعالي څلور اياتونه نازل کړي دي اول خويه مکه کې ايت وَمِنْ ثَمَرَاتِ النَّخِيلِ وَالْأَعْنَابِ تَتَّخِذُونَ مِنْهُ سَكَرًا وَرِزْقًا حَسَنًا نازل شوي وو پدغه وخت کې خلقو شراب څکل اوددوئ دپاره حلال هم وو ليکن بيا چي کله عمر بن الخطاب اومعاذ بن جبل او يو څو نور انصاري صحابه کرام دنبي کريم صلي الله عليه وسلم په خدمت کې حاضر شول او عرض يې اوکړو چي اي دالله رسوله دشرابو دجوارئ په باره کې مونږ ته فتوي راکړه ځکه چي دا دواړه عقل او مال لره بربادونکي دي نوپه دغه وخت کې الله تعالي دا ايت کريمه يَسْئَلُونَكَ عَنِ الْخَمْرِ وَالْمَيْسِرِ. نازل کړو نوپه دي وخت کې بعضو خلقو دالله تعالي د قول اثم کبير فرمانيلو په وجه شراب څکل پريخودل او بعضو خلقو د "ومنافع للناس" په دليل سره څکل. يوه ورځ عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه صحابه کرامو ته دعوت ورکړو او په دي دعوت کې يې په خلقو شراب هم وڅکول دشرابوپه څکلوسره نشه شول اوپه دي وخت کې دماښام دمونځ وخت راورسيدو په همدي حالت کې دوئ يو کس لره دامامت دپاره مخکې کړو نوده په نشه کې دا ايت کريمه قُلْ يَا أَيُّهَا الْكَافِرُونَ. لَا أَعْبُدُ مَا تَعْبُدُونَ (الکافرون٢)، ولوستلو اودسورة تر اخره پوري يې بغير د "لا" نه ولوستل نوپه دي وخت کې الله تعالي ايت کريمه يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَقْرَبُوا الصَّلَاةَ وَأَنْتُمْ سُكَارَى. نازل کړو . نوددي ايت په بنا باندي دمونځ په وختونو کې نشه حرامه کړي شوه ، بعضي خلقو خو شراب بالکل پريخودل او دايي اووئيل چي په داسي څيزونو کې هيڅ خير نشته کوم چي مونږه مونځ کولو ته نه پريږدي اوبعضي خلقو به دمونځ دوختونو نه بغير په نورو وختونو کې څکل . چا به دماسختون دمونځ نه پس څکل اوترسحره پوري به ورنه نشه تلي وه ، اوچا به دسحر دمونځ نه پس څکل نودماسپخينه پوري به ورنه نشه تلي وه . يوه ورځ ددوئ دپاره "عتبان" داوبن سر پوخ کړو چي کله يې اوخوړلو نودومره شراب يې وڅکل چي هم دلته نشه شول اودنشي په حالت کې يې دخپل خان لويي ونيل شروع کړل او اشعار يې هم شروع کړل . سعد دلته يوه قصيده ولوستله په کومه کې چي دانصارو هجوه اوددوئ دقوم لويي وه. نوپه انصارو کې يو کس دخپل اوبن په چابك باندي دسعد په سر گذار اوکړو په کوم سره چي ددي سر مات شو سعد دنبي کريم صلي الله عليه وسلم په خدمت کې حاضر شو اوددغه انصاري نه يې ورته شکايت اوکړو نوپه دي وخت کې نبي کريم صلي الله عليه وسلم دا دعا اوکړه چي اي پروردگاره زمونږ دپاره دشرابو حکم په صاف طور سره بيان کړي نو په دي سره دسورة مائدي ايت نازل شو والله اعلم

## ١_ بَاب مَا جَاءَ فِي شَارِبِ الْخَمْرِ

۱۸٦۱_حَدَّثَنَا أَبُو زَكَرِيَّا يَحْيَى بْنُ دُرُسْتَ الْبَصْرِيُّ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "كُلُّ مُسْكِرٍ خَمْرٌ، وَكُلُّ مُسْكِرٍ حَرَامٌ، وَمَنْ شَرِبَ الْخَمْرَ فِي الدُّنْيَا فَمَاتَ وَهُوَ يُدْمِنُهَا لَمْ يَشْرَبْهَا فِي الآخِرَةِ". قَالَ: وَفِي الْبَاب عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، وَأَبِي سَعِيدٍ، وَعَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو، وَابْنِ عَبَّاسٍ، وَعُبَادَةَ، وَأَبِي مَالِكٍ الأَشْعَرِيِّ. قَالَ أَبُو عِيسَى: حَدِيثُ ابْنِ عُمَرَ حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ وَقَدْ رُوِيَ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَرَوَاهُ مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ مَوْقُوفًا فَلَمْ يَرْفَعْهُ. [1]

**ترجمه** دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانبلي دي هر نشه راوستونكي څيز شراب دي او هر نشه راوستونكي څيز حرام دي چاچي په دنيا كي شراب اوڅكل او مرګ وربانډي په داسي حال كي راشي چي دشرابو سره عادي وي نو په اخرت كي به ورته دڅكلو دپاره ورنكړي شي

امام ترمذي وايي دابن عمر حديث حسن صحيح دي دا حديث دنافع نه هم په يو څو سندونو مروي دي چي دابن عمر نه يي نقل كوي او ابن عمر يي دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه نقل كوي، مالك بن انس داحديث دنافع په واسطه دابن عمر نه موقوف نقل كړي دي او مرفوع يي نه دي بيان كړي، او په دي باب كي دابوهريره، ابوسعيد خدري، عبدالله بن عمرو بن العاص، ابن عباس، عباده بن الصامت او ابو مالك اشعري رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي

(الشطر الأخير) . سنن ابن ماجه_ الأشربة ٢ (٣٣٧٣) . (الشطر الأخير و٩ (٣٣٨٧) (الشطر الأول) . (تحفة الأشراف : ٧٥١٦) . و احمد في المسند (٢_ ١٦، ١٩، ٢٢، ٢٨، ٢٩، ٣١، ٩١، ٩٨)

***************

۱۸٦۲_حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا جَرِيرُ بْنُ عَبْدِ الْحَمِيدِ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ السَّائِبِ، عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُبَيْدِ بْنِ عُمَيْرٍ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: قَالَ عَبْدُ اللهِ بْنُ عُمَرَ، قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ شَرِبَ الْخَمْرَ لَمْ يَقْبَلِ اللهُ لَهُ صَلاَةً أَرْبَعِينَ صَبَاحًا فَإِنْ تَابَ تَابَ اللهُ عَلَيْهِ فَإِنْ عَادَ لَمْ يَقْبَلِ اللهُ لَهُ

---

[1] _ اخرجه البخاري في الصحيح_ الأشربة ١ (٥٥٧٥) (الشطر الأخير) صحيح مسلم_ الأشربة ٨ (٢٠٠٣) . سنن ابي داود_ الأشربة ٥ (٣٦٧٩) . سنن النسائي_ الأشربة ٢٢ (٥٥٨٥، ٥٥٨٨، ٥٥٨٩) (الشطر الأول) و ٣٥ (٥٦٧٣) (الشطر الأخير) و ٣٦ (٥٦٧٦، ٥٦٧٧)

صَلَاةً أَرْبَعِينَ صَبَاحًا فَإِنْ تَابَ تَابَ اللَّهُ عَلَيْهِ فَإِنْ عَادَ لَمْ يَقْبَلِ اللَّهُ لَهُ صَلَاةً أَرْبَعِينَ صَبَاحًا فَإِنْ تَابَ تَابَ اللَّهُ عَلَيْهِ فَإِنْ عَادَ الرَّابِعَةَ لَمْ يَقْبَلِ اللَّهُ لَهُ صَلَاةً أَرْبَعِينَ صَبَاحًا فَإِنْ تَابَ لَمْ يَتُبِ اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَقَاهُ مِنْ نَهْرِ الخَبَالِ ". قِيلَ: يَا أَبَا عَبْدِ الرَّحْمَنِ وَمَا نَهْرُ الخَبَالِ ؟. قَالَ: " نَهْرٌ مِنْ صَدِيدِ أَهْلِ النَّارِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ وَقَدْ رُوِيَ نَحْوُ هَذَا عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، وَابْنِ عَبَّاسٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. (1)

**ترجمه** دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي چاچي شراب اوڅکل الله تعالي دڅلويښتو ورځو پوري دهغه مونځ نه قبلوي او كه توبه اوباسي نو الله تعالي يي توبه قبلوي او كه دوباره بيا شراب اوڅکي نو الله تعالي به دڅلويښتو ورځو پوري دده مونځ نه قبلوي نو كه توبه اوباسي نو توبه يي قبلوي او كه ده بيا شراب اوڅکل نو الله تعالي دڅلويښتو ورځو پوري دده مونځ نه قبلوي او كه توبه اوباسي نو توبه يي قبلوي او كه په څلورم خل يي شراب اوڅکل نو الله تعالي دڅلويښتو ورځو پوري دده مونځ نه قبلوي او كه توبه اوباسي نو دده توبه هم نه قبلوي او د "خبال" نهر نه به په ده باندي اوڅکوي تپوس اوكړي شي اي ابو عبدالرحمن دخبال نهر نه څه مراد دي هغه اوونيل دا دجهنميانو دوينو زوو يو نهر دي

امام ترمذي وايي داحديث حسن دي دعبدالله بن عمر بن العاص او ابن عباس په واسطه هم دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه ددي هم معني روايت مروي دي

****************

## ٢ـ بَابُ مَا جَاءَ كُلُّ مُسْكِرٍ حَرَامٌ

## هر نشه راوستونكي څيز حرام دي

١٨٦٣ـ حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ مُوسَى الأَنْصَارِيُّ، حَدَّثَنَا مَعْنٌ، حَدَّثَنَا مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سُئِلَ عَنِ البِتْعِ فَقَالَ: " كُلُّ شَرَابٍ أَسْكَرَ فَهُوَ حَرَامٌ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (2)

---

1 ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ٧٣١٨)

2 ـ اخرجه البخاري في الصحيح ـ الوضوء ٧١ (٢٤٢)، والأشربة ٤ (٥٥٨٥) صحيح مسلم ـ الأشربة ٧ (٢٠٠١)، سنن ابي داود ـ الأشربة ٥ (٣٦٨٢)، سنن النسائي ـ الأشربة ٢٣ (٥٥٩٤) سنن ابن ماجه ـ الأشربة ٩ (٣٣٨٦)، (تحفة الأشراف: ١٧٧٦٣) والموطاء الأشربة ٤ (٩)، واحمد في المسند (٦ ـ ٣٨، ٩٧، ١٩٠، ٢٢٦)

**ترجمه** دام المؤمنين عائشه رضي الله عنها نه روايت دى دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه دشهد دنبيذباره كي تپوس اوكړي شو نوويي فرمانيل هر نشه راوستونكي څيز چي نشته پيداكوي حرام دي.
امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي

***************

١٨٦٤_حَدَّثَنَا عُبَيْدُ بْنُ أَسْبَاطِ بْنِ مُحَمَّدٍ الْقُرَشِيُّ الْكُوفِيُّ، وَأَبُو سَعِيدٍ الأَشَجُّ، قَالاَ: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ إِدْرِيسَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرٍو، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: " كُلُّ مُسْكِرٍ حَرَامٌ ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ عُمَرَ، وَعَلِيٍّ، وَابْنِ مَسْعُودٍ، وَأَنَسٍ، وَأَبِي سَعِيدٍ، وَأَبِي مُوسَى، وَالأَشَجِّ الْعَصَرِيِّ، وَدَيْلَمَ، وَمَيْمُونَةَ، وَابْنِ عَبَّاسٍ، وَقَيْسِ بْنِ سَعْدٍ، وَالنُّعْمَانِ بْنِ بَشِيرٍ، وَمُعَاوِيَةَ، وَوَائِلِ بْنِ حُجْرٍ، وَقُرَّةَ الْمُزَنِيِّ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ مُغَفَّلٍ، وَأُمِّ سَلَمَةَ، وَبُرَيْدَةَ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَعَائِشَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ وَقَدْ رُوِيَ عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَهُ وَكِلاَهُمَا صَحِيحٌ رَوَاهُ غَيْرُ وَاحِدٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرٍو، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَهُ، وَعَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. [1]

**ترجمه** دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما بيان دي فرماني چي دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه مي اوريدلي دي هر نشه راوستونكي څيز حرام دي
امام ترمذي وايي داحديث حسن دي دابوسلمه نه دابوهريره په واسطه هم دنبي كريم صلي الله عليه وسلم نه ددي هم معني روايت مروي دي، دا دواړه حديثونه صحيح دي. نورو راويانو هم په دي مضمون باندي دمحمد بن عمرو په سند عن ابي سلمة عن ابي هريرة عن النبي صلي الله عليه وسلم سره هم روايت نقل كړي دي او بعضي راويانو عن ابي سلمة عن ابي عمر عن النبي صلي الله عليه وسلم سند باندي دا حديث نقل كړي دي. او په دي باب كي دعمر، علي، ابن مسعود، انس، ابوسعيد خدري، ابوموسي اشج عصري، ديلم ميمونه، ابن عباس، قيس بن سعد، نعمان بن بشير، معاويه، وائل بن حجر، قره، مزني، عبدالله بن مغفل، ام سلمه، بريده، ابوهريره، او عائشه رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي

***************

[1] _ انظر حديث رقم ١٨٦١ (تحفة الأشراف ٨٥٨٢)

## ۳_ باب مَا جَاءَ مَا أَسْكَرَ كَثِيرُهُ فَقَلِيلُهُ حَرَامٌ

### د نشه راوستونکي څيز لږ او ډير دواړه حرام دي (چې په هر مقدار کې وي)

١٨٦٥_ حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ. حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيل بْنُ جَعْفَرٍ. ح وحَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حُجْرٍ. أَخْبَرَنَا إِسْمَاعِيل بْنُ جَعْفَرٍ. عَنْ دَاوُدَ بْنِ بَكْرِ بْنِ أَبِي الْفُرَاتِ، عَنِ ابْنِ الْمُنْكَدِرِ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: " مَا أَسْكَرَ كَثِيرُهُ فَقَلِيلُهُ حَرَامٌ ". قَالَ: وَفِي الْبَاب عَنْ سَعْدٍ، وَعَائِشَةَ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، وَابْنِ عُمَرَ، وَخَوَّاتِ بْنِ جُبَيْرٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ مِنْ حَدِيثِ جَابِرٍ. (١)

**ترجمه** دجابر بن عبدالله رضي الله عنهما نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دکوم څيز استعمال چې په زيات مقدار سره نشه پيدا کوي دهغي لږ هم حرام دي

امام ترمذي وايي دا حديث دجابر په روايت حسن غريب دي. او په دي باب کي دسعد. عائشه. عبدالله بن عمرو. ابن عمر. او خواط بن جبير رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي

***************

١٨٦٦_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ. حَدَّثَنَا عَبْدُ الْأَعْلَى بْنُ عَبْدِ الْأَعْلَى. عَنْ هِشَامِ بْنِ حَسَّانَ. عَنْ مَهْدِيِّ بْنِ مَيْمُونٍ. ح وحَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُعَاوِيَةَ الْجُمَحِيُّ. حَدَّثَنَا مَهْدِيُّ بْنُ مَيْمُونٍ الْمَعْنَى وَاحِدٌ. عَنْ أَبِي عُثْمَانَ الْأَنْصَارِيِّ، عَنِ الْقَاسِمِ بْنِ مُحَمَّدٍ، عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "كُلُّ مُسْكِرٍ حَرَامٌ مَا أَسْكَرَ الْفَرَقُ مِنْهُ فَمِلْءُ الْكَفِّ مِنْهُ حَرَامٌ". قَالَ أَبُو عِيسَى: قَالَ أَحَدُهُمَا فِي حَدِيثِهِ الْحَسْوَةُ مِنْهُ حَرَامٌ.

قَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ. وَقَدْ رَوَاهُ لَيْثُ بْنُ أَبِي سُلَيْمٍ، وَالرَّبِيعُ بْنُ صَبِيحٍ. عَنْ أَبِي عُثْمَانَ الْأَنْصَارِيِّ نَحْوَ رِوَايَةِ مَهْدِيِّ بْنِ مَيْمُونٍ. و ابو عثمان الانصاري اسمه عمرو بن سالم ويقال عمرو بن سالم ايضا. (٢)

---

١ _ سنن ابي داود_ الأشربة ٥ (٣٦٨١). سنن ابن ماجه_ الأشربة ١٠ (٣٣٩٣) (تحفة الأشراف ٣٠١٣) واحمد في المسند (٣ / ٣٤٣)

2 _ ابي داود_ الأشربة ٥ (٣٦٨٧). (تحفة الأشراف: ١٧٥٦٥). واحمد في المسند (٦ / ٧٢)

**ترجمه** دعائشه رضي الله عنها بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي هر نشه راوستونکي ځيز حرام دي چې نشه پيدا کوي دکوم ځيز يو فرق (شپاړس رطلونو) مقدار چې نشه پيدا کوي دهغې ديو موټي مقدار هم حرام دي، او په دوئ کې يو کس پخپل روايت کې ونيلي دي يعني ددي يو ګوټ هم حرام دي

امام ترمذي وايي داحديث حسن دي دا روايت ليث بن ابي سليم او ربيع بن صبيح دابو عثمان انصاري نه د مهدي بن ميمون دحديث هم معني روايت بيان کړي دي

*****************

## ٤_ باب مَا جَاءَ فِي نَبِيذِ الْجَرِّ

## په منګي کې د نبيذ جوړولو بيان

١٨٦٧_ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ عُلَيَّةَ، وَيَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، قَالَا: أَخْبَرَنَا سُلَيْمَانُ التَّيْمِيُّ، عَنْ طَاوُسٍ، أَنَّ رَجُلًا أَتَى ابْنَ عُمَرَ فَقَالَ: "نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ نَبِيذِ الْجَرِّ" فَقَالَ: نَعَمْ. فَقَالَ طَاوُسٌ: وَاللَّهِ إِنِّي سَمِعْتُهُ مِنْهُ. قَالَ: وَفِي الْبَابِ، عَنِ ابْنِ أَبِي أَوْفَى، وَأَبِي سَعِيدٍ، وَسُوَيْدٍ، وَعَائِشَةَ، وَابْنِ الزُّبَيْرِ، وَابْنِ عَبَّاسٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (١)

**ترجمه** دطاوس بيان دي چې يو کس ابن عمر رضي الله عنهما ته راغي او تپوس يې اوکړو ايا رسول الله صلي الله عليه وسلم دمنګي دنبيذ نه منع فرمائيلي ده؟ هغه اوونيل هو. طاوس واني په الله قسم چې ما دهغه نه دا خبره واوريدله.

امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي، او په دي باب کې دابن ابي اوفي، ابوسعيد خدري، سويد، عائشه، ابن زبير، او ابن عباس رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي

****************

## ٥_ باب مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ أَنْ يُنْبَذَ فِي الدُّبَّاءِ وَالحَنْتَمِ وَالنَّقِيرِ

## په دباء، نقير، حنتم کې د نبيذ جوړول مکروه دي

١٨٦٨_ حَدَّثَنَا أَبُو مُوسَى مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ الطَّيَالِسِيُّ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ عَمْرِو بْنِ مُرَّةَ، قَالَ: سَمِعْتُ زَاذَانَ يَقُولُ: سَأَلْتُ ابْنَ عُمَرَ عَمَّا نَهَى عَنْهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنَ

---

١_ صحيح مسلم_ الأشربة ٦ (١٩٩٧_ ٥٠). سنن النسائي_ الأشربة ٣٨ (٥٦١٧). (تحفة الأشراف: ٧٠٩٨). واحمد في المسند (٢/ ٢٩، ٣٥، ٤٧، ٥٦، ١٠١، ١٥٥)

الْأَوْعِيَةِ. أَخْبِرْنَاهُ بِلُغَتِكُمْ وَفَسِّرْهُ لَنَا بِلُغَتِنَا فَقَالَ: " نَهَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الحَنْتَمَةِ وَهِيَ الجَرَّةُ، وَنَهَى عَنِ الدُّبَّاءِ وَهِيَ القَرْعَةُ، وَنَهَى عَنِ النَّقِيرِ وَهُوَ أَصْلُ النَّخْلِ يُنْقَرُ نَقْرًا أَوْ يُنْسَجُ نَسْجًا، وَنَهَى عَنِ المُزَفَّتِ وَهِيَ المُقَيَّرُ، وَأَمَرَ أَنْ يُنْبَذَ فِي الأَسْقِيَةِ".

قَالَ: وَفِي البَابِ عَنْ عُمَرَ، وَعَلِيٍّ، وَابْنِ عَبَّاسٍ، وَأَبِي سَعِيدٍ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَعَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ يَعْمَرَ، وَسَمُرَةَ، وَأَنَسٍ، وَعَائِشَةَ، وَعِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ، وَعَائِذِ بْنِ عَمْرٍو، وَالحَكَمِ الغِفَارِيِّ، وَمَيْمُونَةَ قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.[1]

**ترجمه** د زاذان بيان دي فرمائي چي ما دابن عمر رضي الله عنهما نه دهغه لوښو باره کي تپوس اوکړو دکومو نه چي رسول الله صلي الله عليه وسلم منع فرمائيلي ده او ورته مي اووئيل دا راته پخپله ژبه کي بيان کړه او زمونږ په ژبه کي يي ددي تشريح اوکړه نو ابن عمر اوفرمائيل رسول الله د "حنتمة" نه منع فرمائيلي ده او دا منګي وي او د دباء نه يي هم منع فرمائيلي ده او دا کدو دي او دنقير نه يي منع فرمائيلي ده او دا په زمکه کي دکجوري خنبه تنه ده چي خلق پکي ژور والي پيدا کړي او لوښي ورنه جوړوي او دمزفت نه يي منع فرمائيلي ده او دا هغه لوښي دي چي څليښت ناك تيل ورباندي اچولي شوي دي او رسول الله حکم کړي دي چي نبيذ به په مشکونو کي جوړوئ.

امام ترمذي وايي : داحديث حسن صحيح دي او په دي باب کي دعمر، علي، ابن عباس، ابوسعيد خدري، ابوهريره، عبدالرحمن بن يعمر، سمره، انس، عائشه، عمران بن حصين، عائذ بن عمرو، حکم غفاري، او ميمونه رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي

******************

## ٦_ بَابُ مَا جَاءَ فِي الرُّخْصَةِ أَنْ يُنْبَذَ فِي الظُّرُوفِ

**په مذکوره لوښو کي د نبيذ جوړولو داجازت بيان**

١٨٦٩_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، وَالحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، وَمَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ. قَالُوا: حَدَّثَنَا أَبُو عَاصِمٍ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ عَلْقَمَةَ بْنِ مَرْثَدٍ، عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ بُرَيْدَةَ، عَنْ أَبِيهِ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى

---

[1] _ صحيح مسلم_ الأشربة ٦ (١٩٩٧_ ٥٤). سنن النسائي_ الأشربة ٣٧ (٥٦٣٨). (تحفة الأشراف: ٦٧١٦). و احمد في المسند (٢ .٥٦)

اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنِّي كُنْتُ نَهَيْتُكُمْ عَنِ الظُّرُوفِ، وَإِنَّ ظَرْفًا لَا يُحِلُّ شَيْئًا وَلَا يُحَرِّمُهُ، وَكُلُّ مُسْكِرٍ حَرَامٌ" قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (1)

**ترجمه** دبريده رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي ما تاسو ددي لوښو نه (كوم چي په مخكني باب كي تير شول) داستعمال نه منع كړي وې او په حقيقت كي لوښي نه كوم څيز لره حلالوي او نه يي حراموي بلكه هر نشه راوستونكي څيز حرام دي امام ترمذي وايي . داحديث حسن صحيح دي

*****************

١٨٧٠_حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ، حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ الْحَفَرِيُّ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ مَنْصُورٍ، عَنْ سَالِمِ بْنِ أَبِي الْجَعْدِ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ قَالَ: "نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الظُّرُوفِ" فَشَكَتْ إِلَيْهِ الْأَنْصَارُ، فَقَالُوا: لَيْسَ لَنَا وِعَاءٌ، قَالَ: فَلَا إِذَنْ، قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ، وَأَبِي سَعِيدٍ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (2)

**ترجمه** : دجابر بن عبدالله رضي الله عنهما بيان دي فرمائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم ددي لوښو داستعمال نه منع اوفرمائيله نو انصارو ورته شكايت اوكړو او وئيل يي چي زمونږ سره خو ددينه علاوه نور لوښي نشته نو رسول الله اوفرمائيل بيا خو زه تاسو نه منع كوم امام ترمذي وايي : په دي باب كي دابن مسعود، ابوسعيد خدري، ابوهريره، او عبدالله بن عمرو رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي.

*****************

## ٧_ بَابُ مَا جَاءَ فِي الِانْتِبَاذِ فِي السِّقَاءِ

### په مشكونو كي د نبيذ جوړولو بيان

١٨٧١_حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ الثَّقَفِيُّ، عَنْ يُونُسَ بْنِ عُبَيْدٍ، عَنِ الْحَسَنِ الْبَصْرِيِّ، عَنْ أُمِّهِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: "كُنَّا نَنْبِذُ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي سِقَاءٍ تُوكَأُ فِي

---

1 _ صحيح مسلم_ الأشربة ٦ (٩٧٧_ ٦٣) . و (انظر أيضا: الجنائز ٣٦ (٩٧٧_ ١٠٦) والأضاحي ٥ (٩٧٧ ٣٧) (تحفة الأشراف : ١٩٣٢)

2 _ اخرجه البخاري في الصحيح_ الأشربة ٨ (٥٥٩٣) . سنن ابي داود_ الأشربة ٧ (٣٦٩٩) . سنن النسائي_ الأشربة ٤٠ (٥٦٥٩) . (تحفة الأشراف : ٢٢٤٠)

أَعْلَاهُ لَهُ عَزْلَاءُ نَنْبِذُهُ غُدْوَةً وَيَشْرَبُهُ عِشَاءً وَنَنْبِذُهُ عِشَاءً وَيَشْرَبُهُ غُدْوَةً ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ جَابِرٍ. وَأَبِي سَعِيدٍ. وَابْنِ عَبَّاسٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ لَا نَعْرِفُهُ مِنْ حَدِيثِ يُونُسَ بْنِ عُبَيْدٍ مِنْ غَيْرِ هَذَا الْوَجْهِ. عَنْ عَائِشَةَ أَيْضًا. (1)

**ترجمه** دام المؤمنين عائشه رضي الله عنها بيان دي فرمائي چي مونږ به درسول الله صلي الله عليه وسلم دپاره په مشك كي نبيذ جوړول او دمشك پاخني خوله به مو بندوله او په مشك كي به لاندي يو سوري وو مونږ به په سحر كي په دي مشك كي نبيذ لمدول او رسول الله صلي الله عليه وسلم به ماښام څكل او چي ماښام به مو لمده كړل هغه به يي سحر څكل

امام ترمذي وايي داحديث غريب دي او دا مونږ ته د يونس بن عبيد په روايت صرف په همدي سند رارسيدلي دي او دعائشه رضي الله عنها نه داحديث په نورو سندونو هم مروي دي. او په دي باب كي دجابر، ابوسعيد خدري، او ابن عباس رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي

****************

## ٨_ بَابُ مَا جَاءَ فِي الْحُبُوبِ الَّتِي يُتَّخَذُ مِنْهَا الْخَمْرُ

### دهغه غلو دانو بيان دكومو نه چي شراب جوړيږي

١٨٧٢_ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوسُفَ، حَدَّثَنَا إِسْرَائِيلُ. حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُهَاجِرٍ. عَنْ عَامِرٍ الشَّعْبِيِّ، عَنِ النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيرٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " إِنَّ مِنَ الْحِنْطَةِ خَمْرًا وَمِنَ الشَّعِيرِ خَمْرًا وَمِنَ التَّمْرِ خَمْرًا وَمِنَ الزَّبِيبِ خَمْرًا وَمِنَ الْعَسَلِ خَمْرًا ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ. (2)

**ترجمه** دنعمان بن بشير رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چي شراب دغنمو، وربشو، كجورو، اوچو انګورو او شهدو نه جوړولي شي

امام ترمذي وايي داحديث غريب دي او په دي باب كي دابوهريره رضي الله عنه نه هم روايت وارد دي

****************

---

[1] _ صحيح مسلم _ الأشربة ٩ (٢٠٠٥)، سنن ابي داود _ الأشربة ١٠ (٣٧١١)، سنن ابن ماجه _ الأشربة ١٢ (٣٣٩٨)، (تحفة الأشراف: ١٧٨٣٦)

[2] _ سنن ابي داود _ الأشربة ٣ (٣٦٧٦)، سنن ابن ماجه _ الأشربة ٥ (٣٣٧٩)، (تحفة الأشراف: ١١٦٢٦)

١٨٧٣_حَدَّثَنَا الحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ الخَلَّالُ. حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ آدَمَ. عَنْ إِسْرَائِيلَ نَحْوَهُ. وَرَوَى أَبُو حَيَّانَ التَّيْمِيُّ هَذَا الحَدِيثَ. عَنِ الشَّعْبِيِّ. عَنِ ابْنِ عُمَرَ. عَنْ عُمَرَ قَالَ: " إِنَّ مِنَ الحِنْطَةِ خَمْرًا " فَذَكَرَ هَذَا الحَدِيثَ. (1)

**ترجمه** عبدالله بن عمر رضي الله عنه دعمر رضي الله عنه نه روايت نقل كوي چي عمر فاروق فرمائيلي دي يقينا شراب دغنمو نه هم جوړولي شي

****************

١٨٧٤_حَدَّثَنَا بِذَلِكَ أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ إِدْرِيسَ. عَنْ أَبِي حَيَّانَ التَّيْمِيِّ. عَنِ الشَّعْبِيِّ. عَنِ ابْنِ عُمَرَ. عَنْ عُمَرَ بْنِ الخَطَّابِ. إِنَّ مِنَ الحِنْطَةِ خَمْرًا بِهَذَا وَهَذَا أَصَحُّ مِنْ حَدِيثِ إِبْرَاهِيمَ بْنِ مُهَاجِرٍ. وقَالَ عَلِيُّ بْنُ المَدِينِيِّ. قَالَ يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ لَمْ يَكُنْ إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُهَاجِرٍ بِالقَوِيِّ الحَدِيثِ وَقَدْ رُوِيَ مِنْ غَيْرِ وَجْهٍ أَيْضًا عَنِ النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيرٍ. (2)

**ترجمه** عبدالله بن عمر رضي الله عنه دعمر رضي الله عنه نه روايت نقل كوي چي عمر فاروق فرمائيلي دي يقينا شراب دغنمو نه هم جوړولي شي

امام ترمذي وايي: او دا حديث دابراهيم بن مهاجر دحديث نه زيات صحيح دي. علي بن مديني وائي ديحيىٰ بن سعيد قول دي چي ابراهيم بن مهاجر قوي راوي نه دي او دا حديث ددي سند نه علاوه په نورو سندونو هم دنعمان بن بشير نه مروي دي

****************

١٨٧٥_حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدٍ. أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ المُبَارَكِ. حَدَّثَنَا الأَوْزَاعِيُّ. وَعِكْرِمَةُ بْنُ عَمَّارٍ. قَالَا: حَدَّثَنَا أَبُو كَثِيرٍ السُّحَيْمِيُّ. قَالَ: سَمِعْتُ أَبَا هُرَيْرَةَ. يَقُولُ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ " الخَمْرُ مِنْ هَاتَيْنِ الشَّجَرَتَيْنِ: النَّخْلَةُ وَالعِنَبَةُ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ

[1] _ اخرجه انبخاري في الصحيح في تفسير سورة المائدة ١٠ (٤٦١٩) والأشربة ٢ (٥٥٨١) و ٥ (٥٥٨٨) صحيح مسلم_ التفسير ٦ (٣٠٣٢) . سنن ابي داود_ الأشربة ١ (٣٦٦٩) سنن النسائي_ الأشربة ٢٠ (٥٥٨١) (تحفة الأشراف: ١٠٥٣٨)

[2] _ اخرجه البخاري في الصحيح_ تفسير سورة المائدة ١٠ (٤٦١٩) . والأشربة ٢ (٥٥٨١) و ٥ (٥٥٨٨) . صحيح مسلم التفسير ٦ (٣٠٣٢) سنن ابي داود_ الأشربة ١ (٣٦٦٩) سنن النسائي_ الأشربة ٢٠ (٥٥٨١) . (تحفة الأشراف ١٠٥٣٨)

**صَحِيحٌ. وَأَبُو كَثِيرٍ السُّحَيْمِيُّ هُوَ الْغُبَرِيُّ وَاسْمُهُ يَزِيدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ غُفَيْلَةَ وَرَوَى شُعْبَةُ، عَنْ عِكْرِمَةَ بْنِ عَمَّارٍ هَذَا الْحَدِيثَ.** [1]

**ترجمه** دابوهريره رضي الله عنه بيان دي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي چي شراب ددي دوه بوټو يعني کجورو او انګورو نه جوړيږي

امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي، شعبه د عکرمه بن عمار نه هم دا حديث نقل کړي دي

***************

## ٩_ بَاب مَا جَاءَ فِي خَلِيطِ الْبُسْرِ وَالتَّمْرِ

### د نيم پوخته او اوچو کډو وډو کجورو نه د نبيذ (شربت) جوړولو بيان

**١٨٧٦_حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ بْنُ سَعْدٍ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ أَبِي رَبَاحٍ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "نَهَى أَنْ يُنْبَذَ الْبُسْرُ وَالرُّطَبُ جَمِيعًا". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.** [2]

**ترجمه** دجابربن عبدالله رضي الله عنهما بيان دي فرمائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم داوچو او نيم پوخته کجورو نه چي ګډي وډي وي دنبيذ جوړولو نه منع فرمائيلي ده

امام ترمذي وايي: داحديث حسن صحيح دي.

***************

**١٨٧٧_حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ وَكِيعٍ، حَدَّثَنَا جَرِيرٌ، عَنْ سُلَيْمَانَ التَّيْمِيِّ، عَنْ أَبِي نَضْرَةَ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "نَهَى عَنِ الْبُسْرِ وَالتَّمْرِ أَنْ يُخْلَطَ بَيْنَهُمَا، وَنَهَى عَنِ الزَّبِيبِ وَالتَّمْرِ أَنْ يُخْلَطَ بَيْنَهُمَا وَنَهَى عَنِ الْجِرَارِ أَنْ يُنْبَذَ فِيهَا". قَالَ: وَفِي الْبَاب عَنْ جَابِرٍ، وَأَنَسٍ، وَأَبِي**

---

[1] _ صحيح مسلم_ الأشربة ٢ (١٩٨٥) . سنن ابي داود_ الأشربة ٢ (٣٦٧٨) . سنن النسائي الأشربة ١٩ (٥٥٧٥) . سنن ابن ماجه_ الأشربة ٥ (٣٣٧٨) . (تحفة الأشراف : ١٣٨٤١) . واحمد في المسند (٢_ ٢٧٩، ٤٠٨، ٤٠٩، ٤٩٦، ٥١٨، ٥٢٦) . سنن الدارمي_ الأشربة ٤ (٢١٤١)

[2] _ اخرجه البخاري في الصحيح_ الأشربة (٥٦٠١) . صحيح مسلم_ الأشربة ٥ (١٩٨٦) . سنن ابي داود_ الأشربة ٨ (٣٧٠٣) . سنن النسائي_ الأشربة ٨ (٥٥٦٢) . سنن ابن ماجه_ الأشربة ١١ (٣٣٩٥) . (تحفة الأشراف : ٢٤٧٨) . واحمد في المسند (٣_ ٢٩٤، ٣٠٠، ٣٠٢، ٣١٧، ٣٦٣، ٣٦٩)

قَتَادَةَ، وَابْنِ عَبَّاسٍ، وَأُمِّ سَلَمَةَ، وَمَعْبَدِ بْنِ كَعْبٍ، عَنْ أُمِّهِ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [1]

**ترجمه** دابوسعيد خدري رضي الله عنه نه مروي دي رسول الله صلي الله عليه وسلم داوچو د نيم پوخته كجورو نه چي گډي وډي وي دنبيذ جوړولو نه منع فرمائيلي دي

امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي او په دي باب كي دجابر، انس، ابوقتاده، ابن عباس، ام سلمه، او معبد بن كعب عن امه رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي

***************

## ١٠_ بَابُ مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ الشُّرْبِ فِي آنِيَةِ الذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ

**دسرو او سپينو زرو په لوښو كي دڅكلو دكراهت بيان**

١٨٧٨_حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ. حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ. حَدَّثَنَا شُعْبَةُ. عَنِ الْحَكَمِ. قَالَ: سَمِعْتُ ابْنَ أَبِي لَيْلَى يُحَدِّثُ. أَنَّ حُذَيْفَةَ اسْتَسْقَى فَأَتَاهُ إِنْسَانٌ بِإِنَاءٍ مِنْ فِضَّةٍ فَرَمَاهُ بِهِ، وَقَالَ: إِنِّي كُنْتُ قَدْ نَهَيْتُهُ فَأَبَى أَنْ يَنْتَهِيَ إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "نَهَى عَنِ الشُّرْبِ فِي آنِيَةِ الْفِضَّةِ وَالذَّهَبِ وَلُبْسِ الْحَرِيرِ وَالدِّيبَاجِ، وَقَالَ هِيَ لَهُمْ فِي الدُّنْيَا وَلَكُمْ فِي الآخِرَةِ". قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ وَالْبَرَاءِ، وَعَائِشَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [2]

**ترجمه** : دابن ابي ليلي بيان دي چي حذيفه رضي الله عنه ديو كس نه اوبه اوغوښتلي نو هغه ورته دسپينو زرو په لوښي كي وركړي حذيفه اوبه دهغه په مخ ورووېشتلي او ورته يي اوونيل ما خو دي منع كړي وو خو دي بيا هم ددينه منع نشو، يقينا رسول الله صلي الله عليه وسلم دسرو زرو او سپينوزرو لوښي كي دڅكلو نه منع فرمائيلي ده او دنرواو غټو ريښمو اغوستلو نه يي منع فرمائيلي ده دا په دنيا كي دكافرانو دپاره دي او په اخرت كي ستاسو دپاره دي

امام ترمذي وايي : داحديث حسن صحيح دي او په دي باب كي دام سلمه، براء، او عائشه رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي

---

[1] _ صحيح مسلم_ الأشربة ٥ (١٩٨٤). سنن النسائي_ الأشربة ١٦ (٥٥٤١). (تحفة الأشراف: ٤٣٥١). واحمد في المسند (٣_ ٣. ٩. ٢٩. ٦٣. ٧١. ٩٠) سنن الدارمي_ الأشربة ١٣ (١٢٥٧)

[2] _ اخرجه البخاري في الصحيح_ الأطعمة ٢٩ (٥٤٢٦). والأشربة ٢٧ (٥٦٣٢). و ٢٨ (٥٦٣٣). واللباس ٢٥ (٥٨٣١). و ٢٧ (٥٨٣٧). صحيح مسلم_ اللباس ١ (٢٠٦٧). سنن ابي داود_ الأشربة ١٧ (٣٧٢٣). سنن النسائي_ الزينة ٣٣ (٥٣٠٣). سنن ابن ماجه_ الأشربة ١٧ (٣٤١٤). (تحفة الأشراف: ٣٣٧٣). واحمد في المسند (٥_ ٣٨٥. ٣٩٠. ٣٩٦. ٣٩٨. ٤٠٠. ٤٠٨)

**تشريح**: په دي سلسله کي په احاديثو سخت وعيد راغلی دی بخاري او مسلم هم په کتاب اللباس کي په دي مسئله لاندیني حدیث نقل کړی دی

عن أمِّ سلمة رضي الله عنها: أنَّ رسول الله ﷺ قَالَ: (( الَّذِي يَشْرَبُ فِي آنِيَةِ الفِضَّةِ. إِنَّمَا يُجَرْجِرُ فِي بَطْنِهِ نَارَ جَهَنَّمَ )) متفقٌ عَلَيْهِ.

وفي رواية لمسلم: (( إِنَّ الَّذِي يَأْكُلُ أَوْ يَشْرَبُ فِي آنِيَةِ الفِضَّةِ وَالذَّهَبِ )). وفي رواية لَهُ: (( مَنْ شَرِبَ فِي إناءٍ مِنْ ذَهَبٍ أَوْ فِضَّةٍ. فَإِنَّمَا يُجَرْجِرُ فِي بَطْنِهِ نَاراً مِنْ جَهَنَّم )).

دام سلمه رضي الله عنها نه روایت دی چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي.
څوك چي دسپينو زرو په لوښي کي اوبه څکي، هغه په خيټه کې د دوزخ اور اچوي
اودمسلم شريف يو روايت دی څوك چي دسرو زرو يا سپينو زرو په لوښو کې خوري.
ياڅکي (هغه په خيټه کي ددوزخ اور اچوي) او دمسلم شريف په يو روايت کې دا الفاظ دي
څوك چي دسرو زرو يا سپينو زرو په لوښي اوبه څکي هغه په خيټه کې د دوزخ اور اچوي

أخرجه: البخاري ٧/١٩٣ ( ٥٨٣٢ ) كتاب اللباس باب لبس الحرير وافتراشه للرجال. وكتاب الاشربه باب الشرب في انية الذهب . ومسلم ٦/١٣٦ ( ٢٠٦٧ ) ( ٤ ) كتاب اللباس باب تحريم استعمال اناء الذهب والفضة وابوداود والترمذي وابن حبان.

دا وعيد په حرمت دلالت کوي دسرو او سپينو دلوښو استعمال دمشرکينو او متکبرينو علامه ده او الله لره خفه کونکی څيز دی ددي استعمال دفقهاؤ په نزد په کبيره ګناهونو کې شامل دی . علامه طيبي دشافعي او دنووي قول نقل کړی دی که چري دسرو او سپينو واړه واړه ميښونه وي او دضرورت په وجه په کوم لوښي کې استعمال شي نوجائز به وي ليکن که زيات وي يالوي وي نو حرام به وي ليکن په دي کې هم داحنافو اختلاف دی هغوئ وائي ددي استعمال به په هغه وخت کې جائز وي کله چي په دي باندي خوله نشي ايخودلی

****************

## ١١_ باب مَا جَاءَ فِي النَّهْيِ عَنِ الشُّرْبِ. قَائِمًا

**په ولاړه داوبو څکلو دمما نعت بيان**

۱۸۷۹_حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ. حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عَدِيٍّ. عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي عَرُوبَةَ. عَنْ قَتَادَةَ. عَنْ أَنَسٍ. أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "نَهَى أَنْ يَشْرَبَ الرَّجُلُ قَائِمًا". فَقِيلَ: الأَكْلُ. قَالَ: "ذَاكَ أَشَدُّ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (۱)

**ترجمه** دانس رضي الله عنه نه روایت دی چي رسول الله صلي الله علیه وسلم په ولاړه اوبو څکلو نه منع کړی ده راوي قتاده وائي مونږ دانس رضي الله عنه نه تپوس اوکړو په ولاړه خوراك څنګه دی ؟ هغه اووئیل دا خو ډیر بد دی

امام ترمذي وايي داحدیث حسن صحیح دی.

**لغات**: اشد داد اسم تفضیل صیغه ده په معني د سخت سره.

**تشریح**: دقاضي عیاض قول دی اګر چي په ناسته اوبه څکل سنت دي واجب نه دي لیکن په دي روایت کي ددي په خلاف تنبیه ده چي دا کراهت تنزیهي دی تحریمي نه دی ورنه دصحابه کرامو اورسول الله نه هم کله کله په ولاړه داوبو څکلو جواز راغلی دی لکه چي مخکي تیر شول.

***************

۱۸۸۰_حَدَّثَنَا أَبُو السَّائِبِ سَلْمُ بْنُ جُنَادَةَ الْكُوفِيُّ. حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ غِيَاثٍ. عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ. عَنْ نَافِعٍ. عَنِ ابْنِ عُمَرَ. قَالَ: "كُنَّا نَأْكُلُ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَنَحْنُ نَمْشِي. وَنَشْرَبُ وَنَحْنُ قِيَامٌ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ مِنْ حَدِيثِ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ. عَنْ نَافِعٍ. عَنِ ابْنِ عُمَرَ. وَرَوَى عِمْرَانُ بْنُ حُدَيْرٍ هَذَا الْحَدِيثَ. عَنْ أَبِي الْبَزَرِيِّ. عَنِ ابْنِ عُمَرَ. وَأَبُو الْبَزَرِيِّ اسْمُهُ يَزِيدُ بْنُ عُطَارِدٍ. (۲)

**ترجمه** دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما بیان دي فرمائي چي مونږ به درسول الله صلي الله علیه وسلم په زمانه کي په روانه خوراك کولو او په ولاړه به مو څکل کول

امام ترمذي وایي داحدیث دعبیدالله بن عمر عن نافع عن ابن عمر په سند حسن صحیح غریب دي، عمران بن حدیر داحدیث دابو البزري په واسطه دابن عمر رضي الله عنهما نه نقل کړي دي، او دابو البزري نوم یزید بن عطارد دي

---

1 _ صحیح مسلم _ الأشربة ۱۴ (۲۰۲۴) . سنن ابي داود_ الأشربة ۱۳ (۳۷۱۷) سنن ابن ماجه_ الأشربة ۲۱ (۳۴۲۴) (تحفة الأشراف : ۱۱۸۰) . واحمد في المسند (۳_ ۱۱۸. ۱۸۲. ۲۷۷) سنن الدارمي . الأشربة ۲۴ (۲۱۷۳)

2 _ سنن ابن ماجه_ الأطعمة ۲۵ (۳۳۰۱) . (تحفة الأشراف ۸۲۱)

****************

١٨٨١_حَدَّثَنَا حُمَيْدُ بْنُ مَسْعَدَةَ، حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ الحَارِثِ، عَنْ سَعِيدٍ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَبِي مُسْلِمٍ الجَذْمِيِّ، عَنِ الجَارُودِ بْنِ المُعَلَّى، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "نَهَى عَنِ الشُّرْبِ قَائِمًا"، قَالَ: وَفِي البَابِ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ، وَأَنَسٍ، قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ حَسَنٌ وَهَكَذَا رَوَى غَيْرُ وَاحِدٍ هَذَا الحَدِيثَ عَنْ سَعِيدٍ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَبِي مُسْلِمٍ، عَنِ الجَارُودِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَرُوِيَ عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الشِّخِّيرِ، عَنْ أَبِي مُسْلِمٍ، عَنِ الجَارُودِ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "ضَالَّةُ المُسْلِمِ حَرَقُ النَّارِ" وَالجَارُودُ هُوَ ابْنُ المُعَلَّى العَبْدِيُّ صَاحِبُ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَيُقَالُ الجَارُودُ بْنُ العَلَاءِ أَيْضًا، وَالصَّحِيحُ ابْنُ المُعَلَّى. [1]

**ترجمه** : جارود بن معلي رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم په ولاړه دڅکلو نه منع فرمائيلي ده.

امام ترمذي وايي : داحديث حسن غريب دي دارنګي نورو راويانو دا حديث عن سعيد عن قتاده عن ابي مسلم عن الجارود عن النبي صلي الله علبه وسلم په سند نقل کړي دي، او دا حديث عن قتاده عن يزيد بن عبدالله ابن الشخير عن ابي مسلم عن الجارود ان النبي صلي الله عليه وسلم په سند سره نقل کړي شوي دي چي رسول الله فرمائيلي دي ديومسلمان نه پريوتلي څيز (دقبضي په نيت) راپورته کول په جهنم کي دسوزيدو سبب دي، په دي باب کي دابو سعيد خدري، ابوهريره او انس رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي.

****************

## ١٢_ بَاب مَا جَاءَ فِي الرُّخْصَةِ فِي الشُّرْبِ قَائِمًا

### دپه ولاړه داوبو څکلو داجازت بيان

[1] _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ٣١٤٨)

١٨٨٢_حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ. حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ. حَدَّثَنَا عَاصِمٌ الأَحْوَلُ. وَمُغِيرَةُ. عَنِ الشَّعْبِيِّ. عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "شَرِبَ مِنْ زَمْزَمَ وَهُوَ قَائِمٌ". قَالَ: وَفِي البَابِ عَنْ عَلِيٍّ، وَسَعْدٍ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، وَعَائِشَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (١)

**ترجمه** دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه روايت دي فرماني چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم په ولاړه د زم زم اوبه اوڅكلي

امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي او په دي باب كي دعلي. سعد. عبدالله بن عمرو. او عائشه رضي الله عنهم نه هم احاديث وارد دي

*****************

١٨٨٣_حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ، عَنْ حُسَيْنٍ الْمُعَلِّمِ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، قَالَ: رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "يَشْرَبُ قَائِمًا وَقَاعِدًا". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (٢)

**ترجمه** : عمرو بن شعيب رضي الله عنه دخپل پلار نه او هغه يی دنيكه نه روايت كوي، چي ما رسول الله صلي الله عليه وسلم ليدلی دی كله به يی په ولاړه اوبه څكلی او كله په ناستی

امام ترمذي وايي دا حديث حسن صحيح دي

**لغات**: دقيام معني ودريدل دي قام يقوم قوما وقومة وقياما وقامة ودريدل . قاعدا قعد دنصر نه قعودا ومقعدا معني كيناستل.

**تشريح**: لكه چي مخكي تير شول چي په ولاړه څكل خو د ضرورت په بنا دي يا په بعضي بعضي وخت كي ليكن دصحابه كرامو عام عادت دا وو چي په ناسته به يي څكلي، دعلامه نووي په قول په ولاړه اوبه څكل جائز دي او په ناسته افضل دي

**د عمرو بن شعيب رضي الله عنه حالات**

نوم عمرو شعيب بن محمد بن عبدالله بن عمرو بن العاص هغه عموما دخپل پلار او سعيد بن المسيب نه روايتونه اوريدلي دي او دی دحديث په اسناد كي اكثر موندلی شي "ابيه"

---

[1] _ اخرجه البخاري في الصحيح _ الحج ٧٦ (١٦٣٧) والأشربة ٢ (٥٦١٧) صحيح مسلم_ الأشربة ١٥ (٢٠٢٧) . سنن النسائي_ الحج ٦٥ (٢٩٦٧) . و ٦٦ (٢٩٦٨) . سنن ابن ماجه_ الأشربة ٢١ (٣٤٢٢) . والمؤلف في الشمائل ٣١ (١٩٧، ١٩٨، ١٩٩) . (تحفة الأشراف : ٥٧٦٧) . واحمد في المسند (١_ ٢١٤، ٢٢٠، ٣٤٢)

[2] _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ٨٦٨٩)

کې ضمير پلار ته راجع دی او ددې مصداق شعيب دی 'جده'. په دې ضمير کې دوه احتماله دي اول ددې مصداق محمد دی ، دويم احتمال دادی چې دجد مرجع ابيه دی او دجد مصداق عبدالله بن عمرو دی کوم چې دشعيب نيکه دی مطلب دا شو چې شعيب دخپل نيکه عبدالله نه روايت کوي ددې احتمالاتو په وجه په سند کې اختلاف راغی پاتې شوه دا خبره چې دا سند قابل داحتجاج دی يا نه دی نو صحيح رائې داده چې دا سند قابل داحتجاج دی کم از کم دحسن درجې دی اصحاب سنن او امام احمد وغيره دا سند قبول کړی دی .ميزان الاعتدال. تدريب الراوي)

****************

## ۱۳_ بَاب مَا جَاءَ فِي التَّنَفُّسِ فِي الإِنَاءِ

### داوبو څکلو وخت کې په لوښي کې دساه اخستلو بيان

**۱۸۸٤_حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، وَيُوسُفُ بْنُ حَمَّادٍ، قَالَا: حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ بْنُ سَعِيدٍ، عَنْ أَبِي عِصَامٍ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ " يَتَنَفَّسُ فِي الإِنَاءِ ثَلَاثًا وَيَقُولُ: هُوَ أَمْرَأُ وَأَرْوَى ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ، وَرَوَاهُ هِشَامٌ الدَّسْتُوَائِيُّ، عَنْ أَبِي عِصَامٍ، عَنْ أَنَسٍ، وَرَوَى عَزْرَةُ بْنُ ثَابِتٍ، عَنْ ثُمَامَةَ، عَنْ أَنَسٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ " كَانَ يَتَنَفَّسُ فِي الإِنَاءِ ثَلَاثًا ".**[1]

**ترجمه** د انس بن مالك رضي الله عنه نه مروي دي فرمائي چې رسول الله صلي الله عليه وسلم به دلوښي نه په درې ساګانو کې اوبه څکلې او فرمائيل به يې (داوبو څکلو دا طريقه) ډيره مزيداره او سيراب کونکې ده.

امام ترمذي وايي داحديث حسن غريب دي، او دا حديث هشام دستوائي هم دابوعصام په واسطه دانس رضي الله عنه نه نقل کړي دي، اوعذره بن صامت د ثمامه نه او ثمامه دانس رضي الله عنه نه په بل سند نقل کړي دي چې نبي کريم صلي الله عليه وسلم به دلوښي نه په درې ساګانو کې اوبه څکلې

****************

[1] _ صحيح مسلم_ الأشربة ١٦ (٢٠٢٨_ ١٢٣) . سنن ابی داود_ الأشربة ١٩ (٢٠٣٢) (تحفة الأشراف : ١٤٢٢) واحمد في المسند (٣_ ١١٩، ١٨٥، ٢١١)

حَدَّثَنَا بِذَلِكَ مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ، حَدَّثَنَا عَزْرَةُ بْنُ ثَابِتٍ الأَنْصَارِيُّ، عَنْ ثُمَامَةَ بْنِ أَنَسٍ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "كَانَ يَتَنَفَّسُ فِي الإِنَاءِ ثَلاَثًا". قَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (1)

**ترجمه** د انس بن مالك رضي الله عنه نه مروي دي فرمائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم به دلوښي نه په دري ساګانو کي اوبه څکلي

امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي

***************

١٨٨٥_حَدَّثَنَا أَبُو كُرَيْبٍ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ سِنَانٍ الْجَزَرِيِّ، عَنِ ابْنٍ لِعَطَاءِ بْنِ أَبِي رَبَاحٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لاَ تَشْرَبُوا وَاحِدًا كَشُرْبِ الْبَعِيرِ، وَلَكِنِ اشْرَبُوا مَثْنَى وَثُلاَثَ وَسَمُّوا إِذَا أَنْتُمْ شَرِبْتُمْ وَاحْمَدُوا إِذَا أَنْتُمْ رَفَعْتُمْ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ، وَيَزِيدُ بْنُ سِنَانٍ الْجَزَرِيُّ هُوَ أَبُو فَرْوَةَ الرُّهَاوِيُّ. (2)

**ترجمه** : دابن عباس رضي الله عنه نه روايت دى چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي ، داوښ په شان په يوه ساه اوبه مه څکئ ، په دوه يا درى ساه يئ څکئ، اوبه شروع کي بسم الله وايئ، اوبه اخر کي الحمدلله وايئ

امام ترمذي وايي : داحديث غريب دي او يزيد بن سنان جزري په ابو فروه الرهاوي باندي مشهور دي

**لغات**: رفعتم:رفع رفعا پورته کول په مزيدو کي دباب افعال او افتعال نه مستعمل دي

**تشريح**: "داوښ پشان په يوه ساه مه څکئ" مطلب دادى چي کم ازکم اوبه په دوه ساګانو کي څکئ ددي دپاره چي داوښ سره مشابه نه شئ ليکن په دري ساګانو څکل بهتر دي. کله چي څکل شروع کوئ نو بسم الله وائي دا قسم مضمون دابوهريره رضي الله عنه دروايت نه هم معلوميږي فرمائي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم مي اوليدو چي په دري ساګانو يي اوبه اوڅکلي. په شروع کي بسم الله او په اخر کي الحمدلله وئيل پکار دي

امام غزالي وائي چي داولي ساه نه پس الحمدلله او دويمي ساه نه پس رب العالمين اضافه

---

1 _ اخرجه البخاري في الصحيح_ الأشربة ٢٦ (٥٦٣١) صحيح مسلم_ الأشربة ١٦ (٢٠٢٨ _ ١٢٢) سنن ابن ماجه الأشربة ١٨ (٣٤١٦) (تحفة الأشراف : ٤٩٨) . واحمد في المسند (٣_ ١١٩)

2 _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف : ٥٩٤١)

كړئ او د دریمي ساه نه پس الرحمن الرحيم وائي
په بعضي نورو احاديثو كي، كوم چي مونږ په لاندينو كرښو كي ذكر كړي دي، په لوښي كي د ساه اخستلو جواز بيان شوی دي په دواړو كي د تطبيق صورت دادي چي د ممانعت د احاديثو مطلب په لوښي دننه ساه اخستل دي او د جواز د احاديثو مطلب دادي چي د لوښي نه بهر ساه اخستل پكار دي

عن أنس ﷺ: أنّ رسول الله ﷺ كَانَ يَتَنَفَّسُ فِي الشَّرابِ ثَلاثاً. متفق عَلَيْهِ.
انس رضي الله عنه نه روايت دی چي رسول الله صلي الله عليه وسلم به په اوبو څكلو كي دري خله ساه اخستله، يعني دری خله به يې دلوښي نه ، بهر ساه اخسته
أخرجه: البخاري كتاب الاشربه باب الشرب بنفث او ثلاثه. ومسلم كتاب الاشربه باب كراهية التنفس في الاناء. واحمد والترمذي وابن ماجه وابن حبان وابن ابي شيه والبيهقي.
په دري پيري ساه اخستلو كي يو بل روايت هم راغلی دی چي ددي په سبب سړی سيراب كيږي او تنده يي ماتيږي اوبدن ته صحت هم وركوي او دمعدي دپاره هم اساني جوړيږي په دي باره كي علماء وائي په اول ځل لږي او په دويم ځل لګي زياتي او په دريم ځل ښي زيات څكل پكار دي

عن أَبِي قَتَادَة ﷺ: أنَّ النبيَّ ﷺ نَهَى أَنْ يُتَنَفَّسَ فِي الإِناءِ. متفق عَلَيْهِ.
دابوقتاده رضي الله عنه نه روايت دی چي رسول الله صلي الله عليه وسلم په لوښي كي ساه اخستونه منع كړی ده، يعني چي لوښی دخولی نه لری نه كړی پكښی ساه واخلي
په يو بل روايت كي راغلي دي چي رسول الله دڅكلو په څيزونو كي دساه اخستلو نه منع فرمائيلي ده. مطلب دادی چي په لوښو كي دننه دساه اخستلو نه يي منع فرمائيلي ده ددي دپاره چي په لوښي كي لاړي وغيره پرينوځي او بل څوك ورنه كركه اونكړي كله كله په خوله كي بدبويي پيدا كيږي او دساه اخستلو په وجه اوبه بدبويه كيږي اوهمدارنګي په لوښي كي ساه اخستل دځاروو طريقه هم ده
بعضي طبيبانو ليكلي دي په لوښي كي دساه اخستلو په وجه كله كله دساه نالئ ته اوبه لاړي شي نو دلوي تكليف باعث ګرځي اوهمدارنګي دجراسيمو د داخليدو خطره هم ده چي خيټي ته به لاړ شي او په لوښي كي دساه اخستلو يو نقصان دادی كيدی شي چي په پوزي كي اوبه لاړي شي او بيا ددماغو پردو ته ورسيږي او دپرسوب سبب اوګرځي

****************

## ١٤ـ بَاب مَا ذُكِرَ مِنَ الشُّرْبِ بِنَفَسَيْنِ

—

## په دوه ساګانو کي داوبو څکلو بيان

١٨٨٦ـ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ خَشْرَمٍ. حَدَّثَنَا عِيسَى بْنُ يُونُسَ، عَنْ رِشْدِينَ بْنِ كُرَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ " إِذَا شَرِبَ تَنَفَّسَ مَرَّتَيْنِ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ رِشْدِينَ بْنِ كُرَيْبٍ. قَالَ: وَسَأَلْتُ أَبَا مُحَمَّدٍ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عَبْدِ الرَّحْمَنِ عَنْ رِشْدِينَ بْنِ كُرَيْبٍ، قُلْتُ: هُوَ أَقْوَى أَمْ مُحَمَّدُ بْنُ كُرَيْبٍ؟. فَقَالَ: مَا أَقْرَبَهُمَا وَرِشْدِينُ بْنُ كُرَيْبٍ أَرْجَحُهُمَا عِنْدِي. قَالَ: وَسَأَلْتُ مُحَمَّدَ بْنَ إِسْمَاعِيلَ عَنْ هَذَا. فَقَالَ: مُحَمَّدُ بْنُ كُرَيْبٍ أَرْجَحُ مِنْ رِشْدِينَ بْنِ كُرَيْبٍ وَالْقَوْلُ عِنْدِي مَا قَالَ أَبُو مُحَمَّدٍ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ: رِشْدِينُ بْنُ كُرَيْبٍ أَرْجَحُ وَأَكْبَرُ. وَقَدْ أَدْرَكَ ابْنَ عَبَّاسٍ وَرَآهُ وَهُمَا أَخَوَانِ وَعِنْدَهُمَا مَنَاكِيرُ. (١)

**ترجمه** دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه مروي دي فرمائي چي نبي كريم صلي الله عليه وسلم به په دوه ساګانو کي اوبه څکلي.

امام ترمذي وايي : داحديث غريب دي او دا حديث مونږ صرف درشدين بن كريب په سند پيژنو. ما د ابو محمد عبدالله بن عبدالرحمن دارمي نه درشدين بن كريب باره كي تپوس اوكړو چي رشدين زيات قوي دي كه محمد بن كريب دارمي اوونيل دواړه په مرتبه كي يو بل ته نژدي وو او زما په نزد رشدين بن كريب زيات راجح دي، بيا مي دامام بخاري نه په دي باره كي تپوس اوكړو نو هغه اوونيل محمد بن كريب درشدين بن كريب نه زيات راجح دي، زما په نزد د ابو محمد عبدالله بن عبدالرحمن دارمي خبره زياته صحيح دي چي رشدين بن كريب زيات راجح شخصيت دي هغه دابن عباس سره ليدل شوي دي او دوئ دواړه ورونړه دي او ددوئ نه منكر احاديث هم مروي دي.

*****************

## ١٥ـ باب مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ النَّفْخِ فِي الشَّرَابِ

## دڅکلو وخت کي دڅکلو په څيز کي دپوکي کولو دكراهت بيان

١٨٨٧ـ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ خَشْرَمٍ. أَخْبَرَنَا عِيسَى بْنُ يُونُسَ، عَنْ مَالِكِ بْنِ أَنَسٍ، عَنْ أَيُّوبَ وَهُوَ ابْنُ حَبِيبٍ، أَنَّهُ سَمِعَ أَبَا الْمُثَنَّى الْجُهَنِيَّ يَذْكُرُ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ " نَهَى عَنِ النَّفْخِ فِي الشُّرْبِ ". فَقَالَ رَجُلٌ: الْقَذَاةُ أَرَاهَا فِي الْإِنَاءِ. قَالَ: " أَهْرِقْهَا ". قَالَ: فَإِنِّي لَا أَرْوَى

---

١ ـ سنن ابن ماجه ـ الأشربة ١٨ (٣٤١٧). (تحفة الأشراف: ٦٣٣٤)

مِنْ نَفَسٍ وَاحِدٍ. قَالَ: "فَأَبِنِ الْقَدَحَ إِذَنْ عَنْ فِيكَ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (1)

**ترجمه** دابوسعيد خدري رضي الله عنه نه روايت دى چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي دڅكلو اوبو ته پوكى مه وركوئ يو سړي اوونيل كه په لوښي كې څه شى وي رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل لرې اوبه ترې توى كړه. هغه شى به ورسره لاړ شي هغه اوونيل زه په يوساه نه مړيږم اوچي لوښي كې ساه نه اخلم نو څه اوكړم؟ رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل لوښى دخولى نه لرى كړه اوساه واخله

امام ترمذي وايي دا حديث حسن صحيح دى

**لغات**: اهرقه اهر ق دفتح نه او اهرق دباب افعال نه په معني د اړولو دي . ددي اصل اراق يريق اراقة دي . همزه په هاء سره بدله كړي شوي ده اوبه همدي وجه په مضارع كې په يهرق كې هاء مفتوحه ده

اروي، سيراب كيدل، صفت يي ريان راځي . رواية الحديث معني نقل كول. فابين القدح. بان دضرب نه بيانا او تبيانا واضح كيدل

**تشريح**: نبي كريم صلي الله عليه وسلم دڅكلو په څيز كې دپوكي كولو نه منع فرمائيلي ده كه چري په لوښي كې بوس وغيره پريوځي نو په پوكي باندي ددي دلري كولو نه دا بهتر دي چي لګي اوبه دي واړولى شي اوكه چري كوم نقصاني څيز ورته پريوتى وي بياخو تولي اوبه اړول پكار دي اوكه چري قيمتي مشروب وي نوبيابه دا بوس وغيره په چمچ لري كولى شي

لااروي من نفث واحد: يعني زه په يوه ساه څكم . كه څوك په دري ساه ګانو اوبه څكي نو پدي شان سره هم مړيدل كيږي ، اومزيداري هم وي لكه چي په يوبل حديث كې راځي چي اوبه په يوه ساه مه څكئ بلكه په دري ساه ګانو يي څكئ

****************

١٨٨٨ـ حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ. حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنْ عَبْدِ الْكَرِيمِ الْجَزَرِيِّ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "نَهَى أَنْ يُتَنَفَّسَ فِي الإِنَاءِ أَوْ يُنْفَخَ فِيهِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (2)

**ترجمه** ابن عباس رضي الله عنه نه روايت دى چي رسول الله صلي الله عليه وسلم لوښي

---

1 ـ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ٤٤٣٦)

2 ـ سنن ابي داود ـ الأشربة ٢٠ (٣٧٢٨) . سنن ابن ماجه ـ الأشربة ٢٣ (٣٤٢٨) . (تحفة الأشراف: ٦١٤٩) سنن الدارمي ـ الأشربة ٢٧ (٢١٨٠)

کې ساه اخستو او اوبو ته پوکې ورکولو نه منع کړې ده
امام ترمذي روایت کړی دی او حدیث، حسن صحیح یې ورته ونیلی دی

**لغات**: نهي نهاه ینهاه نهیا معني رټل او منع کول، په مجردو کې دباب کرم او فتح نه اوپه مزیدو کې دباب افعال او افتعال وغیره نه مستعمل دي

**تشریح**: "رسول الله په لوښي کې دساه اخستلو نه منع فرمائیلي ده" ددي وجه داده چې په لوښي کې که ساه واخستلی شي نو د لاړو غورځیدو خطره ده کوم چې دکراهت باعث دی یاداچې په لوښي کې دساه اخستلو په وجه دلوښي نه دجراثمو دتیریدو خطره ده که چرې دځکونکي خیټي ته داخل شي نو نقصان به ورته ورسوي اوهمدارنګې دکوم ځیز دپوکلو نه یې هم منع فرمائیلي ده علماء وائي که چرې ګرم ځیز ته دیخولو دپاره پوکې اوکړې شي نو هم صحیح نه دي بلکه ددي یخیدو ته دي انتظار اوکړي

***************

## ١٦_ باب مَا جَاءَ فِي كَرَاهِيَةِ التَّنَفُّسِ فِي الإِنَاءِ

**په لوښي کې دساه اخستلو دکراهت بیان**

١٨٨٩_حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ مَنْصُورٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الصَّمَدِ بْنُ عَبْدِ الْوَارِثِ، حَدَّثَنَا هِشَامٌ الدَّسْتُوَائِيُّ، عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي كَثِيرٍ، عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ أَبِي قَتَادَةَ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "إِذَا شَرِبَ أَحَدُكُمْ فَلَا يَتَنَفَّسْ فِي الإِنَاءِ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (١)

**ترجمه** ابوقتاده دخپل پلار نه روایت کوي چې رسول الله صلي الله علیه وسلم فرمائیلي دي کله چې په تاسو کې ځوك اوبه اوځکي نو په لوښي کې دي ساه نه اخلي
امام ترمذي وایي: داحدیث حسن صحیح دي او محدثینو وربانديکلام کړي دي

**لغات**: الاناء: اناء معني لوخي جمع یې انیة راځي او جمع الجمع یې اواني راځي

**تشریح**: ددي روایت تشریح په ١٨٨٥ کې تیره شوه

***************

## ١٧_ باب مَا جَاءَ فِي النَّهْيِ عَنِ اخْتِنَاثِ الأَسْقِيَةِ.

**په مشکونوباندي دخولي ایخودلو په حالت کې داوبو ځکلو دکراهت بیان**

---

١ _

١٨٩٠_حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ رِوَايَةً أَنَّهُ " نَهَى عَنِ اخْتِنَاثِ الأَسْقِيَةِ ". قَالَ: وَفِي البَاب عَنْ جَابِرٍ، وَابْنِ عَبَّاسٍ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. ([1])

**ترجمه** دابوسعيد خدري رضي الله عنه نه مرفوعا مروي دي فرماني چي رسول الله صلي الله عليه وسلم داوبو څکلو وخت کي دمشک په خوله دخولي ايخودلو نه منع فرمانيلي ده

امام ترمذي وايي داحديث حسن صحيح دي او په دي باب کي دجابر، ابن عباس، او ابوهريره رضي الله عنهم نه هم احاديث مروي دي.

***************

## ١٨_ باب مَا جَاءَ فِي الرُّخْصَةِ فِي ذَلِكَ

### دمشک په خولي دخپلي خولي ايخودلو داجازت بيان

١٨٩١_حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ مُوسَى، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ، عَنْ عِيسَى بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أُنَيْسٍ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: " رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَامَ إِلَى قِرْبَةٍ مُعَلَّقَةٍ فَخَنَثَهَا ثُمَّ شَرِبَ مِنْ فِيهَا ". قَالَ: وَفِي البَاب عَنْ أُمِّ سُلَيْمٍ. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ لَيْسَ إِسْنَادُهُ بِصَحِيحٍ، وَعَبْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ العُمَرِيُّ يُضَعَّفُ فِي الحَدِيثِ، وَلَا أَدْرِي سَمِعَ مِنْ عِيسَى أَمْ لَا. ([2])

**ترجمه** عبدالله بن انيس رضي الله عنه بيان دي فرماني چي ما رسول الله صلي الله عليه وسلم په داسي حالت کي اوليدو چي يو زوړند مشک ته ورغلو او راکته يي کړو او بيا يي دمشک په خوله اوبه اوڅکلي.

امام ترمذي وايي :په دي باب کي دابن سليم نه هم روايت مروي دي (کوم چي روستو راروان دي او ددي حديث سند صحيح نه دي عبدالله بن عمر العمري په باب دحديث کي ضعيف دي او ماته دا نه ده ثابته چي دعمري سماع دعيسي نه ثابت ده او کنه ده.

### دعبدالله بن انيس حالات

---

[1] _ اخرجه البخاري في الصحيح_ الأشربة ٢٣ (٥٦٢٢) صحيح مسلم_ الأشربة (٢٠٢٣). سنن ابي داود_ الأشربة ١٥ (٣٧٢٠) سنن ابن ماجه_ الأشربة ١٩ (٣٤١٨). (تحفة الأشراف: ٤١٣٨). واحمد في المسند (٣_٦، ٦٧، ٦٩، ٩٣)

[2] اخرجه البخاري في الصحيح_ الوضوء ١٨ (١٥٣)، و ١٩ (١٥٤)، والأشربة ٢٥ (٥٦٣٠). صحيح مسلم_ الطهارة ١٨ (٢٦٧) سنن ابي داود_ الطهارة ١٨ (٣١). (تحفة الأشراف: ١٢١٠٥). واحمد في المسند (٥_ ٢٩٥، ٢٩٦، ٣٠٠، ٣٠٩، ٣١٠)

جابر رضي الله عنه د عبد الله بن انيس باره كي وايي يو خل ماته معلومه شوه چي دعبدالله بن انيس سره يو حديث دی او هغه په شام كې اوسيږي نو ما يو اوښ واخستو او شام ته روان شوم او دهغه نه مي هغه حديث واوريدو ،الادب المفرد للبخاري ،

**تخريج** سنن ابي داود_الأشربة ١٥(٣٧٢١) ، (تحفة الأشراف : ٥١٣٩)

***************

١٨٩٢_حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ. حَدَّثَنَا سُفْيَانُ. عَنْ يَزِيدَ بْنِ جَابِرٍ. عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي عَمْرَةَ. عَنْ جَدَّتِهِ كَبْشَةَ. قَالَتْ: " دَخَلَ عَلَيَّ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَشَرِبَ مِنْ فِي قِرْبَةٍ مُعَلَّقَةٍ قَائِمًا فَقُمْتُ إِلَى فِيهَا فَقَطَعْتُهُ ". قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ. وَيَزِيدُ بْنُ يَزِيدَ بْنِ جَابِرٍ هُوَ أَخُو عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ يَزِيدَ بْنِ جَابِرٍ وَهُوَ أَقْدَمُ مِنْهُ مَوْتًا. [1]

**ترجمه** : ام ثابت كبشه بنت ثابت رضي الله عنها نه چي دحسان بن ثابت رضي الله عنه خور ده روايت دی چي رسول الله صلي الله عليه وسلم مونږ كره تشريف راوړو نو ديو اويزان مشك نه يې په ولاړه اوبه اوڅكلی زه ورپاسيدم دمشك خوله مې پرې كړه، په دې غرض چي كوم خايې رسول الله صلي الله عليه وسلم مباركه خوله لګولی ده هغه دبركت دپاره محفوظ كړم، او داستعمال نه يې بچ كړم،

امام ترمذي وايي : داحديث حسن صحيح غريب دي.

**لغات** من في قربة معني دګوډي دخولي نه الفوه او الفاه الفيه معني خوله جمع يې افواه راخي ، فوه داسماء ستة مكبرة نه دي ، تبرك به، معني بركت يې ورباندي حاصل كړو، البركة معني زيادت ، البذل ، معني وركړه، اوسخاوت كول دباب ضرب نه

**تشريح**: "يعني رسول الله صلي الله عليه وسلم په ولاړه دزوړند مشك دخولي نه اوبه وڅكلي، دلته دا سوال پيدا كيږي چي دمشك په خولي خوله ايخودل او اوبه څكل خو په تير شوي روايت كې منع كړی شوي وو او دلته ددي كار جواز معلوميږي ددي يو څو جوابونه دي دممانعت تعلق دلوي مشك سره وو او دلته چي جواز دی دادوړوكي مشك متعلق دی، بل جواب دادی چي دلته اجازت دبعضي بعضي وخت دپاره وركړی شوی دی او په تير شوي روايت كې چي ممانعت دی هغه دمستقل عادت دجوړولو نه دی بعضي علماء وائي چي دلته صرف جواز راغلی دی او تير شوی روايت په افضليت محمول دی بعضو خلقو وئيلي دي كه وړوكی لوښی

[1] _ ابن ماجه_الأشربة ٢١(٣٤٢٣) ، (تحفة الأشراف : ١٨٠٤٩) ، واحمد في المسند(٦_ ٤٣٤)

موجود وي بيا جائز نه دي او كه موجود نه وي نو جائز دي يا داچي په شروع كې جائز وو او بيا دجواز حديث منسوخ شو

ددى حديث شريف نه دمشكوړې دخولې نه اوبو څكلو جواز ثابتيږي نو مخكښې دواړه حديثونه دفضيلت اوكمال دپاره دي يعني بهتره داده چي دمشك وغيره دخولې نه اونه څكلې شي. اوكه لوښى موجود نه وي يا بل څه ضرورت وي نوخيردى

## د ام ثابت كبشه بنت ثابت رضي الله عنها حالات

نوم كبشه كنيه ام ثابت دا يوه انصاريه صحابيه ده او دمشهور شاعر حسان بن ثابت رضي الله عنه خور ده ددينه صرف همدا روايت مروي دى كوم چي په ترمذي او ابن ماجه وغيره كې موجود دى

****************

## ١٩_ بَاب مَا جَاءَ أَنَّ الأَيْمَنَ أَحَقُّ بِالشَّرَابِ

## په څښه كې په څكلو كې ښي طرف والا د مقدم كولو زيات حقدار دي

١٨٩٣_حَدَّثَنَا الأَنْصَارِيُّ، حَدَّثَنَا مَعْنٌ، حَدَّثَنَا مَالِكٌ، قَالَ: وحَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، عَنْ مَالِكٍ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ أَنَسٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "أُتِيَ بِلَبَنٍ قَدْ شِيبَ بِمَاءٍ، وَعَنْ يَمِينِهِ أَعْرَابِيٌّ، وَعَنْ يَسَارِهِ أَبُو بَكْرٍ، فَشَرِبَ، ثُمَّ أَعْطَى الأَعْرَابِيَّ، وَقَالَ: الأَيْمَنَ فَالأَيْمَنَ". قَالَ: وَفِي البَاب عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، وَسَهْلِ بْنِ سَعْدٍ، وَابْنِ عُمَرَ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ بُسْرٍ، قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. (1)

**ترجمه** انس رضي الله عنه نه روايت دى چي يو ځل رسول الله صلي الله عليه وسلم ته پې راوړې شو چي پكښې اوبه اچولې شوي وې (يعني دپيو لسي وه) د رسول الله صلي الله عليه وسلم ښي لاس ته يو باندچي وو اوګس لاس ته يې ابوبكر وو رسول الله صلي الله عليه وسلم پې وڅكلې نولوښى يې باندچي ته وركړو. اوويې فرمائيل دښي لاس حق دى . بيا وروسى دښي لاس يعني اول څكونكى به لوښى خپل ښي لاس والا ته وركړى اوهغه يې خپل ښي لاس ته دغه شان به دمجلس تر اخره چليږي

---

[1] _ اخرجه البخاري في الصحيح_ الأشربة ١٣ (٥٦١٣)، و ١٨ (٥٦١٩) والشرب ١ (٢٣٥٢)، والهبة ٢ (٢٥٧١)، صحيح مسلم_ الأشربة ١٧ (٢٠٢٩)، سنن ابي داود_ الأشربة ١٩ (٣٧٢٦)، سنن ابن ماجه_ الأشربة ٢٢ (٣٤٢٥)، (تحفة الأشراف: ١٥٢٨)، وموطا امام مالك_ صفة النبي ﷺ ٩ (١٧)، واحمد في المسند (٣_ ١١٠، ١١٣، ١٩٧)، سنن الدارمي_ الأشربة ١٨ (٢١٦٢)

امام ترمذي وايي دا حديث حسن صحيح دی

**لغات:** شيب شاب يشوب شوبا وشيبانا يوخاي كول ، مصدر دي دباب نصر نه

**تشريح** دشيب مطلب دی گډکړي شوي يعنی سوچي پیِ نه وو اوبه به يی ورکښی اچولی وي يعني دپيولسي وه. علماء وائي په گرمو علاقو کې په شودو کې اوبه اچول او څکل مفيد دي ددي په وجه مزاج معتدل کيږي ددي روايت نه معلومه شوه چي شوده او اوبه گډول او څکل سنت دي . علامه عيني وائي چي دڅکلو دپاره په شودو کې اوبه اچول خو سنت دي مگر دخرڅولو دپاره داسي كول نه دي پكار امام بخاري هم په دي باندي باب قائم كړی دی.

ددي روايت نه دا هم معلومه شوه چي كله تقسيم شروع كوئ نو دښي طرف نه به شروع كوئ. علماء وائي دا حديث درسول الله په عدل او انصاف او حق شناسئ باندي شهادت وركوي

الايمن فالايمن . يعني ښي طرف والازيات حقدار دی، كه چري كوم څيز تقسيموئ نو دښي طرف نه به شروع كوئ علماء وائي كه ايمن لفظ دنون په پيش سره اولوستلی شي نو ترجمه به دا وي چي ښي طرف والامقدم دئ او بيا ښي طرف والا يعني ښي طرف والااو بيا چي دهغه سره څوك برابر وي تردي چي دتولو په اخر كې به هغه كس وي څوك چي په گس طرف كې ناست وي ليكن بعضي علماء ايمن دنون په زور سره لولي په دي اعتبار به ترجمه دا وي چي زه ښي طرف والاته وركوم او بيا ښي طرف والاته دپورتني حديث نه معلوميږي چي دتقسيم وخت كې ښي طرف والامقدم كول مستحبٌ دي اگر كه ښي طرف والا په درجه كې دچپ طرف والانه كم وي لكه چي دپورتني حديث نه معلوم شول چي رسول الله صلي الله عليه وسلم يو ديهاتي په صديق اكبر رضي الله عنه مقدم كړو بعضي علماء وائي چي دا حديث دنبي كريم صلي الله عليه وسلم په عدل او انصاف او حق شناسئ باندي شهادت كوي.

****************

## ٢٠_ بَاب مَا جَاءَ أَنَّ سَاقِيَ الْقَوْمِ آخِرُهُمْ شُرْبًا

## ساقي(په خلقو څكونكي ) به پخپله په اخر كي څكي

١٨٩٤_حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ ثَابِتٍ الْبُنَانِيِّ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ رَبَاحٍ، عَنْ أَبِي قَتَادَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "سَاقِي الْقَوْمِ آخِرُهُمْ شُرْبًا". قَالَ: وَفِي الْبَابِ عَنِ ابْنِ أَبِي أَوْفَى. قَالَ أَبُو عِيسَى: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ. [1]

**ترجمه** دابوقتاده رضي الله عنه نه روايت دی چي رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمانيلي دي، دقوم ساقي تولو نه ورستی وي يعني په څكلو كي دتولو نه ورروستی وي

---

[1] _ صحيح مسلم . المساجد ٥٥ (٦٨١) . (في سياق طويل) سنن ابن ماجه الأشربة ٢٦ (٣٤٣٤) . (تحفة الأشراف ١٢٠٨٦) . واحمد في المسند (٥_٣٠٣)

دا حديث امام ترمذي روايت كړی دی او حديث حسن صحيح يی ورته وئيلی دی اوپه دي باب كي د عبد الله بن اوفي رضي الله عنه نه هم روايت وارد دی

**لغات**: ساقي اسم فاعل صيغه ده جمع يي سقاة او ساقون راخي په معني دڅكونكي د اوبو دي په خلقو باندي

**تشريح**: په پورتني روايت كې دتقسيم كولو اداب بيانيږي چي تقسيمونكی به په اخره كې څكي اوكه دخوراك څيز وي نو په اخره كې به خوري اوپه همدي طريقي سره به دتقسيمونكی شان ظاهريږي او ددي په سبب به دده په عزت او وقار كې اضافه راخي

**د ابوقتاده حارث بن ربعي رضي الله عنه حالات**

نوم ابوقتاده لقب ففارس رسول الله صلي الله عليه وسلم په خزرج قبيله كښي يي دسلمه خاندان سره تعلق وو

دهجرت نه لس كاله مخكښي په مدينه كښي پيدا شوے وو او دغزوه بدر نه علاوه يي په تمامو غزواتو كښي شركت كړے وو علي رضي الله عنه ده لره دمكي امير مقرر كړے وو قتاده ډير زيات متواضع وو او د درس حلقه يي په همدي وجه وسيع وه په حديبيه كښي چه كله درسول الله صلي الله عليه وسلم سره مكي ته تلو نو په لاره كښي يي ددوستانو او ملګرو سره توقي او خندا كوله (مسند احمد)

په غزوه حنين كښي چه دلويو لويو جانبازانو قدمونه اوخويدل نو پدغه وخت كښي دابوقتاده خپې مضبوطي وې دحديث په بيانولو كښي يي ډير احتياط كولو چه كله يي درسول الله صلي الله عليه وسلم نه من كذب علي متعمدا والا روايت واوريدو نو نور زيات احتياط يي هم شروع كړو (مسند احمد) دده په وفات كښي اختلاف دے بعضو ۴۹هجري كوفه ليكلي ده ليكن داكثرو په نزد دپنخوس او شپيتو په مينځ كښي دده وفات شوے دے.

دده دمرواياتو شمير ۱۷۰ دے چه يولس په بخاري او مسلم كښي متفق عليه دي دولس په بخاري كښي دي او اته په مسلم كښي دي

***************

## ۲۱_ بَاب مَا جَاءَ أَيُّ الشَّرَابِ كَانَ أَحَبَّ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

**په مشروباتو كي كوم مشروب د رسول الله زيات خوښ وو**

۱۸۹۵_حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عُمَرَ. حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ. عَنْ مَعْمَرٍ. عَنِ الزُّهْرِيِّ. عَنْ عُرْوَةَ. عَنْ عَائِشَةَ. قَالَتْ: "كَانَ أَحَبُّ الشَّرَابِ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْحُلْوَ الْبَارِدَ". قَالَ أَبُو

عِيسَى: هَكَذَا رَوَى غَيْرُ وَاحِدٍ، عَنِ ابْنِ عُيَيْنَةَ مِثْلَ هَذَا، عَنْ مَعْمَرٍ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، وَالصَّحِيحُ مَا رُوِيَ عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُرْسَلًا. [1]

**ترجمه** د ام المؤمنين عائشه رضي الله عنها نه مروي دي چي رسول الله صلي الله عليه وسلم به يخ او خوږ مشروب د نورو مشروباتو نه زيات خوښولو

امام ترمذي وايي: دا روايت دابن عيينه نه نورو راويانو عن معمر عن الزهري عن عروة عن عائشة په سند هم نقل كړى دى ليكن صحيح هغه روايت دى كوم چي د زهري په واسطه د رسول الله نه مرسل مروي دى.(كوم چي وړاندي راروان دي)

***************

١٨٩٦- حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدٍ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ الْمُبَارَكِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، وَيُونُسُ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سُئِلَ: أَيُّ الشَّرَابِ أَطْيَبُ؟ قَالَ: "الْحُلْوُ الْبَارِدُ". قَالَ أَبُو عِيسَى: وَهَكَذَا رَوَى عَبْدُ الرَّزَّاقِ، عَنْ مَعْمَرٍ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُرْسَلًا. وَهَذَا أَصَحُّ مِنْ حَدِيثِ ابْنِ عُيَيْنَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ. [2]

**ترجمه**: د زهري بيان دى چي درسو الله صلي الله عليه وسلم نه تپوس وكړى شو چي په مشروباتو كي كوم يو مشروب بهتر دي؟ نو وني فرمائيل خوږ او يخ

امام ترمذي وايي: دا روايت عبد الرزاق هم دمعمر نه او معمر د زهري نه او زهري درسول الله نه مرسل نقل كړى دى.او دا روايت دابن عيينه درروايت نه زيات صحيح دى.

**تاليف**: ابوهلال "عبدالخالق" خَرِيجُ الجَامِعَة إِمْدَادُ الْعُلُوْمِ الْإِسْلَامِيَّةِ پِشَاوَر_

وفاضل وفاق المدارس العالمية (ايم اى اسلاميات) رابطه نمبر: ٠٣٣٣٩١٢١١٩٢

**مصحح**: مولانا عبد الوافي بن عبد الباقي رودات حصارك مزينه . فاضل جامعه امداد العلوم پشاور

---

[1] _ تفرد به المؤلف (أخرجه النسائي في الكبرى) (تحفة الأشراف ١٦٦٠١)

[2] _ تفرد به المؤلف (تحفة الأشراف: ١٩٣٩٤ و ١٩٤١٣)